# فوز المبتدي

## بشرح

## مختصر القدري

## دوئم جلد

تالیف:- مولانا شاه فیصل

فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، دار العلوم اسلامیه چارسده

### خصوصیات

① جملة ترجمه یعنی هرې جملې سره متصل د هغې ترجمه

② هره مسئله به مستقل متن کښې ذکر کول

③ د متن د هرې مسئلې د باره نقلي عقلي یا دواړه قسمه دلائل ذکر کول

④ د احادیثو تخریج کول

⑤ د حنفیانو په خپل مینځ کښې د اختلاف ذکر مع دلائل

⑥ د حنفیانو په خپل مینځ کښې د اختلاف په صورت کښې د قول راجح تعین کول

⑦ د نورو امامانو مذاهب بغیر د دلائلو نه څنګه لاندې په حاشیه کښې ذکر کول

⑧ د کتاب په اول کښې د فقه سره متعلق تاریخي مقدمه ذکر کول

⑨ د ګرانو لغاتو حل

⑩ د قوسینو په مینځ کښې د قندهاري ټکو اضافه کول

فیصل کتب خانه

بالمقابل مکتبه حقانیه محله جنګي پیښور قصه خوانۍ پیښور

موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۲۵

د کتاب نوم:- فوزالمبتدی بشرح مختصرالقدوری
مؤلف: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس
خورونکی فیصل کتب خانه محله جنگی

دملاویدو پتې:

د فیصل کتب خانې نه علاوه

① مکتبه رشیدیه سرکی روډ کوټه
② مکتبه عمریه چمن بلوچستان
③ صداقت کتب خانه قندهار افغانستان
④ امیرحمزه کتب خانه قندهار
⑤ دینی کتب خانه تیمرګره (پختونخواه)
⑥ قدرت کتاب فروشی کابل ښار
⑦ انصاف کتب خانه جلال آباد
⑧ اخون زاده کتب خانه ټل

خپرونکی

فیصل کتب خانه
بالمقابل مکتبه حقانیه محله جنگی پیښور قصه خوانئ پیښور
موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۲۵

## باب البيع الفاسد

(كتاب الاجارة) ١٨٦

## كِتَابُ الشُّفْعَةِ

## كِتَابُ الشِّرْكَةِ ............ ۲۵۵

# بَابُ البَيْعِ الفَاسِدِ

**ترجمه>** (دا) باب د بيع فاسد (په بيان كښې) دې.

**تعريح>** بيع په دوه قسمه ده صحيح او غيرصحيح مصنف رحمه الله د اول قسم نه فارغ شو او اوس په په دويم قسم كښې شروع كوى. اوبيع صحيح چونكه اصل ده.په دې وجه ئې دا وړاندې، او بيع غيرصحيح روسته بيان كړې ده.

**تعريف البيع الباطل وحكمه>** د بيع غيرصحيح څلورقسمونه دى. ① بيع باطل، دا د ذات او وصف دواړه اعتبارسره مشروع نه وى.لكه د معدوم بيع، يا د غيرمال مثلاً د مردار وغيره بيع شوه. دا بيع بالكل مفيد د ملك نه وى.نه د قبضې نه وړاندې،او نه د قبضې نه پس.كه يوكس د مردار په عوض باندې غلام واخستلو.او په ده ئې قبضه اوكړله.او آزاد ئې كړلو.نو غلام به آزاد نه وى.څكه چه د مردار بيع باطل ده.

**تعريف البيع الفاسد وحكمه** ② بيع فاسد، دا د ذات په اعتبار سره مشروع وى.خود وصف په اعتبار سره مشروع نه وى.لكه د غيرمقدورالتسليم بيع شوه.يعنى يو داسې څيز خرڅول چه ددې په سپارلو باندې قادر نه وى.لكه تختيدلې غلام يا د عقد دمقتضى خلاف شرط لګول.اومكره داده.چه د ذات او وصف دواړه اعتبار سره مشروع وى.خو فعل منهى عنه دې سره متصل شوې وى.لكه د جمعې د اذان نه پس خرڅول. دا په قبضه كولو سره مفيد د ملك وى.كه يوكس د شراب په عوض كښې غلام واخستلو.او په ده ئې قبضه اوكړله.او دا ئې آزاد كړلو.نودا غلام به د مشترى د طرفه آزاد وى.او په ده به د غلام قيمت واجب وى.څكه چه د شراب په عوض بيع فاسد وى.

**تعريف البيع الموقوف وحكمه** ③ بيع موقوف، او بيع موقوف داده.چه د ذات او وصف دواړو اعتبار سره ټيك وى.خو ددې نفاذ د عاقدينو نه علاوه د يو دريم كس په اجازت باندې موقوف وى.لكه د غلام بيع د مولا په اجازت باندې موقوف وى. دا بيع، ،موقوف على سبيل التوقف، ، مفيد د ملك وى.

**تعريف البيع المكروه وحكمه** ④ بيع مكروه دا هغه ده چه د اصل او وصف دواړو په اعتبار سره صحيح وى خو دې سره يومنهى عنه څيز ملګرى شى نو دهغې په وجه په كښې كراهت پيدا شى لكه د جمعې د اذان په وخت كښې بيع كول.اودامفيد دملك ده.خو سره د كراهته.

**وجه تسمية الباب بالبيع الفاسد>** بيع فاسد د كثرت اسباب په وجه چونكه كثيرالوقوع ده.په دې وجه عنوان كښې د فاسد لفظ ذكر كړې شو.اګرچه په دې كښې د بيع باطل،بيع مكره، اود بيع موقوف احكام هم ذكر دى.

**د بيع باطيدلو يا فاسيدلو معيار**

| إِذَا كَانَ أَحَدُ الْعِوَضَيْنِ أَوْ كِلَاهُمَا مُحَرَّمًا كله چه يوعوض يا دواړه حرام وى فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بيع فاسد ده كَالْبَيْعِ بِالْمَيْتَةِ لكه د مردار په عوض بيع، أَوْ بِالدَّمِ يا د وينې په عوض سره أَوْ بِالْخَمْرِ يا د شرابو په عوض أَوْ بِالْخِنْزِيرِ، يا د خنزير په عوض |
|---|

**حل اللغة> الميتة:** مرداره ، **الدم:** وينه ، **الخمر:** شراب ، **الحر:** آزاد سرې

**تعريح> فساد البيع اذا كان احد العوضين حراما>** ابو الحسن قدورى رحمه الله فرمائى.چه مبيع يا ثمن يا دواړه كه شرعا حرام وى.نو بيع فاسد ده.لكه مردار، يا وينه، يا شراب، يا خنزير،يا آزاد سرې ئې ثمن جوړ كړې وى.

علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی چه امام ابوالحسن قدوری رحمه الله دا ټول صورتونه بیع فاسد ګرځولی دی.حالانکه په دې کښې بعض بیع فاسد دی.او بعض باطل دی.
تفصیل ددې دادې.که مردار، یا وینه، یا آزاد سړې ئې ثمن جوړ کړلو.او کپړې وغیره څه څیز ئې مبیع جوړکړلو.نو په دې صورتونوکښې به بیع باطل وی.څکه چه د بیع رکن، ، مبادلة المال بالمال بالتراضی، ، دې. او مردار وغیره ذکرشوی څیزونه د دین سماوی په منونکو کښې دچا په نیز هم مال نه شمارلې کیږی.څکه چه مال هغه وی.چه دې طرف ته د انسان طبیعت مائل شی.اود ضرورت د وخت دپاره ددې ذخیره کول ممکن وی. نو چونکه مردار،او وینې طرف ته نه طبیعت مائل کیږی.اونه دا ذخیره کولې شي.
اوهم دغه شان آزاد سړې هم ذخیره کولې نشی.په دې وجه به دا څیزونه مال نه وی.اوهرکله چه دا څیزونه مال نشو.نو، ، مبادلة المال بالمال، ، هم موجود نشو.بلکه، ،مبادلة المال بغیرالمال، ، موجود شو.حالانکه، ، مبادلة المال بالمال، ، د بیع رکن دې.نود بیع رکن معدوم شو . اود شئ رکن په معدوم کیدلوسره شئ باطلیږی.په دې وجه ذکرشوی صورتونوکښې بیع باطلیږی.
**فساد بیع الخمر والخنزیر** > او که شراب یا خنزیر ثمن جوړکړې شو.نو بیع به فاسد وی.
**دلیله** > څکه چه شراب اوخنزیرد ذمیانو په نیز مال شمارلې کیږی.نود ، ،مبادلة المال بالمال، ، موندلو په وجه د بیع حقیقت اوموندې شو.خوچونکه مسلمان نه د شراب اوخنزیر په سپارلو قادر دې.او نه ئې قبضه کولو قادر دې.په دې وجه د ، ،غیرمقدور التسلیم، ، څیز ثمن جوړولو په وجه به بیع فاسد وی.
**بطلان بیع المیتة والدم والحراذا کان مبیعا**- علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.چه لکه څنګه مردار، وینه،اود آزاد سړې د ثمن جوړولو په صورت کښې بیع باطلیږی.دغه شان که دا څیزونه مبیع جوړکړې شو.نو بیا به هم بیع باطل وی.څکه چه دا څیزونه هرکله مال نه دی.نومحل د بیع یعنی مبیع هم نشی کیدلې.اوهر کله چه مبیع غیرمال دې.نود بیع رکن، ، مبادلة المال بالمال، ، هم موجود نشو.او هرکله چه رکن د بیع موجود نشو.نو بیع به یقینا باطل وی.
**صورة بطلان بیع الخمر والخنزیر** > کله چه شراب یا خنزیر خرڅوی نو ددې یو صورت دا دې چه ددې په مقابله کښې به دین یعنی دراهم او دنانیر ذکر وی.نوپه دې صورت کښې بیع باطل ده.څکه چه دا بیع نه په شرابو کښې د ملك فائده ورکوی.او نه ددې په مقابل دراهم او دنانیروکښې ملك ثابتوی.څکه چه بیع باطل بالکل مفید د ملك نه وی.
**صورة فساد بیع الخمر والخنزیر** > په دې عبارت کښې د شرابو او خنزیر د خرڅ دویم صورت بیانوی هغه دا چه ددې په مقابله کښې عین وی مثلا د کپړې ئان ذکر وی.نو په دې صورت کښې بیع فاسد ده.څکه چه مشتری به د ثوب یعنی د کپړې د تهان د قیمت په عوض د کپړې دتهان مالك شی.خو عاقدآخر به د شرابو اود خنزیر مالك نه وی.
**وجه الفرق بین الصورتین** > په دې دواړو صورتونوکښې وجه د فرق داده.چه شراب او خنزیر د ذمیانو په نیز مال شمارلې کیږی.خو شرعا غیرمتقوم او غیرمنتفع به دې.او شرعاً غیرمتقوم څکه دې.چه الله تعالی دې ته رجس یعنی پلیت وئیلې دې اود دې نه د ځان ساتلو حکم فرمائیلې دې.اودا ښکاره ده.چه پلیت څیز هیڅ کله معزز نشی کیدلې.بلکه دا د سپکوالی قابل وی.اود خنزیر حرمت ئې په قرآن پاك کښې بیان کړې دې اوکوم څیز چه حرام کړې شی.هغه د شریعت په نظر کښې معزز نه وی.بلکه د اهانت قابل وی.دې دواړو آیتونو نه ثابته شوه.چه شراب او خنزیر دواړه مستحق د اهانت دی.او ددې د عزت نه کولو حکم دې.
په کوم صورت کښې چه ددې په مقابل کښې د دراهمو او دنانیرو ذکرشوې دې.په هغه صورت کښې

شراب او خنزير مبيع،او دراهم او دنانير ثمن دي.او په عقدبيع كښې مبيع مقصود وي.ثمن مقصود نه وي.ثمن خود مبيع حاصلولو ذريعه او وسيله وي.ځكه چه ثمن يعنې دراهم او دنانير په ذمه واجب وي.او كوم څيز چه په ذمه كښې واجب وي.هغه غير مقصود وي.نو ثابته شوه.چه ثمن يعنې دراهم او دنانير غيرمقصود دي.او مبيع يعنې شراب او خنزير مقصود دي.او شراب اوخنزير په مقصود ګرځولو كښې ددې عزت كول لازميږي.حالانكه ددې عزت كول خلاف مامور به دي.نود شراب او خنزير متقوم كيدل،بالكليه ساقط شو.پخپله ددې په حق كښې هم،اوددې په مقابل يعنې د دراهم او دنانيرو په حق كښې هم.نو مبيع غيرمتقوم شو.اود غيرمتقوم څيز بيع باطل وي.په دې وجه به په دې صورت كښې بيع باطل وي.

كه د شراب اوخنزير په مقابله كښې دكپړې تهان ذكر شو.نودا بيع فاسد ده.كه پخپله ئې تهان مبيع، او شراب ثمن جوړكړي وي.او كه شراب ئې مبيع،او تهان ئې ثمن جوړكړې وي.ځكه چه دا بيع مقايضه ده.او په بيع مقايضه كښې په عوضينوكښې هر يو ثمن هم كيدلې شي.او مبيع هم كيدلې شي.نو هركله چه هر يو ثمن او مبيع دواړه كيدلې شي.نود كپړې تهان مبيع او شراب به ثمن ګرځولې شي.او هركله چه د كپړې تهان مبيع شو.نو اعزاز د كپړې اوشو.د شرابو اونشو.ځكه چه شراب د ثمن كيدلو په وجه د كپړې حاصلولو ذريعه ده.پخپله مقصود نه ده.نو هركله چه اعزاز د كپړې اوشو. د شرابو اعزاز اونشو.نو خلاف مامور به هم نه لازميږي.او هركله چه د خلاف مامور به ارتكاب لازم نشو.نو بيع به باطل هم نه وي.خو چونكه شراب غيرمتقوم دي.اود مسلمان دا سپارل،او په دې باندې قبضه كول، دواړه ناجائز دي.ځكه به ددې ثمن جوړول،او ذكركول فاسد وي.او ددې په وجه به بيع فاسد وي.اود ثوب په مشتري به د كپړې قيمت واجب وي.

**الاشكال>** پاتې شوه داخبره چه هركله دواړه عوضين ثمن او مبيع دواړه كيدلې شي.نو شراب ثمن او كپړې مبيع ولې جوړكړې شو؟

**الجواب عنه>** ددې جواب دادې.چه د شرابو د مبيع جوړولو په صورت كښې بيع باطليږي.اود ثمن جوړولو په صورت كښې بيع فاسد وي.نود مسلمان تصرف په قدر د امكان، د بطلان نه د بچ كولو دپاره د فساد طرف، په طرف د بطلان باندې ترجيح وركړې شوې ده.ځكه چه فاسد اباحت ته نيزدې وي.او په باطل كښې د اباحت هيڅ وجه موجود نه وي.

### د ام الولد،مدبر،اود مكاتب بيع

| |
|---|
| وَكَذٰلِكَ اِذَا كَانَ الْمَبِيْعُ غَيْرَ مَمْلُوْكٍ دغه شان كله چې وى مبيع غير مملوك كَالْحُرِّ وَبَيْعِ أُمِّ الْوَلَدِ وَالْمُدَبَّرِ وَالْمُكَاتَبِ فَاسِدٌ لكه آزاد سړي اود ام ولد ، مدبر اود مكاتب بيع فاسد ده. |

**تشريح>** ① ام ولد هغه وينځې ته ونيلې شي.چه دې سره ددې مولا جماع كړې وي.او ددې په نتيجه كښې ددې بچې پيدا شوې وي.② مدبر هغه غلام ته وائي چه چه دده آزادي دده مولا په مطلق مرګ باندې معلق كړې وي.مثلاً داسې ئې ونيلې وي.چه ته زما د مرګ نه پس آزاد ئې.يا كه زه مړ شوم.نو ته آزاد ئې.او دې ته مدبر مطلق وائي ③اويا دا چه دده آزادي دده مولا په يوخاص مرګ باندې معلق كړې وي.مثلاً داسې ئې ونيلې وي.كه زه په فلانې سفر كښې مړ شوم.نو ته آزاد ئې.يا ئې داسې ونيلې وي.كه زه په فلانئ بيمارئ كښې وفات شوم.نو ته آزاد ئې.دې ته مدبر مقيد وائي ④ اومكاتب هغه غلام ته وائي.چه دده دپاره مولا بدل كتابت مقرر كړې وي.اود آزادولو معامله ئې ورسره كړې وي.

**المراد من الفساد>** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلي دي.د ذكرشو غلامو په بيع باندې د بيع فاسد نه مراد بيع باطله ده او دا وضاحت شارح ځكه اوكړو چه په فاسد ونيلو سره دا وهم كيږي.چه په قبضه

کولوسره په ذکرشوی غلامانوکښې د مشتري ملك ثابتيږي. حالانکه داسې نه ده.بلکه ددوی بيع بالکل مفيد د ملك نه ده.اګرچه مشتري قبضه ولې نه وی کړې.اود بيع بالکل مفيد د ملك نه کيدل،ددې د باطل کيدلو علامت دې.

**دليله** اود بطلان دليل دادې.چه د ام ولد دپاره د آزاديدلو استحقاق پيدا ثابت شو.يعنی ام ولد به د آزاديدلو مستحق وی.ځکه چه د رسول الله ﷺ وينځې ماريه قبطيه رضي الله عنها نه کله د ابراهيم رضي الله عنه ولادت اوشو.نو نبی کريم ﷺ ته غرض اوکړې شو.(ألا تعتقها) آيا تاسو به دا نه آزادوئ.نبی کريم ﷺ ارشاد اوفرمائيلو.(أعتقها ولدها) (۱) ددې ځوی دا د آزادئ متسحق کړله.دحديث حقيقی معنی اګرچه داده.چه ددې ځوی دا آزاده کړله.خودا معنی بالاتفاق مراد نه ده.بلکه مجازی معنی (چه ددې ولد دا د آزادئ مستحق کړله) مراد ده.

نوخلاصه دا شوه چه ام ولد د آزادئ مستحقه وی.اود مدبر په حق کښې فی الحال د حريت او آزادئ سبب ثابت دې.ځکه مولی يو عاقل انسان دې اوهغه د خپل غلام د مدبر کولو اعلان کړې دې اودعاقل کلام مهمل او لغو نه وی نو سبب د حريت ثابت في الحال ثابت شو.

او مکاتب پخپل ذات باندې دتصرف مستحق دې.اګرچه دا تصرف د مولا په حق کښې لازم دې.اود مکاتب په حق کښې غيرلازم دې.د مولا په حق کښې ځکه لازم دې.چه کله عاجز شی. نود مولا د رضامندئ نه بغير فسخ کولې شی.په دې وجه دده په حق کښې دا تصرف غيرلازم دې.

نو که د ذکر شوی غلامانو د بيع په وجه دمشتري دپاره ملکيت ثابت شی.يعنی مشتري د ام ولد ،مدبر،اود مکاتب مالك شی.نود ام ولد استحقاق آزادی،اود مدبر سبب آزادی،اود مکاتب پخپل ذات باندې تصرف ټول باطليږي. ځکه چه د ام ولد استحقاق آزادی ،اود مشتري دپاره ثبوت ملك په مينځ کښې،اود مدبر په حق کښې سبب آزادی،اود ثبوت ملك په مينځ کښې،اود مکاتب پخپل ذات باندې استحقاق تصرف،اود ثبوت ملك په مينځ کښې منافات دې.او قاعده ده.چه د ,,احدالمتنافيين،، د نه ثابتيدلو نه پس آخر منتفي کيږي.نو هرکله چه د مشتري دپاره ملك ثابت شي.نو استحقاق آزادی،او سبب آزادی،او استحقاق تصرف ټول باطليږي.حالانکه دا درې واړه څيزونه باطل نه دی.بلکه ثابت دی.لکه څنګه چه وړاندې په دليلونو سره معلوم شوی دی.او هرکله چه دا درې واړه څيزونه ثابت دی.نود مشتري دپاره به ملك ثابت نه وی.ځکه چه د دوه متنافي څيزونو جمع کول محال دی.او هرکله چه د مشتري دپاره ملك ثابت نشو.نو معلومه شوه.چه دا بيع مفيد د ملك نه ده.او کومه بيع چه مفيد د ملك نه وی.هغه باطل وی.په دې وجه به د ذکر شوی غلامانو بيع باطل وی.

علامه مرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی.که مکاتب پخپله بيع باندې پخپله راضی شو.نو په دې کښې دوه روايتونه دی. يو روايت د عدم جواز دې.او دويم روايت دجواز دې.ښکاره هم دغه ده.ځکه چه عدم جواز د مکاتب د حق په وجه وو.خوکله چه ده پخپله رضامندئ سره پخپله خپل حق ساقط کړلو.نو کتابت به فسخ وی.او بيع به جائز وی.ددې تائيد د صحيحينو حديث سره هم کيږي.چه حضرت عائشه رضي الله عنها بريره مکاتبه ددې په رضامندئ سره واخستله.او آزاده ئې کړله.

**دمهی ښکار کولو نه وړاندې د بيع حکم**

| وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ السَّمَكِ فِي الْمَاءِ قَبْلَ أَنْ يُصْطَادَ اود ښکار کولو نه وړاندې په اوبو کښې د کب بيع جائز نه ده |
|---|

---

۱) للقدم تخريجه في باب الإستيلاد_

**حل اللغة> السمك:** کب ، **يصطاد:** چه ښکارشي

**تشريح> عدم جواز بيع السمک في الماء>** ① اصولي طور دا خبره په ذهن کښې ساتئ:چه د بيع د جواز دپاره مبيع د بائع مملوك او مقدورالتسليم کيدل ضروري دی.که مبيع د بائع مملوك نه وی.يا مملوك وی.خو مقدورالتسليم نه وی.نو بيع به جائز نه وی. ② په کومو صورتونوکښې په اوبوکښې دننه د مهيانو خرڅول جائز دی.په هغه صورتونوکښې به مشتری ته خيار رؤيت حاصل وی.ځکه چه د مهيانو (کبانو) په اوبوکښې کتل، په اوچه باندې د کتلونه مختلف وی. يعنی په اوبو کښې دننه کتل،د اوچې کتلو دپاره کافی نه دی.

صورت د مسئلې دادې.چه د ښکار کولو نه وراندې په درياب يا نهر کښې د مهيانو خرڅول جائز نه دی.

**دليله>** ځکه چه مهيان تر کومه پورې په درياب يا تالاب کښې وی.تر هغه وختـه پورې دا د چا ملك نه وی.بلکه مباح وی.هرسړې دا نيولې شی.اود غيرمملوك بيع جائز نه ده.په دې وجه د مهيانو بيع په دريا يا تالاب کښې جائز نه ده.

## په هواکښې د مارغانو د بيع حکم

| وَلَا بَيْعُ الطَّيْرِ فِي الْهَوَاءِ فرمانی.اود داسې مارغه بيع جائز نه ده کومه چه په هواکښې وی |
|---|

**تشريح> عدم جواز بيع الطير في الهواء>** د مارغانو يوصورت دا دې چه د ښکار کولو نه وړاندې په هواکښې خرڅ کړې شی کښې بالاتفاق بيع ناجائز ده.ځکه چه په دې صورت کښې مارغه غير مملوك دې او غير مملوك څيز خرڅول جائز نه دی

② دښکار کولو نه پس په هواکښې پريخودلو نه پس مارغه خرڅول په دې صورت کښې هم بالاتفاق بيع ناجائز ده.په رومبی صورت کښې د مارغه د غير مملوك کيدلو په وجه او په دويم صورت کښې د غيرمقدور التسليم کيدلو په وجه، ځکه چه په دويم صورت کښې د ښکار کولو په وجه مارغه د بائع مملوك شو.خود پريخودلو په وجه غيرمقدورالتسليم شوې دې.

③ مارغه پخپله ځی راځی.مثلا کونتره چه پخپله ځی او پخپله راځی.( د داسې مارغه خرڅول)په کښې بالاتفاق بيع جائز ده.ځکه چه مارغه د څه حيلې نه بغير نيول ممکن دی.البته که نيول ئې د څه حيلې نه بغير ممکن نه وی نو بيع جائز نه ده.

| وَلَا يجوز بَيْعُ الْحَمْلِ فِي البطن اونه جائز بيع د حمل په خيټه کښې وَلَا النِّتَاجِ اونه د حمل در حمل (بيع جائز ده) |
|---|

**تشريح> عدم جواز بيع الحمل والنتاج>** اود حمل يعنی د جنين اود حمل درحمل بيع ناجائز ده.د حمل دبيع صورت دادې. چه مثلا مشتری اووئيل. ددې اوښې يا چيلۍ په خيټه کښې چه کوم بچې دې.په سلو روپو کښې ما واخستلو. بائع دا قبول کړلو.اود نتائج يعنی د حمل درحمل بيع داده.چه مشتری اووائی.چه ددې اوښې په خيټه کښې که ماده بچې وی.نو چه دا ماده بچې لوئې شی.او ددې کوم بچې پيدا شی.ما هغه واخستلو.او بائع دا قبول کړلو.د جاهليت په زمانه کښې دا عادت وو.چه يو سړی به د بل نه اوښه اخستله.په دې شرط باندې چه دا اوښه به ماسره هغه وختـه پورې وی.چه ترکومـه ددې بچې پيدا شی.بيا ددغه بچې بچې پيدا شی.نو هرکله چه به ددې اوښې د بچی نه بچې پيدا شولو.نو دا اوښه به بائع ته واپس کولې شوه.اودا وښه به د مالك کيدله.

**دلائله>** ① رسول الله ﷺ دا بیع باطل اوګرځوله اود حمل،اود حمل حمل بیع نه نې منع اوفرمانیله.د ابن عمر ﷺ روایت دې (أن النبی ﷺ نهی عن بیع المضامین والملاقیح وحبل الحبلة) (۱)مضامین د مضمون جمع ده کوم چه د نرخاروی په صلب کښې وی.هغې ته مضمون وائی.،،ملاقیح،، د ملقوح جمع ده.کوم چه د ماده په رحم کښې وی.هغې ته ملقوح وائی.بهر حال د رسول الله ﷺ د نهی په وجه ددې بیع ناجائزده. ② دویم دلیل دادې.چه په دې بیع کښې دهوکه ده.ځکه معلومه نه ده.چه په خیټه کښې څه شته.او که نه هسې د هوا په وجه خیټه پړسیدلې ده.او د دهوکې د بیع نه رسول اکرم ﷺ منع فرمائیلې ده په دې وجه دا بیع ممنوع ده.

## د چیلئ په شا باندې د وړئ د بیع حکم

| وَلَاالصُّوفَ عَلٰى ظَهْرِالْغَنَمِ فرمائی.اود چیلئ په شا باندې وړئ اخستل هم جائزنه ده |
|---|

**حل اللغة>** **الصوف**: وړئ ، **ظهر**: شا ، **الغنم**: چیلئ

**تشریح>** **عدم جواز بیع الصوف علی ظهر الغنم>** مسئله داده.چه د چیلئ او ګډې په شا باندې د وړئ خرڅول جائز نه دی.

**دلائله>** ① ځکه چه دا د کټ کولو نه وړاندې دخاروی د اوصافو څنې ده.او اوصاف تابع وی.او تابع چونکه مال غیرمتقوم وی.په دې وجه د متبوع نه بغیر ددې بیع جائز نه ده.

② دویم دلیل دادې.چه وړئ د لاندې نه راخیژی.او ددې دلیل دادې.چه د چیلئ په شا باندې که دې ته رنګ ورکړئ شي.او څه ورځې دا پریخودلې شي.نو ددې پاسنئ حصه به رنګداره وی.او ددې ویختو ویخونه به په رنګ کښې رنګ شوی نه وی.ددې نه معلومیږی.چه وړئ د لاندې طرف نه راخیژی. نو په شا باندې دوړئ خرڅولو نه پس،اود کټ کولو نه وړاندې چه په وړئ کښې د کومې حصې زیاتوالې کیږی.هغه به غیرمبیع وی.اود مبیع به د غیرمبیع سره داسې اختلاط اوشی.چه ددې جدا کول به ناممکن شی.اوهرکله چه د مبیع غیرمبیع سره داسې اختلاط اوشی.نو بیع باطلیږی.په دې وجه د چیلئ یا د ګډې په شا باندې د وړي خرڅول ناجائز او باطل دی.

## په تئینو کښې د پیو د بیع حکم

| وَلَابیع اللَّبَنُ فِی الضَّرْعِ او په تهیونو کښې پئ خرڅول هم جائز نه دی |
|---|

**حل اللغة>** **اللبن**: شودے\پئ ، **الضرع**: غولانځه

**تشریح>** **عدم جواز بیع اللبن فی الضرع>** مسئله داده.چه په تهیونوکښې دننه پئ خرڅول ناجائز دی.

**دلائله>** ① دلیل دادې.چه په دې کښې دهوکه ده.او دهوکه په دې وجه ده.ممکن ده.چه تهن د هوا په وجه پړسیدلې وی.او مشتری به په دې د پیو خیال کوی. حالانکه په دې کښې به پئ نه وی.بلکه هوا ده.اود دهوکې د بیع نه مدنی آقا ﷺ منع فرمائیلې ده.په دې و جه په تهیونو کښې پئ خرڅول ناجائز دی. ② دویم دلیل دادې.چه د لوشلو په کیفیت کښې به جګړه کیږئ. مشتری به غواړی.چه یو یو

---

۱) غربه الزیلعی ﷺ هذا اللفظ ثم أخرج أحادیثاً منها حدیث ابن عمر ﷺ عن النبی ﷺ أنه نهی عن المضامین والملاقیح وحبل الحبلة قال والمضامین ما فی أصلاب الإبل والملاقیح ما فی بطونها وحبل الحبلة ولد ولد هذه الناقة أخرجه عبدالرزاق فی مصنفه کذا فی نصب الرایة (۳۲/٤) وکذا أخرجه الطبرانی فی معجمه من حدیث ابن عباس ﷺ عزاه إلیه الهیثمی فی مجمع الزوائد (۱۰٤/٤) وعزاه إلی الطبرانی فی الکبیر والبزار _

څاڅکي نچوړ کړه.او بائع به غواړي چه په تهیونوکښې څه باقي پریخودل پکار دي.او، مفضي الی المنازعه، هم د بیع د عدم جواز دلیل دي. ③ دریم دلیل دادي.چه پي په تهیونوکښې څاڅکي څاڅکي جمع کیږي.نوپه تهیونوکښې د پیو خرڅولو.او ددي د راوښکلو په مینځ کښې به هم څه نا څه پي پیدا کیږي.اودا خرڅولو نه پس چه کوم پي په تهیونوکښې پیدا شوی دی.هغه غیرمبیع دي. ددي مالك بائع دي.او کوم پي چه د خرڅول په وخت په تهیونوکښې موجود وو.هغه مبیع دي.چه ددي مالك مشتري دي. اودا دواړه یعنی مبیع او غیرمبیع داسي ملاؤ شو.چه یو د بل نه جدا کول متعذر دی.اود بیع غیرمبیع سره داسي ملاویدل،چه جدا کیدل متعذرشی.بیع باطلوی.په دي وجه به هم په دي صورت کښې بیع ناجائز وی.

## په چت کښې د تیراو په تان کښې د ګز خرڅول

| وَلَا يَجُوْزُ بَيْعُ ذِرَاعٍ مِنْ ثَوْبٍ وَلَا بَيْعُ جِذْعٍ فِي سَقْفٍ او جائز نه دي بیع د یو ګز د جامې نه او نه بیع د تیر په چت کښې |
|---|

**حل اللغة** ﴿ **جذع** : تیر . **سقف**: چت ، **ذراع** : ګز ، **ثوب** : جامه

**تشریح** ﴿ **عدم جواز بیع ذراع من ثوب جذع في سقف** ﴿ صورت د مسئلې دادي.چه تیر کوم چه په چت کښې وی.د هغې خرڅول جائز نه دی.اود یو داسي کپړې نه یوګز خرڅول چه ددي کټ کول مضر وی.جائز نه دی.که دواړو د کټ کولو د ځائي ذکر کړي وی.او که نه وی کړي.

**دلیله** ﴿ ځکه چه د ضرر نه بغیر بائع دپاره ددي سپارل ممکن نه دی.او ضرر برداشت کول مقتضی دعقد نه دی.په دي وجه به دا بیع درست نه وی.

## په جال کښې د کیریدونکو مارغانو،ځناورو د بیع حکم

| وَضَرْبَةِ الْقَانِصِ او (د) ضربة القانص (بیع جائز نه ده) |
|---|

**عدم جواز بیع ضربة القانص** ﴿ ، ضربة القانص، هغه ښکار کوم چه په یوځل جال لګولوسره حاصل شی.د، ضربة القانص،

**دلائله** ﴿ بیع په دي وجه ناجائز ده. ①چه په دي صورت کښې مبیع مجهول وی.معلوم نه ده.چه په جال کښې څومره مرغۍ نیولي کیږي.اودا هم کیدلي شی.چه هیڅ یوه مرغۍ ګیره نشي. ② دویم دلیل دادي.چه په دي بیع کښې دهوکه ده.ځکه کیدي شی.چه په جال کښې دښکار په ځائي مار، لړم، یا سپي وغیره ګیر شی.

## د بیع مزابنه حکم

| وَلَا بَيْعُ الْمُزَابَنَةِ، فرمائي.او بیع مزابنه جائز نه ده وَهُوَ بَيْعُ الثَّمَرِ عَلَى النَّخِيلِ او مزابنه د کهجورو په ونه باندي د میوو خرڅول.بخرصه په اندازي د دي سره |
|---|

**حل اللغة** ﴿ **الثمر**: میوه ، **النخیل**: د قجوري ونه ، **تمر**: قجوره ، **خرص**: اندازه

**تشریح** ﴿ **عدم جواز بیع المزابنة** ﴿ بیع مزابنه داده.چه د کهجورې په ونه کښې لګیدلي کهجورې،د شوکیدلو کهجورو په عوض په دي طریقه خرڅي کړی.چه شوکیدلي کهجورې ئې پیمانه کړلي.یا ئې وزن کړلي.او په ونه کښې چه کومي کهجورې لګیدلي دی.د هغې اندازه اوکړی.مثلاً دا اندازه ئې اوکړله.چه په ونه کښې لګیدلي کهجورې پنځه منه دی.نود عاقد آخر نه ددي عوض پنځه منه

شوکيدلې وزن کړی.او واخلی.دا بيع ناجائز ده [١]

**دليله>** د بيع مزابنه د عدم جواز دپاره دليل دادې.چه بيع مزابنه او محاقله د جاهليت د زمانې بيوع دی.رسول الله ﷺ ددې دواړو نـه منـع فرمـائيلې ده.پـه صـحيحينو کښې دحضرت جـابر رضی الله عنه حـديث دې.(نهی رسول الله ﷺ عن المزابنة والمحاقلة) [١]چې نبی کريم ﷺ د بيع مزابنـه او بيـع محاقلـه نـه منـع فرمائيلې ده ② دويم دليـل دادې.چه بيـع مزابنـه او محاقلـه پـه دواړوکښې اتحـاد د جنس هم دې.او اتحاد قدر (کيل، پيمانښ) هم دې.اود اتحاد جنس او اتحاد قدر په صورت کښې په اټکل او اندازې سره اخستل خرڅول جائز نه دی. ځکه چه په اندازه سره پـه اخستلو خرڅولوکښې شبه الربوا ده.او شبه الربوا داسې حرام ده.لکه څنګه چه حقيقت ربوا حرام ده.په دې وجه دا بيع جائز نـه ده.لکـه څنګـه چـه کهجورې يا غنم په زمکه پراته وی.په ونه کښې يا په وګوکښې نه وی.نو په اندازه سره اخستل خرڅول جائز نه دی.دغه شان که انګور په ونه کښې وی.نو ددې اندازه کول،اود هغه انګورو په عوض په وزن يا کيل سره خرڅول جائز نه دی.کوم چه شوکيدلې وی.ځکه چه دا هم د مزابنه او محاقله د قبيلې ځنې دې.

## د بيع بالقاء الحجر.بيع ملامسه.اود منابذه حکم

**وَلَا يَجُوزُ الْبَيْعُ بِإِلْقَاءِ الْحَجَرِ** او جائز نه ده بيع په کاڼړي غورزولو سره **وَالْمُلَامَسَةِ**،او په لاس لګولوسره

**تشريح>** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه بيع بالقاءالحجر،بيع ملامسه، ناجائز ده.

**المراد من القاء الحجر>** ① بيع بالقاءالحجر داده.چه د يوجنس څوڅيزونـه موجود وی.او بـائع او مـشتری دواړه د بيع په سلسله کښې ګفتګو کوی.مثلاً يوڅو تهانونـه ئې ايخـودلی وی. بـائع د سـامان ذکر اوکړلو.اود ثمن ذکر ئې اوکړلو . مشتری په يو تهـان بانـدې کاڼړې اوغورزولو.نو کوم تهـان بـه چه پـه کاڼړی اولګيدلو.د هغې بيع به پوره کيدله.که ددې مالك بـه راضـی وو.او کـه نـاراض وو.او مـشتری تـه به هم د رجوع کولو اختيار نه وو.

② بيع ملامست داده.چه دوه سړی د څه سامان په باره کښې نرخ اوکړی.نو مشتری دغه سامان ته لاس يوځې. نودغه سامان به د مشتری کيدلو.که ددې مالك به راضی وو.او که ناراض وو.

**دلائله>** ① خو سردار دوعالم ﷺ بيع ملامست، اود بيع منابذه نه منع اوفرمائيله.د ملامست او منابذه نه په صراحت سره منع شوې ده.[٢]او بيع بالقاءالحجر چونکه ددې دواړو په معنی کښې ده.په دا وجه دا به هم دې سره لاحق کولې شی.

② دويم دليل دادې.چه بيع د تمليکاتو د قبيلې ځنې ده.او تمليك چه کله په متردد ( شکی) امر باندې معلق کړې شی.نو په دې کښې د قمار( جوارئ) معنی پيدا کيږی.او جواری ناجائز ده.په دې وجه بـه بيع هم ناجائز وی.او په دې بيوع کښې د جوارئ معنی ځکه موجود يږی.چه د بيـع بالقـاءالحجر مطلب دادې.چه بائع مشتری ته اووئيل. چه پـه کوم سامان تـا کـاڼړئ اوغورزولو.مـا دغـه سامان پـه تـا خرڅ کړلو.اوس دا هم کيدلې شی.چه کاڼړئ په دغه سامان اوغورزيږی.اودا هم ممکن ده.چه دغـه سامان پـه

---

[١] **مذهب الشافعي رحمه الله:-** حضرت امام شافعی رحمه الله د پنځه وسقو نه په کم کښې مزابنه جائز ګرځولې ده.اود پنځه وسقو نه په زياتی کښې ئې ناجائز ګرځولې ده.او په پنځه وسقو کښې دوه اقواله دی.يود جواز،او دويم د عدم جواز.(عنايه)

١) من حديث جابر رضی الله عنه اخرجه البخاری فی الشرب والمساقاة باب ١٧ رقم ٢٣٨١ ومسلم فی البيوع رقم ٨١ _

١) من حديث ابي سعيدالخدری رضی الله عنه اخرجه البخاری فی اللباس باب ٢٠ رقم ٥٨٢٠ ومسلم فی البيوع رقم ٣ _

کانړي اونه لګی.اوذ بیع ملامست مطلب دادي.چه بائع مشتری ته اووئیل.مثلا تا کومې کپړې ته خپل لاس یوړلو.ما دغه کپړه په تا خرڅه کړله.اود بیع منابذه مطلب دادي.چه مشتری بائع ته اووئیل.چه کومه کپړه تا زما طرف ته اوغورزوله.ما هغه واخسته.نو په دې تعلیق کښې چونکه د قمار معنی موندلې کیږی.په دې وجه دا بیوع ناجائز دی.

## په دوه کپړوکښې د یو د بیع حکم

| وَلَايَجُوزُبَيْعُ ثَوْبٍ مِنْ ثَوْبَيْنِ او په دوه کپړوکښې د یوې کپړې خرڅول جائز نه دی |
|---|

**تشریح>** **عدم جواز بیع ثوب من ثوبین>** صورت د مسئلې دادې.چه په دوه یا درې کپړو کښې د یو خرڅول، یا اخستل ناجائز دی.

**دلیله>** ځکه چه مبیع مجهول دې.اومجهول هم داسې چه،، مفضی الی المنازعه،، دې.ځکه چه کپړې د مالیت په اعتبار سره متفاوت وی.اود مبیع داسې مجهول کیدل چه دا،،مفضی الی المنازعه،، وی.مفسد د بیع وی.په دې وجه به په دې صورت کښې بیع فاسد وی.خوکه بائع دا اووئیل.چه مشتری ته د یوې کپړې متعین کولو اختیار دې. یا مشتری اووئیل.چه ماته د یوې کپړې متعین کولو اختیار دې.نودا بیع استحساناً جائز ده.ددې تفصیلات وړاندې تیر شوی دی.

## د غلام په خرڅولوکښې بعض شرطونه اود بیع د فساد حکم

| وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا اوچا چې غلام په دې شرط خرڅ کړو عَلَى أَنْ يُعْتِقَهُ الْمُشْتَرِي چه مشتری دا آزاد کړی أَوْ يُدَبِّرَهُ یا دې مدبر کړی أَوْيُكَاتِبَهُ یا دې مکاتب کړی أَوْبَاعَ أَمَةً یانې وینځه په دې شرط خرڅه کړله عَلَى أَنْ يَسْتَوْلِدَهَا چه مشتری دا ام ولد جوړه کړی. فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو په دې ټولو صورتونوکښې) بیع فاسد ده. |
|---|

**حل اللغة>** **يستولد:** ام ولده جوړول ، **يعتق:** آزادوی ، **يدبر:** مدبرجوړوی

**تشریح>** **عدم جواز بیع وشرط>** مسئله داده.که یوکس خپل غلام خرڅ کړلو.په دې شرط چه مشتری به دا آزادوی.یا په دې شرط چه مشتری به دا مدبر کوی.یا په دې شرط چه مشتری به دا مکاتب کوی.یا یوکس خپله وینځه په دې شرط باندې خرڅه کړله.چه مشتری به دا خپله ام ولد کوی.په دې ټولو صورتونوکښې بیع فاسد ده.

**دلیله>** دلیل دادې.چه دا بیع مع شرط ده.او د بیع مع شرط نه نبی کریم ﷺ منع فرمائیلې ده.(۱)په دې وجه به په ذکرشوې صورتونوکښې بیع فاسد وی.

**القاعدة>** علامه مرغینانی رحمه الله په هدایه کښې د بیع او شرط په سلسله کښې یوه قاعده بیان کړې ده.چه د هغې حاصل دې.چه د شرط څو قسمونه دی. هغه شرط د کوم چه عقد تقاضا کوی.یعنی په شرط لګولو سره به هم هغه فائده حاصلیږی.کومه چه په مطلق عقد سره ثابتیږی.لکه مثلا غلام نې په دې شرط سره خرڅ کړلو.چه مشتری به د غلام مالك شی.ښکاره ده.که دا شرط نې نه ذکرکولو.بیا به هم مشتری د غلام مالك کیدلو.په داسې قسم کښې بیع جائز ده.او شرط یوزیاتی څیز دې.یعنی دشرط کیدل اونه کیدل دواړه برابر دی.

**السوال>** که دا سوال اوکړې شی.چه رسول الله ﷺ د بیع اوشرط نه منع فرمائیلې ده.اودا حدیث د خپل

۱) من حدیث عبدالوارث بن سعید ... عزاه الهیثمی رحمه الله إلی الطبرانی فی الأوسط مجمع الزوائد(٤/٨٥ _

مطلق کیدلو په وجه د بیع د عدم جواز تقاضا کوی.په دې وجه په دې صورت کښې بیع ناجائز کیدل پکار وو حالانکه تا جائز ونیلی دی؟

**الجواب**> ددې جواب دادې.چه دا په حقیقت کښې شرط نه دې.ځکه چه دې شرط د هغه څیز افاده اوکړله.چه دکوم مطلق عقد فائده ورکوی.نو ددې شرط کیدل.یا نه کیدل دواړه برابر دی.

**په بیع کښې بعض شرطونه اود هغې حکم**

| وَكَذٰلِكَ لَوْبَاعَ عَبْدًا اوهم دغه شان که غلام ئې په دې شرط خرڅ کړو عَلٰى اَنْ يَسْتَخْدِمَهُ الْبَائِعُ شَهْرًا چه بائع به ده نه یوه میاشت خدمت اخلی اَوْدَارًا یا ئې کور په دې شرط خرڅ کړو عَلٰى اَنْ يَسْكُنَهَا الْبَائِعُ چه بائع به په دې کښې اوسیږی مُدَّةً مَعْلُوْمَةً معلومه موده اَوْعَلٰى اَنْ يُقْرِضَهُ الْمُشْتَرِي دِرْهَمًا یا په دې شرط باندې مشتری بائع ته یو درهم قرضه ورکړی اَوْعَلٰى اَنْ يُهْدِيَ لَهُ یا په دې شرط چه مشتری بائع ته څه هدیه ورکړی. |
|---|

**حل اللغة**> **استخدم**: خدمت به اخلی، **شهر**: میاشت، **يقرض**: قرض ورکوی، **يهدى**: هدیه ورکوی

**تشریح**> **صورة المسئلة**> صورت د مسئلې دادې.که یوکس غلام په دې شرط باندې خرڅ کړلو.چه دا غلام به یوه میاشت زما خدمت کوی.یا ئې کور په دې شرط باندې خرڅ کړلو.چه بائع به یوه میاشت په دې کښې اوسیږی.یا ئې په دې شرط باندې خرڅ کړلو.چه بائع ته یو درهم قرض ورکړی.یا ئې په دې شرط باندې خرڅ کړلو.چه مشتری بائع ته څه هدیه ورکړی.په دې ټولو صورتونو کښې بیع فاسد ده.

**دلائله**> ① دلیل دادې.چه دا ټول شرطونه د مقتضی عقد خلاف دی.او په دې شرطونو کښې د احدالعاقدین یعنی د بائع نفع هم ده.او کوم شرط چه د مقتضی عقد خلاف وی.او په دې کښې د احدالمعاقدین نفع وی.هغه مفسد د بیع وی.په دې وجه به په دې شرطونو سره بیع فاسد وی.② دویم دلیل دادې.چه رسول الله ﷺ بیع او قرض جمع کولو نه منع فرمائیلې ده.[1] یعنی د داسې بیع نه ئې منع فرمائیلې ده. چه په هغې کښې شرط ذکر وی.چه مشتری به بائع ته قرض هم ورکوی.

③ دریم دلیل دادې.چه د غلام نه د خدمت اخستلو،او په کور کښې د اوسیدلو په مقابله کښې به د ثمن څه حصه وی.یا به نه وی؟ که ددې دواړو په مقابله کښې د ثمن څه حصه وی.نودا به په بیع کښې اجاره وی.او که ددې په مقابله کښې ثمن نه وی.نودا به په بیع کښې په عاریت ( رض) سره اخستل وی.یعنی په بیع کښې به یا اجاره داخل وی.یا به اعاره داخل وی.حالانکه مدنی آقارسول هاشمی ﷺ په یوه معامله کښې د دوه معاملو نه منع فرمائیلې ده.یعنی یوه معامله په بله معامله کښې داخلول،او دواړه جمع کولو نه ئې منع فرمائیلې ده.نو ددې حدیث نه ثابته شوه.چه د خدمت اخستلو،او په کورکښې د اوسیدلو شرط لګول فاسد دی.په دې وجه به بیع فاسد وی.

**د میاشتې شروع پورې د نه سپارلو په شرط سره د بیع حکم**

| وَمَنْ بَاعَ عَيْنًا.که یوکس عین شئ په دې شرط خرڅ کړو عَلٰى اَنْ لَايُسَلِّمَهُ اِلٰى رَأْسِ الشَّهْرِ چه دې به دا د میاشتې رومبئ شپې پورې نه سپاری فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بیع فاسد ده. |
|---|

**حل اللغة**> **يسلم**: سپاری ، **رأس**: اول

---

۱) من حدیث عبدالله بن عمروبن العاص رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی البیوع باب ۶۸ رقم ۳۵۰۴ والنسائی فی البیوع باب شرطان فی بیع رقم ۴۶۳۱ الترمذی فی البیوع باب ۱۹ رقم ۱۲۳۴ _

**تشریح>** **فساد بیع العین بشرط عدم تسلیمه الی راس الشهر>** مسئله: که یوکس مال عین یعنی دراهم او دنانیر نه علاوه څه متعین څیز په دې شرط سره خرڅ کړلو.چه مبیع به په رومبي تاریخ یا په آخری تاریخ درکوم نودا بیع فاسد ده.

امام قدوری رحمه الله د بیع نه پس لفظ د ،، عین،، زیات کړې دې.چه مسلم فیه خارج شي ځکه چه په بیع سلم کښې ،،مسلم فیه،، مبیع وی.خو عین نه وی.بلکه دمسلم الیه په ذمه کښې واجب وی.او ،،دې سپارل د یوې مودې نه پس کیږی.په دې وجه د مسلم فیه دپاره اجل او میعاد مناسب دې

**دلیله>** دلیل دادې.چه مهلت او وخت مقررول د آسانۍ دپاره مشروع شوې دې یعنی میعاد ځکه مشروع کړې شوې دې چه په دې موده کښې ددې څیز حاصلول آسان شي.د کوم دپاره چه وخت مقرر شوې وو نو میعاد( نیټه) د دیون یعنی د دراهم او دنانیر مناسب ده د اعیان مناسب نه ده ځکه چه مال عین خو بالفعل موجود دې.او دراهم او دنانیر په مزه مزه( یعنی په لږه لږه) تلاش کولې شي نوکوم څیز چه بالفعل موجود وی.په هغې کښې د وخت مقررولو هیڅ ضرورت نشته.کښی خامخا به د،، تحصیل حاصل،، مرتکب شي.البته کوم څیز چه بالفعل موجود نه وی.په هغې کښې نیټه او مهلت ورکول فائده مند او کارآمد دی.نو هرکله چه میعاد د اعیان مناسب نه دی.نو په مبیع عین یعنی معین موجوده مبیع کښې اجل او نیټه ذکر کول باطل شو.اود میعاد شرط لګول به شرط فاسد وی.او په شرط فاسد سره چونکه بیع فاسدیږی.په دې وجه شرط سره بیع فاسدیږی.

## د حمل په استثناء سره د بیع حکم

| وَمَنْ بَاعَ جَارِيَةً اوچا چې خرڅه کړه یوه وینځه إِلَّا حَمْلَهَا علاوه ددې د حمل نه فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بیع فاسد ده. |
|---|

**حل اللغة>** **الجارية:** وینځه، **حمل:** د رحم بچې، **أطراف:** جمع د طرف،اندام، **يتناول:** شامليږی

**تشریح>** صورت د مسئلې دادې.چه یوکس یوه وینځه خرڅه کړه.خو ددې د حمل استثناء ئې اوکړله. نودا بیع فاسد ده.

**دلیله>** په کوم عقد کښې چه استثناء شوې وی.نودهغې یوقسم دا دې چه په هغې کښې عقد او استثناء دواړه فاسد وی.لکه د کوم څیز چه جدا خرڅول جائز نه وی.د هغې د عقدبیع نه استثناء (جدا) کول هم جائز نه دی.او حمل هم ددې قبیلې څخه دې.یعنی حمل جدا خرڅول جائز نه دی.او د حمل جدا خرڅولو عدم جواز ځکه دې.چه دا د حیوان اطراف یعنی د اندامونو په مرتبه کښې دې.یعنی لکه څنګه چه د حیوان اطراف پیدائشی طور باندې حیوان سره متصل وی.دغه شان حمل هم ذی حمل سره متصل وی.اود حیوان بیع اطرافو(اندامونو) ته شامل وی.په دې وجه د اطراف استثناء د موجب عقد خلاف دې.دغه شان به د حمل استثناء هم د موجب عقد خلاف وی.او کوم څیز چه د موجب عقدخلاف وی.هغه صحیح نه وی.بلکه شرط فاسد وی.په دې وجه د حمل استثناء شرط فاسد دې.او په شرط فاسد سره بیع باطل وی.ځکه به د حمل په استثناء سره بیع باطل وی.

## د کپړې په کټ کولو کښې د کرتې یا کوټ جوړولو شرط سره د بیع حکم

| وَمَنْ اشْتَرَى ثَوْبًا اوکه یوکس کپړه په دې شرط واخستله عَلَى أَنْ يَقْطَعَهُ الْبَائِعُ چه بائع دا کټ کړی وَيَخِيطَهُ قَمِيصًا أَوْقَبَاءً ددې نه کرته یا چوغه جوړه کړی فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بیع فاسد ده. |
|---|

**حل اللغة>** **ثوب:** جامه ، **القطع:** کټ کیدل، **يخيط:** ګندی ، **قباء:** چوغه

**تشریح>** **فساد بیع الثوب بشرط القطع والخیطة علی البائع>** صورت د مسئلې دادې.چه یو سړی کپړه

واخستله.اودا شرط ئې اوکړو.چه بائع به دا کپړه کټ کوی.او ددې نه به کرته جوړه وی.یا به کوټ جوړه وی.نودا بیع فاسد ده.

**دلائله>** ① ځکه چه دا شرط د مقتضی عقد خلاف هم دې.اوپه دې کښې د احدالعاقدین یعنی دمشتری نفع هم ده.او کوم شرط چه د مقتضی عقد خلاف وی.او په دې کښې د احدالعاقدین نفع وی. نودا مفسد د بیع وی.په دې وجه په دې شرط سره بیع فاسدیږی.

② دویم دلیل دادې.چه کپړه کټ کول اود ګنډلو په مقابله کښې به د ثمن څه حصه وی.یا به نه وی؟ که ددې په مقابله کښې د ثمن څه حصه وی.نو اجاره به په بیع کښې داخله شی.او که ددې په مقابله کښې د ثمن څه حصه نه وی.نو اعاره به په بیع کښې داخله شی.او یوه معامله په بله معامله کښې داخلولو نه چونکه رسول الله ﷺ منع فرمانیلې ده.ځکه به دا عقد فاسد اوناجائز وی.( بنایه )

**په پیزار کښې د تسمه لګولو شرط**

| اوَنَعْلًا اویا ئې څرمن په دې شرط واخستله عَلٰى اَنْ يَّحْذُوَهَا الْبَائِعُ چه بائع ددې نه پیزار( څپلی) جوړکړی یا د پیزار تسمه جوړه کړی فَالْبَيْعُ فَاسِدٌ نو بیع فاسد ده. |
|---|

**تشریح> فساد بیع النعل بشرط الحذاء>** صورت د مسئلې دادې.چه یوکس څرمن په دې شرط واخستله.چه بائع ددې نه پیزار جوړکړی.یا ئې پیزار په دې شرط واخستلو.چه بائع په دې کښې تسمه اولګوی.نود قیاس مطابق دا بیع فاسد ده.

**دلیله القیاسي>** ځکه چه دا شرط د مقتضائې عقد خلاف هم دې.او په دې د مشتری نفع هم ده.

**جوازه استحسانا>** خود خلقو د تعامل په وجه استحساناً دا جائز اوګرځولې شوه.لکه څنګه چه د رنګریز دپاره کپړه د رنګ کولو دپاره په اجاره باندې اخستل قیاسا ناجائز دی.ځکه چه اجاره د منافع بیع نوم دې.او دلته کښې عین شئ یعنی د رنګ بیع ده.نودا هم دغه شان ناجائز ده.لکه څنګه چه د پیو څکلو دپاره غوا په اجرت باندې اخستل ناجائز دی.خو استحساناً د خلقو د تعامل په وجه رنګریز ته په اجرت باندې د اخستلو اجازت ورکړې شو.او هم ددې تعامل په وجه آرډر ورکول،اود یوڅیز جوړولو اجازت دې.حالانکه دا دمعدوم بیع ده.چه ددې جائز کیدل پکار نه وو.خو د خلقو د تعامل په وجه دا جائز اوګرځولې شوه.او تعامل اوعرف ته په قیاس باندې ترجیح حاصل وی.په دې وجه په دې مسئلوکښې تعامل بنیادجوړکړې شو.اود جواز فتوی ورکړې شوې ده.اګرچه قیاساً ناجائز دی.

**خاص غیرمعروف ورځ د بیع دپاره مقررکول**

| وَالْبَيْعُ اِلَى النَّيْرُوْزِ وَالْمِهْرَجَانِ وَصَوْمِ النَّصَارٰى وَفِطْرِ الْيَهُوْدِ او بیع د نوروز، مهرجان، د نصاری د روژو ،اود یهودیانو د افطار په وعده باندې فاسد ده. اِذَا لَمْ يَعْرِفِ الْمُتَبَايِعَانِ ذٰلِكَ فَاسِدٌ کله چه بائع او مشتری دا نه پیژنی |
|---|

**حل اللغة> نوروز:** دسپرلی اوله ورځ ، **مهرجان:** د خزان اوله ورځ

**تشریح> فساد البیع الي اجل مجهول>** نیروز، د نوروز نه معرب دې.ددې تکلم د ټولو نه وړاندې حضرت عمر ؓ فرمانیلې دې.یعنی کله چه کافرانو په دې ورځ کښې خوشحالیانې مناوولې.نو حضرت عمر ؓ اوفرمانیل.«کل یوم لنا نوروز»،،زمونږ دپاره هره ورځ نوروز ده،، نو روز د موسم بهار اوله ورځ ده.او،، مهرجان،، د مهرګان معرب دې.مهرګان د موسم خزان اوله ورځ ده.

**صورت د مسئلې:** دادې.که یوکس څه سامان واخستلو.اود ثمن اداکولو دپاره نې د نوروز ورځ یا د مهرجان ورځ مقررکړله.یا نې دا اووئیل.چه په کومه ورځ نصارې روژې شروع کوي.په هغه ورځ به ادا کوم.یا نې دا اووئیل.چه د یهودو د افطار په ورځ یعنې ددوي د اختر په ورځ به نې ادا کوم.په دې ټولوصورتونوکښې بیع فاسد ده.

**دلیله>** وجه د فساد داده.چه هرکله بائع او مشتري ته ددې ورځو علم نشته.نود ثمن میعاد(نیټه) مجهول شوه.او په بیع کښې نیټه مجهول کیدل چه په چل ول باندې (دهوکه) مبني ده.ځکه به د نیټې جهالت،، مفضي الی النزاع،،وي.اوکوم جهالت چه مفضي الی النزاع وي.هغه مفسد دبیع وي.په دې وجه به په دې صورتونوکښې بیع فاسد وي.

**صورة الجواز>** البته که بائع او مشتري ذکر شوې ورځې پیژنی.نو بیع به فاسد نه وي.ځکه چه په دې صورتونوکښې بائع او مشتري ته میعاد معلوم دې.اوکه د نصارې د روژو شروع کولو نه پس، د نصارې افطار یعنې د اختر ورځ نیټه مقررکړې شوه.نو بیا به هم بیع فاسد نه وي.ځکه چه په دې صورت کښې ددوي د روژو تعداد معلوم دې.یعنې د صاحب عنایه رحمه الله د قول مطابق ددوي پنځوس روژې دي.اود ابن الهمام رحمه الله په قول پنځه پنځوس روژې دی.نود روژو شروع کیدلو نه پس چه کله بیع اوشي.اود نصارې د اختر ورځ د ثمن اداکولو دپاره مقررکړې شوه.نو په دې صورت کښې ددوي د اختر ورځ معلوم ده.ځکه چه د بیع په ورځ دا هم معلوم ده.چه څومره روژې تیرې شوې دي.او هرکله چه د تیرو شوو روژو علم دې.نو کومې چه باقي پاتې دي.د هغې علم به هم وي.ځکه چه ددوي په مذهب کښې پنځوس یا د پنځه پنځوسو نه زیاتې روژې نه وي.حاصل داچه په دې صورت کښې د نصارې د افطار ورځ معلوم ده.او هرکله چه د افطار ورځ معلوم ده.نو نیټه مجهول نشوه.بلکه معلوم ده.اود نیټې معلوم کیدلو په صورت کښې بیع فاسد نه وي.په دې وجه به په دې صورت کښې بیع فاسد نه وي.

## د حاجیانو راتلل یا د فصلونو مختلف وختونه نیټه مقررکول

| وَلَا يَجُوزُ الْبَيْعُ، او بیع جائز نه ده إِلَى الْحَصَادِ اوهم دغه شان (جائز نه ده) د فصل کټ کیدلو وخت وَالدِّيَاسِ ،اود غوبل کولو وخت وَالْقِطَافِ اود انګورو شوکولو وخت،وَقُدُومِ الْحَاجِّ وَالْجِزَازِ او د حاجیانو د راتلو د وخت پورې. |
|---|

**حل اللغة>** **قدوم:** دسفرنه راتلل، **الحاج:** حاجیان ، **الحصاد:** فصل کټ کول ، **الدیاس:** غوبل کول ، **القطاف:** دانګورکټ کولووخت

**تشریح>** **صورة المسئلة>** صورت د مسئلې دادې.که یوکس اووئیل.چه مادا څیزونه په لس روپۍ واخستل. په دې شرط چه ثمن به هغه وخت ادا کوم.چه کله حاجیان خلق راشي.یا نې دا اووئیل.چه ثمن به هغه وخت اداکوم.چه کله فصل کټ کولې شي.یا نې اووئیل.چه د غلې غوبل کولو لکه نن صبا د تریشرکولو په وخت به ادا کوم.یا د انګور شوکولو په وخت به ادا کوم.یا د خارو ایختو او وړۍ کټ کولو په وخت اداکوم.په دې ټولو صورتونو کښې بیع ناجائز ده.یعنې د ثمن اداکولو دپاره دا وختونه نیټه مقررول جائز نه دی.ددې وختونو د ثمن ادا کولو دپاره نیټه مقررولو سره بیع فاسدیږي.

**دلیله>** دلیل دادې.چه ددې څیزونو وختونه د ګرمۍ او یخنۍ په اختلاف سره مخکښې کیږي.او روستو کیږي.نو ددې څیزونو دپاره هیڅ معلوم او متعین وخت نشو.او هرکله چه دا وختونه معلوم او متعین نه دی. نود ثمن ادا کولو نیټه مجهول شوه.اود نیټې مجهول کیدلو په صورت کښې بیع فاسدیږي.په دې وجه به په دې صورتونو کښې بیع فاسدوي.

**د وختونو لېږو مقررولو نه پس د ساقطولو حکم**

| فَإِنْ تَرَاضَيَا بِإِسْقَاطِ الْأَجَلِ قَبْلَ أَنْ يَأْخُذَ النَّاسُ فِي الْحَصَادِ وَالدِّيَاسِ وَقَبْلَ قُدُومِ الْحَاجِّ نو كه بائع او مشتري د خلقو د فصلونو كټ كولو، اود غوبل كولو، اود حاجيانو راتللونه وړاندې د ميعاد په ساقطولو باندې راضي شو جَازَ الْبَيْعُ(١) نو بيع جائز ده. |
|---|

**حل اللغة>** **آجال**: جمع د اجل ،نيته ، **تراضي**: خپلوكښې راضي كيدل، **إسقاط**: ساقطول، **الحصاد**: فصل ربيل

**تشريح> صورة الجواز>** صورت د مسئلې دادې چه يوسړى په ذكر شوى وختونوكښې يو وخت نيته مقرركړله او څه سامان نې خرڅ كړلو.مثلاً په دې شرط نې خرڅ كړلو.چه ثمن به د نوروز په ورځ، يا د حاجيانو د راتللو په وخت ادا كوي. مشتري دا منظوركړلو.بيا ددې مشروط وخت راتللو نه وړاندې بائع او مشتري دواړه ددې مشروط نيتې ساقطولو باندې راضي شو.نودا بيع جائز ده.

**دليله>** دليل دادې چه د نيتې مجهول كيدلو په صورت كښې بيع ځكه فاسد ده.چه ددې په وجه د بائع او مشتري په مينځ كښې د جګړې پيداكيدلو امكان دې.او جګړه به هغه وخت پيداكيږي.چه كله د نيتې پوره كيدلو وخت راشي.خوهركله چه دواړو مجهول نيته ساقط كړله.نو مفسد د بيع ثابتيدلو نه وړاندې لرې شو.او هركله چه مفسد لرې شو.نو بيع به هم جائز وي.

**په بيع فاسد كښې د بائع په امر په مبيع باندې قبضه كول**

| وَإِذَا قَبَضَ الْمُشْتَرِي الْمَبِيعَ فِي الْبَيْعِ الْفَاسِدِ بِأَمْرِ الْبَائِعِ اوكه مشتري په بيع فاسد كښې د بائع په حكم سرد مبيع باندې قبضه اوكړله وَفِي الْعَقْدِ عِوَضَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَالٌ او په ذكرشوى عقدكښې دواړه عوض مال دې مَلَكَ الْمَبِيعَ نومشتري به ددې مبيع مالك وي وَلَزِمَتْهُ قِيمَتُهُ او په مشتري به ددې قيمت واجب وي. |
|---|

**تشريح> القاعدة>** ددې نه وړاندې چه داصل مسئلې بيان اوشي ددې خبرې خيال ساتل پكار دي.چه زمونږ په نيز په بيع كښې فاسد او باطل دوه جداجدا څيزونه دي.اود امام شافعي رحمه الله په نيز دواړه يوڅيز دي.د باطل او فاسد په مينځ كښې ددوى په نيز هيڅ فرق نشته.

**فائده القيودات>** ① په متن كښې د. فاسد لفظ ځكه ذكر شوې دې.چه بيع باطل بالكل مفيد د ملك نه وي.نه د قبضه نه وړاندې،اونه د قبضه نه پس.② اود ،، امربائع،، نه مراد د بائع اجازت دې.اجازت كه صراحةً وي. يعني كه بائع د قبضه كولو اجازت صراحتاً وركړې وي.نو مشتري به په قبضه كولوسره د مبيع مالك وي.كه د بائع په موجودګۍ كښې نې قبضه كړې وي.او كه په غيرموجودګۍ كښې نې قبضه كړې وي.اوكه بايع د خرڅولو اجازت دلالةً وركړې وي مثلاً چه مشتري د عقد په مجلس كښې د بائع په موجودګۍ كښې قبضه اوكړله.او بائع خاموش پاتې شو اوكه د بائع په غيرموجودګۍ كښې نې قبضه اوكړله نو مشتري به د مبيع مالك نه وي.ځكه چه په دې صورت كښې نه صراحةً اجازت اوموندې شو.اونه دلالةً اجازت اوموندې شو. ③ او د دواړو عوضونو د مال كيدلو قيد نې ځكه لګولې دې.كه يوعوض يا دواړه عوضونه غيرمال وي.نو بيع به باطل وي.لكه بيع بالحر او بيع بالدم،او بيع بالميتة.

---

(١) القول الراجح هو قولنا هذا كذا في فتح القدير(٨٨\٦) وردالمحتار(١٣٤\٤) والعناية (٨٨\٦) نقلاً عن القول الراجح (٤٧\٢)-

**صورة المسئلة**> که مشتری د بیع فاسد په صورت کښې د بائع په اجازت سره په مبیع باندې قبضه اوکړله.او په ذکرشوی عقد کښې دواړه عوض مال وی.نومشتری به د مبیع مالك وی.او په ده به ددې قیمت واجب وی.ثمن به واجب نه وی. [1]

**دليله**> دلیل دادې.چه په بیع فاسد کښې یعنی چه کله (مبادلة المال بالمال بالتراضی) وی.خو څه شرط فاسد وی.نو په داسې بیع کښې د بیع رکن،یعنی ایجاب اوقبول د داسې سړو نه صادرکیږی.کوم چه ددې اهل دی.یعنی عاقل دی.او بالغ دی.اود بیع محل طرف ته منسوب دی.یعنی کوم څیز چه مبیع جوړشوې دې.هغه د مال کیدلو په وجه د بیع محل هم دې.نوهرکله چه د بیع رکن یعنی ایجاب اوقبول ددې د اهل نه صادرشو. اود بیع محل طرف ته منسوب دی.نود بیع په منعقد کیدلو کښې څه اشکال دې.یعنی بیع به منعقدشی.او هرکله چه بیع منعقد شوه.نومفید د ملك به وی.ځکه چه هرهغه بیع چه د هغې رکن ددې د اهل نه صادرشی.او محل طرف ته منسوب شی.هغه مفید د ملك وی.په دې وجه به دا بیع هم مفید د ملك وی. صاحب دهدایه‌ رحمه الله فرمائی.چه د عاقدینو په اهل کیدلو،اومبیع د بیع په محل کیدلو کښې هیڅ خفاء نشته. یعنی په بائع اومشتری دواړوکښې د اخستلو،او خرڅولو لیاقت موجود دې.او محل دبیع هم دامال دې.

او خپل مینځ کښې په رضامندئ سره د مال په بدله کښې دمال مبادله کول،هم دا دبیع رکن دې.ددې مبادلې نوم ایجاب او قبول دې.او زمونږ کلام هم په داسې بیع فاسد کښې دې.په کوم کښې چه مبادلة المال بالمال اوموندې شی.یعنی په کوم کښې چه دواړه عوض مال وی.که دواړه عوض یا یو عوض مال نه وی.نودا د بیع رکن نه موجود کیدلو په وجه بالاتفاق باطل دې.ددې په مفیدملك نه کیدلوکښې د هیڅ چا اختلاف نشته.بلکه بالاجماع غیرمفید دې.حاصل داچه په بیع فاسد کښې چونکه رکن د بیع،یعنی مبادلة المال بالمال بالتراضی منسوب شوې دې.یعنی مبیع د مال کیدلو په وجه محل د بیع هم دې.په دې وجه بیع فاسد دخپل ذات په اعتبارسره مشروع شو.او بیع مشروع مفید د ملك وی ځکه به دا بیع مفید د ملك وی.

**لزوم القيمة في ذوات القيم**> علامه مرغینانی رحمه الله فرمانیلی دی.چه د قدوری رحمه الله قول (لزمته قیمته) یعنی په بیع فاسد کښې د مشتری په مبیع باندې د قبضه کولو نه پس که مبیع هلاك شو نو په مشتری به ددې قیمت واجب وی.دا حکم په ذوات القیم کښې دې.لکه څاروی عددیات متفاوته( یعنی مختلف قسمه) خوکه مبیع د ذوات الامثال څخې وی.لکه مکیلات موزونات،اود مشتری په قبضه کښې هلاك شی.نو په مشتری به ددې مثل واجب وی.ځکه چه د مشتری د قبضه په وجه مبیع مثلی بذات خود مضمون وی.یعنی په مثلی څیزونو کښې د ضمان په طور ددې مثل واجب وی.او که د ذوات القیم څخې وی.نو ددې قیمت به واجب وی.او په ذوات الامثال کښې مثل ځکه واجبیږی.چه صورة او معنی هلاك شوی څیز سره برابری زیاته ده.په نسبت د مثل معنوی یعنی د قیمت.نو په ذوات الامثال کښې مثل صوری واجبیږی.البته که د مثل صوری اداکولونه عاجز وی. نو بیا په دې صورت کښې هم قیمت واجبیږی

## د بیع فاسد د فسخ کولو حق

| وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْمُتَعَاقِدَيْنِ فَسْخُهُ په متعاقدینوکښې هریو ته د فساد لرې کولو اختیار شته |
|---|

[1]، **مذهب الشافعي** رحمه الله:- په زیربحث مسئله کښې د امام شافعی رحمه الله په نیز په بیع فاسد کښې قبضه مفید د ملك نه ده.یعنی که مشتری په بیع فاسد کښې د بائع په اجازت سره هم قبضه کړې وی.بیا به هم د امام شافعی رحمه الله په نیز مشتری د مبیع مالك نه وی.امام مالك او امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دی.

**تشریح**> **خیارالفسخ لکل واحد**> صورت د مسئلې دادې.چه د فساد لرې کولو دپاره په متعاقدینوکښې هر یوکس ته د بیع فاسد فسخ کولو اختیاردې.که د قبضه نه وړاندې وی.اوکه د قبضه نه پس وی.
**دلیله**> د قبضه نه وړاندې د فسخ کولو اختیارځکه دې.چه په مبیع فاسد باندې قبضه مفید دملك نه وی.نود قبضه نه وړاندې فسخ کول،د مالك کیدلو نه منع کول دی.اود مالك کیدلو نه د منع کولو اختیار بائع اومشتری دواړو ته دې.یعنی بائع د ثمن مالك کیدلو نه منع کیدلې شی.اومشتری.د مبیع مالك کیدلو نه منع کیدلې شی.نو هرکله چه دواړو ته د مالك کیدلونه د منع کیدلو اختیار دې.نو دواړو ته به دفسخ کولو اختیار هم وی.
اود قبضه نه پس که فساد د عقد په صلب کښې وی یعنی په احدالبدلین کښې فساد وی.لکه یو درهم د دوه درهمو په عوض خرڅول.یا کپړې د شرابو په عوض خرڅول. نو په دې صورت کښې فساد ډیر قوی دې.او فساد لرې کول دشریعت حق دې.ځکه د شریعت د حق په وجه عقدفاسد لازم نشو.اود عقد غیرلازم په عاقدینوکښې هریوکس د فسخ کولو قدرت لری.ځکه په دې صورت کښې په عاقدینوکښې هریوکس ته د فسخ اختیار ورکړې شو.
**المذهبان في المسئلة**> البته دومره فرق دې.چه د طرفینو رحمهما الله په نیز چه کوم یوکس هم فسخ کول اوغواړی.د خپل ملګری په موجودګئ کښې به ئې فسخ کوی.یعنی د خپل ملګری په علم کښې به ئې راولی.نو فسخ دې کړی.
**دلیلهما**> بیع فسخ کول او فساد لرې کول بلاشبه د شریعت حق دې.خو په فسخ کولوکښې په خپل ملګری باندې الزام هم دې.ځکه چه سړې هغه وخت عقد فسخ کولې شی.چه کله دې په دې کښې ضرر محسوس کړی.ګویا فسخ کونکی پخپل ملګری باندې د ضرر رسولو الزام لګولې دې.او په چا باندې الزام لګولو دپاره ضروری دی.چه هغه ته معلوم هم وی.په چاچه الزام لګولې شی.په دې وجه فسخ کونکې د خپل ملګری په موجودګئ کښې فسخ کولې شی.د ملګری په غیرموجودګئ کښې د فسخ کولواجازت نشته.
**مذهب أبي یوسف رحمه الله**> اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز دده په موجودګئ او غیرموجودګئ دواړه حالتونوکښې فسخ کولې شی.
**دلیله**> عقدفاسد فسخ کول،او فساد لرې کول د شریعت حق دې.اود شریعت حق ادا کولو دپاره د چاموجودګی یاغیرموجودګی شرط نه دې.په دې وجه بیع فاسد د خپل ملګری په موجودګئ کښې هم فسخ کولې شی.او په غیرموجودګئ کښې ئې هم فسخ کولې شی.
**المذهبان في المسئلة**> خود قبضه نه پس دحضرت امام محمد رحمه الله په نیز صرف هغه کس ته د فسخ کولو اختیار دې.د کوم دپاره چه دشرط نفع وی.مثلاً د قرضه ورکولو،یا د هدیه ورکولو په شرط کښې د بائع نفع ده.اود مجهول نیتې په شرط کښې د مشتری نفع ده.او شرط چه د کوم کس خلاف وی.هغه ته د فسخ کولو اختیار نه وی.خودا یاد ساتل پکار دی.که،، من له الشرط،، د خپل اختیار لاندې فسخ کول اوغواړی.نود،، من علیه الشرط،، په موجودګئ کښې به ئې فسخ کوی.
**دلیله**> د حضرت امام محمد رحمه الله دلیل دادې.چه په شرط زائد کښې په فساد پیداکیدلو سره فساد قوی نه وی.بلکه عقد قوی وی.
**مذهب الشیخین**> اود شیخینو رحمهما الله په نیز په عاقدینوکښې هریو ته دفسخ کولو اختیار شته.

**په بیع فاسد سره اخستې څیز په بل باندې د خرڅولو حکم**

| فَإِنْ بَاعَهُ الْمُشْتَرِي فرمائی.که مقبوضه مبیع مشتری خرڅ کړو نَفَذَ بَيْعُهُ نو ددې بیع به نافذ وی |
|---|

**تشریح** صورت د مسئلې دادې.که یوکس د شراء فاسد په طوربانديې څه څیز واخستلو.بیا مشتری د بائع په اجازت سره په مبیع باندې قبضه اوکړله.او مشتری دا دیوبل کس په لاس باندې خرڅ کړلو.نود مشتری دا بیع به نافذ وی.

**دلیله** ځکه چه مشتری د بائع په اجازت سره په مبیع باندې قبضه کړې ده.او ددې مالك شوې دې.او په مملوکه څیزکښې چونکه د هرقسه تصرف اختیار وی.ځکه به مشتری په دې مبیع کښې د تصرف مالك وی.

**سقوط حق الاسترداد** پاتې شوه داخبره چه د مشتری د خرڅولو نه پس بائع اول ته د مبیع واپس اخستلوحق ولې پاتې نشو.

**دلائله** ①نو ددې ړومبې دلیل دادې.چه د بیع ثانی سره د مشتری ثانی یعنی د بنده حق متعلق دې.اود فساد په وجه بیع اول فسخ کول،د حق شرع په وجه دې.یعنی د بنده( د مشتری ثانی) حق تقاضا کوی.چه بیع نافذ کړې شی.اود شریعت د حق تقاضا داده.چه بیع فسخ کړې شی.او قاعده ده.چه حق شرع او حق عبد ،د جمع کیدلو په صورت کښې حق عبد مقدم وی.ځکه چه شارع یعنی الله ﷻ غنی دې.او بنده محتاج دې.او محتاج د رعایت زیات مستحق دې.په نسبت د غنی.په دې وجه به د بنده یعنی د مشتری ثانی حق مقدم وی.اود مشتری ثانی حق دا تقاضا کوی.چه بیع فسخ نکړې شی.په دې وجه به په دې صورت کښې بیع نه فسخ کیږی.او مبیع به بائع اول طرف ته نشی واپس کولې.

②دویم دلیل دادې.چه بیع اول د خپل ذات په اعتبار سره مشروع ده.خود وصف په اعتبار سره غیر مشروع ده.لکه چه وړاندې معلوم شوې دی.او بیع ثانی د خپل ذات او وصف دواړو اعتبار سره مشروع ده.یعنی بیع اول فاسد ده.او بیع ثانی صحیح ده.او فاسد د صحیح معارض نشی کیدلې.ځکه بیع اول د فاسد په وجه بیع ثانی صحیح نشی ختمولې.او هرکله چه بیع ثانی نشی ختمیدلې.نود بائع اول حق استرداد ( د مبیع واپسی) به هم ساقط شی.

③ دریم دلیل دادې.چه په بیع ثانی باندې د مشتری اول قدرت د بائع اول د طرفه حاصل شوې دې.ځکه چه مشتری د بائع اول په اجازت سره قبضه کړې ده.نود بائع اول مبیع واپس اخستل به ددې بیع ختمول وی. کومه چه پخپله دده د طرفه مکمل شوې ده.اودا باطل ده.په دې وجه به بائع اول ته د مبیع واپس اخستلو اختیار نه وی.

**د آزاد اوغلام،یاد ذبیحه اومردار په یو عقد سره د بیع حکم**

| وَمَنْ جَمَعَ بَيْنَ حُرٍّ وَعَبْدٍ اوکوم کس چه غلام او آزاد یوخانې خرڅ کړل أَوْشَاةٍ ذَكِيَّةٍ وَمَيْتَةٍ یا ذبح کړې شوې چیلۍ او مرداره چیلۍ نې یوځانې خرڅه کړله بَطَلَ الْبَيْعُ فِيهِمَا [1] نود دواړو بیع باطل ده |
|---|

**حل اللغة** **جمع**: جمع کړو، **شاة**: چیلۍ، **میتة**: مرداره ، **ذکیة**: ذبح شوې

**تشریح** **صورة المسئلة** صورت د مسئلې دادې.که یوکس آزاد او غلام یوځانې خرڅ کړل.یا مذبوحه چیلۍ او مرداره چیلۍ نې یوځانې خرڅه کړله.نو په دواړه صورتونوکښې د دواړو بیع باطل ده.که د دواړو ثمن نې جدا جدا بیان کړې وی.او که جدا جدا نې نه وی بیان کړې.امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.اود امام شافعی رحمه الله هم دا قول دې.اود امام احمد رحمه الله هم یو روایت دادې.

**مذهب الصاحبین** او صاحبین رحمهما الله فرمائی.که د دواړو ثمن نې جداجدا بیان کړې وی.مثلا داسې نې

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٨٩\٦) والكفاية (٨٩\٦) نقلاً عن القول الراجح (٤٨\٢)–

ونیلی وی چه ما آزاد او غلام یا مذبوحه چیلی او مرداره چیلی د زرو روپو په عوض واخستل.او په دې کښې د هرېو ثمن پنځه سوه روپۍ دې.نو په دې صورت کښې د غلام اود مذبوحه بیع جائز ده.اود آزاد اومردار بیع به باطل وی.او که د دواړو ثمن ئې جداجدا نه وی بیان کړې.نود دواړو بیع به باطل وی.لکه څنګه چه د امام اعظم رحمه الله مذهب دې.د حضرت امام شافعی رحمه الله هم یوقول دادې.اود امام احمد هم یو روایت دادې.

وَمَنْ جَمَعَ بَيْنَ عَبْدٍ وَمُدَبَّرٍ اوچا چې غلام او مدبر جمع کړل أَوْبَيْنَ عَبْدِهِ وَعَبْدِ غَيْرِهِ یا خپل غلام اود بل چا غلام ئې جمع کړل.صَحَّ الْبَيْعُ فِي الْعَبْدِ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ نود غلام بیع دده د حصې د ثمن په عوض جائز ده.

**تشریح> الجمع بین عبده وعبد غیره>** او که غلام اومدبر ئې یوځائې خرڅ کړلو.یا ئې خپل مملوك غلام اود بل مملوك غلام یوځائې خرڅ کړلو. د غلام مملوك ددې د ثمن حصې په عوض جائز ده.اود مدبر او غیرمملوك غلام بیع فاسد ده.[1]

**دلیله>** دلیل دادې.چه فساد په اندازه د مفسد وی.یعنی څومره چه د فاسدولو امر اوموندې شی.فساد به هم په هغه اندازه متحقق کیږی.او مفسد فقط په آزاد او مردار کښې دې.څکه چه دا دواړه د مال نه کیدلو په وجه محل بیع نه دی.نو هر کله چه مفسد فقط په آزاد اومردار کښې دې.نو فسادبیع به هم دې سره خاص وی.غلام او ذبیحه چیلۍ طرف ته به نه متعدی کیږی.لکه څنګه چه غلام اومدبر یوځائې خرڅولو په صورت کښې د بیع فساد مدبر سره خاص وی.غلام طرف ته نه متعدی کیږی.اودا داسې ده.لکه مثلا یوکس په عقدنکاح کښې اجنبیه ( پردئ ) ښځه او خپله خور جمع کړل.نود خور نکاح باطل ده.اود اجنبیه ( پردئ ) ښځې صحیح ده.

**حکمه اذا لم یسم ثمن کل واحد>** خوکه آزاد او غلام ئې یوځائې خرڅ کړل.اود دواړو ثمن ئې جداجدا بیان نکړلو.نود دواړو بیع به فاسد وی.څکه چه په دې صورت کښې دغلام ثمن مجهول دې.اود ثمن مجهول کیدل مفسد د بیع وی.په دې وجه به په دې صورت کښې د غلام بیع هم فاسد وی.خو چه کله ئې د دواړو ثمن جداجدا بیان کړلو.نود ثمن جهالت نه موندلو په وجه به د غلام بیع درست وی.

**بیان البیع المکروه:** د فاسد مرتبه چونکه د مکروه د مرتبې نه قوی ده ددې وجې ئې د بیع فاسد بیان وړاندې اوکړو او اوس د بیع مکروه صورتونه بیانوی اود فاسد او مکروه په مینځ کښې فرق هغه دې کوم چه اصولیانو ذکر کړې دې که قبح د وصف متصل په وجه وی.نو فاسد ده.اوکه قبیح د امرمجاور( لاحق امر) په وجه وی.نو مکروه ده.بیا د مکروه دوه قسمونه دی. ① مکروه تحریمی اودا حرامو ته نیزدې وی. ② مکروه تنزیهی اومکروه دا مباح ته نیزدې وی

## د نجش تعریف اوشرعی حیثیت

وَنَهَى رَسُولُ اللَّهِ ﷺ عَنِ النَّجْشِ نبی کریم ﷺ د نجش نه منع فرمائیلې ده

**تشریح> کراهة النجش>** نجش،د نون اوجیم په فتح سره،رسول الله ﷺ د بیع نجش نه منع فرمائیلې ده.

**تعریف النجش>** او بیع نجش داده.چه مشتری د مبیع ثمن ددې د قیمت په اندازه لګولې دې.خو یوسړې په ثمن کښې اضافه کوی.یعنی وائی. چه زه د مشتری د بیان شوی ثمن نه د دومره زیاتی ثمن په عوض اخلم.حالانکه دده اراده د اخستلو نه وی.بلکه صرف مشتری ته دهوکه ورکول او تیزول مقصود

[1] مذهب زفر رحمه الله:- اود امام زفر رحمه الله په نیزد غلام او مدبر،اود خپل غلام اود بل کس غلام د دواړو بیع فاسد ده.

وی.چه مشتری نور قیمت هم زیات کړی.او وانخلي او دهوکه یو قبیح امر دې.کوم چه ددې بیع مجاور( پیوست) دې.اود امرقبیح چه د بیع مجاورشي.نو بیع مکروه کیږی.په دې وجه به دا بیع مکروه وی. خو که مشتری د قیمت په اندازه ثمن نه دې لګولې.او بل دویم کس څه پیسې زیاتی کړې.اود قیمت په اندازه ئې کړلو.حالانکه دې اخستل نه غواړی.نودا جائز دی.ځکه چه په دې کښې دمشتری د نقصان نه بغیر د یومسلمان یعنی د بائع نفع ده.اوښکاره ده.چه په دې کښې هیڅ باك نشته.

**دلیله**> اود دې د عدم جواز دلیل دا دې چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی (لاتناجشوا) [1] یعنی د بیع نجش ارتکاب مه کوئ.

| وَعَنِ السَّوْمِ عَلَى سَوْمِ غَيْرِهِ اود دویم په نرخ کولو باندې نرخ ( بهاو) مه کوئ |
|---|

**تشریح**> **كراهة السوم علي سوم غيره**> اود یوسړی په معامله برابرولو باندې د نرخ کولو نه هم منع فرمائیلې ده.

**دلائله**> ① چه حدیث دې. (لایستام الرجل علی سوم أخیه ولا یخطب علی خطبة أخیه) [2] یعنی هیڅ څوك سړې دې د خپل رور په نرخ کولو باندې نرخ ( بهاو) نه کوی.اود خپل رور په کویژدن دې کویژدن نه کوی.د( لایستام الرجل علی سوم أخیه) صورت دادې.چه دوه سړی د یوسامان په عوض باندې راضی شو.یعنی بائع په خرڅولو باندې راضی شو.او مشتری په اخستلو باندې راضی شو.اوس دریم سړې راشی.او اووائی. چه زه به هم دا سامان ددې نه د کم ثمن په عوض درکړم.ښکاره ده.چه په دې صورت کښې د سامان والا نقصان دې.اوکه ده سامان والا ته اووئیل.چه زه دا سامان د زیاتی ثمن په عوض اخلم.نو په دې صورت کښې د مشتری نقصان دې.

② اوبله د دې وجې دا بیع ناجائز ده چه د،، سوم علی سوم اخیه،، په صورت کښې د ،،احدالمتعاقدین،، په زړه کښې یره اچول دی.او دوی ته ضرر رسول دی.اودا دواړه څیزونه قبیح دی.خود بیع نه جدا کیدلې هم شی.ځکه به ددې امورقبیحه په وجه بیع مکروه وی.

**صورة الكراهة**> علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.چه،، سوم علی سوم اخیه،، هغه وخت مکروه وی.چه کله عاقدین په معامله کولوکښې په څه ثمن باندې راضی شوې وی.که تر اوسه پورې څوك یوطرف ته مائل شوی نه وی. او دریم کس راغئ.او پیسې ئې زیاتی کړلې.نودا به،، سوم علی سوم غیره،، نه وی.بلکه دا بیع،، من یزید،، ده.یعنی نیلامی کول او بولی کولو سره خرڅ کول دی.او په نیلامی کولو سره په خرڅولوکښې هیڅ باك نشته.لکه چه د حضرت انس رضی الله عنه حدیث دې.(أن النبی ﷺ باع قدحاً وحلساً بیع من یزید) یعنی رسول الله ﷺ یوه پیالئ او یوټاټ د بیع من یزید په طریقه خرڅ کړی دی.یعنی په نیلام سره ئې خرڅ کړی دی.

**د تلقی جلب حکم**

| وَعَنْ تَلَقِّي الْجَلَبِ نبی کریم ﷺ د تلقی جلب نه منع فرمائیلې ده وَهٰذَا إِذَا كَانَ يَضُرُّ بِأَهْلِ الْبَلَدِ اودا حکم هغه وخت دې.چه د ښار( اوسیدونکو) خلقو ته ضرر رسیږی فَإِنْ كَانَ لَا يَضُرُّ نوکه د |
|---|

---

[1] من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه اخرجه البخاری فی البیوع باب ٦٤ ومسلم فی البیوع رقم ١١ وأبوداود فی البیوع باب ٤٦ والنسائی فی البیوع باب ١٤ ومالك فی البیوع رقم ٩٦ وأحمد فی المسند(٢/٢٤٢) _

[2] من حدیث إبن عمر رضی الله عنهما اخرجه البخاری فی البیوع باب ٥٨ رقم ٢١٣٩ ومسلم فی البیوع رقم ٧_

| ښارخلقو ته ضرر نه رسیږي فَلَابَأْسَ بِهِ نوپه دې کښې هیڅ باك نشته. |
|---|

**تشریح> كراهة تلقي الجلب>** د تلقي جلب يو څو صورتونه دي. ① يو صورت دا چه په ښار کښې قحط وي.خوچه کله د ښار بعضو سوداګرو ته د غلې د قافلې راتللو خبرملاؤ شي.نو دوی د ښار نه بهر اوځي.اود قافلې والو نه ټوله غله واخلي.چه د خپلې خوښې په قيمت ئې خرڅه کړي.په دې صورت بيع ځکه مکروه دې.چه په دې صورت کښې د ښارخلق په قحط اود غلې نه کیدلو په وجه په ضرر او پریشانئ کښې مبتلا دي.اود سوداګرو په دې عمل سره به د ښار د خلقو په پریشانئ کښې نوره هم اضافه اوشي.اوخوك په پریشانئ کښې مبتلاکول امرقبيح دې.خودا امرقبيح داسې دې.چه دا د بيع نه جداکيدلې شي.ځکه به په دې وجه بيع مکروه وي.اوپه مذکوره صورت کښې که د ښار خلقو ته ضرر نه وي نو بيا په کښې څه کراهت نشته.

②دويم صورت دا دې چه د قافله والو نه په آرزان قيمت غله واخلي.اود ښار نرخ په دوی باندې پټ اوساتي.او دوی پخپله هم د ښار د قيمت نه ناخبره وي. په دې صورت کښې چونکه د راتلونکې قافلې په خلقو باندې نرخ پټ کړې شوې دې.او دوی ته دهوکه ورکړې شوې ده.او دهوکه ورکول امرقبيح دې.ځکه به په دې صورت کښې هم بيع مکروه وي.

## د ښارئي والا د کلي والا دپاره د خرڅولوحکم

| وَعَنْ بَيْعِ الْحَاضِرِ لِلْبَادِي اود کلي والا دپاره د ښار د اوسيدونکي خرڅولو نه منع ( فرمائيلې شوې) ده |
|---|

**حل اللغة> الحاضر:** ښاري ، **البادي:** کلي وال

**تشریح> كراهة بيع الحاضر للبادي>** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائي.چه بيع حاضر للبادي مکروه ده.

**دليله>** ځکه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی.(لايبيع الحاضرللبادي) [1]د دې صورت به دا وي چه ديو ښاري سره غله ده.خودې ئې د ښار په خلقو نه خرڅوي.بلکه د کلو او بانديچو په خلق ئې خرڅوي.او ددې نه مقصد ګران قيمت وصول کول وي.ځکه چه د ښارخلق د نرخ اومعاملاتو نه د خبريدلو په وجه په ګران قيمت باندې په د اخستلو نه راضي کيږي.اود کلوخلق به د خپلې سادګئ په وجه دده په چکر( دهوکه) کښې راشي. نوپه دې صورت کښې که د ښارخلق په قحط اوپه تنګئ کښې وي.او دده په دې عمل سره به د ښار اوسيدونکو ته تکليف وي. نو بيع مکروه ده.ځکه چه په دې کښې دوی ته ضرر دې

**صورة عدم الكراهة>** اوکه د ښار خلق په وسعت ( فراخئ) کښې وي.او دده په دې عمل يعنی دکلو والو په خلقو باندې خرڅولوسره څه ضرر نه کيږي.نو په دې کښې هيڅ باك نشته.

## د جمعې د اذان په وخت دبيع حکم

| وَالْبَيْعُ عِنْدَ أَذَانِ الْجُمُعَةِ د جمعې د اذان په وخت بيع مکروه ده |
|---|

**تشریح>** د جمعې د اذان نه پس اخستل خرڅول هم مکروه دی.

**دليله>** ①د الله تعالى ارشاد دې. {وَذَرُوا الْبَيْعَ} چه د جمعې اذان اوشي.نود جمعې مونځ اوخطبې طرف ته په تلوار ورځئ.او کاروبار بندکړئ.

**وجه المنع>** په دې کښې قباحت دې.ځکه چه بعض وخت که د اذان نه پس ناسته يا په ولاړه اخستل خرڅول اوکړې شي.نو،، سعی الی الجمعه،، کوم چه واجب ده.په دې کښې خلل پيداکيږي.او په

---

[1] الحديث المذكور من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه البخاري في الشروط باب ۱۱ رقم ۲۷۲۷ ومسلم في البيوع رقم ۱۲.

امرواجب کښې خلل واقع کيدل يوقبيح امر دې.نو ددې امرقبيح په وجه د جمعې د اذان نه پس اخستل خرڅول مکروه دی.البته که جامع مسجد ته په تلو تلوکښې څه معامله اوشوه.نو په دې کښې څه باك نشته.ځکه چه ددې په وجه په،، سعی الى الجمعه،،کښې خلل نه پيداکيږی.

**المراد من الاذان>** او پاتې شوه داخبره چه د اذان نه کوم اذان مراد دې.نو په کتاب الصلاة کښې تيرشوی دی.چه ړومبې اذان مراد دې.په دې شرط چه اذان د زوال نه پس ونيلې شوې وی.

**په ذکرشوی بيوع کښې د کراهت وجه**

| وَكُلُّ ذَٰلِكَ يُكْرَهُ اودا ټول بيوع مکروه دی وَلَا يَفْسُدُ بِهِ الْبَيْعُ اود کراهت په وجه به بيع فاسد نه وی. |
|---|

**تشريح>** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائي.چه تر اوسه پورې د کومو بيوع نه نهی ذکر شوه يعنی د بيع النجش نه واخله تر بيع عند اذان الجمعة پورې چه څومره بيوع ذکردی.ټول مکروه دی.او د کراهت په وجه به بيع فاسد نه وی.

**دليل عدم الفساد>** ځکه چه فساد يعنی قبح په داسې معنی کښې ده.کومه چه د عقد نه خارج ده. البته د عقد سره مجاوردې اوپاتې شو صلب عقد اود صحت شرائط نوپه هغې کښې هيڅ قباحت نشته.او کوم قباحت چه په خارجی مجاور معنی کښې وی.د هغې په وجه بيع مکروه کيږی.فاسد يږی نه.په دې وجه په ذکرشوی ټولو صورتونوکښې به بيع مکروه وی.فاسد به نه وی.

| بَابُ الْإِقَالَةِ |
|---|

**ترجمه** ( دا) باب د اقاله ( په بيان کښې) دې.

**تشريح> وجه تاخيرالباب عن الباب السابق>** بيع فاسد اوبيع مکروه د معصيت او ګناه په وجه واجب الرد دی.او رد د بيع د اقاله په ذريعه سره کيږی.نوځکه ئې د باب بيع الفاسد والمکروه نه پس باب الاقاله ذکر کړلو.

**تشريح الإقالة >**اقاله د قول نه مشتق دې.او ددې همزه د سلب دپاره ده.معنی به ئې دا وی.چه،، تيرشوی قول زائل کول،،

علامه ابن الهمام او علامه بدرالدين عينی رحمه الله فرمائيلی دی.چه اقاله د قول نه مشتق منل غلط دی.صحيح داده.چه لفظ اقاله د قيل نه مشتق دې.يعنی عين کلمه ئې،، ياء،، ده.واؤ نه ده.او په دې باندې دليل دادې.چه(قلت البيع)،، ما بيع ختمه کړه،،د قاف په کسره سره ونيلې شی.اود قاف کسره د اجوف يائی په صورت کښې راځی.د واوی په صورت کښې نه راځی.ځکه چه د اجوف واوی په صورت کښې فا کلمه مضموم وی.لکه(صمت)،،ماروژه اونيوله،،د صام يصوم نه راځی.نواقاله د باب افعال مصدر دې.چه ددې معنی د بيع ختمولو راځی.

| عن ابی هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلی دی {مَنْ أَقَالَ مسلماچه څوك مسلمان ( په بيع باندې خپيمانه) ته دده د بيع اقاله اوکړی أَقَالَ اللَّهُ عَثْرَتَهُ }(١)نو الله تعالى به دده لغزش ( خطايانې) لرې کړی. |
|---|

١) من حديث ابي هريرة رضي الله عنه أخرجه ابوداود في البيوع باب ٥٢ رقم ٣٤٦٠ وابن ماجه في التجارات باب ٢٦ رقم ٢١٩٩ واحمد في المسند(٢/٢٥٢) والحاكم في المستدرك (٢/٤٥) البيهقي في السنن الكبرى (٦/٤٤) رقم ١١١٢٨ _

**حل اللغة> الإقالة:** بيع ماتول، **عثرة:** لغزش\گناه

**تشريح>** دغه شان د اقاله د جواز دپاره دليل د رسول الله ﷺ ارشاد دي. (مَنْ أَقَالَ مسلماً أَقَالَ اللهُ عَثْرَتَهُ) يعني كه كوم كس چې يو مسلمان سره بيع ماته كړه (چې هغه پرې خفه وي) نو الله تعالى به ددې عاقد آخر لغزشونه (گناهونه) لرې كړي. گويا په اقاله كولو باندې د الله تعالى رسول ﷺ د ثواب خبر وركړې دې. يا نې د ثواب دعا كړې ده. او دا دواړه په امر مشروع باندې مرتب كيږي. په غيرمشروع باندې نه مرتب كيږي. نو ثابته شوه. چه اقاله مشروع ده.

## د اقاله شرعي حيثيت

| الْإِقَالَةُ جَائِزَةٌ فِي الْبَيْعِ للبائع والمشتري بِمِثْلِ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ اقاله په بيع كښې د بائع او مشترى دپاره د ثمن اول د مثل په عوض جائز ده. |
|---|

**تشريح>** ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي. چه د بيع اقاله د ثمن اول د مثل په عوض جائز ده. د اقاله په جواز باندې د ټولو مسلمانانو اجماع ده.

## د ثمن اول نه د كموالي زياتوالي د شرط حكم

| فَإِنْ شَرَطَا أَكْثَرَ مِنْهُ أَوْ أَقَلَّ نوكه د ړومبي ثمن نه د زياتوالي يا كموالي شرط ئې اوكړو فَالشَّرْطُ بَاطِلٌ نو شرط باطل دې وَيَرُدُّ مِثْلَ الثَّمَنِ الْأَوَّلِ او بائع به د ثمن اول مثل واپس كوي. |
|---|

**تشريح> صورة المسئلة>** صورت د مسئلې دادې. كه په اقاله كښې د ثمن اول نه د زياتوالي شرط اوكړلو. يائې د كموالي شرط اوكړلو. نو داشرط باطل دې. او په بائع به ثمن اول واپس كول واجب وي. مثلا يوخيز د زر روپو په عوض خرڅ كړې شو. اوبائع په ثمن باندې او مشترى په مبيع باندې قبضه اوكړله. نواوس كه اقاله كول وي. نو په بائع به زر روپۍ واپس كول واجب وي. د زر روپو نه د كموالي يا زياتوالي شرط لگول به ټيك نه وي. لكه كه بائع د دوه سوه روپو كمولوشرط اولگولو. يا مشترى د دوه سوه روپو زياتولو شرط اولگولو. نودا شرط به باطل وي. او په بائع به فقط زر روپۍ واپس كول لازم وي.

| وهي فَسْخٌ فِي حَقِّ الْمُتَعَاقِدَيْنِ دا اقاله د عاقدينو په حق كښې فسخ ده. بَيْعٌ جَدِيدٌ فِي حَقِّ غَيْرِهِمَا ددې دواړو نه د علاوه په حق كښې بيع جديد ده. فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ[1] په قول د امام ابوحنيفه رحمه الله كښې |
|---|

**تشريح> الاقالة فسخ في حق المتعاقدين>** صاحب قدوري رحمه الله فرمائي. چه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز اقاله د متعاقدينو په حق كښې فسخ د بيع ده. او ددې دواړو نه د علاوه په حق كښې بيع جديد ده. د عاقدينو په حق كښې د بيع فسخ كولو فائده داده. چه په بائع باندې فقط د ثمن واپس كول واجب دي. اود ثمن نه د زياتوالي يا كموالي كوم شرط لگولې وو. هغه باطل دې.

**دليله>** كه اقاله ددې دواړو په حق كښې فسخ نه وه. بلكه بيع وه. نو څه چه دوى متيعن كړى وو. كه د ثمن اول نه زيات وو. ياد ثمن اول نه كم وو. هغه به واجب وو. څكه چه په بيع كښې عاقدين كوم ثمن متعين كړي. هم هغه واجب وي. ددې نه علاوه واجب نه وي. نو په اقاله كښې په بائع باندې د ثمن اول واجبيدل اود عاقدينو متعين شوې نه واجبيدل ددې خبرې دليل دې. چه اقاله دعاقدينو په حق كښې

[1] القول الراجح هو هذا قول الإمام رحمه الله كذا في ردالمحتار(١٦٤\٤) والهندية (١٥٦\٣) نقلاً عن القول الراجح (٥٠\١٢)-

فسخ د بیع ده.او بیع جدید نه ده.

**الاقالة بیع جدید في حق غیرهما>** اقاله دغیر عاقدینو په حق کښې بیع جدید ده.ددې فائده به په دې مثال کښې ښکاره کیږي.چه یو سړی کور واخستلو.خوشفیع د حق شفعه دعوه اونکړله.خپل حق ئې پریخودلو.بیا عاقدینو اقاله اوکړله.اوکور د بائع په ملك کښې راغی:نوهم دغه شفیع که د شفعه مطالبه کول اوغوښتل.نو ده ته دا اختیارشته.یعني شفیع شفعه طلب کولې شي.ځکه چه د شفیع په حق کښې اقاله بیع جدید ده.ګویا مشتری بائع باندې هم هغه کور خرڅ کړې دې.کوم ئې چه دده نه اخستې وو.اود بیع په صورت کښې شفیع ته حق شفعه رسیږي.په دې وجه د اقاله په صورت کښې هم شفیع ته د حق شفعه طلب کولو اختیار وي.بهرحال دحضرت امام ابوحنیفه‌رحمه‌الله په نیز اقاله د عاقدینو په حق کښې فسخ د بیع،اود غیر عاقدینو په حق کښې بیع جدید ده.

**صورة بطلان الاقالة>** خو که اقاله د بیع فسخ کول ګرځول ممکن نه وي.نو اقاله به باطل وي.مثلاً یوسړی وینځه خرڅه کړله.او مشتری په دې باندې قبضه اوکړله.بیا ددې وینځې بچې پیدا شو.اوس که ددې عاقدین اقاله کول اوغواړي.نو ټیك نه ده.ځکه چه اقاله دعاقدینو په حق فسخ د بیع ده او په مبیع کښې داسې زیاتوالې کوم چه د مبیع نه جدا وي.فسخ د بیع منع کوي.نو منفصله زیاتوالې یعني بچې د شریعت په حق کښې د بیع فسخ کولو دپاره مانع دې.او هرکله چه د بچی په وجه فسخ د بیع ممکن نشوه.نو اقاله به باطل وي.او مخکینۍ بیع به پخپل حال باندې باقی وي.

**دلیله>** دلیل دا دې چه اقاله زوال د ملك دپاره موضوع ده.او بیع اثبات د ملك دپاره موضوع ده.او لفظ د خپل معنی د ضد احتمال نه لري.نو هرکله چه لفظ د اقاله د ابتداء بیع احتمال نه لري.نود فسخ متعذر کیدلو په صورت کښې به لفظ د اقاله په ابتداء دبیع باندې نشی محمول کولې.او هرکله چه لفظ د اقاله په بیع باندې نشی محمول کولې.او فسخ متعذر ده.نود اقاله باطلول متعین شو.

### د ثمن یا مبیع د هلاکت په صورت کښې د اقاله حکم

| **وَهَلَاكُ الثَّمَنِ لَا يَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقَالَةِ** اود ثمن هلاکیدل، اقاله صحیح کیدلو نه نه منع کوي **وَهَلَاكُ الْمَبِيعِ يَمْنَعُ صِحَّتَهَا** اود مبیع هلاکیدل ددې نه منع کوي. |
|---|

**تشریح> صورة المسئلة>** مسئله داده.چه د عقدبیع نه پس که بائع سره ثمن هلاك شو.او عاقدینو اقاله کول اوغوښتل.نو اقاله به ټیك وي.خوکه مبیع هلاك شو.نو اقاله به ټیك نه وي.حاصل دا چه ثمن هلاکیدل،د اقاله د صحت دپاره مانع نه دې.خو مبیع هلاکیدل د اقاله د صحت دپاره مانع دې.

**دلیله>** دلیل دادې.چه اقاله نوم دې.د بیع لرې کولو،او بیع مبیع سره قائم وي.ثمن سره قائم نه وي.ځکه چه په عقدبیع کښې مبیع اصل وي.ثمن اصل نه وي.ثمن خو په منزله د وصف وي.هم دا وجه ده.که ثمن موجود نه وي.نو.عقدبیع بیاهم جائز وي.خوکه مبیع موجود نه وي.نو عقدبیع نه جائزکیږي.نو که مبیع موجود نه وي.نو بیع به موجود نه وي.اوهرکله چه بیع موجود نشی.نو ددې رفع کول یعني اقاله به هم ټیك نه وي.خوکه ثمن موجود نه وي.او مبیع موجود وي.نو بیع به موجود وي.او هرکله چه بیع موجود ده.نو ددې فسخ یعني اقاله به هم ټیك وي.

### د بعض مبیع هلاکت په صورت کښې د اقاله حکم

| **وَإِنْ هَلَكَ بَعْضُ الْمَبِيعِ** نوکه د مبیع یوه حصه هلاك شوه **جَازَتِ الْإِقَالَةُ فِي بَاقِيهِ** نو په باقی کښې اقاله جائز ده |
|---|

**تشریح> صورة المسئلة>** مسئله داده.که د مبیع څه حصه هلاکه شوه.نو په باقی مبیع کښې اقاله جائز

ده.مثلاً یو من په دوه روپۍ حساب سره ئې لس منه غنم په شل روپو باندې واخستل.بیا څلور منه خرچ شو.او په باقی شپږ منه غنمو کښې دواړو اقاله اوکړله.نوجائز ده.

**دلیله** دلیل دادې چه باقی مبیع یعنی شپږمنه غنموکښې بیع موجود ده.نو ددې اقاله هم جائزده.

## بَابُ الْمُرَابحَةِ وَالتَّوْلِيَةِ

**ترجمه** (دا) باب د مرابحه اوتولیه (په بیان کښې) دې.

**تشریح** د دې باب پورې دهغه بیوع بیان وو د کومو تعلق چه د بیع سره وو او ددې نه پس د هغه بیوع بیان کیږی د کومو تعلق چه د ثمن سره وی یعنی بیع مرابحه اوبیع تولیه

**أقسام البیع باعتبار الثمن** د ثمن په اعتبارسره د بیع څلور قسمونه دی.په دې شرط چه د ثمن په مقابله کښې سامان وی. ① بیع مساومه: د سامان نرخ (بهاو) کول.په دې بیع کښې ثمن اول طرف ته قطعاً توجه نه کیږی. ② بیع وضعیه: د ثمن اول نه په کم عوض باندې بیع کول.③ بیع مرابحه: د ثمن اول نه په زیاتی عوض باندې بیع کول.④ بیع تولیه: د ثمن اول په مثل باندې بیع کول. (کذا قاله صاحب الکفایه)

### د بیع مرابحه او تولیه تعریف اوشرعی حیثیت

| الْمُرَابَحَةُ نَقْلُ مَـا مَلَكَـهُ بِالْعَقْدِ الْأَوَّلِ مرابحه داده.چه د عقداول په وجه دکوم څیز مالك شوې دې بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ مَعَ زِيَادَةِ رِبْحٍ دا د ثمن اول په عوض په زیات نفع سره منتقل کول. |
|---|

**تشریح** **تعریف المرابحة** ابو الحسن قدوری رحمه الله د مرابحه او تولیه تعریف کوی.فرمائی.بیع مرابحه داده.چه مشتری د څومره قدرې ثمن په عوض د سامان اخستې دې.په دې باندې څه معلومه نفع زیاتی کړی.او په بل چا ئې خرڅ کړی.مثل په زر روپۍ ئې واخستلو.او بل سړی په ده اعتماد اوکړلو.او په زر روپو ئې سل روپۍ زیاتی کړلې.اودا سامان ئې واخستلو.نودې ته بیع مرابحه ونیلې شی.

| وَالتَّوْلِيَةُ او بیع تولیه داده نَقْلُ مَـا مَلَكَـهُ بِالْعَقْدِ الْأَوَّلِ چه د عقداول په وجه د کوم څیز مالك شوې دې بِالثَّمَنِ الْأَوَّلِ مِنْ غَيْرِ زِيَادَةِ رِبْحٍ دا د ثمن اول په عوض د زیاتی نفع نه بغیر منتقل کول. |
|---|

**تشریح** **تعریف التولیة** او بیع تولیه داده.چه د څومره قدرې ثمن په عوض ئې اخستې دې.د نفع اخستلو نه بغیر ئې هم په دومره عوض خرڅ کړی.مثلاً د زر روپو په عوض ئې اس واخستلو.اوهم د زر روپو په عوض ئې خرڅ کړلو. نودې ته بیع تولیه ونیلې شی.

**جواز البیعان** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.چه دا دواړه بیع جائز دی.ځکه چه په دې دواړو بیع کښې ① اول خود جواز ټول شرطونه موجود دی. ② دویم داچه دداسې قسمه بیع ضرورت هم دې.

**دلیل الضرورة** دلیل دا دې چه ډیرکرته یو سړې غبی اود تجارت د معاملاتو نه ناخبره وی.نو ده ته ددې خبرې ضرورت وی.چه دې د یو پوهه او تجربه کار په فعل باندې اعتماد کوی.او خپل ځان په دې خوشحالوی.چه مادا سامان هم دومره قدرې ثمن په عوض اخستې دې.د څومره قدرې ثمن په عوض چه فلانی پوهه کس اخستې وو.یا ما دومره قدرې نفع ورکړې ده.او اخستې مې دې.په دې بیوع کښې به ناخبره سړی ته د دهوکې خوړلو شبه نه وی.بلکه دغه وخت یوقسم اطمینان حاصل وی.بهرحال هرکله چه د جواز شرطونه هم موجود دی.اود خلقو عادت( اودستور) هم دادې.او ضرورت هم ددې شته دې.نو ددې په جوازکښې څه شبه ده.یقیناً دا دواړه بیوع به جائز وی.

**الدلائل النقلية لجواز التولية** > د بیع تولیه جواز د حدیث نه هم ثابت دې.نقل دی.چه کله نبی کریم ﷺ د هجرت اراده اوفرمائیله.نوصدیق اکبر رضی الله عنه دوه اوښان واخستل.نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل.چه په دې دواړو کښې یوماته د تولیه په طریقه راکړه.یعنی په څومره چه دې اخستې دې.په هم دومره ئې په ما راخرڅ کړه.ابوبکر رضی الله عنه اوفرمائیل.چه دا ستا دپاره د ثمن نه بغیر دې.رسول الله ﷺ اوفرمائیل.چه د ثمن نه بغیر خو به ئې وانخلم.(۱)

② او په مصنف ابن عبدالرزاق کښې د سعیدبن المسیب رضی الله عنه حدیث دې.(**أن النبی ﷺ قال التولیة والإقالة والشركة فلا بأس به**) یعنی د الله تعالیٰ رسول ﷺ فرمائیلی دی.چه تولیه، اقاله، او شرکت جائز دې.په دې کښې هیڅ باك نشته.

**د بیع مرابحه اوتولیه عوض مثلی کیدل ضروری دی**

| وَلَا تَصِحُّ الْمُرَابَحَةُ وَالتَّوْلِيَةُ فرمائی.او بیع مرابحه او تولیه جائز نه ده حَتّٰی یَکُونَ الْعِوَضُ مِمَّا لَهُ مِثْلٌ.تردې چه ثمن داسې څیز وی.چه ددې مثل وی. |
|---|

**تشریح> جواز المرابحة والتولية في العوض المثلية** >ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه بیع مرابحه او بیع تولیه هغه وخت جائز ده.چه کله ثمن د ذوات الامثال څخه وی.یعنی د مکیلاتو،یا موزونات، یا د عددیات متقاربه څخه وی.اوکه ثمن ذوات القیم څخه وی.مثلا کپړې، یا څاروی، یا غلام ئې ثمن جوړکړې وی.نو بیا به بیع مرابحه او تولیه جائز نه وی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه وړاندې تیر شوی دی.چه په بیع مرابحه کښې او بیع تولیه کښې د خیانت اوشبه خیانت دواړو نه احتراز ممکن دې.مثلاً یو غلام ئې د زر دینار په عوض واخستلو.بیا په بل باندې د یوولس سوه دینار په عوض خرڅ کړلو.یا ئې هم د زر روپو په عوض خرڅ کړلو.نو په رومبی صورت کښې به بیع مرابحه وی.او په دویم صورت کښې به بیع تولیه وی.ښکاره ده.چه نه په دې کښې خیانت شته.اونه پکښې د خیانت شبه شته.یا مثلاً یوغلام ئې د سل صاع غنمو په عوض واخستلو.بیا ئې دا لس دپاڅه سل صاع غنمو په عوض خرڅ کړلو.یا ئې د سل صاع غنمو په عوض خرڅ کړلو.نو په رومبی صورت کښې بیع مرابحه او په دویم صورت کښې به بیع تولیه وی.په دې کښې نه خیانت دې.اونه د خیانت شبه ده.اود ذوات القیم په صورت کښې اگرچه د خیانت نه ځان ساتل ممکن دی.خود شبهة الخیانت نه ځان ساتل ممکن نه دی.مثلاً یوکس یو غلام د اس په عوض واخستلو.بیا ئې دا غلام مرابحةً یا تولیةً خرڅ کړلو.نو مشتری ثانی یعنی حامد د هغه څیز په اداکولو قادر دې.د کوم څیز چه ده التزام کړې دې.یعنی په بیع اول کښې چه کوم ثمن وو.یعنی اس،حامد ددې په اداکولو قادر دې.او په دې صورت کښې نه خیانت دې.اونه د خیانت شبه ده.څکه جائز دې.

۱) غربه الزيلعي رحمه الله ثم قال وروى عبدالرزاق في مصنفه ....عن سعيد بن المسيب رحمه الله عن النبي ﷺ قال ((التولية والإقالة سواء لا بأس به)) ثم ذكرسنداً آخر فقال اخبرنا ابن جريج عن ربيعة عن النبي ﷺ حديثاً مستفاضا بالمدينة قال من إبتاع طعاماً فلا يبيعه حتى يقبضه ويستوفيه إلا أن يشرك فيه،او يوليه اويقيله ثم ذكر حديث أبي بكرصديق رضي الله عنه حيث قال في البخاري عن الزهري عن عروة عن عائشة رضي الله عنها وفيه أنا أبابكرقال للنبي ﷺ خذ بأبي أنت وأمي يا رسول الله إحدى راحلتي هاتين فقال ﷺ بالثمن الحديث ليس فيه غيرذلك (كذا في نصب الراية ٦٣/٤ _

## په راس المال کښې خرچه حسابول

وَيَجُوزُأَنْ يُضِيفَ إِلَى رَأْسِ الْمَالِ أُجْرَةَ الْقَصَّارِ وَأُجْرَةَ الصباغ والطَّرَّازِ وَالنَّقْلِ وَأُجْرَةَ حَمْلِ الطَّعَامِ او په راس المال کښې د دهوبي مزدوري، اود رنګ ورکونکي مزدوري او د نقش ونګار جوړونکي مزدوري، اود ګلونو جوړونکي مزدوري، اود غلې منتقل کولو مزدوري ملاوول جائز دي.

**حل اللغة** ﴿ **يضيف**: ملاؤ کړي ، **القصار**: دهوبي ، **الطراز**: نقش اونګارکونکې ، **الصبغ**: رنګ

**تشريح** ﴿ **جواز اضافة بعض الاشياء الي راس المال** ﴿ ابو الحسن قدوري ﷫ فرماني.چه د بيع مرابحه اوبيع توليه کولو په وخت راس المال يعني ثمن سره د دهوبي مزدوري ملاوول جائز دي.مثلاً يو تهان ئې په سل روپۍ واخستلو.بيا ئې دهوبي ته پنځه روپۍ مزدوري ورکړله.اودا (کپړه) ئې اووينځله.نو اوس مشتري دا تهان په پنځه دپاځه سل روپۍ باندې په نفع مرابحة يا د نفع نه بغيرد پنځه دپاځه سل روپو په عوض توليةً خرڅولې شي.دغه شان که په کپړه ئې ګلونه ( نقش ونګار) جوړکړل.نو ددې نقش ونګار کونکي مزدوري د راس المال سره د ملاوولو اجازت دې.دغه شان د رنګريز مزدوري ملاوول جائز دي.او دغه شان د ګلونو جوړونکي مزدوري ملاوول جائز دي.مثلا يوسړې په سل روپۍ باندې کمبل يا څادر واخستلو.بيا ئې چاته لس روپۍ مزدوري ورکړله.او ددې دواړو طرفونو ته ئې ګلونه (نقش ونګار) جوړکړل.نواوس که دا سړې د مرابحه يا توليه په طريقه خرڅول اوغواړي.نود مرابحه په صورت کښې به په لس دپاځه سل روپۍ باندې نفع اخلي.اود توليه په صورت کښې به ئې د لس دپاځه سل روپو په عوض خرڅوي.اودغه شان د يوځانې نه بل ځانې ته د غلې اوړلو مزدوري ( يعنې کرايه) راس المال سره ملاوول جائز دي.مثلاً يوسړې په ديوبند کښې لس منه غنم د دوه سوه روپو په عوض واخستل.بيا ئې شل روپۍ د بار زاوړلو مزدوري( کرايه) ورکړله.اودا غله ئې صبا نپور ته منتقل کړله.نو اوس که مشتري په صبا نپورکښې دا غنم مرابحةً يا توليةً خرڅول اوغواړي.نود بارراوړلو مزدوري يعنې شل روپۍ راس المال سره ملاوولې شي.نود مرابحه په صورت کښې شل دپاځه دوه سوه روپۍ باندې نفع اخلي.اود توليه په صورت کښې به ئې د دوه سوه شل روپو په عوض خرڅوي.بهرحال په بيع مرابحه اوتوليه کښې راس المال سره د دهوبي،اود نقش ونګار کونکي،د رنګريز ،اود ګلونو جوړونکي اود غلې منتقل کونکي مزدوري ملاوول جائز دي.

**دلائله** ﴿ ① دليل دادې.چه د تاجرانو په عرف کښې ددې څيزونو مزدوري( خرچه) راس المال سره ملاوول جائز دي.او عرف يو شرعي حجت دې.په دې وجه د ذکرشوي څيزونو مزدوري د راس المال سره ملاوول جائز دي.

② دويم دليل کوم چه د فقهاؤ يوه قاعده هم ده.دادې.چه کوم څيز پخپله په مبيع کښې يا ددې په قيمت کښې زياتوالې کوي.د هغې راس المال سره ملاوول جائز دي.

او کوم څيزونه چه په متن کښې ذکر دي.دا ټول هم په دې صفت کښې دي.ځکه چه رنګ، نقش ونګار، ګلونه جوړول،اود کپړې وينځلو سره په مبيع کښې زياتوالې کيږي.او په بار راوړلو سره قيمت زياتيږي.ځکه چه په ځانې بدلولو سره قيمت بدليږي.هم دا وجه ده.چه د يوڅيز قيمت يوځانې کښې کم وي.او په بل ځانې کښې زيات وي.

دا قاعده اګرچه صحيح ده.خو کله کله ددې خلاف هم کيدلې شي.يعنې داسې کيږي.چه د کوم ځانې نه غله منتقل شوې ده.هلته کښې قيمت زيات وي.اوکوم ځانې طرف ته چه منتقل شوې وي.هلته کښې قيمت کم وي.نو اوس په داسې صورت کښې به په باراوړلو سره قيمت کميږي.زياتيږي به نه.نود سوداګرو عرف بنياد ګرځول زيات مناسب او غوره دي.

## د بائع دپاره د استعمال الفاظ

وَيَقُولُ قَامَ عَلَيَّ بِكَذَا او داسې به وائي.(چه دا ځیز) ماته په دومره کښې پریوتې دې وَلَا يَقُولُ اشْتَرَيْتُه بِكَذَا اودا به نه وائي.چه ما دا په دومره باندې اخستې دې

**تشریح> مايقوله المشترى؟>** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائي.چه کوم خائې کښې راس المال یعنی ثمن سره پورتنې خرچه ملاوولو اجازت دې.هلته کښې به مرابحة یا تولیة خرڅولو په وخت دا وائي.چه دا ځیز ماته په دومره روپو باندې پریوتې دې.ځکه چه دا ونیل صداقت او رشتیا دی.خودا به نه وائي.چه مادا ځیز په دومره روپو باندې اخستې دې.ځکه چه دابه دروغ وی.او دروغ ونیل حرام دی.خوکه یوکس سامان په سل روپۍ باندې واخستلو.بیا ئې په دې سامان باندې ثمن زیات مثلاً پنځیشت دپاځه سل روپۍ اولیکلې.بیا ده په لیکلی شوو باندې مرابحه اوکړله.مثلاً مشتری اووئیل.چه کوم رقم په سامان باندې لیکلې شوې دې.د لس روپو په نفع سره ئې ددې په عوض خرڅوم.یعنی یوسل پنځه دیرش روپۍ په عوض ئې خرڅوم.نودا جائز دی.په دې صورت کښې به خونه دا وائي.چه دا سامان ماته په پنځیشت دپاځه سل روپۍ پریوتې دې.اونه به دا وائي.چه ما د یوسل پنځیشت روپو په عوض اخستې دې.ځکه چه دا دواړه خبرې دروغ دی.که داسې اووائي.چه په سامان باندې یوسل پنځیشت روپۍ لیکلی شوی دی.په دې باندې لس روپۍ نفع اخلم.او خرڅومه ئې.په داسې ونیلوکښې به د دروغو نه مجرم کیږي.

## په مرابحه کښې د خیانت په خبریدلو سره د بیع فسخ کولو یا نافذکولوحکم

فَإِنِ اطَّلَعَ الْمُشْتَرِي عَلَى خِيَانَةٍ فِي الْمُرَابَحَةِ بیا که مشتری په مرابحه کښې په څه خیانت باندې خبرشو فَهُوَ بِالْخِيَارِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِجَمِيعِ الثَّمَنِ نود ابوحنیفه رحمه الله په نیز مشتری ته اختیار دې.که غواړی.نودا دې د پوره ثمن په عوض واخلي وَإِنْ شَاءَ رَدَّه اوکه غواړی.نودا دې واپس کړی

**حل اللغة> أطلاع:** خبریدل، **الترک:** پریخودل، **الإسقاط:** ساقط کول، **الثمن:** قیمت

**تشریح> حکم ظهور الخيانة في المرابحة>** صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی یو ځیز مرابحةً خرڅ کړلو.مثلاً دا ئې اووئیل.چه ما دا ګهړئ په دوه نیم سوه روپۍ اخستې ده.زه پنځوس روپۍ نفع اخلم.او خرڅوم ئې.دویم کس یعنی مشتری دابیع مرابحه قبول کړله.بیا مشتری ته پته اولګیدله.چه زما بائع دا ګهړئ دوه سوه روپۍ باندې اخستې وه.ده ماسره د پنځوسو روپوخیانت کړې دې.مشتری ته د خیانت علم یا خو د بائع په اقرار کولوسره اوشو.یعنی بائع د خرڅولو نه پس اقرار اوکړلو.چه ما دا ګهړئ په دوه سوه روپۍ اخستې وه.او یا مشتری د خیانت دعوه اوکړله.اود بینه پیش کولو نه عاجزشو.اود بائع نه ئې د قسم مطالبه اوکړله.خوبائع د قسم نه انکار اوکړلو.نوپه دې صورت کښې به هم د بائع خیانت ثابت شی.بهرحال د بیع مرابحه نه پس که مشتری د بائع په خیانت باندې خبرشو.نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مشتری ته اختیار دې.چه مشتری مبیع یعنی ګهړئ په پوره ثمن یعنی د دوه نیم سوه روپو په عوض واخلي.یابیع ختم کړی.

وَإِنِ اطَّلَعَ عَلَى خِيَانَةٍ فِي التَّوْلِيَةِ اوکه په تولیه کښې مشتری په خیانت باندې خبرشو أَسْقَطَهَا مِنَ الثَّمَنِ[1] نود خیانت مقدار دې د ثمن نه ساقط کړی.

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(١٧٤\١٤) وكنز الدقائق (٣٢٣) والقدورى (ص،٧٣) نقلاً عن القول الراجح (٢\٥٢)-

**تشریح﴾ حکم ظهور الخيانة في التولية﴾** اوکه بیع تولیه کښې په خیانت باندې خبرشو.مثلاً بائع اووئیل.چه مادا گهړئ په دوه نیم سوه روپئ اخستې وه.اود نفع اخستلو نه بغیر ئې په دوه نیم سوه روپئ خرڅوم.دویم کس دا گهړئ واخستله.بیا مشتری ته په تیرو شوو دوو طریقو( د بائع د خیانت اقرار یا د قسم نه انکار) په یوې طریقې سره معلومه شوه.چه ده دا گهړئ په دوه سوه روپئ اخستې وه.اود پنځوس روپو خیانت ئې کړې دې.نود حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به مسمی مقدار یعنی په دوه نیم سوه روپوکښې د خیانت مقدار یعنی پنځوس روپئ د بائع نه واپس اخلی.اوکه ثمن ئې ادا کړې نه وی.نود خیانت مقدار دې کم کړی.باقی دوه سوه روپئ دې ورکړی.

**دليله﴾** د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه د بیع تولیه په صورت کښې که مقدارخیانت کم نکړې شو.نو دسره به تولیه باقی پاتې نشی.ځکه چه بیع تولیه د ثمن اول په عوض کیږی.او دلته کښې داسې نه ده.ځکه چه ثمن اول دوه سوه روپئ دی.اود پنځوس روپو ئې خیانت کړې دې.مشتری اول گهړئ په دوه نیم سوه روپئ خرڅه کړې ده.نوکه مقدارخیانت یعنی پنځوس روپئ د بیع تولیه په صورت کښې کم نکړې شوې.نودا بیع به د ثمن اول په عوض نه وی.او هرکله چه دا بیع د ثمن اول په عوض نشوه.نودا به بیع تولیه هم نه وی.اوهرکله چه بیع تولیه نشوه.نو دسره تصرف بدل شو.یعنی بیع تولیه،بیع مرابحه شوه.او تصرف بدلول ناجائز دی.په دې وجه په بیع تولیه کښې مقدارخیانت یعنی پنځوس روپئ کمول متعین شوې.

| وَقَالَ أَبُويُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ: ابویوسف رحمه الله فرمائیلی دی يَحُطُّ فِيهِمَا او چه په مرابحه او تولیه دواړوکښې دې د خیانت مقدار کم کړی. |
|---|

**تشریح﴾ مذهب ابي یوسف رحمه الله﴾** حضرت امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه په بیع مرابحه اوبیع تولیه دواړوکښې به د خیانت مقدار یعنی پنځوس روپئ کمولې شی.هم دا یوقول د امام شافعی رحمه الله دې.د امام احمد رحمه الله مذهب هم دا دې.

**دليله﴾** د حضرت امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه په لفظ مرابحه اوتولیه کښې اصل دادې.چه عقد مرابحه وی.اوکه عقدتولیه،ثمن ذکرکول اصل نه دی.هم دا وجه ده.چه په (ولیتك بالثمن الأول) ونیلو سره عقدتولیه او په (بعتك مرابحة على الثمن الأول) ونیلو سره عقدمرابحه منعقد کیږی. خو شرط دا دې.چه ثمن معلوم وی.نو د عقدثانی یعنی د مرابحه او تولیه د ثمن په حق کښې په عقداول باندې مبنی کیدل ضروری دی.اود خیانت مقدار یعنی پنځوس روپئ چونکه په عقداول کښې ثابت نه دی.ځکه به دا په عقدثانی کښې ثابتول هم ممکن نه وی.اوهرکله چه د خیانت مقدار په عقدثانی یعنی په مرابحه اوتولیه کښې ثابتول ممکن نه دی.نودا به د ثمن نه کمولې شی.خو دومره فرق ضرور دې.چه د خیانت مقدار په عقدتولیه کښې صرف راس المال یعنی د ثمن نه کمولې شی.او په عقدمرابحه کښې راس المال او نفع دواړو نه کمولې شی.مثلاً په ذکر شوی مثال کښې دوه نیم سوه روپئ راس المال دې.او په دې کښې پنځوس روپئ دخیانت مقدار دې.نو هرکله چه مشتری اول گهړئ د دوه نیم سوه روپو په عوض د بیع تولیه په طریقه خرڅه کړله.نو راس المال یعنی د دوه نیم سوه روپو نه به د خیانت مقدار کمولې شی.یعنی پنځوس روپئ به کمولې شی.او دوه سوه روپئ به مشتری ثانی، مشتری اول ته ورکوی.اود بیع مرابحه په صورت کښې پنځوس روپئ کوم چه د خیانت مقدار دې.د راس المال نه به کمولې شی.اوچونکه ددې پنځوس روپو نفع لس روپئ جوړیږی.ځکه به لس روپئ د نفع نه کمولې شی.اوهرکله چه پنځوس روپئ د خیانت مقدار د راس المال نه،او لس روپئ د نفع نه کمې کړې شوې.نو مشتری ثانی به په دوه سوه څلویښت روپئ باندې گهړئ اخلی.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللهُ:** اوامام محمد رحمه الله فرمانیلی دی **لَا يَحُطُّ فِيهِمَا** په دې دواړو کښې به نه کموی **يُخَيَّرُ فِيهِمَا** چه دواړوکښې مشتری ته اختيار دې.

**تشريح> مذهب محمد>** او امام محمد رحمه الله فرماني.چه په بيع مرابحه او بيع توليه دواړوکښې مشتری ته اختيار دې.که زړه ئې غواړي.نو مبيع به د پوره ثمن په عوض اخلی.اوکه غواړي.نو بيع دې ترک کړي.هم دا يوقول د امام شافعي رحمه الله دې.

**دليله>** د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه په عقدبيع کښې کوم ثمن بيانيږي.هم د هغې اعتبار به کولې شي. خکه چه دغه ثمن معلوم دې.حاصل داچه د ثمن معلوم کيدل ضروری دی.اود ثمن علم په بيانولو سره کيږي.نو ثمن بيانول به معتبر وی.اوهرکله چه د ثمن بيانول معتبر شو.نو عقدبيع به هغه ثمن سره متعلق کيږي.کوم ثمن چه بيان شوې دې.او پاتې شوه مرابحه يا توليه بيانول،نودا د رغبت( او شوق) زياتولو دپاره دې.يعنی د مرابحه او توليه ذکرکول داسې وصف دې.چه ددې په وجه شوق زياتيږي.لکه د مبيع سلامتيا وصف،يو مرغوب فيه وصف دې.( يعنی خلق ئې خوښوی) اود وصف مرغوب فيه فوت کيدلو سره مشتری ته د مبيع باقی ساتلو،اود ختمولو( فسخ ) اختيار وی.خود وصف مرغوب فيه فوت کيدلو په وجه به ثمن کښې د څه کمولو اختيار نه وی.لکه څنګه چه د مبيع عيب دارکيدلو په صورت کښې مشتری ته اختيار وی.چه دې دپوره ثمن په عوض مبيع واخلی.يا بيع رد کړي.

### منقولي يا محولي څيز د قبضه نه بغير په بل کس خرڅول

**وَمَنْ اشْتَرَى شَيْئًا مِمَّا يُنْقَلُ وَيُحَوَّلُ** اوکه يوکس په منقولات او محولات کښې څه څيز واخستلو **لَمْ يَجُزْ لَهُ بَيْعُهُ** نود مشتری دپاره ددې خرڅول جائز نه دی **حَتَّى يَقْبِضَهُ** تردې چه په دې باندې قبضه اوکړي.

**حل اللغة> ينقل:** نقل کيدلې شی ، **يتحول:** ګرځيدې شی

**تشريح> شرط جواز اشتراء بيع الشئ المنقول>** مصنف رحمه الله په دې خانې کښې دا فصل خکه ذکر کړلوچه په دې کښې کوم مسائل ذکرکولی شی هغه د مرابحه او توليه د قبيلې څنې نه دی.خوچونکه دا مسئلې د مرابحه او توليه پشان يو زياتی قيد سره مقيد دی.خکه ئې دا مسائل د بيع توليه او مرابحه نه پس په مستقل فصل کښې ذکر کړی دی.

**صورة المسئلة>** که يوکس څه څيزمنقولی واخستلو.نو ترکومه پورې چه مشتری په دې قبضه اونکړي. مشتری دپاره ددې خرڅول جائز نه دی.يعنی که مبيع د منقوله څيزونو څنې وی.نو په دې باندې د قبضه کولو نه بغير مشتری دپاره دا په بل خرڅول جائز نه دی.د امام محمد رحمه الله په نيز د قبضه کولو نه وړاندې هبه، صدقه وغيره نور تصرفات جائز نه دی.

**دلائله>** ① د عدم جواز دپاره دليل دادې.چه رسول الله ﷺ د غيرمقبوض بيع نه منع فرمانيلې ده.د حکيم بن حزام رضي الله عنه روايت الفاظ دادی.**(لاتبيعن شيئاحتى تقبضه)** (١)

رسول الله ﷺ فرمانيلی دی.چه ای حکيم بن حزام! ته هيڅ څيز مه خرڅوه.تردې چه په دې باندې قبضه اوکړې.دا روايت او ددې پشان نور رواياتو کښې د طعام اود غيرطعام هيڅ تفصيل نشته.بلکه د غيرمقبوض بيع نه مطلقاً منع شوې ده.که مبيع طعام وی.اوکه غيرطعام وی.

---

١) من حديث عبدالله بن عمر رضي الله عنهما اخرجه ابوداود فى البيوع باب ٦٥ رقم ٣٤٩٩ واحمد فى المسند (١٩١/٥) والحاكم فى المستدرك (٤٠/٢)

② دويم دليل دادې.چه په بيع باندې د قبضه کولو نه وړاندې ددې په خرڅولوکښې د عقدفسخ کيدلو دهوکه ده.په دې طريقه چه مثلا حامد د خالد نه غلام واخستلو.او په دې باندې د قبضه کولو نه وړاندې حامد په شاهد باندې خرڅ کړلو.حالانکه دا غلام خالد سره هلاك شو.نودا عقدبيع به فسخ وي.څکه کومه بيعه چه د حامد او خالد په مينځ کښې وه.هغه فسخ ده.نو ثابته شوه.چه د قبضه نه وړاندې د حامد په شاهد باندې خرڅول سراسر دهوکه ده.او په کوم بيع کښې چه دهوکه وي.هغه شرعاً ممنوع ده.څکه به دا بيع هم ناجائز اوممنوع وي.

## د بيع العقار قبل القبض حکم

وَيَجُوزُبَيْعُ الْعَقَارِقَبْلَ الْقَبْضِ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَوَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللّٰهُ [1] او غيرمنقوله جائيداد د قبضه نه وړاندې خرڅول د شيخينو رحمهما الله په نيز جائزدي.

**تشريح> جواز بيع العقار>** ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه د شيخينو رحمهما الله په نيز د غيرمنقوله څيزونو بيع د قبضه کولو نه وړاندې جائز ده.

**دليله>** د شيخينو رحمهما الله دليل دادې.چه د بيع رکن يعني ايجاب اوقبول ددې د اهل يعنې د بالغ عاقل نه صادرشوي دې.اود بيع محل يعنې په مال مملوك کښې واقع شوي دې.اود قبضه کولونه وړاندې دغيرمنقوله څيزونو بيع کښې څه دهوکه هم نشته.څکه چه د غيرمنقوله جائداد هلاکيدل،نادر دې.او نادر کالمعدوم وي. ددې هيڅ اعتبار نه کيږي.نو هرکله چه ارکان د بيع ددې د اهل خلقو نه صادرشوې دې.اود بيع واقع کيدل په داسې څيز شوي ده.کوم چه د بيع محل کيدلې شي.يعنې مبيع مال مملوك دې.او څه دهوکه هم نشته.نود بيع په جواز کښې څه شبه ده.په دې وجه مونږ اووئيل.چه دغيرمنقوله جائداد بيع د قبضه کولو نه وړاندې جائز ده.

وَقَالَ مُحَمَّدٌرَحِمَهُ اللّٰهُ او امام محمد فرمائي لَايَجُوزُ چه دا بيع جائز نه ده

**تشريح> مذهب محمد رحمه الله>** په ذکرشوې مسئله کښې دامام محمد رحمه الله مذهب دا دې چه غيرمنقول څيز هم د قبضه کولو نه وړاندې خرڅول جائز نه دی.

**دلائله>** ① د امام محمد رحمه الله دليل د حديث(نهى عن بيع مالم يقبض) مطلق کيدل دی.يعنې لفظ د ،،ما،، شئ منقوله او غيرمنقوله دواړو ته عام دې.دغه شان په حديث(لاتبيعن شيئاً حتى تقبضه) لفظ دشئ دواړو ته عام دې.نو ددې دواړوحديثونو نه معلومه شوه.چه د قبضه کولو نه وړاندې نه دشئ منقول بيع جائز ده.اونه د شئ غيرمنقول بيع جائز ده.

**الجواب عنه>** د حديث (نهى عن بيع مالم يقبض) د اطلاق جواب د شيخينو رحمهما الله د طرفه دادې.چه د کتاب الله،سنت رسول صلى الله عليه وسلم،او اجماع امت د درې واړو عموم د قبضه کولو نه وړاندې د منقول اوغيرمنقول دواړو د بيع په جواز باندې دلالت کوی. ①د الله تعالى ارشاد دې.(وَأَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ) ②اوپه حديث کښې دی.(يا معشر التجار ان الشيطان والاثم يحضران البيع فشوبوا بيعکم بالصدقة) اې د سوداګرو ډلې! شيطان اوګناه د بيع په وخت دواړه موجود وی.نوتاسو خپلې بيع صدقه سره ملاو کړئ.يعنې څه صدقه کوئ. ③او اجماع داده.چه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم د بعثت په وخت به خلقو اخستل خرڅول کول.نبی کريم صلى الله عليه وسلم په دوی

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول الشيخين رحمهما الله كذا في فتح القدير(١٣٨\٦) والكفاية (١٣٨\٦، ١٣٩) والدرالمختار(١٨١\٤) نقلاً عن القول الراجح (٥٦\٢)-

باندې څه نکير نه دی فرمائيلی.بلکه دوی نې په دې عمل باندې ثابت اوساتل.اوهم په دې باندې د امت اجماع ده.بهرحال دا درې واړه دليلونه د خپل عموم په وجه د منقول اوغيرمنقول دواړو د بيع په جواز باندې دلالت کوی.د قبضه نه وړاندې هم او د قبضه کولو نه پس هم،

② دويم دليل قياس دې.يعنی منقوله څيزونه په غيرمنقوله څيزونو باندې قياس شوی دی.چه لکه څنګه د قبضه نه وړاندې د منقوله څيز بيع جائز نه ده.دغه شان د غيرمنقوله څيزونو بيع هم جائز نه ده.اود دواړو په مينځ کښې علت جامعه د بيع غيرمقبوض کيدل دی.

**قياسه:-** صاحب دهدايه رحمه الله په هدايه کښې فرمائی.چه د غيرمنقوله جائدادونو بيع د اجاره پشان ده.يعنی لکه څنګه چه غيرمنقوله جائداد،کور،زمکه وغيره د قبضه کولو نه وړاندې اجاره باندې ورکول جائز نه دی.دغه شان ددې د قبضه کولو نه وړاندې خرڅول هم جائز نه دی.

**الجواب عنه>** د امام محمد رحمه الله د قياس جواب دا دې. چه اجاره مقيس عليه جوړول ټيک نه دی.څکه چه په اجاره کښې هم هغه اختلاف دې.کوم چه په بيع کښې دې.يعنی که يوکس کور واخستلو.نومشتری دپاره په دې باندې د قبضه کولونه وړاندې دا په اجاره باندې ورکول،د امام محمد رحمه الله په نيز ناجائز دی.اود شيخينو رحمهما الله په نيز جائز دی.نو هرکله چه د بيع پشان اجاره هم مختلف فيه ده.نو بيع په اجاره باندې قياس کول څنګه درست دی.

**الجواب التسليمي>** اوکه دا اومنلې شی.چه د قبضه کولونه وړاندې اجاره بالاتفاق ناجائز ده.اوهم په دې فتوی ده.نو په دې صورت کښې به جواب داوی.چه اجاره نوم دې. د تمليک منافع، يعنی په اجاره کښې منافع معقود عليه وی.اود منافع هلاکيدل نادر نه دی.بلکه د شئ منقول پشان هلاکيدل غالب دی.حاصل داچه منافع د هلاکيدلو په احتمال کښې د منقول پشان دی.نولکه څنګه چه د قبضه کولو نه وړاندې د شئ منقول بيع جائز نه ده.دغه شان به اجاره هم جائز نه وی.

**په کيل او وزن سره اخستلو نه پس د مشتری ثانی دپاره دکيل او وزن نه بغير د تصرف حکم**

| وَمَنِ اشْتَرَى مَكِيلًا مُكَايَلَةً فرمائی.اوکه يوکس څه مکيلی څيز په کيل سره واخستلو أَوْمَوْزُونًا مُوَازَنَةً يا نې موزونی څيز په وزن سره واخستلو فَاكْتَالَهُ بيانې دا کيل کړو أَوِاتَّزَنَهُ يا نې دا وزن کړو ثُمَّ بَاعَهُ مُكَايَلَةً أَوْمُوَازَنَةً بيا نې دا په کيل يا وزن سره خرڅ کړو لَمْ يَجُزْ لِلْمُشْتَرِي مِنْهُ أَنْ يَبِيعَهُ وَلَا أَنْ يَأْكُلَهُ نود مشتری ثانی دپاره ددې خرڅول يا خوړل جائز نه دی حَتَّى يُعِيدَ الْكَيْلَ وَالْوَزْنَ تردې چه د کيل يا وزن اعاده اوکړی. |
|---|

**حل اللغة> مكايلة :** په تول سره ، **موازنة :** په وزن سره ، **الأكل :** خوړل ، **الإعادة :** راګرخول

**تشريح> صورة المسئلة>** صورت د مسئلې دادې.که يوکس څه مکيلی څيز مثلاً غنم يا اوربشی د کيل په شرط سره واخستل.مثلاًدا نې اووئيل.چه ما دا غنم د سلو روپو په عوض په دې شرط سره واخستل.چه دا لس قفيزه دی.يانې څه موزونی څيز مثلا اوسپنه يا سره زر نې د وزن په شرط سره واخستل.مثلاً دا نې اووئيل.چه ما د سلو روپو په عوض دا اوسپنه په دې شرط واخستله.چه دا لس منه ده.حاصل داچه مکيلی يا موزونوی څيز نې په اندازه سره وانخستلو.بلکه د کيل يا وزن په شرط سره نې واخستل.بيامشتری دا کيل کړل.او وانې خستل. يا نې وزن کړل.او وانې خستل.بيا په مبيع باندې دقبضه کولو نه پس مشتری دا د کيل يا وزن په شرط سره خرڅ کړل.نو مشتری ثانی ته په دې مبيع کښې د تصرف کولو اجازت دې.تردې چه مشتری ثانی دوباره کيل يا وزن اوکړی.يعنی مشتری ثانی ته د کيل يا وزن کولو نه وړاندې په مبيع کښې د تصرف اجازت نشته.چه نه نې خرڅولې شی.اونه نې

خورلې شي.حاصل داچه لکه څنګه مشتری اول خپل خان دپار کيل يا وزن کړي وو.دغه شان به مشتری ثانی هم خپل خان دپاره کيل يا وزن کوی.د امام شافعی،امام مالك،او امام احمدﷺ هم دا قول دې.

**دلائله** ① دليل د حضرت جابر ﷺ حديث (أن النبي ﷺ نهى عن بيع الطعام حتى يجرى فيه صاعان صاع البائع و صاع المشتري) (۱) دې.يعنی،،رسول الله ﷺ د غلې د بيع نه منع فرمائيلې ده.تردې چه په دې کښې دوه څله صاع جاری نکړې شي.يوځل د بائع صاع،او دويم ځل د مشتری صاع،، په حديث کښې د بائع نه مراد مشتری اول دې.اود مشتری نه مراد مشتری ثانی دې.يعنی چه کله مشتری اول خپل خان دپاره کيل يا وزن اوکړی.نو هله نې په بل کس باندې خرځولې شي.يا نې خورلې شي.د حديث منشاء (مقصد) بالکل دا نه دې.چه په بيع واحد کښې يوځل بائع کيل يا وزن اوکړی.او په دويم ځل دده مشتری کيل ياوزن اوکړی.څکه چه په دې باندې د ټولو اتفاق دې.چه عقدواحد دوه ځله د کيل ياوزن محتاج نه وی.

② دويم دليل دادې.چه په کيلی ياوزنی څيز کښې احتمال دې.چه شايد دا دمشروط مقدار نه زيات وی.يعنی چه کله مشتری اول کيل يا وزن اوکړلو.نو شايد ده پخپل کيل يا وزن کښې دهوکه خوړلې وی.اوځومره قدرې مبيع نې چه مقررکړې دې.دده نه زيات وی.اوبشکاره ده.چه دا زياتوالې د بائع يعنی د مشتری اول مال دې.اود بل په مال کښې چونکه تصرف کول حرام دی.په دې وجه د مشتری ثانی دپاره په دې کښې د تصرف کولو نه خان ساتل واجب دی.اودا احتمال هغه وخت لرې کيدلې شي.چه کله مشتری ثانی پخپله کيل ياوزن اوکړی.او اطمينان حاصل کړی. ددې دليل نه معلومه شوه.چه مشتری ثانی د خپل بائع يعنی د مشتری اول په کيل ياوزن باندې اکتفاء اونکړی.بلکه پخپله دده دپاره هم کيل ياوزن کول ضروری دی.

## په ثمن کښې قبل القبض تصرف کول

| وَالتَّصَرُّفُ فِي الثَّمَنِ قَبْلَ الْقَبْضِ جَائِزٌ فرمائی.اود قبضه نه وړاندې په ثمن کښې تصرف کول جائز دی |
|---|

**تشريح** صورت د مسئلې دادې.چه د عقدبيع نه پس په ثمن باندې د قبضه کولو نه وړاندې د بائع دپاره په ثمن کښې د تصرف کولو اجازت دې.ثمن که د،،مالا يتعين،، د قبيلې څنې وی.لکه نقود شو.اوکه د،، ماتعين،، قبيلې څنې وی.لکه مکيلی ياموزونی څيزونه شو.مثلاً که يوکس يو اوبن د سل روپو په عوض،يا نې د يو کړغنمو په عوض خرڅ کړلو.نود بائع دپاره دراهم اوغنمو په بدله کښې بل څه څيز اخستل جائز دی.

**دليله** دليل دادې.چه په ثمن کښې تصرف جائز کونکې څيز ملك دې.يعنی مالك ته پخپل مملوك څيز کښې د تصرف اجازت وی.اود عقدبيع نه پس بائع دثمن مالك کيږی.که په دې نې قبضه کړې وی.اوکه نه وی کړې.

## په ثمن يا مبيع کښې د کمی زياتی حکم

| وَيَجُوزُ لِلْمُشْتَرِي اود مشتری دپاره جائز دی أَنْ يَزِيدَ لِلْبَائِعِ فِي الثَّمَنِ چه د بائع دپاره په ثمن کښې |
|---|

---

۱) من حديث جابرﷺ اخرجه ابن ماجه فى التجارات باب ۳۷ رقم ۲۲۲۸ وابن أبي شيبة فى المصنف (۱۹۷/۷) والدارقطنى فى سننه (۸/۳ ) رقم ۲٤ والبيهقى فى السنن الكبرى (۵۱٦/۵) رقم ۱۰۷۰۰) وفى معرفة السنن والآثاررقم ۳٤٦۳ _

اضافه اوکړي **وَيَجُوزُ لِلْبَائِعِ أَنْ يَزِيْدَ لِلْمُشْتَرِي فِي الْمَبِيعِ،** اود بائع دپاره جائز دي.چه مشتري دپاره په مبيع کښې اضافه اوکړي **وَيَجُوزُ أَنْ يَحُطَّ مِنَ الثَّمَنِ** اودا هم جائز دي.چه دثمن نه کم کړي.

**حل اللغة>** **الزيادة:** زياتيدل ، **الحط:** کميدل ، **الإستحقاق:** مستحق کيدل

**تشريح> صورة المسئلة>** صورت د مسئلې دادې.که مشتري د بائع دپاره په ثمن کښې څه اضافه ( زيادت) اوکړي.نو جائز ده.مثلاً يو غلام ئې په سل روپۍ واخستلو.بيا مشتري د لسو روپو اضافه اوکړله. نودا اضافه کول جائز دي.دغه شان که بائع په مبيع کښې اضافه اوکړي.يا په ثمن کښې څه کم کړي.نو بياهم جائز دي.مثلاً يوسړي د سلو روپو په عوض يو من غنم خرڅ کړل.بيا ئې په دې کښې د لس کلو غنمو اضافه اوکړله.يا ئې سل روپۍ په ثمن کښې کمې کړې.نوجائز دي.

**وَيَتَعَلَّقُ الْإِسْتِحْقَاقُ بِجَمِيعِ ذَلِكَ** ددې ټولو سره به استحقاق متعلق وي

**تشريح>** او استحقاق به په اصل او زيات شوي دواړوسره متعلق وي.نو په ثمن کښې د اضافه کولو په صورت کښې به بائع ته د مبيع منع کولو حق هغه وخته پورې حاصل وي.چه تر کومه پورې دې اصل ثمن او زيات کړې شوې ثمن وصول نکړي.او دغه شان به مشتري ته د مبيع غوښتلو اختيار هغه وخته پورې نه وي.چه تر کومه پورې دې مزيد او مزيدعليه يعنی اصل ثمن او اضافه شوې بائع ته ورنکړي. اود ثمن کمولو په صورت کښې مشتري د مابقي ثمن سپارلو نه پس د پوره مبيع غوښتلو حقدار دې. او که مبيع مستحق شو.يعنی چا د استحقاق دعوه اوکړله.او مبيع ئې د مشتري نه واخستلو.نو په ثمن کښې د اضافه کولو په صورت کښې به مشتري د بائع نه اصل ثمن او اضافه شوې ثمن دواړه واپس اخلي.اود ثمن کمولو په صورت کښې به مابقي ثمن واپس اخلي.

**القاعدة>** حاصل داچه زمونږ په نيز په ثمن کښې زياتې کول،او يا کمې کول، اصل عقد سره ملاويږي. گويا اصل عقد هم په دې زياتوالي يا کموالي باندې واقع شوې وو.[1] [2]

**دليله>** دليل دادې.چه بيع په دريو طريقو مشروع شوې ده. ① بيع خاسر په دې کښې تاوان وي. نوکه په ثمن کښې زياتوالې اوکړې شو.نودا زياتوالې بيع خاسرلره بيع عادل،او بيع عادل لره رابح گرځوي. ②او په بيع رابح کښې نفع وي. اوکه د ثمن نه څه کموالې اوکړې شي نودا بيع رابح لره عادل،او بيع

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول الجمهور ﷺ كذا في الدرالمختار(١٨٦\٤) والبحر(١٢١\٦) نقلاً عن القول الراجح (٥٧\٢)-

[2] ) **مذهب زفر** رحمه الله:-اود امام زفر او امام شافعي رحمه الله په نيز د زياتوالي اوکموالي اصل عقدسره ملاوولو اعتبارکول صحيح نه دي.بلکه په ثمن کښې زياتوالې کول به د مشتري ...... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه]

[بقيه حاشيه]د طرفه ابتداء احسان کول او هبه کول وي.يعنی د عقدبيع نه پس گويا د شروع نه احسان شوې دې.اود مشتري د طرفه بائع دپاره هبه شوې دې.اود هبة د صحت دپاره چونکه قبضه شرط ده.په دې وجه زياتي مقدار باندې چه کله د بائع قبضه اوشي.نو هله به دا هبه صحيح وي.او که په مبيع کښې څه زياتي کړې شو.نودا به د بائع د طرفه ابتداء هبه وي.اوکه بائع په ثمن کښې څه کمې اوکړلو.نودا به د بائع د طرفه مشتري د ثمن يوې حصې نه بری کول وي.خکه که مشتري دا ردکړي.نودا رد کيږي.يعنی که مشتري د ثمن کمول قبول نکړي.بلکه دا واپس کړي.نود بائع په کمولو سره به نه کميږي.بهرحال ددې دواړو حضراتو په نيز زياتوالې اوکموالې اصل عقدسره نه يوځائي کيږي.بلکه زياتوالې دسره ( خانله) يو احسان او هبه ده.او کمول د ثمن د يومقدار نه بری کول دي.

عادل لره خاسر گرځوي. ③او په بیع عادل کښې نه تاوان وي او نه نفع وي. اوکه په مبیع کښې زیاتوالې اوکړې شو.نودا زیاتوالې د مشتري په حق کښې بیع خاسرلره عادل،او بیع عادل لره رابح گرځوي.اود بائع په حق کښې رابح لره عادل،او عادل لره خاسر گرځوي.نو بائع اومشتري چه کله د عقدبیع نه پس خپل مینځ کښې په رضامندئ سره په ثمن یامبیع کښې څه اضافه اوکړله.یا ئې کمې اوکړلو.نو گویا دوی خپل عقدبیع یو وصف مشروع نه بل وصف مشروع طرف ته بدل کړلو.یعنی خاسر ئې عادل،او عادل ئې رابح کړلو.یا یې رابح عادل کړلو.یا عادل ئې خاسر کړلو.
او بائع او مشتري ته د اصل عقد فسخ کولو اختیار دې.نود عقدبیع یو وصف نه بل وصف طرف ته د متغیرکولو اختیار به په درجه اولی وي.ځکه چه په وصف کښې تصرف کول، په اصل شی کښې د تصرف کولو نه اهون او آسان دی.

**په نغد ثمن سره خرڅولو نه پس د قرض په نیته ورکول**

| وَمَنْ بَاعَ بِثَمَنٍ حَالٍّ مصنف رحمه الله فرمائي.اوکه یو کس څه څیز د نقد ثمن په عوض خرڅ کړو ثُمَّ أَجَّلَهُ أَجَلًا مَعْلُومًا بیا( د مشتري دپاره) ئې یو معلوم میعاد مقررکړو صَارَ مُؤَجَّلًا نودا ثمن به قرض شي. |
|---|

**حل اللغة> ثمن حال:** نقدې پیسې ، **الأجل:** نیته ، **التاخیر :** روستو کول

**تشریح> صورة المسئلة>** صورت د مسئلې دادې.که یوکس یوڅیز د نغد ثمن په عوض خرڅ کړلو.بیا بائع د ثمن اداکولو دپاره یو میعاد( نیته) مقررکړله.نو ددې دوه صورتونه دی.میعاد به معلوم وي.یا به مجهول وي.که میعاد معلوم دې.نودا میعاد مقررول جائز دی.اوهم دا قول د امام مالک رحمه الله دې. ([1])

**دلائله>** ① دلیل دادې.چه ثمن د بائع حق دې.او هر حق والا ته پخپل حق کښې د تصرف کولو اختیار وي.ځکه به بائع ته دا اختیار حاصل وي.چه دې د مشتري په حق کښې آسانتیا پیدا کولو دپاره د خپل حق مطالبه د یو معلومې مودې پورې موخر کړي.

② دویم دلیل دادې.چه د بائع ثمن ادا کولو دپاره میعاد مقررول، مشتري د معلوم میعاد راتللو پورې د ثمن مطالبې نه بری کول دی.او بائع ته چونکه دا اختیار حاصل دې.چه دې دسره د ثمن نه مشتري بری کړي.نود یومحدود وخت پورې د مطالبې نه د بری کولو اختیار به په درجه اولی حاصل وي.

**حکم التاجیل الي اجل مجهول وصورتیه>** اوکه میعاد مجهول وي.① نوکه جهالت فاحشه وي.مثلاً د ثمن ادا کولو دپاره ئې د هوا چلیدلو،یا باران وریدلو پورې میعاد مقررکړلو.نودا جائز نه دې.یعنی ددې میعاد اعتبار به نه کیږي.بلکه بائع ته به هروخت د مطالبه اختیار حاصل وي.

②او که جهالت یسیره وي.مثلاً د ثمن اداکولو دپاره ئې فصل کټ کیدلو،یا غویل کولو پورې میعاد مقررکړلو.نودا جائز دې.یعنی ددې میعاد پوره کیدلو نه وړاندې به بائع ته د مطالبه حق نه وي.
دلیل دادې.چه د عقدبیع نه پس ثمن موجل کول،د کفاله په مرتبه کښې دی.او وړاندې تیرشوی دی.چه کفاله د جهالت یسیره سره صحیح کیږي.خود جهالت فاحشه سره نه صحیح کیږي.نوهم دغه شان دین ثمن په جهالت یسیره سره موجل کول درست دی.خو جهالت فاحشه سره موجل کول ټیک نه دی.که په

[1] ، مذهب زفر رحمه الله:- او امام شافعی او امام زفر رحمه الله فرمائي.چه په میعاد مقررولو سره به ثمن قرض نه وي.اگرچه میعاد معلوم دې.ددې دواړو حضراتو په نیز دمعلوم میعاد مقررولو باوجود بائع فی الحال د ثمن مطالبه کولې شي.

عقدبیع کښې اجل ( نیته) شرط اوګرځولی شو.نو عقدبیع جهالت فاحشه او جهالت یسیره دواړو سره فاسدیږی.تفصیل وړاندې تیرشوې دې.

## مدیون ته مهلت ورکول

| وَكُلُّ دَيْنٍ حَالٍّ إِذَا أَجَّلَهُ فرمائی.او هر دین معجل کله چه صاحب دین د مدیون دپاره څه میعاد مقررکړی صَاحِبُهُ صَارَ مُؤَجَّلًا؛ نوهغه موجل کیږی (إِلَّا الْقَرْضَ) فَإِنَّ تَأْجِيلَهُ لَا يَصِحُّ خو قرض څکه چه د دې موجل کول صحیح نه دی. |
|---|

**تشریح> عدم جواز تاجیل القرض>** د قرض اخستونکي په ذمه چه څه واجب وی هغه دین دې او قرض ورکونکې چه څه ورکوی هغه قرض دې مثلاً زید عمرو ته زر روپۍ ورکړې نودا زر روپۍ د زید په حق کښې قرض دې اود عمرو په حق کښې دین دې دقرض او دین په مینځ کښې د فرق پیژندلو نه پس د متن مسئلې ته راشه

هرهغه دین چه د هغې ادا کول فی الحال په ذمه واجب وی.که په دې کښې صاحب دین د مدیون دپاره څه معلوم میعاد مقررکړی.نودا به دین موجل شی.دلیل وړاندې تیرشوې دی.چه دین د صاحب دین حق دې.دې خپل حق بالکلیه ساقطولې هم شی.اود مدیون د سهولت په خاطر د دین مطالبه موخر کولې هم شی.

خو زمونږ په نیز که د قرض اداکولو دپاره څه میعاد مقررکړې شو.نودا ټیک نه دې.بلکه د میعاد مقررولو نه پس قرضخواه( قرض غوښتونکي) د قرضداری نه فوری مطالبه کولې شی.حاصل دا که په قرض کښې څه میعاد مقرر کړې شو.نو قرضه به ټیک وی.او میعاد به باطل وی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه قرضه په ابتداء کښې احسان او تبرع ده.که قرضه ورکونکی د(**أقرضتك هذه الألف**) په ځائې (**أعرتك هذه الألف**) اووئیل.نو صحیح کیږی.اوکوم کس چه د احساناتو او تبرعات اختیار نه لری.هغه ته د قرضه ورکولو اختیار هم نه وی.لکه نابالغه بچې،وصی، غلام، مکاتب.نو ثابته شوه.چه قرضه د تبرعاتو څنې ده.اود انتهاء په اعتبار سره قرضه معاوضه ده.څکه چه سرې قرضه دې دپاره ورکوی.چه ددې نه پس د: ې بدل واخلی.هم دا وجه ده.چه په قرضه اخستونکی باندې بعینه هم د هغه څیز واپس کول واجب نه وی.کوم چه ده د قرضخواه نه اخستې دې.بلکه ددې مثل واپس کول واجبیږی.ددې نه معلومه شوه.چه قرضه د انتهاء په اعتبارسره معاوضه ده.

**علی اعتبار الابتداء>** نود قرض ابتدائی حالت په اعتبارکولوسره خو په قرض کښې میعاد نه لازمیږی.لکه څنګه چه په اعاره( قرض) کښې میعاد نه لازمیږی.که یوکس خپل څه سامان یو میاشت پورې چاله په عاریت( قرض) باندې ورکړلو.نو په عاریت( قرض) باندې ورکونکې که اوغواړی.نو خپل سامان فوری طورباندې واپس اخستلې شی.څکه چه په عاریت( قرض) باندې ورکول تبرع (احسان) ده.او په تبرعاتو کښې جبر( زور) نه کیږی.اوکه میعاد لازم کړې شو.نودا به په معیر( په قرض ورکونکی) باندې جبر وی.څکه چه د میعاد لازمولو په صورت کښې عاریت باندې ورکونکی ته د میعاد تیریدلو نه وړاندې د مطالبه اجازت نه وی.نو لکه څنګه چه په اعاره کښې میعاد لازم نه وی.دغه شان قرضه هم چونکه تبرع ده.( احسان دې) په دې وجه به په قرضه کښې هم میعاد لازم نه وی.

**علی اعتبار الانتهاء>** اود انتهاء په اعتبارکولو سره میعاد مقررول صحیح نه دی.څکه چه قرضه د انتهاء په اعتبارسره د میعاد مقررولو په صورت کښې به،، بیع الدراهم بالدراهم نسیئة،، شی.اود دراهمو په عوض قرض خرڅول ربوا ده.اګرچه په دراهموکښې کمې زیاتې نه وی.اود ربوا لازمیدل د قرض د

فساد تقاضا کوي.حالانکه په شریعت د اسلام کښې قرضه ورکول مندوب او مستحب دی.اود قرضه په جواز باندې د امت مسلمه اجماع ده.نو مونږ د قرضه ابتدائي حالت اعتبار اوکړلو.اود میعاد لازمولو نه بغیر ددې د جواز قائل شو.

## بَابُ الرِّبٰوا

**ترجمه** ( دا) باب د ربوا( په بیان کښې) دې.

**تشریح> المناسبة بين المرابحة والربوا>** او باب الربوا ته د باب مرابحه سره خاص طور باندې مناسبت حاصل دې.چه په ربوا اومرابحه دواړو کښې په هریو کښې زیاتوالې کیږي.البته د مرابحه زیاتوالې حلال وی.اود ربا زیاتوالې حرام وی.او چونکه په اشیاؤ کښې حلت اصل دې.په دې وجه د مرابحه احکام وړاندې اود ربوا احکام روسته بیان کړې شو.

**معني الربوا لغة >** ربوا ،بکسرالراء په لغت کښې د زیاتوالي په معنی ده.لکه وئیلې شي.(**هذا يربوا على هذا**) دا ددې نه زیات دې.

**الربوا في الشريعة >** دشریعت په اصطلاح کښې ربوا ، ،معاوضة مال بمال، ، کښې د هغه مالی زیاتوالی نوم دې.چه د هغې په مقابله کښې عوض نه وی.

ربوا بالاجماع حرام ده.او ددې حرمت منصوصی دې.لکه چه د الله تعالی ارشاد دې.(**يَاأَيُّهَا الَّذِيْنَ آمَنُوْا لَا تَأْكُلُوا الرِّبٰوا**)

**الزواجر لآكل الربوا >** او الله تعالی د سود خوړونکی والا دپاره پنځه سزاګانې بیان کړې دی. ① تخبط: سود خور به د قیامت په ورځ د قبر نه داسې پاسی چه مخبوط الحواس به وی ② الله تعالی د سود مال ختموی ③ سود خواره دې د الله جنګ ته خان تیار کړی ④ سود حلال ګڼړل کفر دې ⑤ سود خور که د خپل سود نه منع نه شو نو دوی جهنمیان دی

**تغليظ حرمة الربوا في الحديث >** او رسول الله ﷺ په سود خوړونکو،ددې تحریر لیکونکو،او ددې په دواړو ګواهانو باندې لعنت فرمانیلې دې.لکه چه په ترمذی کښې د ابن مسعود رضی الله عنه حدیث دې.(**لعن رسول الله ﷺ آكل الربوا وموكله وشاهديه وكاتبه**)

**مکیلی او موزونی څیز په کمی زیاتی سره خرخول اود ربوا علت**

**الرِّبَا مُحَرَّمٌ** ربا، په هر داسې څیز کښې حرام شوې ده. **فِي كُلِّ مَكِيْلٍ أَوْمَوْزُوْنٍ** چه دا کیلی یا وزنی وی **إِذَا بِيْعَ بِجِنْسِهِ مُتَفَاضِلًا** کله چه دا د خپل جنس په عوض زیاتوالی سره خرخ کړې شی.

**حل اللغة > متفاضل:** یودبل نه زیات ، **مکیل:** هغه څیز چه په پیمانه سره ناپ کولې شی، **موزون:** هغه څیزچه په تله باندې وزن کولې شی

**تشریح> حرمة الربوا في كل مكيل او موزون >** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه ربا، په هرمکیلی او موزونی څیز کښې حرام ده.په دې شرط چه ددې د جنس په عوض کمی زیاتی سره خرخ کړې شی.نو زمونږ په نیز د ربا، علت، ،کیل مع الجنس، ،یا، ،وزن مع الجنس، ، دې.یعنی په کومو دوه څیزونو کښې چه مبادله شوې ده.هغه دواړه مکیلی وی.یا موزونی وی.خو ددې دواړو جنس یووی.اوکه دواړه عوضونه موزونی وی.جنس یو نه وی.مثلاً سره زر او سپین زر.دواړه مکیلی وی.خوجنس یو نه وی.لکه غنم او اوربشې.نو ددې دواړو په مینځ کښې ربوا او زیاتوالې حرام نه دې.علامه مرغینانی رحمه الله

فرمائیلی دی چه لفظ د قدر چونکه کیل او وزن دواړو ته شامل دې.په دې وجه دا هم ونیلې شی.چه علت د ربوا ، ،قدرمع الجنس، ، دې.

**فَالعِلَّةُ الكَيْلُ مَعَ الجِنْسِ نو علت زمونږ په نيز كيل مع الجنس وَالوَزْنُ مَعَ الجِنْسِ**

**تشريح> علة الربوا>** د ربوا علت د ، ،قدر مع الجنس، ، د ربوا په علت کیدلو کښې اصل (عن ابی سعيد الخدري رضي الله عنه عن رسول الله ﷺ أنه قال الذهب بالذهب مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا، والفضة بالفضة مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا، والحنطة بالحنطة مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا، والشعير بالشعير مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا، والملح بالملح مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا، والتمر بالتمر مثلاً بمثل يداً بيد والفضل ربوا) [1] دې

**اختلاف الاعراب>** دا حديث د اعراب په اعتبارسره په دوه طريقو نقل دې.يوخو كلمات سته او لفظ مثل په رفع سره دی.په دې صورت کښې به مضاف مقدر وی.تقدير عبارت به داسې وی.(بيع الحنطة بالحنطة مثل بمثل) بيع الحنطة به مبتدا وی.او مثل به ددې خبر وی.

په دويم روايت کښې داكلمات او لفظ د مثل منصوب دې.په دې صورت کښې به فعل امر بيعوا مقدر وی.تقديری عبارت به داسې وی.(بيعوا الحنطة بالحنطة،الحديث) دا کلمات په د بيعوا مفعول کیدلو په وجه منصوب وی.او لفظ مثلاً به حال کیدلو په وجه منصوب وی.په حديث کښې مثلاً بمثل نه مراد دادې.چه دواړه عوض کيل يا وزن کښې برابر وی.اود يداً بيد نه مراد دادې.چه په دواړه عوضونو کښې په مجلس عقد کښې قبضه اوشی.حاصل داچه اتحاد قدر اود اتحاد جنس په صورت کښې په عوضين کښې د کيل يا وزن په اعتبارسره برابری هم شرط ده.او په عوضينو باندې قبضه هم شرط دې.

**توضيح العلة>** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلی دی.چه د ټولومجتهدينو په دې باندې اجماع ده.چه د فضل اوزياتوالی حرام کیدلوحکم معلول دې.يعنی په علت باندې مبنی دې.كه علت اوموندې شی.نو ربوا يعنی حرمت فضل به متحقق وی.ګنی ددې تحقق به نه کیږی.اګرچه اصحاب ظواهر د قياس اوعلت انكار كوی.او په حديث کښې ذكرشوی شپږ څیزونو سره ربوا خاص كوی.خوچونكه د آئمه اربعه په نيزحكم د ربوا معلول دې.په دې وجه د ربوا د علت بيان ضروری دې.نو اوګورئ چه زمونږ په نيز د ربوا علت، ،قدرمع الجنس، ، دې.چه په حديث کښې د ذكرشوی شپږ څیزونو نه علاوه کوم ځائې کښې دا علت اوموندې شی.هلته به ربوا متحقق وی.مثلاً د چونې تبادله كه د چونې سره اوشی.نو په دې کښې به فضل او زياتوالی ته ربوا وائی.ځکه چه دواړه عوض کيلی دی.اود دواړو جنس هم يو دې.اوهم دغه شان كه د اوسپنې، پيتل،او قلعی( يوقسم دهات) ددې د هم جنس په عوض خرڅ كړې شی.نو يوطرف ته فضل اوزياتوالي به رباء شمارلې شی.ځکه چه دواړه عوض وزنی کیدلو سره سره متحدالجنس هم دی. ( [2] )

---

[1] من حديث عبادة بن صامت رضي الله عنه أخرجه مسلم في المساقاة رقم ٨١ وأبوداود في البيوع باب ١٢ رقم ٣٣٥٠ والترمذي في البيوع باب ٢٣ رقم ١٢٣٠ وابن ماجه في التجارات باب ٤٨ رقم ٢٢٥٣_

[2] ، **مذهب الشافعي رحمه الله>** اود امام شافعی رحمه الله په نيز د ربوا علت په مطعوماتو کښې طعم دې.او په اثمان کښې ثمن دې.چه په هرهغه څیز کښې به ربوا حرام وی.چه په هغې کښې طعم کيدل يا ثمن کيدل اوموندې شی.د مطعوم نه مراد هرهغه څيز دې.کوم چه عام طورباندې خوړلې شی.كه روزی جوړه شی.يا سالن جوړشی. اوكه د تلذذ او تفكه (يعنی د خوند اومزې) په طور وی.ددې تعريف په بنياد باندې مطعوماتو کښې ميوې، غله،سبزيانې،او تولې

حاصل دا شو.چه د حدیث مقصد د اموال ربویه بیع کښې د عوضینو په مینځ کښې مماثلت شرط کیدل بیانول دی.اود مماثلت په ثابتولو کښې قدر اوجنس مؤثر وی.ځکه چه مماثلت صوری د قدر په ذریعه حاصلیږی.اومماثلت معنوی د جنس په ذریعه حاصلیږی.په دې وجه دا دواړه د رباء علت اوګرځولی شو.او طعم او ثمنیت ته په مماثلت ثابتولو کښې هیڅ دخل نشته.په دې وجه دا د رباء علت اونه ګرځولی شو.

**مکیلی اوموزونی څیز برابر برابر خرڅول**

فَإِذَا: بِيْعَ الْمَكِيلُ أَوِ الْمَوْزُونُ بِجِنْسِهِ مِثْلًا بِمِثْلٍ هرکله چې کیلی یا وزنی څیز ددې د هم جنس په عوض برابر برابر خرڅ کړی. جَازَ الْبَيْعُ فِيهِ نو په دې کښې بیع جائز ده.

**تشریح> جواز البیع في المکیل والموزون مثلا بمثل>** هرکله دا ثابته شوه.چه زمونږ په نیز علت ربوا ،،قدر مع الجنس،، دې. نو که څه کیلی څیز ددې هم جنس کیلی څیز په عوض یاوزنی څیز ددې د هم جنس وزنی څیز په عوض برابرخرڅ کړې شی.نودا بیع جائز ده.

**دلیله>** دلیل دا دې چه مقتضی د بیع یعنی،،مبادلة المال بالمال بالتراضی،، هم اوموندې شو.اود بیع د جواز شرط یعنی مقدار اومعیارکښې برابری هم موجود شوه.

په مقدار او معیار کښې برابر ځکه شرط اوګرځولې شو.چه په حدیث کښې د حنطه، شعیر،تمر،اوملح نه پس د مثلاً بمثل په ځانې کیلاً بکیل نقل دی.اود ذهب او فضه نه پس،،وزنا بوزن،،نقل دی.نو معلومه شوه.چه د مماثلت نه مراد هم دا دی.چه کیلی څیز دکیل په ذریعه خرڅ کړې شی.او وزنی څیز د وزن په ذریعه سره خرڅ کړې شی.نوهرکله چه کیلی څیز ددې د هم جنس کیلی څیز په عوض برابرخرڅ کړې شو.او وزنی څیز ددې د هم جنس وزنی څیز په عوض برابربرابر خرڅ کړې شو.نودا جائز دی.ځکه چه د بیع مقتضی اود بیع د جواز شرط دواړه موجود شو.

وَإِنْ تَفَاضَلَا اوکه کمې زیاتې اوموندې شو لَمْ يَجُزْ نوجائز نه دې لِتَحَقُّقِ الرِّبَا ځکه چه ربوا متحقق ده.

**تشریح> عدم الجواز عند التفاضل>** اوکه تفاضل اوشو.یعنی یو عوض د بل عوض نه زیات شو.نود رباء د تحقق په وجه به دا ناجائز وی.

وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْجَيِّدِ بِالرَّدِيءِ مِمَّا فِيهِ الرِّبَا او په اموال ربویه کښې کره د کهوټه په عوض خرڅول جائز نه دی.. إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ مګر برابر سرابر

**حل اللغة> الجید:** ښه ، **الردئ:** خراب، **الإهدار:** لغوکول، **التفاوت:** فرق

**تشریح> عدم جواز بیع الجید بالردي>** او جودت( اصل اوکهره والې) چونکه ساقط الاعتبار دې.په دې وجه د اموال ربویه بیع کښې که کهره د ردی په عوض خرڅ کړې شی.نو برابر برابر خرڅول جائز وی.خو په

---

مصالحې داخلیږی.اود علامه بدرالدین عینی رحمه الله د قول مطابق د ثمن نه مراد دادې.چه پیدائشی طور باندې ثمن وی.لکه سره او سپین زر.یا چه ددې په ثمن کیدلو باندې خلقو اتفاق کړې وی.لکه مروجه سکه. بهرحال د امام شافعی رحمه الله په نیز د ربوا علت په مطعوماتو کښې طعم دې.او په اثمان کښې ثمن دې.او ددې شرط د جنس متحد کیدل دی.اود امام شافعی رحمه الله په نیزپه اموال ربواکښې اصل حرمت دې.خود ربوا د حرمت نه د بچ کیدلو څیز،د دواړو عوضونو په مینځ کښې مساوات او برابری ده.یعنی که د ربوا علت موجود کیدلو په صورت کښې دواړه عوضونه برابر وی.نودا عقدبه حرام نه وی.بلکه مباح او جائز به وی.

تفاضل سره خرڅول به جائز نه وی.

**دلیله>** ځکه وراندې تیرشوی دی.چه په وصف کښې تفاوت معتبر نه دې.

**د دواړه وصفونومعدوم کیدلو په صورت کښې دکمې، زیاتی اود قرض حکم**

| وَإِذَاعُدِمَ الْوَصْفَانِ اوکه دواړه وصف معدوم وی الْجِنْسُ یعنی جنس وَالْمَعْنَى الْمَضْمُومُ إِلَيْهِ او کومه معنی چه ددې سره ملاوکړې شوې ده حَلَّ التَّفَاضُلُ وَالنَّسَاءُ نوکموالې، زیاتوالې او قرض دواړه حلال دی. |
|---|

**حل اللغة> تفاضل:** یودبل نه زیاتی، **النساء:**قرض، **الإباحت:** مباح والې، **المحرمة:** حرامونکې

**تشریح>** دا ثابته شوې ده.چه زمونږ په نیز علت ربوا دوه څیزونه دی.یو قدر او دویم جنس.عقلی طورباندې ددې درې صورتونه دی.

**الصورة الاولی>** یوصورت دا دې چه دواړه څیزونه معدوم وی نو په دې صورت کښې به تفاضل او نساء( قرض) دواړه حلال وی.یعنی د احدالبدلین کم اود دویم زیات کیدل هم حلال دی.

**دلیله>** دلیل دا دې چه په دې صورت کښې د حرمت ربوا علت موجود نشو.او په بیع کښې اصل اباحت دې.لکه چه د الله تعالی ارشاد دې.(وَأَحَلَّ اللهُ الْبَيْعَ) نو هرکله چه اباحت اصل دې.اود حرمت علت موجود نه دې.نودا بیع به حلال وی.که په تفاضل سره وی.اوکه د تفاضل نه بغیر وی.که په قرضو وی.اوکه په نغدو وی.په هرصورت کښې به جائز وی.

| وَإِذَاوُجِدَا اوهرکله چه دواړه وصف موجود وی حَرُمَ التَّفَاضُلُ وَالنَّسَاءُ نو کمې زیاتې.او قرض حرام دې |
|---|

**تشریح> الصورة الثانیة>** دویم صورت دا دې چه دواړه موجود وی یعنی متحدالقدر والجنس وی نو د دوی د یو بل سره په تبادله کښې په شرعی لحاظ سره دوه څیزونه ضروری دی یودا چه دواړه په وزن او پیمانه کښې برابر وی دویم چه دواړه لاس په لاس وی مثلاً دوه کسان غنم په غنمو بدلول غواړی نو په دې کښې کمې زیاتې جائز نه دې اونه دا جائز دې چه یو کس هم د عقد په وخت کښې غنم واخلی او بل کس څه موده پس واخلی بلکه په یو مجلس کښې یوبل ته خپل خپل حق سپارل ضروری دی

| وَإِذَاوُجِدَ أَحَدُهُمَا اوکه په دې دواړوکښې یو وصف موجود وی وَعُدِمَ الْآخَرُ او دویم معدوم وی حَلَّ التَّفَاضُلُ نو کمې زیاتې حلال دې وَحَرُمَ النَّسَاءُ او قرض حرام دې |
|---|

**تشریح> الصورة الثالثة>** دریم صورت دا دې چه یو وصف موجود وی.او یو معدوم وی.نو تفاضل به حلال وی.او قرض به حرام وی.مثلاً یو کس یو هروی تهان د دوه هروی تهانونو په عوض خرڅ کړل.نو په دې صورت کښې جنس اوموندې شو.ځکه چه د دواړو عوضونو جنس یو دې.خو قدر او نه موندې شو.ځکه چه کپړه نه د مکیلاتو څنې ده.اونه د موزوناتو څنې ده.بلکه د مذروعات( ګزونو) څنې ده.نو یو تهان د دوه تهانونو په عوض خرڅول جائز دی.خو یوتهان د یوتهان په عوض په قرضوخرڅول جائز نه دی.اوکه غنم د اوربشو په عوض خرڅ کړی.نو په دې صورت کښې قدر موجود دې.خوجنس موجود نه دې.د جنس نه موجود کیدل خوښکاره دی.او قدرځکه موجود دې.چه دواړه عوضونه د مکیلاتو څنې دی.نود غنمو بیع د اوربشو په عوض په کمی زیاتی سره جائز ده.خو په قرضو جائز نه ده.حاصل داشو.چه زیاتوالی سره حرمت ربوا کیدل په دوه وصفونو سره دی.او په قرض حرام کیدل په یو وصف

سره دی. (۱)

**دليله** > دليل دادي.چه په باب د رباء كښې يوحقيقت د ربوا وی.اويو شبهة الربوا وی.اود ربوا شبه چه كله د ربوا د حقيقت نه جدا اوموندې شی.نودا د يومحل محتاج وی.اود يوعلت محتاج وی.لكه چه حقيقت ربوا ددې دواړو محتاج وی.اودا ممكن نه ده.چه د شبة الربوا محل اوددې علت هم هغه وی.كوم چه د حقيقت ربوا محل اوعلت دې.ځكه كه داسې اوشو.نوشبهة الربوا به شبهة الربوا پاتې نشی.بلكه حقيقت ربوا به شی.اود حقيقت ربوا مقارن به شی.حالانكه دا خلاف مفروض دې.په دې وجه د شبهة الربوا دپاره شبة محل اوشبة علت كيدل ضروری دی.او په كومه بيع كښې چه نساء حرام ده.په هغې كښې عوضين من وجه مال ربوا دې.ځكه چه په عوضينو كښې به يا اتحاد قدر وی.لكه د غنمو بيع د اوربشو په عوض،يا به اتحادجنس وی.لكه د هروی كپړې بيع د هروی كپړې په عوض،اودا خبره منلې شوې ده.چه د ربوا د علت نصاب دوه وصفونه يعنی د قدر اوجنس مجموعه ده.په دې وجه په دې كښې يود ربوا علت نشی كيدلې. البته شبة علت كيدلې شی.او شبهة العلت نه شبهة الحكم يعنی شبهة الربوا ثابتيږی.حقيقت ربوا نه ثابتيږی.نوهركله چه يو عوض نغد وی.او يوعوض قرض وی.نو نغدكيدل په ماليت كښې زياتوالې پيدا كوی.لكه چه د(النقد خير من النسيئة) مقوله نه ښكاره معلوميږی.نو په نغدكيدلو سره په دې محل يعنی د نغد په عوض كښې د ربوا شبه پيدا كوی.اوشبهة الربوا د بيع دجواز نه هم دغه شان مانع دې.لكه څنګه چه حقيقت ربوا مانع دی.ځكه چه رسول الله ﷺ د ربوا او ريبه (شبهة الربوا) دواړو نه منع فرمائيلې ده.نو ثابته شوه.چه د احدالوصفين يعنی د قدر يا جنس موجوديدل نساء (قرض) حراموی.

هم ددې شبهة الربوا په وجه اموال ربويه په اندازه سره خرڅول جائز نه دی.مثلاً يوسړی د غنمو يو ډيرې د غنمو د يوبل ډيری په عوض اندازه سره خرڅ كړلو.اودا دواړه ډيری په كتلوكښې برابر دی.بيا هم جائز نه دی.ځكه چه په دې كښې د زيات والی شبهه ده.ددې نه هم معلومه شوه.چه شبهة الربوا د بيع د جواز نه مانع دې.بلكه د امام زفر رحمه الله نه علاوه احناف فقهاؤ ترديې پورې ونيلی دی.چه د غنمو يو ډيرې د بل ډيری په عوض اندازه سره خرڅ كړی.بيا دواړه ډيری كيل كړی.او دواړه برابر شی.نو بياهم زمونږ په نيز جائز نه دی.

....

## په نص كښې دكيلي او وزني څيز د هميشه والي حكم

> وَكُلُّ شَيْءٍ نَصَّ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ عَلَى تَحْرِيمِ التَّفَاضُلِ فِيهِ كَيْلًا او رسول الله ﷺ چه په كومو څيزونوكښې د كيل په ذريعه د زياتوالې د حرمت تصريح فرمائيلې ده فَهُوَمَكِيلٌ أَبَدًا،هغه به هميشه كيلی وی وَإِنْ تَرَكَ النَّاسُ الْكَيْلَ فِيهِ اګرچه خلقو په دې كښې كيل كول پريخودې وی. مِثْلَ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالتَّمْرِ وَالْمِلْحِ لكه غنم، اوربشې، چوارې، مالګه.

**حل اللغة** > **تحريم:** حرامول، **الترک:** پريخودل، **الناس:** خلق، **الحنطة:** غنم، **الشعير:** اوربشې، **التمر:** قجوره، **الملح:** مالګه، **التفاضل:** يوپه بل زياتی كيدل

**تشريح** > **القاعدة الاولي** > مسئله داده.چه په عهدرسالت كښې كوم څيزكيلی وو.يعنی چه رسول الله ﷺ

---

[1] **مذهب الشافعي** رحمه الله:- دحضرت امام شافعي رحمه الله مذهب دادې.چه جدا جنس قرض نه حراموی.يعنی كه د دواړو عوضينو جنس يو وی.او طعم يا ثمنيت نه وی.نو ددوی په نيز قرض به هم حرام نه وی.

او صحابه کرامو ﷺ به په هغې کښې په کیل سره معامله کوله.هغه به همیشه کیلی شمارلې شي.اګرچه خلقو په دې کښې په کیل سره معامله کول پریخودی وی.لکه غنم،اوربشې،چوارې،او مالګه.نو په دې څیزونو کښې به مساوات اوبرابری د کیل په ذریعه معتبر وی.د وزن په ذریعه به معتبر نه وی.که غنم د غنمو په عوض خرڅ کړې شو.او برابری د وزن په ذریعه اوکړې شوه.د کیل په ذریعه اونکړې شوه.نودا جائز نه ده.څکه چه غنم په عهدرسالت کښې کیلی وو.څکه به په دې کښې د قیامته پورې هم د کیل په ذریعه مساوات او برابری معتبر وی.د وزن په ذریعه به معتبر نه وی.

| وَكُلُّ مَا نَصَّ رسول الله صلى الله عليه وسلم عَلَى تَحْرِيمِ التَّفَاضُلِ فِيهِ وَزْنًا او په کوم څیز کښې چه رسول الله ﷺ د وزن په اعتبارسره د زیاتوالی د حرمت صراحت فرمائیلې دې. فَهُوَ مَوْزُونٌ أَبَدًا هغه به همیشه وزنی وی وَإِنْ تَرَكَ النَّاسُ الْوَزْنَ فِيهِ اګرچه خلقو په دې کښې وزن کول پریخودې وی مِثْلُ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ لکه سره زر او سپین زر. |
|---|

تشریح> **القاعدة الثانية**> اوکوم څیز چه په عهدرسالت کښې وزنی وو.یعنی خلقو به په دې کښې په وزن سره معامله کوله.نوهغه به همیشه وزنی شمارلې کیږی.اګرچه په دې کښې خلقو په وزن سره معامله کول پریخودی وی.لکه سره زراو سپین زر.تردې که سره زر د سرو زرو په عوض خرڅه شوه.اود کیل په ذریعه برابری اوکړې شوه.د وزن په ذریعه اونکړې شوه.نودا به جائز نه وی.

**دلیله**> ددې دلیل دادې.چه عرف حجت کیدل صرف د هغه خلقو په حق کښې دې.چه دچا عرف وی.اودا چه دچا عرف نه وی.د هغوی په حق کښې عرف حجت نه وی.او نص د ټولو په حق کښې حجت وی.ددې نه هم معلومه شوه.چه نص د عرف په مقابله کښې اقوی دې.او اقوی د ادنی په وجه نشی ترک کیدلې.په دې وجه د څیزونو په مکیلی یاموزونی کیدلو کښې حدیث رسول ﷺ یعنی نص د خلقو د عرف اورواج په وجه نشی ترک کیدلې.او هرکله چه نص د عرف په وجه نشی ترک کیدلې.نود کومو څیزونوچه په نص یعنی حدیث سره مکیلی کیدل ثابت دی.هغه به ترقیامته مکیلی وی.اود کومو څیزونو چه موزونی کیدل ثابت دی.هغه به همیشه موزونی وی.د عرف او رواج په وجه به په دې کښې هیڅ تبدیلی نه واقع کیږی.

**په کومو څیزونو چه نص وارد نه وی د هغې حکم**

| وَمَا لَمْ يُنَصَّ عَلَيْهِ او په کوم څیزکښې چه نبی کریم ﷺ صراحت نه وی فرمائیلې فَهُوَ مَحْمُولٌ عَلَى عَادَاتِ النَّاسِ هغه د خلقو په عادتونو باندې محمول دی |
|---|

تشریح> **حکم عدم المنصوص علیه**> ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه د کوموڅیزونو په کیلی یا وزنی کیدلو باندې نص موجود نه دې.د هغه څیزونو کیلی یا وزنی کیدل به د تجارت والو په عادت باندې محمول وی.یعنی که دوی د کیل په ذریعه کاروبار کوی.نوهغه څیز به کیلی شمارلې کیږی.اوکه په څه څیز کښې د وزن په ذریعه کاروبارکوی.نوهغه څیز به وزنی شمارلې کیږی.

**دلیله**> څکه چه په کومو څیزونوکښې چه د خلقو عادت واقع شوې دې.په هغې کښې د حکم په جواز باندې د خلقو عادت دلیل وی.لکه چه د رسول اکرم ﷺ ارشاد دې.(ما رآه المسلمون حسناً فهو عند الله حسن) حاصل دادې.چه د نص نه موجود کیدلو په صورت کښې عرف اود خلقو رواج په منزله د اجماع وی.او اجماع شرعی حجت دې.په دې وجه دیو څیز په مکیلی یاموزونی کیدلو باندې د نص نه موجود کیدلو په صورت کښې د تاجرانو عادت او ددوی عرف ته اعتبار وی.که په یوڅیز کښې دوی د کیل په

ذريعه معامله کوي.نوهغه څيز به کيلي شمارلې شي.اوکه د وزن په ذريعه معامله کوي.نو هغه څيز به وزني شمارلې شي.

**مذهب ابي يوسف رحمه الله** د امام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.چه د منصوص عليه نه خلاف هم عرف معتبر وي.يعنې که د يوڅيز مکيلي کيدل منصوص وي.خو عرف ددې په وزني کيدلو باندې جاري وي.نودا به وزني شمارلې کيږي.اوکه د يوڅيز وزني کيدل منصوص وي.خو عرف ددې په مکيلي کيدلو جاري دې.نودا به مکيلي شمارلې کيږي.(١)

**دليله** دليل دا دې چه په عهدرسالت کښې په مکيلي څيزونوکښې په کيل کولو باندې او په موزوني څيزونوکښې په وزن کولو باندې چه کوم نص وارد شوې دې.دا دهغه زمانې د خلقو د عادت په وجه وو.نو عادت مقصود شو.بيا چه کله روسته زمانه کښې عادت بدل شو.نو ددې په مطابق به حکم ثابتيږي.يعنې کله چه په عهدرسالت کښې د غنم وغيره اخستل خرڅول،په کيل سره کيدلو.نو هغه به کيلي شمارلې کيږي.

**الجواب عنه** زمونږ د طرفه د ابويوسف رحمه الله د دليل جواب دادې.چه هرکله رسول الله ﷺ د خپلې زمانې خلق د غنمو وغيره کښې په کيل سره معامله کولو باندې اوکتل.او نبي کريم ﷺ په دې باندې سکوت اختيار کړلو.نودا سکوت اختيارول،د نص په مرتبه کښې شو.او نص په عرف او رواج سره نه متغيرکيږي.ځکه چه عرف د نص معارض نشي کيدلې.

**ثمرة الاختلاف** د طرفينو اود امام ابويوسف رحمه الله په مينځ کښې به ثمره د اختلاف په دې مثال کښې ښکاره کيږي.چه يوسړي غنم د غنمو په عوض خرڅ کړل.او په دواړه عوضونوکښې په وزن سره برابري اوکړې شوه.يعنې لين دين په وزن سره اوکړې شو.يا سره زر د سروزرو په عوض خرڅ کړې شو.او برابري د کيل په ذريعه اوکړې شوه.يعنې لين دين په پيمانه اوکيل سره اوکړې شو. نودا صورت د طرفينو رحمهما الله په نيز ناجائز دې.اگرچه غنم په اصل کښې کيلي دي.او سره زر په اصل کښې وزني دي.او د ابويوسف رحمه الله په نيز جائز دې.ځکه چه د عرف مطابق وزني څيز د وزن په ذريعه برابر کړې شو.او کيلي څيز د کيل په ذريعه برابر کړې شو.

**مسئلة الحنطة** اوغنم د وزن په ذريعه برابرولو سره دا نه لازميږي.چه دا د کيل په ذريعه هم برابر وي.بلکه د کيل په ذريعه د کمي زياتي شبه باقي ده.ځکه ډيره ممکن ده.چه د يوطرف غنم لږ لامده وي.اود بل طرف غنم اوچ وي.نو يومن لامده غنم چه په کوم لوخي کښې راتلې شي.په هغه لوخي کښې يو من اوچ غنم نشي راتللې.بلکه څه غنم به باقي پاتې کيږي.دغه شان کوم سره زر چه د کيل په ذريعه برابر کړې شو.ضروري نه ده.چه دا د وزن په ذريعه هم برابر وي.حاصل دا شو.چه د اصل معيار په اعتبار سره د زياتوالي شبه ده.اوپه اموال ربويه کښې دزياتوالي او ربوا شبه دغه شان حرام ده.لکه څنګه چه حقيقت ربوا حرام ده.لکه څنګه چه غنم د غنمو په عوض او سره زر د سرو زرو په عوض په اندازه سره خرڅول ناجائز دي.

**جوازه في السلم عند الطرفين** اود طرفينو رحمهما الله په نيز که په مکيلي څيز کښې د وزن په اعتبار سره بيع سلم اوکړې شوه.نوجائز ده.مثلاً يو کس زر روپۍ راس المال د لس منه غنمو په عوض د يومياشت په وعده باندې مسلم اليه ته ورکړلې. يعنې زر روپۍ پيشکي ( ايډوانس) ئې مسلم اليه ته پيش کړلو.چه مسلم اليه په يوه مياشت کښې لس منه غنم ورکړي.نودا جائز دي.ځکه چه په بيع سلم کښې مساوات

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في الدرالمختار(٤\٢٠٢) وفتح القدير(٦\١٥٧) والكفاية (٦\١٥٧) وشرح المجلة (١\٨٦، ٨٧) نقلاً عن القول الراجح (٢\٥٨)-

او برابری معتبر نه ده.بلکه د مسلم فیه په داسې طریقه معلومیدل معتبردی.چه په هغې سره دمسلم فیه سپارلو په وخت جګړه پیدانشي.اود غنمو د وزن مقدار بیانولوسره مسلم فیه یعنې غنم معلومیږی.په دې وجه د غنمو بیع سلم د وزن په اعتبارسره جائز اوصحیح ده.

## په عقدصرف کښې په عوضین باندې د قبضه حکم

| وَعَقْدُ الصَّرْفِ مَا وَقَعَ عَلَى جِنْسِ الْأَثْمَانِ او بیع صرف هغه ده.کوم چه خپل مینځ کښې د د واړو ثمن په جنس باندې واقع وی يُعْتَبَرُ فِيهِ قَبْضُ عِوَضَيْهِ فِي الْمَجْلِسِ چه په دې کښې په مجلس کښې دننه ددې په دواړو عوضونو باندې قبضه کول معتبر دی. |
|---|

**تشریح>** په بیع صرف کښې دواړه عوضونه د نقودو د قبیلې ځنې دی.کله د دواړوجنس یو وی.لکه سره زر د سرو زرو په عوض،او سپین زر د سپینو زرو په عوض.اوکله د دواړو جنس مختلف وی.لکه سره زر د سپینو زرو په عوض،یا سپین زر د سرو زرو په عوض.په رومبی صورت کښې یعنې داتحادجنس په وخت په دواړو عوضونوکښې برابری هم ضروری ده.اوپه مجلس د عقدکښې لاس پلاس قبضه کول هم ضروری دی.اود اختلاف جنس په صورت کښې برابری شرط نه ده.البته په مجلس د عقدکښې یوځائې قبضه کول ضروری دی.

**دلیله>** په مجلس کښې یوځائې د قبضه کولو په وجوب باندې دلیل دادې.د نبی کریم ﷺ ارشاد دې.( **الفضة بالفضة هاء وهاء** )[1] یعنې سپین زر د سپینو زرو په عوض لاس په لاس یوځائې قبضه کول دی.ابن ابی شیبه د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ نه دا حدیث داسې روایت کړې دې.(**عن رسول الله ﷺ الذهب بالذهب ربا إلا هاء وهاء والورق بالورق ربا إلا هاء وهاء والبر بالبر ربا إلا هاء وهاء والشعير بالشعير ربا إلا هاء وهاء والتمر بالتمر ربا إلا هاء وهاء**) یعنې سره زر د سرو زرو په عوض سود دې.خود نقد په نقد په صورت کښې یعنې که سره زر د سروزور په عوض برابر برابر خرڅه کړې شوه.اوپه مجلس کښې یوځائې قبضه هم اوشوه.نو ټیک ده.ګنی ربوا ده.

## په ربوی څیزونوکښې د تعین او تقابض حکم

| وَمَا سِوَاهُ مِمَّا فِيهِ الرِّبَا اوکوم څیزونه چه په اموال ربویه کښې د ثمن نه علاوه دی يُعْتَبَرُ فِيهِ التَّعْيِينُ په هغې کښې متعین کول معتبر دی وَلَا يُعْتَبَرُ فِيهِ التَّقَابُضُ او خپل مینځ کښې قبضه کول معتبر نه ده. |
|---|

**تشریح> صورة المسئلة>** صورت دمسئلې دادې.چه نقود یعنې د سرو زرو او سپینو زرو نه علاوه په باقی اموال ربویه یعنې د مکیلی اوموزونی (څیزونو) بیع کښې د عوضین متعین کول معتبردی.په مجلس کښې قبض کول معتبر نه دی.[2]

---

[1] من حدیث عمربن الخطاب ﷺ اخرجه البخاری فی البیوع باب ٥٤ ومسلم فی المساقاة رقم ٧٩ وأبوداود فی البیوع باب ١٢ والترمذی فی البیوع باب ٢٤ والنسائی فی البیوع باب ٤١ وابن ماجه فی التجارات باب ٥٠ ومالك فی البیوع رقم ٣٨ وأحمد فی المسند(٣٤/١

[2] **مذهب الشافعي** رحمه الله:- د حضرت امام شافعی رحمه الله په نیزکه د مطعوم بیع د مطعوم په عوض اوکړې شوه.که په اتحاد جنس سره وی.لکه د غنمو بیع د غنمو په عوض.اوکه په اختلاف جنس سره وی.لکه د غنمو بیع د اوربشو په عوض.نوپه دې کښې متعین کول کافی نه دی.بلکه قبضه کول ضروری دی.نوکه د ،،بیع الطعام بالطعام،، په

**دليله>** دليل دادې.چه د سرو او سپينو زرو نه علاوه هرمال متعين كيدلې شي.اوكوم څيز چه متعين وي. يعني په متعين كولوسره متعين كيدلې شي.په هغې كښې قبضه شرط نه وي.لكه كپړا،غلام، خاروې وغيره. اوكوم څيز چه په متعين كولوسره متعين كيدلې شي.په هغې كښې د قبضې شرط كيدل په دې وجه دی.چه د بيع مقصودی فائده داده.چه په تصرف باندې قابوحاصل وي.اوچونكه په متعين كولوسره دا فائده حاصليږي.په دې وجه د قبضه كولو ضرورت نشته.

**الجواب عنه>** د دې نه جواب دا دې كه عوضين قرض نه وي.بلكه نغد وي.او متعين وي.نود سودا ګرو په عرف كښې مقبوض فی المجلس اود غيرمقبوض فی المجلس په ماليت كښې تفاوت معتبر نه وي.يعنی داسې نه ده.چه په كوم عوض باندې په مجلس كښې قبضه اوكړې شوه.ددې ماليت زيات وي.او په كوم چه دمجلس نه پس قبضه شوې وي.د هغې ماليت كم وي.بلكه په ماليت كښې دواړه برابر وي.او هركله چه داسې ده.نوكوم عوض چه مقبوض فی المجلس دې.دې ته په بل عوض باندې هيڅ فضيلت حاصل نه دې.اوهر كله چه مقبوض فی المجلس ته په غيرمقبوض فی المجلس باندې هيڅ فضيلت حاصل نه دې.نو ددې په وجه به د رباء شبه هم نه پيداكيږي.او هركله چه د رباء شبه پيدا نشوه.نو بيع به ناجائز هم نه وي.بلكه جائز به وي.

## د غنمو په اوړو اوستوانو سره د بيع حكم

| |
|---|
| وَلَايَجُوْزُبَيْعُ الْحِنْطَةِ بِالدَّقِيقِ او غنم د اوړو په عوض خرڅول جائز نه دی وَلَابِالسَّوِيقِ اونه د ستوانو په عوض |

**الحنطة** : غنم ، **الدقيق** : اوړه ، **السويق** : ستوان

**تشريح> حرمة بيع الحنطة بالدقيق >** مسئله داده.چه زمونږ په نيز د غنمو بيع ددې د اوړو په عوض اود غنمو بيع ددې د ستوانو په عوض جائز نه ده.نه په برابرئ سره اونه په كمی زياتی سره.هم دا يوقول د امام شافعی، امام احمد اود امام ثوری رحمهم الله دې. ([1])

**دليله>** دعدم جواز دليل دا دې چه دغنمو او ددې د اوړو په مينځ كښې،اود غنمو اود ستوانو په مينځ كښې من وجه هم جنس كيدل موجود دی.او من وجه موجود نه دی.مجانست خكه موجود دې.چه د غنمو په ميده كولو سره صرف د غنمو اجزاء متفرق كيږي.او شې؛ د اجزاؤ د تفريق په وجه دويم شې نه جوړيږي.بلكه هم هغه شې باقی پاتې وي.نود ميده كولو نه وړاندې چه كوم څيز وو.د ميده كولو نه پس هم هغه څيز باقی دې.

او مجانست من وجه خكه نه دې موجود.چه د جنس اختلاف د نوم، صورت،اود معنی په اختلاف سره متحقق كيږي.لكه د غنمو او اوربشو په مينځ كښې اختلاف جنس دې.خكه چه د دواړو نوم هم مختلف دې.صورت هم مختلف دې.او معانی اومنافع هم مختلف دی.نو په دې صورت كښې د ميده كولونه وړاندې ددې نوم غنم وو.اود ميده كولو نه پس اوره يا ستوان شو.نوګويا ددواړو نوم مختلف دې.خكه چه غنم اورتولی شی.او خوړلی شی.اود اوړو په مينځ كښې من وجه مجانست زائل شو.اومن وجه نه دې زائل شوې.بلكه باقی دې.نوګويا د مجانست په زائل كيدلوكښې شك واقع شو.حالاتكه د

---

صورت كښې د قبضه نه بغير عاقدين جدا شو.نود امام شافعی رحمه الله په نيز بيع فاسد ده.او زمونږ په نيز فاسد نه ده.

[1] ، مذهب مالكية:- اود امام مالك رحمه الله مذهب دادې.چه ؛ غنمو بيع ددې د اوړو اود ستوانو په عوض برابر جائز ده.هم دا د امام احمد اظهرقول دې.

مجانست موجود کیدل یقیني وو.او یقین د شك په وجه نه زائل کیږي.په دې وجه اوونیلی شو.چه مجانست زائل شو.اومن وجه زائل نشو.بلکه باقي دې.نوګویا دمجانست په زائل کیدلو کښې شك واقع شو.حالانکه دمجانست موجود کیدل یقیني وو.نود غنمو اوددې د اوړو په مینځ کښې اود غنمو اود ستوانو په مینځ کښې اتحادجنسي او اتحاد قدر دواړه موجود شو.اوهرکله چه قدر مع الجنس دواړه موجود شو.نو تفاضل اوشبهٔ تفاضل دواړه به حرام وي.او په برابرئ سره به بیع جائز وي.

| وکذالك الدّقیق بالسّویق او دغه شان اوړه د ستوانو په عوض خرخول جائز نه ده [1] |
|---|

**تشریح> حرمة بیع الدقیق بالسویق>** د غنمو د اوړو بیع دغنمو د ستوانو په عوض دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز نه په برابرئ سره جائز ده.اونه په کمی زیاتی سره جائز ده.

**دلیله>** د بیع الدقیق بالسویق په عدم جواز باندې دلیل دا دې چه د اوړو بیع د اورتو غنمو په عوض اود ستوانو بیع د بغیر ورتوغنمو په عوض ناجائز ده. او دا عدم جواز په دې وجه دې.چه دا ربوا الفضل ته مستلزم دې.او ربوا الفضل مجانست سره ثابتیږي.نو په ستوانو اود بغیر اورتو غنمو په مینځ کښې مجانست ثابت شو. اوچونکه اوړه د بغیر اورتو غنمو اجزاء دی.په دې وجه به د اوړو او ستوانو په مینځ کښې مجانست ثابت شي. او په اوړو او ستوانو په مینځ کښې د کیل په ذریعه مساوات او برابری کول ناممکن دی.په دې وجه د اوړو بیع د ستوانو په عوض متفاضلاً هم ناجائز ده.اومتساویاً هم ناجائز ده.

**مذهب الصاحبین>** په مذکوره مسئله کښې د صاحبینو رحمهما الله په نیز متساویاً او متفاضلاً په دواړه طریقه بیع جائز ده.

**دلیلهما>** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه د غنمو اوړه اوددې ستوان دوه جداجدا جنسونه دی.اګرچه د دواړو اصل یعنی غنم یودی.اوددې دواړو جنس مختلف ځکه دې.چه د دواړو په مقصود کښې اختلاف دې. ځکه چه د اوړو نه روټئ پخیږي.پراټې پخیږي.اودا دواړه خبرې په ستوانو سره نه حاصلیږي.او ستوان په اوبوکښې ګډولې شي.نو خوړلې شي.او په غوړو اوچینوکښې ګډوډ کولې شي.اوخوړلې شي.اودا مقصد په اوړو سره نه حاصلیږي. حاصل دا شو.چه اوړه او ستوان دوه جداجدا جنسونه دی.اوهرکله چه جداجدا جنسونه شو.نو په دې کښې یود بل په عوض برابر هم جائز دی.اوپه کمی زیاتی سره خرخول به هم جائز وي.ځکه چه د اختلاف جنس په صورت کښې کمی زیاتی سره خرخول جائز وي.

**الجواب عنه>** د صاحبینو رحمهما الله د دلیل جواب دادې.چه اوړه او ستوان په اعظم مقصود کیدلو یعنی په غذا کیدلو کښې دواړه شریك دی.یعنی په اوړو سره هم غذا حاصلیږي.او په ستوانو سره هم غذا حاصلیږي.او پاتې شو په بعض څیزونوکښې تفاوت،نودا د اتحاد جنس دپاره مضرنه دې.

**نظیره>** لکه اوراته شوی غنم او بغیر اوراته شوی غنموکښې څه ناڅه تفاوت نه پس اتحاد جنس دې.او په چینجو ( یا وینو) لګیدلی غنمو کښې د څه ناڅه تفاوت باوجود اتحاد جنس دې.دغه شان د ستوانو او اوړو په مینځ کښې هم د څه قدرې تفاوت باوجود اتحاد جنس دې.او هرکله چه اتحاد جنس دې.نو لکه ځنګه چه د اورتوغنمو بیع د بغیر اورتوغنمو په عوض،اود ښه قسم غنمو بیع د سپکو ( یا وینو) لګیدلی غنمو په عوض متفاضلاً او متساویاً دواړه شان ناجائز دې.دغه شان د اوړو بیع د ستوانو په عوض متفاضلاً او متساویاً په دواړه طریقه ناجائز ده.

---

[1] ) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(١٦٥\٦) وردالمحتار(٢٠٨\٣)، والزيلعي (٩٦\٤) نقلاً عن القول الراجح (٦٠\٢)-

## د غوښې د حيوان په بدله کښې د بيع حکم

| وَيَجُوزُ بَيْعُ اللَّحْمِ بِالْحَيَوَانِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ[1] اود ابوحنيفه رحمه الله په نيزغوښه د ژوندی څناور په عوض خرڅول جائز دی. |
|---|

**تشريح> حرمة بيع اللحم بالحيوان>** غوښه د څاروو په عوض د خرڅولو يوڅو صورتو نه دی.يوصورت په متن کښې ذکر دې هغه دا چه غوښه ددې هم جنس ژوندی څاروی په عوض خرڅه کړې شی.مثلاً د چيلۍ غوښه د ژوندې چيلۍ په عوض خرڅه کړې شی.نود شيخينو رحمهما الله په نيز دا صورت جائز دې.غوښه که د هغه غوښې برابره وی.کومه چه په ژوندی څاروی کښې ده.اوکه برابره نه وی.

**دليلهما>** د شيخينو رحمهما الله دليل دادې.چه غوښه موزونی ده.ددې اخستل خرڅول د وزن په ذريعه کيږی.او څاروې غيرموزونی دې.عام طورباندې ددې وزن نه کيږی.

**عدم امکان معرفة ثقل الحيوان بالوزن>** اود وزن په ذريعه د ژوندی څاروی دروندوالې معلومول هم ممکن نه دی.ځکه چه دې هم کله خپل ځان درنه وی.او کله سپکه وی.نودا به معلومه نشی.چه چيلۍ خپل بوج سپک کړې دې.اوکه درند کړې دې.بهرحال غوښه د چيلۍ په عوض خرڅول يو موزونی څيز دغيرموزونی څيز په عوض خرڅول دی.نود غوښې او چيلۍ په مينځ کښې اتحاد قدر اونه موندې شو.او وراندې تيرشوی دی.چه د اتحاد قدر نه کيدلو په صورت کښې بيع متساوياً او متفاضلاً دواړه شان جائز ده.اوکه تاسو غوراوکړئ.نو معلومه بشی.چه غوښه او ژوندۍ چيلۍ کښې اتحاد جنس هم نشته.ځکه چه غوښه غيرحساس ده.او ژوندۍ چيلۍ حساس، متحرك بالاراده ده.اود اتحادجنس فوت کيدلو په صورت کښې هم بيع متفاضلاً جائز وی.په دې وجه د غوښې بيع ددې هم جنس ژوندی څاروی په عوض جائز ده.غوښه که د ژوندی څاروی د غوښې نه زياته وی.اوکه برابره وی.اوکه کمه وی.

| وَقَالَ مُحَمَّدٌ: او امام محمد رحمه الله فرمانيلی دی لَا يَجُوزُ جائز نه دی حتى يكون اللحم اكثر مما في الحيوان تردې چې وی غوښه زياته د هغې نه کومه چې په حيوان کښې وی فيكون اللحم بمثله نو شی به غوشه په مقابله د غوښې کښې والزيادة بالسقط او زياتی غوښه به د هغې په مقابله کښې شی کوم چې غورځولی شی لکه ښکر وغيره |
|---|

**تشريح> مذهب محمد رحمه الله>** امام محمد رحمه الله فرمائی.که د چيلۍ جداکړې شوې غوښه د هغه غوښه نه زياته وی.کومه چه په ژوندې چيلۍ کښې ده.نو بيا خو جائز ده.گنی جائز نه ده.

**دليله>** د امام محمد رحمه الله دليل دادې.که جدا کړې شوې غوښه د ژوندې چيلۍ د غوښې نه زياته وی.مثلاً د چيلۍ جدا کړې شوې غوښه پنځوس کلو ده.او ژوندۍ چيلۍ ذبح کولو نه پس په دې کښې څلويښت کلو غوښه اووتله. نودا صورت ځکه جائز دې.چه د ژوندې چيلۍ څلويښت کلو غوښه به دجدا کړې شوې څلويښت کلو غوښې په عوض شی.او باقی لس کلو غوښه به،د چيلۍ د څرمنې،او نور اجزاء مثلاً سر، خپې وغيره په مقابله کښې شی.او په دې صورت کښې به ربوا يا شبه ربوا نه پيدا کيږی.خوکه جدا کړې شوې غوښه د ژوندې چيلۍ د غوښې نه زياته نه وی.بلکه برابر وی.يا ددې نه کم وی.نو ربوا به متحقق شی.ځکه که جدا کړې شوې غوښه په نسبت د هغه غوښې، کومه چه په ژوندې

---

[1] القول الراجح هوهذا قول الشيخين رحمهما الله كذا في الدرالمختار(٤\٢٠٥) والبحر(٦\١٣٢) وفتح القدير(٦\١٦٧)نقلاً عن القول الراجح (٢\٦١)-

چیلۍ کښې ده.برابر وی.نودا غوښه اود ژوندې چیلۍ غوښه به برابره وی.اود چیلۍ باقی اجزاء مثلاً څرمن، سر خپې وغیره به زیاتی پاتې شی.اوپه دې دوارو صورتونوکښې ربوا ده.په دې وجه غوښه په نسبت د هغه غوښې کومه چه په ژوندې چیلۍ کښې ده.که زیاتی وی.بیا خو جائز ده.ګنې جائز نه ده.
**نظیره>** اودا داسې شوه.لکه د کونځلو په مقابله کښې چه ددې تیل وی.یعنی که تیل زیات وی.په نسبت د هغه تیلو کوم چه په کونځلوکښې دی.نوجائز دی.ځکه چه د تیلو په مقابله کښې به تیل شی.اوکوم تیل چه زیاتی پاتې شی.هغه به ئې د بورې ( کَهل) په مقابله کښې شی.ګنې که تیل په نسبت د هغه تیلو کوم چه په کونځلوکښې دی.برابر وی.یا کم وی.نوبیع به جائز نه وی.
**الجواب عن النظیر>** په خلاف د کونځلو.او ددې د تیلو.ځکه چه فی الحال د کونځلو په وزن کولو سره د تیلو مقدار معلومیدلې شی.چه کله تیل او بوره ( کَهل) جدا جدا کړې شی.ځکه چه بوره (کَهل) یو داسې څیز دې.چه وزن کیدلې شی.مثلاً کونځلې یو کلو دی.خو چه کله ددې نه تیل اوبنکلې شو.او بوره ( کَهل) اوتللې شوه.نو بوره (کَهل) شپږ سوه ګرامه وه.نو معلومه شوه.چه تیل څلورسوه ګرامه دی.په دې وجه په دې صورت کښې تیل په نسبت د هغه تیلو نه زیات بکار دی.کوم چه په کونځلوکښې دی.چه تیل د تیلو په مقابله کښې شی.او زیاتی تیل د بورې (کَهل) په مقابله کښې شی.

## د لوندو کجورو د چوارو په بدله کښې د بیع حکم

| وَيَجُوزُ بَيْعُ الرُّطَبِ بِالتَّمْرِ مِثْلًا بِمِثْلٍ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ اود ابوحنیفه رحمه الله په نیز پخې تازه کجورې د پخو اوچو چوارو په عوض برابر سرابر خرڅول جائز دی. |
|---|

**حل اللغة> الرطب:** تازه قجوره **التمر:** چواره

**تشریح> جواز بیع الرطب بالتمر مثلاً بمثل>** رطب: پخو تازه چوارو ته وائی.چه په اردو ژبه کښې دې ته کجورې وائی.او ،،تمر،، پخو اوچو چوارو ته وائی.چه کله چواره اوونیلې شی.نوهم دا مفهوم ترې مراد وی.
**صورته>** مسئله داده.چه د کجورو بیع د چوارو په عوض متفاضلاً یعنی په کمی زیاتی سره بالاجماع ناجائز ده.او متساویاً یعنی برابر برابر د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز جائز ده. حضرت امام مالك،امام شافعی اوامام احمد رحمه الله هم ددې د جواز قائل دی.
**دلیله>** د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله نقلی دلیل دادې.چه یوځلې د مدنی آقا ﷺ په خدمت کښې د خیبر رطب یعنی تازه کجورې په هدیه کښې پیش شوې.نبی کریم ﷺ چه دا اولیدلې.نو وې فرمائیل.( أوكل تمرخيبرهكذا؟)[1] آیاد خیبر ټولې چوارې داسې وی.اوګورئ نبی کریم ﷺ رطب ته تمر فرمائیلی دی.ددې نه معلومه شوه.چه رطب، تمر دی.اود تمر بیع د تمر په عوض برابر جائز ده.لکه چه حدیث( التمربالتمرمثلاً بمثل والفضل ربا) یعنی د تمر بیع د تمرپه عوض برابر سرابر جائز ده.په دې شاهد دې.نو ثابته شوه.چه درطب بیع د تمر په عوض برابر برابر جائز ده.
② عقلی دلیل دادې.چه د رطب دوه صورتونه دی.یا خو رطب، تمردی.او یا غیر تمر دی.که رطب،

---

۱) من حدیث ابي هريرة رضي الله عنه وابي سعيدالخدری رضي الله عنه قال الزيلعی رحمه الله والمصنف (ای صاحب الهداية رحمه الله) إحتج بالحديث علی جواز بيع الرطب بالتمر،مثلا بمثل،بناء علی تسميته في الحديث تمراً وقد كشفت طرق الحديث والفاظه فلم اجد فيه ذكرالرطب والبخاری ذكرالحديث في اربعة مواضع من صحيحه في البيوع رقم ۲۲۰۱ وفي الوكالة رقم ۲۳۰۲ وفي المغازی رقم ٤٢٤٤ وفي الإعتصام رقم ۷۳۵۰ ) وهذا اللفظ رواه النسائی ايضاً ،نصب الراية ٤/ ۸۲ _

تمر دی.نود رطب بیع د تمر په عوض برابر جائز ده.لکه څنګه چه حدیث د ربوا په شروع کښې تیر شوې دې.چه «التمر بالتمر مثلاً بمثل» اوکه رطب غیر تمر دی.نود رطب بیع د تمر په عوض متساویاً او متفاضلاً دواړه قسمه جائز دي.څکه چه هم ددې حدیث په آخر کښې دی.«إذا اختلف النوعان فبیعوا کیف شئتم» یعنی د اختلاف جنس په صورت کښې چه څنګه غواړئ. خرڅوئ.که متساویاً وی.اوکه متفاضلاً وی.

**مذهب الصاحبین** > د صاحبینو رحمهما الله په نیز متساویاً یعنی د کجورو په چوارو باندې برابر برابر خرڅول ناجائز ده. (۱)

**دلیلهما** > دلیل دادې.چه یوځلې د رسول الله ﷺ نه د ،، بیع الرطب بالتمر مثلاً بمثل ،، په باره کښې تپوس اوشو.چه دا جائز دی،اوکه ناجائز دی.نو نبی کریم ﷺ تپوس اوکړلو.چه آیا تازه کهجورې اوچې شی.نو کمیږی.خلقو په جواب کښې عرض کړل.چه آو کمیږی.په دې باندې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.که دا خبره وی.نو بیا د تازه کجورو بیع د چوارو په عوض
برابر برابر ناجائز ده.ددې حدیث نه معلومه شوه.چه بیع الرطب بالرطب برابر برابر هم ناجائز ده.

**الجواب عنه** > د دې حدیث نه جواب دادې.چه ددې حدیث مدار په زیدبن عیاش باندې دې.او زیدبن عیاش د حدیث د امامانو په نیز ضعیف اومجهول راوی دې.په دې وجه دا روایت د مشهور حدیث په مقابله کښې قابل استدلال نه جوړیږی.

**د انګورو د اوسکو په بدله کښې د بیع حکم**

| وَكَذَا الْعِنَبُ بِالزَّبِيبِ اوهم دغه شان تازه انګور د اوچو انګورو په عوض، |
|---|

**حل اللغة** > **العنب**: انګور ، **الزبیب**: اوسکه

**تشریح** > **بیع العنب بالزبیب** > مسئله داده.چه دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز پاخه تازه انګور د اوچو انګورو( اوسکی) په عوض د پیمانه په ذریعه برابر خرڅول جائز دی.اود صاحبینو رحمهما الله اود آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز نه متساویاً جائز ده.اونه متفاضلاً جائز ده.د دواړو فریقو دلیلونه وړاندې تیرشوی دی.

**دلیله** > د امام صاحب رحمه الله دلیل دادې.چه عنب او زبیب ( انګور او اوسکې) د دواړو جنس که یو وی.نو په دې کښې د یو بیع د بل په عوض د کیل په ذریعه برابرجائز ده.اوکه د دواړو جنس جدا جدا وی.نوحدیث «إذا اختلف النوعان فبیعوا کیف شئتم» په وجه ددې بیع متساویاً اومتفاضلاً په دواړه طریقه جائز ده.

**دلیل الائمة** > د صاحبینو رحمهما الله اود آئمه ثلاثه رحمهم الله دلیل دادې.چه تازه انګور په اوچولو سره کمیږی.په دې وجه د زیدبن عیاش حدیث «أوینقص إذا جف فقیل نعم فقیل نعم فقال ﷺ لا» په وجه بیع جائز نه ده.

**قول الاتفاق بین الائمة** > د بعض حضراتو خیال دې.چه د انګورو بیع د اوسکو په عوض متساویاً بالاتفاق ناجائز ده.دصاحبینو رحمهما الله په نیز هم اود حضرت امام صاحب رحمه الله په نیزهم.او په دې عدم جواز باندې د قیاس نه استدلال شوې دې.یعنی لکه څنګه چه اورتو غنمو بیع د بغیر اورتوغنمو په عوض په پیمانه

---

(۱) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في فتح القدير(۶\۱۶۸) وردالمحتار(۴\۲۰۶) وطلوع النيرين (۱\۳۳۵) نقلاً عن القول الراجح (۲\۶۲)-

سره برابرناجائز دی.لکه څنګه چه وراندې تیرشوی دی.هم دغه شان د عنب یعنی د تازه انګورو بیع په اوچو انګور یعنی د اوسکو په عوض په پیمانه سره د برابرولو باوجود ناجائز ده.
اود امام ابوحنیفه رحمه الله ددې روایت مطابق د ،،بیع التمربالتمر،،اود ،، بیع العنب بالزبیب په مینځ کښې فرق بیانول ضروری دی.څکه چه د امام صاحب رحمه الله په نیزبیع التمر بالرطب متساویاً جائز ده.او ددې روایت مطابق بیع العنب بالزبیب متساویاً ناجائز ده.بهرحال وجه د فرق داده.چه په رطب باندې د تمر اطلاق په حدیث(أو كل تمرخيبرهكذا) سره ثابت دې.نو رطب د تمر په عوض خرڅول،تمر د تمر په عوض خرڅول دی.او تمر د تمر په عوض برابر برابر خرڅول جائزدی.نو رطب د تمر په عوض برابر برابر خرڅول به هم جائز وی.
اود زبیب اطلاق په عنب باندې چونکه په حدیث سره ثابت نه دې.په دې وجه په زبیب او عنب کښې د کیل په ذریعه د برابری کولو باوجود به د تفاوت اعتبار کولې شی.او هرکله چه تفاوت معتبر دې.نو بیع به فاسد او ناجائز وی.

## د زیتون یا د کونځلو د تیلو سره د بیع حکم

| |
|---|
| وَلَا يَجُوْزُ بَيْعُ الزَّيْتُوْنِ بِالزَّيْتِ او زیتون د زیتون د تیلو په عوض خرڅول وَالسِّمْسِمُ بِالشَّيْرَجِ، او کونځلې ددې د تیلو په عوض خرڅول جائز نه دی حَتّٰى يَكُوْنَ الزَّيْتُ وَالشَّيْرَجُ أَكْثَرَ تردې چه د زیتون تیل اود کونځلو تیل د هغه تیلو نه زیات وی مِمَّا فِي الزَّيْتُوْنِ وَالسِّمْسِمِ کوم چه په زیتون او کونځلوکښې دی. فَيَكُوْنَ الدُّهْنُ بِمِثْلِهِ وَالزِّيَادَةُ بِالثَّجِيْرِ چه تیل د تیلو په مقابله کښې شی.او زیاتوالې د کهل( بورې) په عوض کښې شی |

**حل اللغة**> **الزيتون**:د زیتون میوه، **الزيت**:د زیتون تیل، **السمسم**:کونځله، **الشيرج**:د کونځلو تیل
**تشريح**> **حرمة بيع الزيتون بالزيت**> زیتون هغه میوه ده.د کوم نه چه د زیتون تیل اوځی.اوشیرج هغه تیل دی.کوم چه د زیتون نه اوځی.ثجیر بورې ( کهل) ته وائی.
**صورته**> صورت د مسئلې دادې.که زیتون د د زیتون د تیلو په عوض یا کونځلې ددې د تیلو په عوض خرڅ کړې شو.اود زیتون تیل د هغه تیلو نه زیات وی.کوم چه په زیتون کښې دی.او خالص تیل د هغه نه زیات وی.کوم چه په کونځلوکښې وی.نو بیع جائز ده.
**دليله**> دلیل دا دې چه په دې صورت کښې ربوا نه متحقق کیږی.او ربواځکه نه متحقق کیږی.چه خالص تیل به د خپل مثل هغه تیلو په عوض کښې شی.کوم چه په زیتون یا کونځلوکښې دی.اود خالص تیلو زیاتی مقدار به د بورې (کهل) په مقابله کښې شی.او بوره او تیل چونکه مختلف الاجناس دی.څکه به په دې کښې څه ربوا نه متحقق کیږی.اوکوم تیل چه په زیتون یا کونځلو کښې دی.که دا د خالص تیلو نه زیات یا برابر وی.نودا بیع به جائز نه وی.څکه چه خالص تیل هم وزنی دی.
اوکوم تیل چه په زیتون یا کونځلوکښې دی.هغه هم وزنی دی.څکه د قدرمع الجنس موجود کیدلو په وجه د بیع جائز کیدلو دپاره د دواړو عوضونو برابر کیدل ضروری دی.څوکوم تیل چه په زیتون یاکونځلوکښې دی.کله چه دا د خالص تیلو نه زیات شو.نو په دې صورت کښې په یوعوض کښې به څه تیل او بوره زیاتی شی.اوکه د زیتون یا کونځلو تیل د خالص تیلو برابر شو.نو په دې صورت کښې به بوره زیاتی شی.اود یوعوض زیاتی کیدل اود بل کمیدل،ددې نوم ربوا دې.نو په دې دواړو صورتونوکښې چونکه ربوا لازمیږی.په دې وجه به دا دواړه صورتونه ناجائز وی.

### د مختلف غوښو يخپل مينځ کښې د بيع حکم

| وَيَجُوزُبَيْعُ اللُّحْمَانِ الْمُخْتَلِفَةِ بَعْضِهَا بِبَعْضٍ مُتَفَاضِلًا او جائز دې بيع د مختلفو غوښو بعضې په عوض د بعضې نورو د يوبل نه زياتي |
|---|

**حل اللغة> اللحم:** غوښه

**تشريح> جواز بيع اللحمان المختلفة فيما بينهما متفاضلا>** فرمائي.او په مختلف غوښو کښې بعض د بعض په عوض کمي زياتي سره خرڅول جائز دی.او ددې نه مراد د اوښ غوښه،د غوا غوښه او د چيلۍ غوښه ده.

**القاعدة>** صاحب د عنايه رحمه الله په حيواناتو( څاروو) کښې د اتحادجنس او اختلاف جنس په سلسله کښې يو قاعده بيان کړې ده.هغه داچه په زکاة کښې که د يوڅاروی نصاب په بل څاروی سره پوره کولی شی.نو ددې دواړوجنس يو دې.لکه د غوا اود ميخې،اوکه د يوڅاروی نصاب په بل څاروی سره نه پوره کيږی.نو په دوی کښې اختلاف جنس دې.لکه چيلۍ او غوا.

**صورته>** اوس مسئله داده.که غوښه مختلف الاجناس وی.مثلاً د اوښ غوښه ده.د غوا غوښه ده.اود چيلۍ غوښه ده.په دې کښې که يو د بل په عوض کمي زياتي سره خرڅ کړې شوه.نوجائز ده.ځکه چه د غوا،اوښ اود چيلۍ جنس جداجدا دې.اود اختلاف جنس په صورت کښې چونکه په کمي زياتي سره خرڅول جائز وی.

**جنسية البقر والجواميس>** اود غوا او ميخې يو جنس دې.نوپه دوی کښې د يو غوښه د بل په عوض کمي زياتي سره خرڅول جائز نه دی.اوهم دغه شان د چيلۍ اود ګډې يوجنس دې.اود عربی اوښ اود بختی اوښ يوجنس دې.نود چيلۍ غوښه د ګډې د غوښې په عوض،اود عربی اوښ غوښه د بختی اوښ د غوښې په عوض کمي زياتي سره - رخول جائز نه دی.

### د مختلف پيو يخپل مينځ کښې د بيع حکم

| وَكَذٰلِكَ أَلْبَانُ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ اوهم دغه شان د غوا او چيلۍ پی دی. |
|---|

**تشريح> جواز بيع البان البقر و الغنم فيما بينهما متفاضلا>** شيخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائي.چه اوښې،غوا اود چيلۍ په پيوکښې هم اختلاف جنس دې.نود يو پی د بل د پيو په عوض کمي زياتي سره خرڅول جائز دی. (١)

**دليله>** دليل دادې.چه غوښه او پی فروع او اجزاء دی.او ددې اصول يعنی اوښه، غوا،او چيلۍ مختلف الاجناس دی.اود اصول اختلاف د فروع اختلاف واجبوی.نو هرکله چه دا اصول يعنی اوښ، غوا،او چيلۍ مختلف الاجناس دی.تردې چه په دوی کښې ديو نصاب زکاة، د بل په ذريعه نشی پوره کولی.نو ددې فروع او اجزاء يعنی پی او غوښه به هم مختلف الاجناس وی.اوهرکله چه دا مختلف الاجناس دی.نود يو غوښه به د بل دغوښې په عوض اود يو پی د بل د پيو په عوض کمي زياتي سره خرڅول جائز نه وی.

علامه مرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی.چه د اوښې ،غوا،اود چيلۍ پی هغه وخته پورې مختلفة الاجناس دی.چه ترکومه پورې په څه کاريګرۍ سره په دې کښې څه تبديلی اونکړې شی.يعنی پی وی.او که

---

(١) مذهب الشافعي رحمه الله:- خود امام شافعی رحمه الله نه يو روايت دادې.چه په دوی کښې د يوغوښه د بل په عوض اود يو پی د بل د پيو په عوض کمي زياتي سره خرڅول جائز نه دی.

تبدیلي اوکړې شوه.مثلا د درې وارو د پیو پنیر جوړ کړې شو.نواوس به دا یوجنس شمارلې کیږي.اوپه کمی زیاتی سره به خرڅول جائز نه وی.اګرچه اصل یعنی پۍ مختلفة الاجناس دی.

## د مختلفوسرکو خپل مینځ کښې د بیع حکم

| وَخَلِّ الدَّقَلِ بِخَلِّ الْعِنَبِ او د کجورو سرکه د انګورو د سرکې په عوض. |
|---|

**حل اللغة** > **خل الدقل**؛ دقجورې سرکه، **خل العنب**؛ د انګور سرکه

**تشریح** > **جواز بیع خل الدقل بخل العنب متفاضلا** > دقل: ردی او بیکاره کجورې، خل: سرکه مسئله داده.چه د کجورو سرکه د انګورو سرکې په عوض کمی زیاتی سره خرڅول جائز دی.

**دلیله** > دلیل دا دې چه کله ددې دوارو اصل یعنی د کجورو او انګورو په مینځ کښې اختلاف دې.نو ددې دوارو په اوبو یعنی په سرکوکښې به هم اختلاف وی.اوهرکله چه د کجورو او انګورو په سرکوکښې اختلاف دې.نود کجورو سرکه اود انګورو سرکه دوه جداجدا جنسونه شو.

هم دا وجه ده.چه د کجورو په شیره اود انګورو په شیره کښې بالاجماع اختلاف جنس دې.او وړاندې تیر شوی دی.چه د اختلاف جنس په صورت کښې کمی زیاتی سره بیع کول جائز دی.په دې وجه د کجورو د سرکې بیع د انګورو د سرکې په عوض متفاضلا جائز دی.

## د روټۍ د غنمو یا د اوړو په بدله کښې د بیع حکم

| وَيَجُوزُ بَيْعُ الْخُبْزِ بِالْحِنْطَةِ وَالدَّقِيقِ مُتَفَاضِلًا او روټۍ د غنمو او اوړو په عوض متفاضلا خرڅول جائز دی. |
|---|

**تشریح** > **جواز بیع الخبز بالحنطة متفاضلا** > صورت د مسئلې دادې.چه زمونږ د آئمهٔ ثلاثه په نیز روټۍ د غنمو یا اوړو په عوض کمی زیاتی سره خرڅول جائز دی.په دې شرط چه په مجلس کښې عوضین باندې قبضه متحقق شی.

**دلیله** > دلیل دا دې چه روټۍ خو یا عددی ده.او یا وزنی ده.خو کیلی نه ده.اوغنم کیلی څیز دې.اوهم دغه شان اوړه هم کیلی څیز دې.ځکه چه اوړه د غنمو جزء دې.نو هرکله چه غنم کیلی څیز دې.اودغه شان اوړه هم کیلی څیز دې.ځکه چه اوړه د غنمو جزء دې.نو هرکله چه غنم او اوړه کیلی شو.او روټۍ غیرکیلی شوه.نود اتحاد قدر فوت کیدلو په وجه تفاضل جائز دې.

**الروایة الثانیة عن ابي حنیفة**رحمه الله > د حضرت امام ابوحنیفه‌رحمه الله نه د نوادر روایت دادې.چه د روټۍ بیع د غنمو په عوض یا د اوړو په عوض بالکل جائز نه ده.نه متساویاً او نه متفاضلاً.هم دا قول د امام شافعی اود امام احمدرحمه الله دې.

**دلیله** > ددې روایت دلیل دادې.چه روټۍ او غنم یا ددې په اوړوکښې چونکه یوقسم مجانست موجود دې.په دې وجه به ددې په مبادله کښې مساوات او برابری شرط وی.او په روټۍ او غنمو او اوړوکښې د مساوات علم چونکه ممکن نه دې.ځکه به دسره ددې مبادله جائز نه وی.خو فتوی په اولنی قول ده.یعنی فتوی په جواز ده.

**الخلاصة** > بهرحال د بیع جواز هغه وخت وو.چه کله دواړه عوضونه یعنی روټۍ، غنم او اوړه نغد وی.او که غنم او اوړه قرض وی.یعنی د روټۍ نې دې دوارو سره بیع سلم اوکړو.په دې طریقه چه روټۍ راس المال جوړکړلو.او نغد نې ورکړله.او غنم یا اوړه نې مسلم فیه جوړکړل.او قرض نې کړل.نو هم جائز دی.ځکه چه موزونی څیز یعنی د روټۍ عقدسلم یو داسې مکیلی څیز یعنی غنم یا اوړوسره کیږی.چه ددې صفت او مقدار پیژندل ممکن دی.

## د غلام او مولا په مینځ کښې ربوا نشته

| وَلَا رِبَا بَيْنَ الْمَوْلَى وَعَبْدِهٖ او نشته سود په مینځ د مولی او د هغه د غلام کښې |
|---|

**تشریح> عدم الربو بين المولى وعبده>** مسئله داده.که غلام،، ماذون له فی التجارت،، وی.او په ده باندې د خلقو دومره قدرې قرضه نه وی. چه دده د رقبه احاطه اوکړی.نو ددې غلام او دده د مولا په مینځ کښې ربوا نه متحقق کیږی.یعنی په اموال ربویه کښې که دا دواړه په کمی زیاتی سره اخستل خرڅول اوکړی.نودا به ربوا نه وی.مثلاً خالد خپل غلام ته مال ورکړلو.اود تجارت اجازت ئې ورکړلو.بیا دا غلام دوه منه غنم د یو من غنمو په عوض واخلی.نودا به ربوا نه وی.

**دلیله>** ځکه چه غلام اود غلام په قبضه کښې چه کوم مال دې.دا ټول دده د مولا ملك دې.نو هرکله چه غلام اوڅه چه دده په قبضه کښې دی.د مولا ملك دې.نو مولا او ددې غلام په مینځ کښې به د سره بیع متحقق نه وی.اوهر کله چه بیع متحقق نشوه.نو ربوا به هم متحقق نه وی.

## د مسلمان او حربی په مینځ کښې د بیع حکم

| وَلَا بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْحَرْبِيِّ فِي دَارِ الْحَرْبِ او په درالحرب کښې د مسلمان او حربی په مینځ کښې ربوا نشته. |
|---|

**تشریح> عدم الربو بين المسلم والحربي>** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه په دارالحرب کښې دمسلمان او حربی په مینځ کښې ربوا نشته. یعنی که یومسلمان امان واخلی.او دارالحرب ته لاړ شی.اود یوحربی یو درهم د دوه درهمو په عوض خرڅ کړی.نودا حلال اوجائز دی.

**دلائله>** ① دلیل د رسول الله ﷺ قول (لاربوا بين المسلم والحربي في دار الحرب) (۱) دې.

② دویم دلیل دادې.چه په دارالحرب کښې د حربیانو مال مباح الاصل اوغیرمعصوم دې.ددې په هره طریقه د اخستلو اجازت دې.په دې شرط چه په دهوکه ئې نه وی اخستې.ځکه چه غدر او دهوکه حرام ده..

**مذهب ابي يوسف>** دامام شافعی او امام ابویوسف رحمه الله په نیز د مسلمان اوحربی په مینځ کښې په دارالحرب کښې ربوا وی.یعنی یو درهم د دوه درهمو په عوض خرڅول ناجائز دی.اوهم دا قول د امام مالك اود امام احمد رحمه الله دې.

**دلیله>** ددې حضراتو دلیل قیاس دې.یعنی که حربی امان واخلی.او په دارحرب کښې داخل شی.او دې یو درهم د دوه درهمو په عوض خرڅ کړی.نودا بالاتفاق ناجائز دی.نوهم دغه شان که مسلمان امان واخلی.او دارحرب ته داخل شی.اودې داسې کار اوکړی.یعنی یو درهم د دوه درهمو په عوض خرڅ کړی.نوهم به ناجائز وی.

**حکم المستامن>** په خلاف د هغه حربی کوم چه امان واخلی.او دارالاسلام ته راشی.ځکه چه دده مال د عقدامان په وجه محفوظ شوې دې.او هرکله چه دده مال محفوظ شو.نو دده نه به د زیات اخستلو اجازت نه وی.

---

۱) خرجه الزيلعي رحمه الله هذا اللفظ ثم قال وأسند البيهقي في المعرفة في كتاب السير عن الشافعي رحمه الله قال قال ابويوسف رحمه الله إنما قال ابوحنيفة رحمه الله هذا لأن بعض المشيخة حدثنا عن مكحول عن رسول الله ﷺ انه قال لا ربا بين أهل الحرب اظنه قا لواهل الإسلام قال الشافعي رحمه الله وهذا ليس بثابت ولا حجة فيه إنتهى كلامه كذا في نصب الراية ٨٤/٤_

# بَابُ السَّلَمِ

**ترجمه** (دا) باب د بیع سلم (په بیان کښې) دې.

**تحریح> التوضیح الصرفي للفظ السلم>** لفظ سلم، د تسلیم نه اخستې شوې دې.خکه چه په بیع سلم کښې راس المال په مجلس کښې دننه سپارل لازمي او ضروري دی.لفظ سلم او سلف دواړه مترادف دی.دغه شان اسلم او اسلف مترادف دی.قاله بدرالدین عیني رح ⑦اويا چه لفظ سلم يا خو د اسلم نه اخستې شوې دې.او همزه په دې کښې د سلب دپاره ده.خکه چه د رب السلم په راس المال یعنی دراهم مسلم اليه ته په سپارلو سره ددې سلامتیا زائل کول دی.یعنی رب السلم چه کله راس المال مسلم اليه ته اوسپارلو.نودا رب السلم سره سلامت پاتې نشو.

**معنی السلم لغة وشرعا>** سلم په لغت کښې د یوداسې بیع نوم دې.چه په دې کښې ثمن معجل وی.یعنی فوراً ادا کولې شی.بیع سلم د فقهاؤ په اصطلاح کښې موجل د معجل په عوض اخستلو ته وائی.

**رکنه>**د بیع سلم رکن ایجاب او قبول دې.مثلاً یو سړې بل کس ته وائی.(أسلمت إليك عشرة دراهم في كرحنطة يا أسلفت إليك عشرة دراهم في كرحنطة) ما تاسره په یو کُر غنموکښې د لس درهمو په عوض عقدسلم اوکړلو. دویم کس اووئیل.ما قبول کړلو.نو ده ته به صاحب دراهم یعنی رب السلم به وئیلې شی.او دویم کس ته به مسلم اليه وئیلې شی.او غنمو ته مسلم فیه او دراهمو ته راس المال وئیلې شی.

دبیع سلم حکم،د رب السلم دپاره په مسلم فیه کښې په موجل طور باندې ملك ثابتیدل،اود مسلم اليه دپاره فی الحال په راس المال باندې ملك ثابتیدل دی.اوشرطونه ئې روستو راروان دی

**الربط بما قبله>**امام قدوری مخکښې هغه بیوع بیان کړی دی.چه په هغې کښې په عوضین یا احدالعوضین باندې قبضه کول شرط نه دی.او اوس د هغه بیوع بیان کوی.په کوم کښې چه په عوضین یا احدالعوضین باندې قبضه کول شرط دی.

**ثبوته من الكتاب>** علامه مرغینانی رح فرمائیلی دی .چه د بیع سلم جواز په کتاب الله، سنت رسول ﷺ او په اجماع امت سره ثابت دې.کتاب الله خو دادې.چه د الله تعالی ارشاد دې.﴿يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوهُ﴾ یعنی اې د ایمان خاوندانو! چه کله تاسو معامله کوئ د قرضو،د یو مقرر وخت پورې نودا لیکئ.په قول د رئیس المفسرین حضرت ابن عباس رض دا آیت د عقدسلم په جواز باندې دلالت کوی.لکه چه ابن عباس رض فرمائی.(أشهد أن الله أحل السلف المضمون وأنزل فيها أطول آية في كتابه) او بيا ابن عباس رض هم دغه آیت تلاوت کړلو.(١) د ابن عباس رض په دې قول کښې د مضمون نه مراد موجل دې.یا واجب فی الذمه دې.دواړه صحیح دی.خکه چه مسلم فیه موجل وی.اود مسلم اليه په ذمه کښې واجب وی.اوس به ترجمه دا وی.چه ،، ګواهی ورکوم،چه الله تعالی سلم موجل یا سلم واجب الذمه حلال کړې دې.او ددې په باره کښې ئې لوئې آیت مداینت نازل کړې دې،،د حضرت ابن عباس رض ددې قول نه ښکاره ثابتیږی.چه دا آیت د بیع سلم په جواز باندې ښکاره دلیل دې.

**ثبوته من السنة>** د نبی ﷺ د سنت نه هم ددې جواز معلوم دې هغه دا دې (أن النبي ﷺ نهى عن بيع

---

١) أخرجه الحاكم في المستدرك (٢/٢٨٦)

ماليس عندالإنسان ورخص في السلم(۱) يعنى رسول اكرم ﷺ د هغه څيز د بيع نه منع فرمانيلې ده.کوم چه د انسان په ملك کښې نه وى.اود سلم اجازت ئې ورکړې دې.حاصل داچه دمعدوم څيز بيع ممنوع ده.خود بيع سلم اجازت ئې ورکړې دې.په داسې حال کښې چه مسلم فيه يعنى مبيع معدوم وى.

**ثبوته من الاجماع>** د عهد رسالت نه ترننه پورې د بيع سلم په جواز باندې د امت اجماع راروانه ده.نود بيع سلم مشروعيت په کتاب الله،سنت رسول ﷺ او په اجماع امت درې وارو نه ثابته ده.

**خلافه من القياس>** خو د قياس تقاضا داده.چه بيع سلم جائز نه وى.ځکه چه په بيع سلم کښې مسلم فيه مبيع وى.او مبيع معدوم دې.اود مبيع موجود غيرمملوك،ياد مبيع موجود مملوك غيرمقدورالتسليم بيع صحيح نه وى.نود معدوم بيع به په درجه اولى صحيح نه وى.ددې دليل نه ثابتيږى.چه بيع سلم جائز نه وى.خود حديث مذكور په وجه قياس پريخودلې شوې دې.

## په مکيلې اوموزونې څيزونوکښې د بيع السلم حکم

| اَلسَّلَمُ جَائِزٌفِي الْمَكِيلَاتِ وَالْمَوْزُونَاتِ سلم په مکيلات او موزونات کښې جائز دې والمعدودات او په هغه څيزونو کښې چې په شمار خرڅولې شى |
|---|

**تشريح>** ابو الحسن قدورى ؒ فرمائى.چه عقدسلم په هر کيلى او وزنى څيزکښې جائز دې.

**دليله>** دليل دادې.چه رسول الله ﷺ فرمانيلى دى.(من أسلم منكم فليسلم في كيل معلوم ووزن معلوم إلى أجل معلوم)(۲) يعنى څوك چه په تاسوکښې عقدسلم اوکړى.نوپه کيل معلوم او وزن معلوم کښې دې معلوم ميعاد پورې سلم اوکړى.ددې حديث نه معلوميږى.چه عقدسلم په مکيلات او موزونات کښې جائز دې.

| وَالْمُرَادُبِالْمَوْزُونَاتِ اود موزونات نه مراد غَيْرَالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ د دراهمو او دنانيرو نه علاوه دى. |
|---|

**تشريح> المراد من الموزونات>** علامه مرغينانى ؒ فرمانيلى دى.چه په متن کښې موزونات نه مراد د دارهم او دنانير نه علاوه نور څيزونه دى.نوکه په دارهم يا دنانيرو کښې عقدسلم اوکړې شو.نوددې د موزونى کيدلو باوجود عقدسلم باطل دې.اوس ددې دوه صورتونه دى.يو دا چه دارهم او دنانيرو کښې عقدسلم اوکړې شو.يعنى دراهم او دنانير راس المال جوړکړې شو.اوهم دا مسلم فيهِ جوړکړې شو.نودا صورت بالاجماع ناجائز دې.ځکه چه راس المال او مسلم فيه دواړه عوضونه که دراهم دى.او که دواړه عوضونه دنانير دى.نود قدر اوجنس باوجود نساء ( قرض) اومونديې شو.اوکه يو عوض دراهم وى.او بل عوض دنانير وى.نود اتحاد قدر سره نساء يعنى د مسلم فيه قرض کيدل موجود شو.حالانکه په دې دواړه صورتونوکښې نساء حرام او ناجائز ده.دويم صورت دادې.چه د غنمو عقدسلم په دراهم يا دنانير کښې اوکړې شو.يعنى غنم راس المال او دراهم يا دنانير مسلم فيه جوړکړې شو.نو په دې صورت کښې هم عقدسلم ناجائز دې.

**دليل عدم الجواز في الدراهم والدنانير>** د عدم جواز دليل دادې.چه په دې صورت کښې دراهم او دنانير

---

۲) غريبه الزيلعى ؒ بهذا اللفظ ثم أخرج لجواز بيع السلم رواية ابن عباس (رضي الله عنهما) قال قدم النبى ﷺ والناس يساغون في التمر السنتين والثلاث فقال من أسلف في شئ فليسلف في كيل معلوم و وزن معلوم إلى أجل معلوم وعزاه محقق نصب الراية احمد شمس الدين إلى البخارى في السلم باب ١ ومسلم في المساقاة رقم ١٢٧ وأبوداود في البيوع باب ٥٥ رقم ٣٤٦٣ والنسائى في البيوع باب ٦٣ والترمذى في البيوع باب ٦٨ وابن ماجه في التجارات باب ٥٩ والدارمى في البيوع باب ٤٥ وأحمد في المسند (٢١٧/١)_

١) تقدم تخريجه_

مسلم فیه دی.حالانکه دا مسلم فیه جوړول صحیح نه دی.خکه چه مسلم فیه داسې څیز کیدل پکار دی.کوم چه مبیع وی.او په متعین کولو سره متعین کیږی.او دراهم او دنانیر ثمن وی.په متعین کولو سره نه متعین کیږی.نوهرکله چه دراهم او دنانیر ثمن وی.په متعین کولوسره نه متعین کیږی.نو ددې مسلم فیه جوړول به هم صحیح نه وی.او هرکله چه ددې مسلم فیه جوړول صحیح نه دی.نو په دې کښې به عقدسلم هم صحیح نه وی.

| وَكَذَا فِي الْمَعْدُودَاتِ الَّتِي لَا تَتَفَاوَتُ او هم دغه شان د شمار په داسې څیزونوکښې ( سلم جائز دې) په کوم کښې چه تفاوت ( کمې زیاتې) نه کیږی كَالْجَوْزِ وَالْبِيضِ لکه هګۍ او غوزان. |
|---|

**حل اللغة> المعدودات:** جمع د معدود کوم څیز چه شمارلې شی، **الجوز:** غوز، **البيض:** هګۍ

**تشریح> جوازه في المعدودات>** امام قدوری ﷫ فرمائی.چه کوم څیزونه په شمار سره خرڅولې شی.او ددې په افرادو کښې د مالیت په اعتبارسره تفاوت نه وی.لکه غوزان،او هګۍ.ددې بیع سلم هم جائز ده.

**دلیله>** خکه چه داسې عددی څیزونه چه پخپلوکښې قریب قریب وی.د هغې مقدار هم معلوم وی.او په بیانولوسره ددې وصف هم معلومیدلې شی.او ددې سپارل هم ممکن دی.اود کوموڅیزونوچه مقدار معلوم وی.او ددې وصف بیانولې شی.او ددې سپارل ممکن وی.نود هغې بیع سلم جائز وی.خکه به د عددی متقاربه بیع جائز وی.

**استواء الصغير والكبير فيه>** په عددی څیزونوکښې وړوکې او غټ برابر وی.خکه چه ددې په مینځ کښې د تفاوت اعتبار نه کولو باندې د خلقو اتفاق دې.مثلاً د چرګو په هګوکښې اګرچه معمولې شان تفاوت وی.خو خلق بالاتفاق ددې تفاوت اعتبار نه کوی.یعنی داسې نه کیږی.چه د چرګې هګۍ لږه شان غټه وی.نو ددې قیمت زیات وی.اوکه لږه شان وړه وی.نو ددې قیمت کم وی.بلکه د قیمت په اعتبارسره ټول برابر وی.

## په حیوان(څاروی) کښې د بیع سلم حکم

| وَلَا يَجُوزُ السَّلَمُ فِي الْحَيَوَانِ اود حیوان بیع سلم جائز نه ده. |
|---|

**تشریح>** په څاروکښې د بیع سلم یوصورت دا دې چه د مطلق څاروی بیع سلم شوې وی.یعنی نه نې ددې جنس بیان کړې وی.نه نې عمر بیان کړې.نه نې صفت او نه نې ددې نوع بیان کړې وی. په دې صورت کښې بالاتفاق بیع سلم ناجائز ده.دویم صورت دا دې چه ذکرشوی څیزونه بیان شوې وی.او بیع سلم شوې وی.په دې صورت کښې زمونږ په نیز ناجائز ده. ( [1] )

**دلائله>** ① نقلی دلیل دادې.چه جناب رسول الله ﷺ د حیوان بیع سلم نه منع فرمائیلې ده.( [1] )او په لفظ د حیوان کښې ددې ټول اجناس داخلیږی.تردې چه کونترې او چنړچنړې هم داخلیږی.یعنی د کونترو او چنړچنړو پشان ځناورو بیع سلم به هم ددې نص په وجه جائز نه وی.اګرچه ددې په افرادوکښې زیات تفاوت نه وی.

② عقلی دلیل دادې.چه د څاروی ذکرشوی څلور صفتونه یعنی جنس، سن ، نوع او صفت بیانولونه

---

[1] )مذهب الشافعي﷫:- ذکرشوې صورت د امام شافعی ﷫ په نیز جائز ده.امام مالك او امام احمد ﷫ هم ددې قائل دی.

[1]) من حديث ابن عباس اخرجه الحاكم في المستدرك (۲/۵۷) والدارمي في سننه (۳/۷۱) رقم ۲٦۸)

پس په څاروو کښې د مالیت او قیمت په اعتبار سره ډیر لوئې تفاوت باقي پاتې کیږي.او دا تفاوت د څاروو باطني امورو په وجه وي.مثلاً د اس تیز رفتار،او فرمانبرداره کیدل،د غلام هوښیار او عقلمند کیدل،د وینځې ښانسته کیدل،داسې کارونه دي.چه په دې کښې د خلقو شوق زیاتیدلو سره قیمت زیاتیږي.او د ذکرشوي کارونو په نه موجودکیدلو سره قیمت کمیږي.هم دا وجه ده.چه ډیر کرته دوه اسونه په جنس، سن، نوع او صفت کښې برابر وي.خود باطني امورو په وجه د یو قیمت ډیرزیات او بل کم وي.نوهم ددې باطني امورو په وجه د مسلم فیه سپارلو په وخت جګړه پیدا کیږي.او په کوم عقدکښې چه د جګړې پیدا کیدلو امکان وي.هغه عقدفاسد وي.په دې وجه مونږ اوویل.چه دڅاروو بیع سلم ناجائز او فاسد دې.

## د حیوان د اندامونو د بیع سلم حکم

وَلَافِي أَطْرَافِهِ او دڅاروي طرفونه کښې هم ( بیع سلم) جائز نه ده

**تشریح> حرمة السلام في اطراف الحيوان>** ابو الحسن قدوری ﷫ فرمائي.چه د څاروو د سرونو او خپو بیع سلم جائز نه ده.

**دليله>** ځکه چه د څاروو په سرونو او خپوکښې د غټ والي او ورکوټوالي په وجه په مالیت کښې ډیرلوئې تفاوت وي.نوګویا دا عددی متفاوت شو.ددې دپاره څه اندازه نشی لګولې کیدلې.او وړاندې تیرشوي دي.چه د عددی متفاوت بیع سلم جائز نه وي.ځکه به د څاروو د سرونو او خپو بیع سلم جائز نه وي.

قَالَ فرمائي وَلَافِي الْجُلُودِ عَدَدًا او د څرمنو بیع سلم په شمار سره،

**تشریح> حرمة السلم في الجلود عددا>** ابو الحسن قدوری ﷫ فرمائي.چه د څاروو په څرمنوکښې هم عدداً بیع سلم جائز نه ده.ځکه چه څرمنې عددی دي.او په دې کښې بعض څرمنې غټې او بعض وړې وي.دغه شان د بعض پلنوالې کم او د بعض زیات وي.بهرحال ددې تفاوت په وجه ددې په مالیت کښې هم ډیر لوئې تفاوت وي.او وړاندې تیرشوي دي.چه د عددی متفاوت بیع سلم د ،،مفضی الی المنازعه،، کیدلو په وجه چونکه ناجائز وي.ځکه به د څرمنو بیع سلم هم ناجائز وي.( [1] )

**عدد القيد ليس احترازيا>** علامه بدرالدین عیني ﷫ په بنایه کښې لیکلي دي.چه (ولافي الجلود عددا) کښې د عدداً قیدنه به دا نشی ګنړلې.چه د څرمنو بیع سلم وزناً جائز ده.ځکه چه څرمنې عددی دي.نوهرکله چه ددې بیع سلم عدداً جائز نه دې.نو وزناً به په طریق اولی جائز نه وي.ځکه چه په عرف عام کښې د څرمنو وزن نه کیږي.

وَلَافِي الْحَطَبِ حُزَمًا وَلَافِي الرَّطْبَةِ جُرُزًا او د لرګو بیع سلم په ګیډو سره،او د ګیا بیع سلم په ګیډو سره جائز نه ده لِلتَّفَاوُتِ فِيهِمَا.ځکه چه ( ددې په افرادوکښې) تفاوت وي.

**حل اللغة> الحطب:** لرګي، **حزم:** ګیډې، **الرطبة:** تازه ګیاه

**تشریح> حرمة السلم في الحطب حزما>** ابو الحسن قدوری ﷫ فرمائي.چه د سوزولو د لرګو بیع سلم د ګیډو په حساب سره اود سبزیانو اود څاروو د وندې بیع سلم په شکرئ اود ګیډو په حساب سره جائز نه ده.مثلاً یو کس د سل روپو راس المال په عوض لس ګیډئ خشاك مسلم فیه مقررکړلو.یانې د سل

[1] ، مذهب مالك﷫:_ امام مالك ﷫ فرمائیلي دي.چه د څرمنو بیع سلم جائز ده.

روپو راس المال په عوض لس ګیډۍ سبزي یا ګیا مسلم فیه مقرر کړله.نودا ناجائز ده.
**دلیله:** ځکه چه په ګیډو او پنډ کښې د اوګدوالي او لنډوالي اود پیړوالي په حساب سره ډیر لوئې تفاوت وي.مثلاً یوه ګیډۍ خو هغه ده.چه په هغې کښې دوه دوه ګزه اوږده لرګي تړلي شوي دي.او یوه ګیډۍ هغه ده.چه په هغې کښې یو یو ګز اوږده لرګي تړلي شوي دي.دمالیت په اعتبار سره دا دواړه ګیډۍ ځکه برابر کیدلې شي.او دغه شان یوه ګیډۍ هغه ده.کومه چه په دوه ګزه رسۍ کښې تړلې شوې ده.او یوه ګیډۍ هغه ده.کومه چه په یوګز رسۍ کښې تړلې شوې ده.ښکاره ده.چه دا دواړه ګیډۍ په مالیت کښې برابر نشي کیدلې.نو چونکه په ګیډو او پنډ کښې تفاوت وي.ځکه به د مسلم فیه مجهول کیدلو په وجه ددې بیع سلم هم جائز نه وي.
**صورة الجواز>** خوکه ګیډۍ او پنډ (بوج) معلوم شي.مثلاً مسلم الیه دهغې رسۍ اوږدوالي بیان کړي.په کومه رسۍ چه ګیډۍ او پنډ اوتړلې شي.مثلاً داسې اووائي.چه دا رسۍ یوه لیشت یا یوګز وي.نو په دې صورت کښې به د ګیډۍ او پنډ په حساب سره به هم بیع سلم جائز وي.په دې شرط چه ګیډۍ او پنډ په داسې اندازه وي.چه په دې کښې تفاوت نه وي.او که ددې باوجود تفاوت وي.نو جائز نه دې.

## د مسلم فیه موجود کیدلو شرط

| |
|---|
| لَا يَجُوزُ السَّلَمُ بيع سلم جائز نه ده حَتّٰى يَكُونَ الْمُسْلَمُ فِيهِ مَوْجُودًا مِنْ حِينِ الْعَقْدِ إِلٰى حِينِ الْمَحِلِّ، تردې چه عقدسلم د عقد دوخت نه واخله د اداکولو د وخت پورې موجود وي |

**تشریح> حرمة السلم في شئ غير موجود>** ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه زمونږ په نیز د بیع سلم جائز کیدلو شرط دادې.چه مسلم فیه د عقد په وخت هم موجود وي.د اداکولو په وخت هم موجود وي.او ددې دواړو وختونو په مینځ کښې هم موجود وي.که مسلم فیه د عقد په وخت کښې بازار کښې نه ملاویږي.اود ادا کولو په وخت ملاویږي.یا د عقدپه وخت بازارکښې ملاویږي.خود اداکولو په وخت نه ملاویږي.یاد عقدپه وخت هم ملاویږي.اود ادا کولو په وخت هم ملاویږي.خو په مینځ کښې څه وخت دپاره بازار نه منقطع شوې وي.نو په دې درې واړه صورتونوکښې بیع سلم جائز نه ده.([1])
**دلائله>** ① دلیل دادې.چه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي.چه تاسو په میووکښې بیع سلم مه کوئ.تردې چه ددې صلاح ښکاره شي.([1]) یعني ترکومه پورې چه میوې د نفع اخستلو قابل نه وي.ددې بیع سلم مه کوئ.ددې حدیث نه معلومه شوه.چه د عقدسلم په وخت د میوو نافع کیدلو حالت کښې کیدل ضروري دي.او هم ددې نه ثابته شوه.چه د عقد په وخت د مبیع موجود کیدل شرط دي.ځکه چه د صلاح ښکاره کیدلو نه وړاندې مبیع یعني میوې معدوم دي.اوپه دې باندې د ټولو اجماع ده.چه د اداکولو په وخت د مبیع موجودکیدل شرط دي.
② دویم دلیل دادې.چه مسلم الیه، مسلم فیه هغه وخت سپارلې شي.چه کله دې دا حاصل کړي.اوهغه وخت نې حاصلولې شي. چه کله دا څیز په بازارکښې موجود وي.په دې وجه د مقرر میعاد په موده کښې ددې څیز برابر په بازارکښې موجود پاتې کیدل ضروري دي.چه مسلم الیه ددې په

---

[1] **مذهب الشافعي رحمه الله:** - حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي.که مسلم فیه د اداکولو په وخت موجود وي.بیا هم بیع سلم جائز دې.اګرچه د عقد په وخت بازار کښې نه ملاویږي.ګویا امام شافعي رحمه الله د سلم د جواز دپاره د اداکولو په وخت د مسلم فیه موجود کیدلو اعتبار کوي.امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.

[1] من حديث عبدالله بن عمر رضي الله عنهما أخرجه أبوداود في البيوع باب ٥٦ رقم ٣٤٦٧ وابن ماجه في التجارات باب ٦١ رقم ٢٢٨٤_

سپارلو باندې قادر وي.

## د میعاد( نیټې ) نه بغیر د بیع سلم حکم

| وَلَایَجُوْزُالسَّلَمُ او عقدسلم نه جائز کیږي اِلَّامُؤَجَّلًا مګر میعادي ( په نیټه) |
|---|

**تشریح> جواز السلم موجلا>** د میعاد نه بغیر عقدسلم جائز نه دې.د امام مالك او امام احمد رحمه الله هم دا مذهب دې.اود امام شافعي رحمه الله په نیز جائز دی.مثلاً یوکس اووئیل.چه ما ددې لس درهمو عقدسلم په یو کُر غنمو( چه ددې دا صفتونه دی) کښې اوکړله.اود فوری طور سپارلو شرط ئې اولګولو.یا ئې میعاد مقررنکړلو.نودا عقدسلم زمونږ په نیز ناجائز دې.([1])

**دلائله>** ① دلیل د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا قول دې.(من أسلم منکم فلیسلم فی کیل معلوم و وزن معلوم إلی أجل معلوم)([2]) په دې حدیث کښې رسول الله صلی الله علیه وسلم چه څنګه په مسلم فیه کښې د کیل معلوم یا وزن معلوم کیدلو شرط بیان کړې دې.دغه شان ئې د میعادی کیدلو شرط هم بیان کړې دې.ددې نه معلومیږي.چه د مسلم فیه معیادی کیدل ضروری دی.

② دویم دلیل دادې.چه بیع سلم د ناچار او غریبو خلقو د ضرورت پوره کولو دپاره مشروع شوې دې.اودا ضرورت هم هغه وخت پوره کیدلې شی.چه د مسلم فیه اداکولو دپاره څه میعاد( نیټه) مقررکړې شی.چه مسلم الیه په دې موده کښې مسلم فیه حاصل کړي.او رب السلم ته ئې اوسپاري.اوکه مسلم الیه فی الحال په مسلم فیه سپارلو باندې قادر وي.نو چونکه په دې صورت کښې مرخص ( د رخصت سبب) یعني ضرورت اونه مونډې شو.په دې وجه به د حکم یعني (لاتبع مالیس عندك) مطابق وي.حاصل دادې.چه د معدوم بیع باطل او ناجائز وي.خود غریبانو ضرورت پوره کولو دپاره دمسلم فیه معدوم کیدلو باوجود بیع سلم جائز ګرځولې شوې دې.خو چه کله مسلم الیه فی الحال د مسلم فیه په سپارلو باندې قادر وي.نودا ضرورت به متحقق نه وي.او هرکله چه د بیع سلم جائز کیدلو ضرورت متحقق نشو.نو بیع سلم به هم جائز نه وي.

## د معلوم اجل شرطیت

| وَلَایَجُوْزُ او بیع سلم جائز نه ده اِلَّابِأَجَلٍ مَّعْلُوْمٍ مګر په معلوم میعاد سره |
|---|

**تشریح> الجواز في صورة اجل معلوم>** ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه هرکله په عقدسلم کښې دمیعاد شرطیت ثابت شو.نودا بیانول هم ضروری دی.چه د میعاد معلوم کیدل هم شرط دی.

**دلائله>** ① ددې دلیل وړاندې تیرشوې دې.یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم قول (من أسلم منکم فلیسلم فی کیل معلوم و وزن معلوم إلی أجل معلوم) ② دویم دلیل دادې.چه د میعاد مجهول کیدل،،مفضی الی المنازعه،، وي.په دې طریقه چه رب السلم به په نیزدې موده کښې مطالبه کوي.او مسلم الیه به په لرې موده کښې د اداکولو کوشش کوي.او داسې جهالت کوم چه،،مفضي الی المنازعه،، وي.مفسد وي.په دې وجه دمیعاد مجهول کیدل به د بیع سلم دپاره مفسد وي.لکه څنګه چه په بیع کښې جهالت د ثمن او جهالت د مبیع مفسد د بیع وي.

[1] مذهب الشافعي رحمه الله:- اود امام شافعي رحمه الله په نیز جائز دې.

[2] الحدیث المذکور تقدم تخریجه _

**قدر الاجل** > پاتې شوه داخبره چه په بيع سلم كښې د ميعاد ادنى موده څه ده؟ نو په دې باره كښې علامه مرغينانى ﷫ په هدايه كښې په كښې مسئله كښې درې اقواله بيان كړې دى. ① رومبې قول دادې.چه په بيع سلم كښې ادنى موده يو مياشت ده.[1] دليل يې د ، ،كتاب الايمان دا مسئله ده.كه يوكس قسم اوخوړلو.چه زه به ستا قرضه عاجلاً ادا كوم.بيانې د يومياشت پوره كيدلو نه مخكښې مخكښې ادا كړله.نو ددې كس قسم پوره شو.ددې مسئلې نه معلومه شوه.چه د يومياشت نه كم دعاجل په حكم كښې دې.او هركله چه ديو مياشت نه كم دعاجل په حكم كښې دې.نو يو مياشت او ددې نه زيات به د آجل په حكم كښې وى. ② دويم قول د درې ورځو دې. دليل يې دخيارشرط موده ده.③ دريم قول د نيمې ورځې نه د زيات دې. دليل يې دا دې.چه معجل هغه ته وائى.په كوم چه په مجلس كښې دننه قبضه اوكړې شى.او په كوم چه د مجلس نه روسته قبضه اوكړې شى.هغې ته مؤجل وائى.او عام طور باندې مجلس نيمې ورځې پورې باقى پاتې كيږى.د نيمې ورځې نه زياتى باقى نه پاتې كيږى.په دې وجه د اجل او ميعاد كم نه كم موده به د نيمې ورځې نه زيات وى.علامه مرغينانى ﷫ فرمائيلى دى .چه رومبې قول زيات صحيح دې.ځكه چه يوه مياشت يوه داسې موده ده.چه په دې كښې د مسلم فيه حاصلول ممكن دى.

## د معين سړى په پيمانه اوګز سره د بيع السلم حكم

| وَلَا يَجُوزُ السَّلَمُ بِمِكْيَالِ رَجُلٍ بِعَيْنِهِ وَلَا بِذِرَاعِ رَجُلٍ بِعَيْنِهِ او بيع سلم د يو معين سړى په پيمانه،اود معين سړى په ګز سره جائز نه دې |
|---|

**حل اللغة** > **ذراع**: ګز ، **رجل**: سړى

**تشريح** > **حرمة السلم بمكيال رجل بعينه** > صورت د مسئلې دادې.كه د يومعين سړى يوه ذاتى پيمانه وى.چه د هغې مقدار معلوم نه وى.يا ذاتى ګز وى.چه ددې مقدار معلوم نه وى.نو په دې پيمانه اوګز سره به بيع سلم جائز نه وى.

**دليله** > ځكه چه په بيع سلم كښې د مسلم فيه سپارل د ميعاد پورې مؤخر وى.او په دې موده كښې ددې مخصوص پيمانې اوګز ضائع كيدل ممكن دى.نود ضائع كيدلو په صورت كښې به د مسلم فيه سپارلو په وخت د رب السلم او مسلم اليه په مينځ كښې جګړه پيدا شى.په دې طريقه چه رب السلم به د پيمانې د غټ والى دعوه كوى.او مسلم اليه به د وركوټى كيدلو دعوه كوى.اوكوم څيز چه جګړه پيدا كوى.مفسد د بيع وى.په دې وجه چه داسې مخصوص پيمانه او مخصوص ګز سره چه ددې مقدار معلوم نه وى.بيع سلم جائز نه دې.دا مسئله د كتاب البيوع په شروع كښې تيره شوې ده.په ذكرشوى دليل سره دا خبره واضح كيږى.چه ددې مخصوص پيمانې يا مخصوص ګز كه مقدار معلوم وى.نو بيع سلم جائز دې.ځكه چه د مقدار معلوميدلو نه پس كه دا لوخې او پيمانه ضائع هم شى.بيا به هم د جګړې څه امكان نه وى.دغه شان كه ددې پيمانې مقدار معلوم نه وى.خود مبيع سپارل فوراً وى.نو بيا به هم بيع جائز وى.ځكه چه په دې صورت كښې د پيمانې ضائع كيدل ډير ناآشنا دى.او هركله چه ددې مخصوص پيمانې ضائع كيدل ناآشنا دى.نو هيڅ جګړه به هم نه پيدا كيږى.

[1] ) القول الراجح هو هذا قول ان الأجل أدناه شهرا كذا في فتح القدير(٦\٢١٩) والكفاية (٦\٢١٩) وردالمختار (٤\٢٣٠) والبحرائق (٦\١٦٠) والزيلعي(٤\١١٥) نقلاً عن القول الراجح(٢\٧٧)-

## د معين كلي په غله ياد معين وُني په ميوه كښې د بيع سلم حكم

| |
|---|
| وَلَافِي طَعَامِ قَرْيَةٍ بِعَيْنِهَا ولافي ثَمَرَةِ نَخْلَةٍ بِعَيْنِهَا اود يو متعين كلي په غله ياد متعين وُنې په ميووكښې بيع سلم جائز نه دي |

**حل اللغة>** **قرية**: كلي، **نخلة**: د قجورې ونه. **ثمرة**: ميوه،

**تشريح>** **حرمة السلم في طعام قرية بعينها>** ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه د يو متعين كلي غله ياد متعين وُنې يا د متعين باغ ميوو بيع سلم جائز نه ده. مثلاً د ديوبند غنم، ياد دهره دون اوريژې،يا د حامد د باغ د ميوو بيع سلم نودا جائز نه دي.

**دليله>** دليل دادې. چه كله كله ددې متعين كلي غله ياد متعين وُنې په ميوو باندې آسماني آفت راځي.او دا تباه او برباد كوي.او ددې مخصوص كلي غله يا د مخصوص وُنې يا د مخصوص باغ ميوې د خلقو د لاس نه منقطع كيږي.اوپه بازاركښې نه ملاويږي.اوهركله چه داخبره ده.نو مسلم اليه به د مسلم فيه په سپارلو باندې قادر نه وي.او په كوم صورت كښې چه مسلم اليه د مسلم فيه په سپارلو باندې قادر نه وي.په هغه صورت كښې بيع سلم جائز نه وي.په دې وجه د متعين كلي غله ياد متعين وُنې ياد متعين باغ ميوو بيع سلم جائز نه دې.دې طرف ته رسول الله ﷺ اشاره فرمائيلې ده.نقل دى.چه دأنه سئل عن السلم في ثمر فلان فقال أما من ثمر حائط فلان فلا أرأيت اذهب الله الثمر بم يستحل أحدكم مال أخيه) يعنى، ،د رسول الله ﷺ نه د فلانى سړى د ميوو بيع سلم په باره كښې تپوس اوكړې شو.نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.چه د فلانى سړى د باغ د ميوو بيع سلم جائز نه دى.تاسو اوګورئ.كه چرې الله تعالى د فلانى سړى ميوې ضائع كړى.نو په تاسو كښې به څوك د كوم څيز په عوض د خپل رور مال حلال ګڼړى؟، ،حاصل د حديث دادې.چه د متعين سړى د باغ د ميوو بيع سلم جائز نه دى.ځكه كه دا متعين باغ د آسماني آفت په نتيجه كښې هلاك شو.نود خپل رور يعنى د رب السلم راس المال به د كوم څيز په عوض حلال ګڼړې.يعنى هركله چه دا متعين ميوې هلاكيدلو په وجه رب السلم ته حاصل نشوې.نود مسلم اليه دپاره به راس المال څنګه حلال وى.ددې حديث نه داهم ثابتيږى.چه د يو متعين كلى غله،يا د متعين وُنى ياد متعين باغ د ميوو بيع سلم جائز نه دى.

**صورة الجواز>** اوكه د يوكلي طرف ته نسبت كول د صفت بيانولو په غرض سره وى.مثلاً كله چه د مليح آباد آم اوونيلي شى.نو په دې سره د مليح آباد متعين مقام مراد نه وى.بلكه مراد داوى.چه د مليح آباد پشان آمونه مقصود دى.كه په مليح آباد كښې پيدا شوى وى.اوكه په بل ځاى كښې پيدا شوى وى.نوكه كلي طرف ته نسبت صرف د صفت بيانولو دپاره وى.نو په دې كښې هيڅ باك نشته.يعنى په دې صورت كښې بيع سلم جائز دې.لكه مثلاً په بخاراكښې ئې هغه غنم مسلم فيه جوړكړل.كوم چه د بخارا يو كلي، ،خشمران، ،طرف ته منسوب دى.او په فرغانه كښې ئې هغه غنم مسلم فيه مقرركړل.كوم چه د فرغانه كلي، ، بساخ، ،طرف ته منسوب دى.حاصل داچه په بخاراكښې بنه غنم د ، ،خشمران، ،او په فرغانه كښې د ، ،بساخ، ، هغې ته ونيلې شى.نوكه خشمرانى يا بساخى غنم ئې مسلم فيه مقرركړل.نو ددې نه به د هغه متعين ځايونو غنم مراد نه وى.بلكه ددې مطلب به دا وى.چه غنم بنه وى.لكه څنګه چه د خشمران اود بساخ وى.كه دا ددې ځاى وى.اوكه د بل ځاى وى.

## د بيع السلم شرائط

| |
|---|
| وَلَا يَصِحُّ السَّلَمُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ اود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز عقدسلم نه صحيح كيږى إِلَّا بِسَبْعِ شَرَائِطَ خو په اووه شرطونو سره تذكر في العقد كوم چې په عقد كښې ذكر كولى شى جِنْسٌ مَعْلُومٌ چې |

جنس معلوم وی وَنَوْعٌ مَعْلُومٌ او نوع معلوم وی وَصِفَةٌ مَعْلُومَةٌ او صفت معلوم وی ) وَمِقْدَارٌ مَعْلُومٌ او مقدار معلوم وی وَأَجَلٌ مَعْلُومٌ یا په دومره اندازه وزن وی.او میعاد معلوم وی.

**حل اللغة>** **الحنطة:** غنم، **الشعير:** اوربشه، **جيد:** ښه ، **ردي:** خراب

**تشريح> الشروط السبعة لصحة السلم>** ابو الحسن قدوری ﷫ فرمائی.چه دامام اعظم ﷫ په نيز د بيع سلم صحيح کيدلو اووه شرطونه دی.په دې کښې پنځه شرطونه د امام صاحب او صاحبينو ﷭ په مينځ کښې متفق عليه دی.او باقی دوه مختلف فيه دی. ① جنس معلوم وی.مثلاً دا اووائی.چه مسلم فيه غنم وی.یا به اوربشې وی.یا به اوريژې وی. ② نوع معلوم وی.مثلاً دا اووائی.چه مسلم فيه داسې غله وی.کوم چه په اوبو سره اوبه شوې وی.یا داسې وی.چه صرف د باران په اوبو سره اوبه شوې وی.③ صفت معلوم وی.مثلاً دا اووائی.چه مسلم فيه به ښه ( کره) وی.یا ردی وی.یا به اوسط درجه والا وی.④مقدار معلوم وی.مثلاً دا اووائی.چه مسلم فيه شل کُره یا شل رطله وی.یا شل قفيزه وی.یا شل منه وی.بهرحال مسلم فيه چه په کوم پيمانې یا وزن سره مقرر کړې شو.چه هغه پيمانه په خلقو کښې مشهوره او په بازارکښې مروج وی.⑤ ميعاد معلوم وی.مثلاً دا اووائی.چه مسلم اليه به شپږ مياشتې پس مسلم فيه ادا کوی.

**دليله>** علامه مرغينانی ﷫ فرمائيلی دی .چه ددې شرطونو په سلسله کښې اصل هغه حديث دې.کوم چه وړاندې روايت کړې شوې دې.يعنی (من أسلم منكم فليسلم في كيل معلوم ووزن معلوم إلى أجل معلوم) په دې حديث کښې اگرچه دوه شرطونه ، ،مقدار معلوم او ميعاد معلوم، ، په صراحت سره ذکر دی.خو دلالةً باقی شرطونه هم ښکاره دی.او عقلی دليل هم وړاندې تيرشوې دې.که په ذکرشوی شرطونوکښې هيڅ يو شرط او نه موندې شی.نود انجام په اعتبار سره به جگړه پيدا شی.او جگړه مفسد د بيع وی.په دې وجه د ذکرشوی شرط موجود کيدل د سلم د صحت دپاره ضروری دی.

**بقيه شرائط**

وَمَعْرِفَةُ مِقْدَارِ رَأْسِ الْمَالِ (¹) اود راس المال مقدار معلوم وی إِذَا كَانَ مَا يَتَعَلَّقُ الْعَقْدُ عَلَى مِقْدَارِهِ کله چه عقدسلم ددې د مقدار سره متعلق وی كَالْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ لکه مکيلی، موزونی وَالْمَعْدُودِ او معدودی

**تشريح> شرط معرفة قدر راس المال>** که د عقد تعلق د راس المال مقدار سره وی.يعنی د مسلم فيه اجزاء اود راس المال په اجزاؤ باندې منقسم وی.مثلاً راس المال د مکيلات د قبيلې څخه وی.یاد موزونات د قبيلې څخه وی.یاد معدودات متقاربه د قبيلې څخه وی.نو په کيل یا وزن یا عدد سره ددې مقدار پيژندل ضروری دی.اگرچه راس المال طرف ته اشاره شوې وی.دا د امام ابو حنيفه ﷫ مذهب دې امام مالك،امام احمد او امام شافعی ﷭ هم ددې قائل دی.(عينی)

**دليله>** د حضرت امام ابوحنيفه ﷫ دليل دادې.چه د راس المال مقدار مجهول کيدل د مسلم فيه جهالت ته مستلزم دی.په دې طريقه چه د راس المال رقم مسلسل په لږه لږه خرچ کوی.نو ډير کرته داسې کيږی.چه د راس المال يوه حصه خرچ کولو نه پس بعض دراهم کهوټه راوځی.او هم په دې مجلس کښې نشی بدلولې.يعنی په کوم مجلس کښې چه مسلم اليه کهوټه دراهم رب السلم ته واپس

(¹) القول الراجح هو قول الإمام ﷫ من معرفة مقدار راس المال كذا في ردالمحتار(٤\٢٣٠) وكنز(٢٣١) والهندية (٣\١٧٨).

کړی دی.هم په دې مجلس کښې د رب السلم نه نور کره دراهم ددې په بدله کښې وانخستل.نو په دې صورت کښې نې چه څومره قدرې کهوټه دراهم واپس کړی دی.ددې په اندازه به عقدسلم فاسد وی.او چونکه د پوره راس المال مقدار معلوم نه دې.په دې وجه به دا هم معلومه نشی.چه کهوټه دراهم د راس المال کومه حصه ده.نیمه ده.یا دریمه ده.اوکه څلورمه ده.اوهرکله چه دا معلومه نشوه.نودا به هم نه معلومیږی.چه عقدسلم په څومره مسلم فیه کښې کم شو.او په څومره کښې باقی دې.او ددې نه د مسلم فیه مقدار مجهول کیدل ښکاره دی.

اود مسلم فیه مقدار مجهول کیدل بالاتفاق مفسد سلم دی.څکه به په ذکرشوی صورت کښې بیع سلم فاسد وی.اوکه د راس المال مقدار معلوم وی.نود کهوټه دراهمو په وزن سره به معلومه شی.چه بیع سلم په څومره مسلم فیه کښې کم شو.او په څومره کښې باقی دې.مثلاً د راس المال دراهم یو کلو دی.او ددې نه د څه خرچ کولو نه پس څه دراهم کهوټه اوختل.نودا کهوټه دراهم به وزن کولې شی.مثلاً که کهوټه دراهم دوه نیم سوه ګرامه وی.نو معلومه شوه.چه کهره دراهم اونیم سوه ګرامه یعنی د پوره راس المال ¾ دی.نود څلورمې حصې د مسلم فیه بیع سلم به فسخ شی.او په باقی درې حصوکښې به باقی وی.نود راس المال مقدار معلومیدلو په صورت کښې چونکه د مسلم فیه مجهول کیدل نه لازمیږی.څکه به په دې صورت کښې بیع سلم صحیح وی.اود راس المال مقدار مجهول کیدلو سره چونکه دمسلم فیه مجهول کیدل لازمیږی.په دې وجه په دې صورت کښې بیع سلم فاسد یږی.

| وَتَسْمِيَةُ الْمَكَانِ الَّذِي يُوفِيهِ فِيهِ (۱) اود هغه ځائې بیانول په کوم (ځائې) کښې چه به مسلم فیه اداکوی إِذَا كَانَ لَهُ حَمْلٌ کله چه مسلم فیه دروند بوج وی وَمُؤْنَةٌ او( په دې باندې) خرچه راځی |
|---|

**تشریح> شرط تسمية المكان الموفي فيه <** که مسلم فیه داسې څیز وی.چه دا درونډ ( بوج ) وی.اود یوځائې نه بل ځائې ته منتقل کولوکښې خرچه راځی.نود هغه ځائې بیانول هم ضروری دی.کوم ځائې چه به مسلم فیه ادا کوی. دا د امام ابوحنیفه رحمه الله مذهب دې

**دلیله>** د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه په عقدسلم کښې چونکه د اجل او میعاد کیدل شرط دی.په دې وجه فی الحال یعنی د عقدسلم په وخت د مسلم فیه سپارل نه واجبیږی.بلکه د میعاد په پوره کیدلو باندې سپارل واجبیږی.او هرهغه څیز چه د هغې فی الحال سپارل واجب نه وی.د هغې د سپارلو دپاره د عقدځائې نه متعین کیږی.نو ثابته شوه.چه د مسلم فیه سپارلو دپاره د عقدځائې متعین نه دې.په خلاف د قرض او غصب.څکه چه په قرض او غصب کښې فی الحال سپارل واجب دی.هم دا وجه ده.چه په قرضه کښې د میعاد په مقررولو سره میعاد نه مقرریږی.بلکه قرض ورکونکې که د قرض ورکولو نه فوراً پس د قرضه واپس کولو مطالبه اوکړی.نو په قرضدار به هم په دې ځائې کښې هم په دې وخت واپس کول واجب وی.او پاتې شو غصب نو په دې کښې د غصب نه فوراً پس د شئ مغصوبه واپس کول واجبیږی.بهرحال هرکله چه په قرض او غصب کښې فی الحال سپارل واجب دی.نود قرض او شئ مغصوبه واپس کولو او سپارلو دپاره به د قرض او د غصب ځائې متعین وی.او په عقدسلم کښې چونکه فی الحال مسلم فیه سپارل واجب نه دی.په دې وجه د مسلم فیه سپارلو دپاره به د عقدځائې متعین نه وی.اوهرکله چه د مسلم فیه سپارلو دپاره د عقدځائې متعین نه دې.نود

[1] ) القول الراجح هو هذا قول الإمام رحمه الله من تسمية المكان الذي يوفي فيه الثمن كذا في ردالمحتار(۲۳۰\۱٤) وكنز(۲۳۱) والهندية (۱۷۸\۳) والقول الراجح في المسئلة الثانية هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(۲۳۱\۱٤) والخانية (۳۳۳\۲) وكنز (۲۳۱) نقلاً عن القول الراجح (۷۸\۲)-

مسلم فيه سپارلو دځاني مجهول کيدلو په وجه به د انجام په اعتبار سره جګړه پيدا کيږي.ځکه چه د خايونو په اختلاف سره د اشياؤ قيمتونه مختلف وي.نو رب السلم به په داسي ځاني کښي مطالبه کوي.کوم ځاني چه د مسلم فيه قيمت زيات او ګران وي.او مسلم اليه به ني داسي ځاني کښي سپاري.کوم ځاني چه د مسلم فيه قيمت کم نه کم وي.اودا د مسلم فيه صفت مجهول کيدلو پشان شو.يعني لکه څنګه چه د مسلم فيه صفت مجهول کيدلو په صورت کښي بيع سلم جائز نه وي.نو هم دغه شان د سپارلو د ځاني مجهول کيدلو په صورت کښي به هم بيع سلم جائز نه وي.او هرکله چه د سپارلو د ځاني مجهول کيدلو سره بيع سلم جائز نه وي.نود مسلم فيه سپارلو دپاره به د ځاني بيانول هم ضروري وي.

| |
|---|
| وَقَالَ ابويوسف ومحمد لَا يَحْتَاجُ إِلَى تَسْمِيَةِ رَأْسِ الْمَالِ او صاحبين ﷬ فرماني.چه د راس المال بيانولو ضرورت نشته إِذَا كَانَ مُعَيَّنًا كله چه دا معين وي |

**تشريح> عدم شرطية تعين قدر راس المال>** صاحبين ﷬ فرماني.که راس المال په اشاره سره متعين شوي وي.نو ددي مقدار بيانول ضروري نه دي.

**دليلهما>** په دي مسئله کښي د صاحبينو ﷬ دليل دادي.چه د راس المال مقدار پيژندلو نه مقصود په راس المال سپارلو باندي قادر کيدل دي.اودا مقصود (راس المال ته) د اشاري په ذريعه متعين کولوسره هم حاصليږي. او هرکله چه په اشاره سره مقصود حاصليږي.نود کيل يا وزن يا عدد په ذريعه د راس المال مقدار پيژندلو هيڅ ضرورت پاتي نشو.اودا د ثمن او اجرت مشابه شو.يعني لکه څنګه چه په بيع کښي د مقدار بيانولو نه بغير ثمن طرف ته اشاره کول،او په عقداجاره کښي اجرت طرف ته اشاره کول کافي دي.دغه شان راس المال طرف ته اشاره کول کافي دي.ددي مقدار بيانول ضروري نه دي.اودا د کپړي د تهان پشان شو.يعني که د کپړي تهان طرف ته اشاره اوکړي.اودا راس المال مقررکړي.او ددي دګزونو مقدار بيان نکړي شو.نودا جائز دي.دغه شان که مکيلي يا موزوني يا معدودي څيز په اشاره سره متعين کړي.اودا راس المال جوړکړي.نودا هم جائز دي.اګرچه په کيل يا وزن يا عدد سره ددي مقدار نه وي بيان شوي.

| |
|---|
| وَلَا إِلَى مَكَانِ التَّسْلِيمِ اونه د مسلم فيه دسپارلو ځاني بيانولو ته حاجت شته وَيُسَلِّمُهُ فِي مَوْضِعِ الْعَقْدِ اوکوم ځاني چه عقد منعقد شو.هم هلته کښي به سپارلي شي |

**تشريح> عدم تعين المكان الموفي فيه>** اوصاحبينو په نيز د مسلم فيه د ځاني بيانول هم ضروري نه دي.بلکه هم هغه ځاني به ني سپاري.کوم ځاني چه عقدسلم واقع شوي دي.

**دلائلهما>** ① د صاحبينو ﷬ دليل دادي.چه عقدسلم کوم چه د مسلم فيه سپارل واجبونکي دي.دا هم په دي ځاني کښي موجود شوي دي.نو په کوم ځاني کښي چه عقدموجب التسليم اوموندي شو.هم په دي ځاني کښي به مسلم فيه سپارل واجب وي.اوهرکله چه په مکان عقدکښي دمسلم فيه سپارل واجب شو.نود مسلم فيه سپارلو دپاره د بل ځاني بيانول ضروري نه دي.لکه مثلاً يو کس په يوکلي کښي متعين غنم واخستل.نو په بائع به هم په دي ځاني کښي سپارل لازم وي.کوم ځاني چه ده خرڅ کړي دي.نو هم دغه شان کوم ځاني کښي چه عقدسلم واقع شوي دي.هم په دي ځاني کښي به په مسلم اليه باندي د مسلم فيه سپارل لازم وي. ② دويم دليل دادي.چه د مسلم فيه سپارل د ځاني محتاج وي.اود مسلم فيه په سپارلوکښي ټول ځايونه برابر دي.يو ته په بل باندي ترجيح نه وي.البته د عقدځاني ته د عقد په وجه چونکه ترجيح حاصل ده.ددي هيڅ مقابل نشته.په دي وجه دمسلم فيه سپارلو دپاره به د

عقدخاني متعين وي.اودا داسې ده.لکه څنګه چه د مونځ د وخت اول جزء د مقابل نه کيدلو په وجه د مونځ د نفس وجوب سبب وي.اودا د قرض او غصب پشان شو.يعنی لکه څنګه چه د قرضي اداکولو دپاره د قرض خاني متعين دې.اود مال مغصوبه اداکولو دپاره د غصب خاني متعين دې.دغه شان د مسلم فيه اداکولو دپاره د عقدسلم خاني متعين دې.

### په عقدسلم کښې په راس المال د قبضه حکم

وَلَا يَصِحُّ السَّلَمُ او سلم صحيح نه دې حَتّٰى يَقْبِضَ رَأْسَ الْمَالِ قَبْلَ أَنْ يُفَارِقَهُ فِيهِ تردې چه هم په دې مجلس کښې د جداکيدلو نه وړاندې راس المال باندې قبضه اوکړي

**حل اللغة** ﴿ **يفارق**: جدا کيږي، **الكالي**: قرض، **عاجل**: في الحال، **الأجل**: نيټه

**تشريح** ﴿ **صورة المسئلة** ﴿ صورت د مسئلې دادې.چه عقدسلم به هغه وخت صحيح وي.چه رب السلم او مسلم فيه دواړه د جداکيدلو نه مخکښې مخکښې مسلم اليه په راس المال باندې قبضه اوکړي. حاصل داچه په مجلس د عقد کښې د عاقدينو جداکيدلو نه وړاندې د مسلم اليه په راس المال باندې قبضه کول ضروري دي.

**دليله** ﴿ ځکه چه راس المال د دوه حالو نه خالی نه وي.ياخو به دا د قبيلې د نقود يعنی د دراهم او دنانيرو د جنس څنې وي.يا به د قبيلې د اعيان يعنی د خارو او کپړو د جنس څنې وي.که اول وي.نو په دې صورت کښې د دين بدين بيع يعنی د قرض بيع به د قرض په عوض شي.ځکه چه په راس المال باندې هرکله په مجلس عقدکښې قبضه اونکړې شوه.نو راس المال هم د نقود د قبيلې څنې کيدلو په وجه دين غيرمعين شو.او مسلم فيه هم قرض يعنی د مسلم اليه په ذمه دين وي.نودا د دين بيع د دين په عوض يعنی د قرض بيع د قرض په عوض شوه.حالانکه رسول الله ﷺ د کالئ بالکالئ يعنی د قرض په عوض د قرض بيع نه منع فرمائيلې ده. نو ثابته شوه.که راس المال نقد وي.نو په دې باندې په مجلس عقدکښې قبضه کول ضروري دي.

او که دويم وي.يعنی راس المال معين څيز وي.نو په مجلس عقدکښې قبضه کول ځکه ضروري دي.چه سلم واني معجل د مؤجل په عوض اخستل.يعنی په سلم کښې راس المال معجل او فوري وي.او مسلم فيه مؤجل او قرض وي.او ددې وجه داده.چه لفظ د سلم او سلف، په اسلام او اسلاف کښې لغةً د تعجيل معنی موجود ده.او چونکه په شرعي احکامو کښې د لغوي معنی رعايت کولې شي.په دې وجه د لفظ سلم او اسلام لفظي معنی متحقق کولو دپاره په احدالعوضين باندې قبضه کول ضروري دي.او چونکه داخبره منلې شوې ده.چه مسلم فيه ميعادي او قرض وي.په دې وجه دويم عوض يعنی په راس المال باندې به په مجلس د عقدکښې قبضه کول ضروري وي.

### په راس المال اومسلم فيه کښې قبل القبض د تصرف حکم

وَلَا يَجُوزُ التَّصَرُّفُ فِي رَأْسِ مَالِ السَّلَمِ اود قبضه نه وړاندې د سلم په راس المال کښې وَالْمُسْلَمِ فِيهِ قَبْلَ الْقَبْضِ اوپه مسلم فيه کښې تصرف کول جائز نه دې.

**تشريح** ﴿ **عدم جواز التصرف في راس المال قبل القبض** ﴿ ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه د بيع سلم په راس المال کښې د قبضه کولو نه وړاندې د مسلم اليه دپاره تصرف کول جائز نه دی.دغه شان په مسلم فيه کښې د قبضه نه وړاندې د رب السلم دپاره تصرف کول جائز نه دی.مثلاً خالد د حامد نه په دوه سوه درهم باندې د دوه منه غنمو بيع سلم اوکړله.او په دې عقدکښې خالد رب السلم اوحامد مسلم اليه دې.بيا حامد( مسلم اليه) ددې دوه سوه درهمو په عوض کښې د شاهد نه اس واخستلو.حالانکه

تراوسه پورې حامد په دې دوه سوه درهمو باندې قبضه نه ده کړې.نود حامد يعنی مسلم اليه دا تصرف په صحيح نه وی.دغه شان که خالد يعنی رب السلم په دوه منه غنمو يعنی په مسلم فيه باندې د قبضه کولو نه بغير دا خرڅ کړل.نوبيا هم جائز نه دی.حاصل داچه د قبضه نه وړاندې نه په راس المال کښې تصرف کول جائز دی.او نه په مسلم فيه کښې تصرف جائز دې.

**دليل عدم جواز التصرف في مال السلم** > د اول دليل دادې.چه په مجلس کښې راس المال باندې قبضه کول د بيع سلم صحيح کيدلو شرط اود الله تعالى حق دې.او تصرف کول دا باطلوی. په دې وجه د قبضه نه وړاندې په راس المال کښې تصرف کولو ته جائز ونيلی شوی دی.

**دليل عدم جواز التصرف في مسلم فيه:** د دويم دليل دادې.چه مسلم فيه مبيع وی.اود قبضه نه وړاندې په مبيع کښې تصرف کول جائز نه دی.په دې وجه د قبضه کولو نه وړاندې د مسلم اليه دپاره په مسلم فيه کښې تصرف کول ناجائز دی.

**په مسلم فيه کښې قبل القبض د شرکت او توليه حکم**

| وَلَا تَجُوزُ الشَّرِكَةُ وَالتَّوْلِيَةُ فِي الْمُسْلَمِ فِيهِ او په مسلم فيه کښې شرکت او توليه جائز نه ده قَبْلَ قَبْضِهِ وړاندې د قبض کولو د هغې نه |
|---|

**تشريح** > **عدم جواز التولية والشركة في المسلم فيه** > مسئله: د قبضه نه وړاندې په مسلم فيه کښې نه شرکت جائز دې.او نه توليه جائز ده.د شرکت صورت دادې.چه رب السلم يوکس ته اوونيل.ته ماته نيم راس المال راکړه.چه ته په مسلم فيه کښې زما سره برابر شريك شې.اود توليه صورت دادې.چه رب السلم يو بل کس ته اوونيل.که ته ماته پوره راس المال راکړې.نو پوره مسلم فيه ستا دپاره دې.

**دليله** > د شرکت او توليې د عدم جواز دليل دادې.چه د شرکت په صورت کښې په نصف مسلم فيه کښې،اود توليه په صورت کښې په پوره مسلم فيه کښې د قبضه نه وړاندې تصرف کول لازميږی.او وړاندې تير شوی دی.چه د قبضه نه وړاندې په مسلم فيه کښې تصرف کول ناجائز دی.په دې وجه په مسلم فيه کښې نه شرکت جائز دې.او نه توليه جائز ده.

**په جامو کښې د بيع سلم حکم**

| وَيَصِحُّ السَّلَمُ فِي الثِّيَابِ چه په کپړو کښې سلم صحيح دې إِذَا سَمَّى طُولًا وَعَرْضًا وَرُقْعَةً کله چه ددې اوږدوالې، پلن والې، پيړوالې او نرې والې بيان کړی |
|---|

**حل اللغة** > **الثياب:** جمع ثوب،جامه، **طول:** اوږدوالې، **عرض:** پلنوالې، **مقدور:** قابل قدرت

**تشريح** > **جواز السلم في الثياب** > ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.که د وړئ کپړې اوږدوالې،پلن والې، پيړوالې او نرې والې ئې بيان کړې وی.نو ددې بيع سلم جائز دې.

**دليله** > ځکه چه په دې صورت کښې کپړه معلوميږی.او ددې سپارل ممکن دی.او وړاندې تيرشوی دی. چه د شئ معلوم، مقدورالتسليم بيع سلم جائز وی.ځکه به ددې کپړې بيع سلم هم جائز وی.

**په ياقوت او غمو کښې د بيع سلم حکم**

| وَلَا يَجُوزُ السَّلَمُ فِي الْجَوَاهِرِ وَلَا فِي الْخَرَزِ او په ياقوت او غمو (موتيانو) کښې بيع سلم جائز نه دې |
|---|

**تشريح** > **حرمة السلم في الجواهر** > مسئله: په ياقوت او غمی چونکه عددی دی.اود ماليت په اعتبار سره ددې په افرادو کښې ډيرزيات تفاوت وی.

**دليله** > ځکه ددې بيع سلم جائز نه دې.

## په پخو او کچه خښتوکښې د بیع سلم شرط اوحکم

وَلَابَأسَ بِالسَّلَمِ فِي اللَّبِنِ وَالْآجُرِّ او په کچه او پخو خښتو کښې بیع سلم کولوکښې هیڅ باك نشته إِذَا سَمَّى مَلْبَنًا مَعْلُومًا کله چه یوه معلومه سوانچه بیان کړې شي

**تشریح> جواز السلم في اللبن والاجر>** مسئله: خښتې که کچه وي.او که پخې وي.که ددې سانچه متعین شوې وي.نو ددې بیع سلم جائز ده.

**دلیله>** ځکه چه خښتې د عددیات متقاربه څخې دي.یعنې په مالیت کښې ددې افراد متفاوت نه وي.او د عددی متقارب بیع سلم چونکه جائز وي.ځکه به د خښتو بیع سلم هم جائز وي.په دې شرط چه ددې سانچه متعین کړې شوې وي.

## د بیع سلم قاعده کلیه

وَكُلُّ مَا أَمْكَنَ ضَبْطُ صِفَتِهِ وَمَعْرِفَةُ مِقْدَارِهِ اوهر یو داسې څیز چه ددې صفت معلومول او ددې مقدار پیژندل ممکن وي جَازَ السَّلَمُ فِيهِ نود هغې بیع سلم جائز ده وَمَا لَا يُضْبَطُ صِفَتُهُ اود کوم څیز چه صفت نه معلومیږی وَمعرفة مِقْدَارِهٖ او نه ددې مقدار معلومیدې شی لَا يَجُوزُ السَّلَمُ فِيهِ نو په هغې کښې بیع سلم جائز نه ده

**حل اللغة> أمكن:** ممکن وی، **الضبط:** حفاظت، **المنازعة:** جګړه، **تفضي:** مفضی کیږی

**تشریح> القاعدة الاولي>** ابو الحسن قدوری ﷫ په دې عبارت کښې یوه قاعده بیانوی.ددې حاصل دا دې.چه د کوم څیز صفت معلومول او ددې مقدار پیژندل ممکن وی.د هغې بیع سلم به هم جائز وی.لکه مکیلات، موزونات، مزروعات او عددیات متقاربه.

**دلیله>** دلیل دادې.چه د داسې څیز په سپارلوکښې دځه جګړې امکان نشته.اوهرکله چه د جګړې امکان نشته.نو بیع سلم به هم جائز وی.

**القاعدة الثانية>** اود کوم څیز صفت معلومول او ددې مقدار پیژندل چه ممکن نه وی.نود هغې بیع سلم جائز نه دې.

**دلیله>** ددې دلیل دادې.چه مسلم فیه دین وی.یعنی د مسلم الیه په ذمه واجب وی.او دین یعنی کوم څیز چه د مسلم الیه په ذمه واجب وی.هغه د وصف بیانولو نه بغیر مجهول او غیرمعلوم پاتې وی.اومجهول هم داسې چه، «مفضی الی المنازعه»، وی.او داسې جهالت چه د انجام په اعتبارسره جګړه پیدا کړی.مفسد د بیع وی.په دې وجه که د مسلم فیه وصف بیان شوې نه وی.او ددې مقدار معلوم نه وی.نو ددې بیع سلم به جائز نه وی.

## د شلونکو، معلم اوغیرمعلم، ځناورو د بیع حکم

وَيَجُوزُ بَيْعُ الْكَلْبِ وَالْفَهْدِ وَالسِّبَاعِ چه د سپو، پړانګ، او شلونکو ځناورو بیع جائز ده

**حل اللغة> الكلب:** سپې، **الفهد:** پړانګ، **السباع:** درنده،

**تشریح> جواز بيع الكلب والفهد والسباع>** شیخ ابوالحسن قدوری ﷫ فرمائی.چه د سپی، پړانګ اود شلونکی( ماتونکی) ځناورو مثلاً د شیر، زمری ( او پړانګ) وغیره بیع جائز ده.

**دلائله>** ① د عبدالله بن عمروبن العاص ﷠ حدیث دلیل دې.«انه ﷺ قضى في كلب قتله رجل بأربعين درهماً» یعنی یوسړی یو سپې مړکړلو.نود الله رسول ﷺ د څلویښت درهمو تاوان فیصله اوکړله. په دې

روايت كښې سپې مطلق دې.او په هلاكونكي باندې تاوان واجب كړې شوې دې.اوتاوان واجبول د سپي متقوم يعنى په قيمتى كيدلو باندې دليل دې.اود مال متقوم بيع جائز وى.څكه به د سپى بيع جائز وى.

**السوال>** خو په دې باندې اشكال دې.چه امام طحاوى ﷺ په شرح آثاركښې دا حديث په(الا كلب صيد) الفاظو سره ذكر كړې دې.په دې صورت كښې د ښكارى سپى متقوم كيدل ثابتيږى.دمطلق سپى متقوم كيدل نه ثابتيږى.

**الجوابان>** يوجواب دادې.چه په حديث(نهى عن بيع الكلب الا كلب صيد او ماشية) سره د ټولو سپو د بيع جواز ثابتيږى.څكه چه هر يو سپې د څاروو د رمې دحفاظت صلاحيت لرى.په دې طريقه چه د غلا او زمرى وغيره په كتلو سره ټول سپى غاپى.او ددوى دا غپيدل ددې حفاظت كول دى.نو لفظ ماشيه لاندې ټول سپى داخليږى.

دويم جواب دادې.چه د(كلب صيد) اود(كلب ماشية) د بيع جواز خو په حديث سره صراحةً او عبارت النص نه ثابت دې.او ددې نه علاوه نور سپى ددې سره دلالة النص په طريقه لاحق دى.دغه شان د ټولو سپو بيع جائز كيدل ثابتيږى.

③ عقلى دليل دادې.چه مطلق سپې قابل انتفاع دې.ددې نه د حفاظت كار هم اخستلې شى.اود ښكار كارهم اخستلې شى.اوكوم څيز چه منتفع به وى.هغه مال وى.څكه چه مال د سړى ن: علاوه دهغه څيز نوم دې.كوم چه شرعاً د سړى د نفع دپاره پيدا شوى وى.نو معلومه شوه.چه مطلق سپې مال دې.اود مال بيع جائز ده.نود سپى بيع به هم جائز وى.په خلاف د مار، لړم، وغيره موذى څناورو،چه ددې بيع جائز نه ده.څكه چه حشرات الارض غيرمنتفع بها دى.بلكه يوقسم مضر او ضرر رسان دى.اوكوم څيز چه ناقابل انتفاع وى. هغه مال نه وى.اوكوم څيز چه مال نه وى.د هغې بيع هم جائز نه وى.په دې وجه د حشراتو د زمكې اوضررى څيزونو (لكه ماراو لړم وغيره) بيع جائز نه ده.

## د شراب اود خنزير د بيع حكم

| وَلَايَجُوْزُبَيْعُ الْخَمْرِوَالْخِنْزِيْرِ اود شراب اود خنزير بيع جائز نه ده |
|---|

**تشريح> حرمة بيع الخمر والخنزير>** مسئله: د شرابو او خنزير بيع جائز نه ده.

**دلائله>** ① د شرابو په حرمت كښې اصل د الله تعالى دا قول دې.(اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ) او،، رجس،، حرام او نجس ته وائى.او په حرام څيزكښې چونكه تصرف جائز نه وى.څكه به په شرابوكښې د بيع وغيره په ذريعه تصرف كول جائز نه وى. اود خنزير په حرمت كښې اصل دا آيت دې. (اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيْرِ) نوچونكه خنزير هم حرام دې.او په حرام څيزكښې تصرف كول ناجائز دى.څكه به د خنزير بيع هم ناجائز وى.

② رسول الله ﷺ د شرابو په باره كښې فرمائيلى دى((اِنَّ الَّذِىْ حَرَّمَ شُرْبَهَا حَرَّمَ بَيْعَهَا وَاَكْلَ ثَمَنِهَا))چه چا ددې څكل حرام [1]

③ دريم دليل دادې.چه شراب او خنزير د مسلمان په حق كښې مال نه دې.لكه څنگه چه د ،،باب البيع الفاسد،، په شروع كښې تفصيل تيرشوې دې.او كوم څيز چه مال نه وى.د هغې بيع جائز نه وى.په دې

---

[1] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه مسلم فى المساقاة رقم ٦٨.

وجه د شراب او خنزير بيع جائز نه ده.

## بيوع كښې د ذميانو حكم

وَلَا يَجُوْزُ بَيْعُ دُوْدِ الْقَزِّ او جائز نه ده بيع د چينچو د ريښمو إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ مَعَ الْقَزِّ مگر دا چې د چيچو سره ريښم هم وي

**تشريح**> د ريښمو بيع جائز ده اود ريښمو د چينجو بيع جائز نه دې خوكه د چينجو سره ريښم هم وي نو بيا ئې بيع جائز ده

**دليله**> دليل يې دا دې چې چيچې مال نه دې او چې مال نه دې نو بيع ئې هم جائز نه ده البته چې ريښم ورسره وي نو د ريښمو د تابع كيدو په وجه ددې بيع جواز لري.

وَلَا النَّحْلِ اونه ده جائز بيع د شهدو د مچۍ إِلَّا مَعَ الْكُوَارَاتِ مگر دا چې د مچو سره د هغوی گبين هم وي

**تشريح**> د شهدو بيع جائز ده اود شهدو د مچۍ بيع جائز نه دې خوكه د مچۍ سره گبين هم وي نو بيا ئې بيع جائز ده

**دليله**> دليل يې دا دې چې مچۍ مال نه دې او چې مال نه دې نو بيع ئې هم جائز نه ده البته چې مچۍ گبين هم وي نو د گبينو د تابع كيدو په وجه ددې بيع جواز لري.

وَأَهْلُ الذِّمَّةِ فِي الْبِيَاعَاتِ كَالْمُسْلِمِيْنَ او ذميان خلق په بيوع كښې د مسلمانانو پشان دی.

**تشريح**> **لغة**> ذمي: هغه كافر ته وائي.كوم چه په دار اسلام كښې د مسلمانانو ماتحت اوسيږي.او جزيه وغيره وركوي.

**اهل الذمة كالمسلمين في البيع**> ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه ذمی خلق په اخستلو،خرڅولو او په نورو معاملاتوكښې د مسلمانانو پشان دی.يعنی كوم څيزونه چه مسلمانانو دپاره حلال دی.هغه به ددوی دپاره هم حلال وی.او كوم څيزونه چه د مسلمانانو دپاره حرام دی.هغه به ددوی دپاره هم حرام وی.مثلاً سود ،د خاروی بيع د خاروی په عوض په قرضو،اود يو درهم بيع د دوه درهمو په عوض په نغدو،او قرضو وغيره وغيره، دمسلمانانو دپاره حرام دی.نود ذميانو دپاره به هم حرام وی.

**دلائله**> ① ددې دليل د معاذ رضي الله عنه حديث دې.يعنی كله چه سرداردوعالم صلى الله عليه وسلم حضرت معاذ رضي الله عنه د يمن گورنر ( والی) جوړكړلو.او وې ليگلو.اوده ته ئې ډير هدايات اوفرمائيل.نو په دې كښې يو هدايت دا وو.چه معاذ ! د يمن كافران خبر كړه.چه ددوی دپاره هم هغه څيز حلال دې.كوم چه د مسلمانانو دپاره حلال دې.او په دوی باندې هغه څيز حرام دې.كوم چه په مسلمانانو باندې حرام دې.(١) ② دويم دليل دادې.چه ذمی خلق د مسلمانانو پشان د معاملاتو مكلف دی.اود خپلو خانونو په باقی ساتلوكښې د مسلمانانو پشان د خوراك څكاك،كپړو اود كورهم محتاج دی.اودا څيزونه ښكاره ده.چه د اسبابو په محنت كولوسره به حاصليږی.او په دې سببونوكښې يو سبب بيع هم ده.په دې وجه ددوی په حق كښې به بيع هم هغه شان مشروع وی.لكه څنگه چه د مسلمانانو په حق كښې مشروع ده.

إِلَّا فِي الْخَمْرِ وَالْخِنْزِيْرِ خَاصَّةً خو خاص كر په شراب او خنزيركښې فَإِنَّ عَقْدَهُمْ عَلَى الْخَمْرِ څكه چه ددوی په شرابو باندې عقد كول داسې دی كَعَقْدِ الْمُسْلِمِ عَلَى الْعَصِيْرِ لكه د مسلمانانو د انگورو په شيره

---

(١) قال الزيلعی رحمه الله لم اعرف الحديث الذي أشار إليه المنصف ولم يتقدم في هذا المعنى إلا حديث معاذ رضي الله عنه وهو في كتاب الزكاة وحديث بريدة رضي الله عنه وهو في كتاب السيرليس فيهما ذلك (نصب الراية ١٠٦/٤)_

باندې عقد کول. وَعَقْدُهُمْ عَلَى الْخِنْزِيْرِ او ددوی په خنزیر باندې عقد کول داسې دی كَعَقْدِ الْمُسْلِمِ عَلَى الشَّاةِ لکه د مسلمانانو په چیلۍ باندې عقد کول

**تشریح> استثناء الشیئین>** د دوه څیزونو استثناء ده. ① شراب ② خنزیر یعنی دا دوه څیزونه خاص طور د ذمیانو دپاره حلال دی.او ددې اخستل خرڅول هم حلال دی.خود مسلمانانو دپاره حلال نه دی.په شرابو باندې د ذمیانو عقد کول داسې دی.لکه د مسلمانانو د انگورو په شیره ( کهل او بوره) باندې عقد کول،او په خنزیر باندې ددوی عقدکول داسې دی.لکه
په چیلۍ باندې د مسلمان عقد کول.

**دلیله>** دلیل دادې.چه د عقد امان لاندې شراب او خنزیر ددوی په اعتقاد کښې مال متقوم دې.او رسول الله ﷺ مونږ ته ددې خبرې حکم راکړې دې.چه مونږ ذمیان ددوی په اعتقاد باندې پریږدو.نو هرکله چه ذمیان ددوی په اعتقاد باندې د پریخودلو حکم شوې دې.او ددوی په اعتقاد کښې شراب او خنزیر مال متقوم دې.اود مال متقوم اخستل خرڅول چونکه جائز دی.ځکه به ذمیانو دپاره د شرابو اوخنزیر اخستل خرڅول هم جائز وی.هم په دې باندې د فاروق اعظم عمربن الخطاب رضی الله عنه قول دلالت کوی.سوید بن غفله وائی.چه خلیفة المسلمین عمربن خطاب رضی الله عنه تشریف راوړلو.او خپل عمال (صدقات وغیره راټولونکی) ئې راجمع کړل.چه تاسو خلق په جزیه کښې مردار، خنزیر او شراب اخلئ.حضرت بلال رضی الله عنه اوونیل.آو دا خلق داسې کوی.حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل.داسې مه کوئ.البته تاسو ددې څیزونو مالکان ددې د خرڅولو والیان جوړکړئ.بیا ددوی نه ( په جزیه کښې) ددې ثمن اخلئ(۱).ددې واقعې نه هم معلومیږی.چه د ذمیانو دپاره د شراب او خنزیر اخستل خرڅول جائز دی.

## بَابُ الصَّرْفِ

**ترجمه** ( دا) باب د بیع صرف ( په بیان کښې) دې.

**تشریح> الربط بما قبله>** علامه عینی فرمائیلی دی لکه بیع صرف د بیع یوقسم دې.اود بیوع په انواعو کښې بیع صرف ځکه موخر کړې شوې دې.چه په بیع صرف کښې
اود وصف ذکر روستو وی.په دې وجه د بیع صرف ذکر د بیوع په اقساموکښې د ټولو نه په آخرکښې شوې دې.( بنایه ازبدرالدین عینی رحمه الله )

### د بیع صرف تعریف

الصَّرْفُ هُوَالْبَيْعُ صرف هم بیع ده إِذَاكَانَ كُلُّ وَاحِدٍمِنْ عِوَضَيْهِ مِنْ جِنْسِ الْأَثْمَانِ کله چه ددې په دواړه عوضونوکښې هر یو د ثمن دجنس څخې وی

**حل اللغة> عوضین:** تثنیه د عوض،بدله

**تشریح> تعریف بیع الصرف>** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه بیع صرف هغه بیع ده.چه ددې دواړو عوض د ثمن د جنس څخې وی.ددې درې صورتونه دی. ① سره زر د سرو زرو په عوض② سپین زر د سپینوزرو په عوض③ په دې دواړو کښې یو دبل په عوض،

**وجوه التسمیة>** ① علامه مرغینانی رحمه الله په هدایه کښې ددې عقد ، صرف نوم ایخودلو دوه وجهې بیان

(۱)اخرجه عبدالرزاق فی مصنفه فی البیوع قاله الزیلعی رحمه الله نصب الرایة ۱۰۷/۴)۔

کړي دی. ① رومبۍ وجه داده.چه د صرف لغوی معنی اړول،او منتقل کیدل دی.لکه چه د الله تعالی ارشاد دې. ﴿ثُمَّ انْصَرَفُوا صَرَفَ اللّٰهُ قُلُوبَهُمْ﴾ یعنی بیا( پاسیدل) روان شو.الله تعالی ددوی زړونه اړولی دی.اوس چونکه ددې عقد دواړه عوضونه لاس پلاس منتقل کولو او اړولو ضرورت راپیښیږی.په دې وجه ددې عقدنوم صرف کیخودې شو.

②دویمه وجه داده.چه د خلیل نحوی د بیان مطابق د صرف لغوی معنی زیاتوالي دې.په دې وجه عبادت نافله ته صرف وائي.لکه چه د رسول هاشمی ﷺ فرمان دې. (من انتمی إلی غیر أبیه لایقبل الله منه صرفاً ولاعدلاً) یعنی چاچه خپل پلار نه علاوه طرف ته خپل ځان منسوب کړلو.الله تعالی نه دده نفل قبلوی.او نه فرض قبلوی.په دې حدیث کښې لفظ د صرف عبادت نافله دپاره استعمال شوې دې.او عبادت نافله هم د فرضو نه یو زیاتی څیز دې.نو معلومه شوه.چه د صرف معنی زیاتوالي دې.اود عقدصرف نه مطلوب هم زیاتوالي دې.ځکه چه سره زر او سپین زر دواړه داسې څیزونه دی.چه ددې د ذات نه هیڅ نفع نشی اخستلې.ددې په خلاف غله، کپړې،او خر وغیره چه ددې د ذات نه نفع اخستې شی.په دې طریقه چه په غله باندې خیټه ډکولې شی.اود کپړې نه د ستر کار اخستې شی.او خر د سوارلۍ پکار راځي.نو هرکله چه د سرو او سپینو زرو ذات غیرمنتفع به دې.نو ددې د تجارت نه مقصود به زیاتوالي طلب کول وی.په دې طریقه چه د کره په بدله کښې کهوټه ورکړی.یاد سوانچه شوی نه بغیر په بدله کښې سوانچه شوی واخلي.ځکه که ددې دتجارت نه زیاتوالي هم مقصود نه وی.نو عقدصرف به د فائدې نه خالي وی. حالانکه دعقدکولو نه د عاقدینو مقصود څه ناڅه فائده ضرور وی.نو ثابته شوه.چه د عقدصرف نه زیاتوالي مقصود وی.اود صرف لغوی معنی هم چونکه زیاتوالي دې.په دې وجه ددې عقدنوم صرف کیخودې شو.

## د سرو او سپینوزرو خپل جنس سره برابر د بیع حکم

> فَإِنْ بَاعَ فِضَّةً بِفِضَّةٍ أَوْذَهَبًا بِذَهَبٍ که یوکس سپین زر د سپینو زرو په عوض یا سره زر د سرو زرو په عوض خرڅ کړل. لَا يَجُوزُ إِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ نو جائز نه دی.مګر برابر برابر وَإِنْ اخْتَلَفَا فِي الْجَوْدَةِ وَالصِّيَاغَةِ اګرچه په کره والی او سوانچه کولو کښې مختلف وی.

**حل اللغة>** **فضة:** سپین زر، **الذهب:** سره زر، **الجودة:** کره والي، **الصياغة:** قالب\سوانچه

**تشريح> صورة المسئلة>** مسئله داده.که یوکس سپین زر د سپینو زرو په عوض یا سره زر د سرو زرو په عوض خرڅ کړی.نودا عقدبه هغه وخت جائز وی.چه د وزن په اعتبار سره دواړه عوض برابر وی.ځکه چه په کره والی یا سوانچه کولوکښې د دواړو عوضونو په مینځ کښې فرق وی.په دې طریقه چه په دې دواړو کښې یو عوض اعلی او سوانچه شوې وی.او دویم ددې په مقابله کښې دومره اعلی او سوانچه شوی نه وی.حاصل داکه دواړه عوضونه په کره والی یا سوانچه کولو کښې مختلف وی.بیا هم د عقد دجواز دپاره په دواړه عوضونوکښې برابری ضروری ده.

**دلائله>** ① هادی عالم ﷺ شپږ څیزونه سره زر سپین زر مالګه چهوارې غنم اوربشې ) ذکرکولو نه پس فرمانیلی دی. (مثلاً بمثل وزناً بوزن وکیلاً بکیل یداً بید والفضل ربوا) (۱)یعنی دوه خبرې ضروری دی.یو داچه په موزوناتو کښې د وزن په ذریعه اوپه مکیلاتو کښې د کیل په ذریعه برابری وی.دویمه داچه په مجلس عقدکښې عوضینو باندې قبضه اوکړې شی.اوکه په وزن یا کیل سره برابری اونکړې شوه.یا په

---

۱) تقدم تخریجه فی البیوع)۔

مجلس کښې قبضه اونکړې شوه.نودا به رباء او حرام وي.ددې حديث نه ثابته شوه.چه د اموال ربويه په بيع کښې د عوضينو په مينځ کښې مساوات او برابري شرط ده.② دويم حديث دادې.وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جَيِّدُهَا وَرَدِيئُهَا سَوَاءٌ(۱)او نبی کریم ﷺ فرمانيلي دي چه ددې مالونو کره اوکهوټه برابر دي.يعنی په اموال ربويه کښې کره اوکهوټه دواړه برابر دي.يعنې که يوعوض کره او بل کهوټه وي.نو بياهم مساوات ضروري دې.او کموالي زياتوالي حرام دې.ددې حديث نه معلوميږي.چه شريعت اسلام دکره او کهوټه د فرق اعتبار نه دې کړې.بلکه دواړو ته ئې مساوي درجه ورکړې ده.

## په بيع صرف کښې عوضينو باندې د قبضه شرطيت

وَلَابُدَّ مِنْ قَبْضِ الْعِوَضَيْنِ قَبْلَ الِافْتِرَاقِ اود جداکيدلو نه وړاندې په دواړه عوضونو باندې قبضه کول ضروري ده

**تشريح> وجوب القبض قبل الافتراق>** د ټولو عالمانو اتفاق دې.چه په عقدصرف کښې دواړو عوضونوباندې دبدل په اعتبار سره د جداکيدلو نه وړاندې وړاندې قبضه کول ضروري دی.

**دلائله>** ① دليل منقول يعنی(يدابيد...حديث) وړاندې تيرشوې دې.د(يدابيد) معنی لاس پلاس.يا يوځائې ياد نغد په نغد ده.هم دې ته تقابض ونيلې شي.يعنی يو ترېله قبضه کول.بهرحال لفظ(يدابيد) په دې باندې دلالت کوی.که د سرو زرو بيع د سرو زرو په عوض يا د سپينو زرو بيع د سپينو زرو په عوض وی.يعنی عقدصرف وی.نو په عوضين باندې د جدا کيدلو نه وړاندې قبضه کول شرط دی.او② د بخاري شريف حديث دې.(لاتبيعوا منهاغائبا بناجز) يعنی په اموال ربويه کښې غائب د ناجز په عوض مه خرڅوئ.يعنی د اموال ربويه بيع داسې مه کوئ.چه يو عوض په مجلس کښې موجود وی.او يوعوض موجود نه وی.ځکه چه په دې صورت کښې په مجلس کښې دننه په يو عوض خو قبضه اوشی.خو دويم عوض (کوم چه موجود نه دې) باندې قبضه نه کيږی.حالانکه په دواړه عوضونو باندې په مجلس کښې دننه قبضه کول شرط دی.ددې حديث نه هم د جدا کيدلو نه وړاندې وړاندې په دواړه عوضونو باندې د قبضه شرطيت ثابتيږی.③ دحضرت عمر رضی الله عنه قول هم ددې شهادت کوی.په موطا امام مالك رحمه الله کښې دا قول په دې الفاظو سره نقل دې.(قال لاتبيعوا الذهب بالذهب إلا مثلا بمثل ولاتبيعوا الورق بالذهب أحدهما غائب والآخر ناجز وإن استنظرك أن يلج بيته فلا تنظره إلا يدا بيد هات وهات إني أخشى عليكم الربوا) (۱)حضرت عمر رضی الله عنه فرمائی.چه سره زر د سرو زرو په عوض مه خرڅوئ.مگر برابر برابر.او سپين زر د سرو زرو په عوض په داسې حال کښې مه خرڅوئ.چه يو عوض موجود نه وی.او دويم موجود وی.اوکه ستانه ( ستا ملگرې) ددې خبرې مهلت اوغواړی.چه دې خپل کور ته داخل شی.( اوغيرموجود عوض راوړی) نوده ته ددې مهلت مه ورکوه.البته که معامله د نغدو اود راکړه او واخله په طريقه وی.(نو هيڅ باك نشته)او ددې مهلت نه ورکولو وجه داده چه) زه په تاسو په رباء کولو يريږم.يعنی ماته دا يره ده.چه د کوره پورې د تلو راتلو په تاخير سره چه د قبضې په ورکولو کښې کوم تاخير اوشی.هغه رباء او سود نشی.ځکه زما رائې داده.چه ده ته دومره مهلت هم مه ورکوه.ددې نه هم دا ښکاره کيږی.چه د جداکيدلو نه وړاندې په عوضينو باندې قبضه کول ضروري ده.④ عقلی دليل دادې.چه دعقدصرف په

۲) تقدم تخريجه في البيوع۔

۱) اخرجه مالك في الموطا في البيوع رقم ۳۴۔

صورت کښې په یوعوض باندې قبضه کول ځکه ضروري دی.چه د قرض په عوض د قرض بیع لازم نشي.یعنی د قرض بیع د قرض په عوض لازم نشی.حالانکه د قرض بیع د قرض په عوض ممنوع ده.او په دویم عوض باندې قبضه کول ضروري دی.چه د دواړو په مینځ کښې برابری او مساوات متحقق شی.او رباء لازم نشی.ځکه چه په کوم عوض باندې قبضه اوکړې شوه.هغه خو نغد شو.او په کوم چه قبضه نه ده شوې.هغه قرض شو.اود(النقد خیر من النسیئة) قاعده مشهور ده.چه نغد د قرض نه غوره دې.ګویا نغدو ته په قرضو باندې یوقسم فضیلت حاصل دې.اویو عوض د بل عوض نه غوره کیدل،ددې نوم رباء دې.نو چونکه په یو عوض باندې قبضه کول،او په بل باندې قبضه نه کولو په صورت کښې رباء لازمیږی.په دې وجه د مساوات او برابری پیداکولو دپاره په دویم عوض باندې هم قبضه کول ضروري دی. ⑤ بل عقلی دلیل دادې.چه په بیع صرف کښې دواړه عوضونه چونکه په ثمنیت کښې برابردی.په دې وجه یو عوض ته په بل عوض باندې هیڅ ترجیح حاصل نه ده.او هرکله چه یوعوض په بل عوض باندې افضل او غوره نه دې.نود ترجیح بلامرجح اشکال ختمولو دپاره په دواړو عوضونو باندې قبضه کول هم ضروري دی.

**عموم الحکم>** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.چه په بیع صرف کښې دواړو عوضونو باندې دقبضه کولو حکم عام دې.که دواړه عوضونه داسې وی.کوم چه په متعین کولو سره متعین کیږی.لکه سوانچه شوې ځیزونه مثلاً زیورات، لوخی وغیره،اوکه دواړه عوضونه داسې وی.چه په متعین کولو سره نه متعین کیږی.لکه مثلاً دراهم او دنانیر.اوکه په دې کښې یو عوض داسې وی.چه په متعین کولوسره متعین کیږی.او یوعوض داسې وی.چه په متعین کولوسره نه متعین کیږی.دلیل دادې.چه الذهب بالذهب.....الخ حدیث مطلق دې.چه مضروب او مصوغ (یعنی سوانچه شوی او سکو) دواړو ته شامل دې.

**المراد من الافتراق>** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی .چه په متن کښې په(قبل الافتراق)کښې د ،،افتراق،، نه مراد افتراق بالابدان دې.یعنی د عاقدینو خپل بدن سره جداکیدل مراد دی.که عاقدین د مجلس عقدنه پاسی.او دواړه په یوطرف باندې روان شی.یا دواړه په مجلس عقدکښې اوده شی.یا په دواړو باندې بې هوشی راشی.نو په دې صورتونوکښې چونکه افتراق بالابدان نه دې موجود شوې.ځکه به په ذکرشوی درې واړه صورتونوکښې عقدصرف باطل نه وی.ددې تائید د حضرت عبدالله بن عمربن الخطاب رضی الله عنه ( جان نثار رسول صلی الله علیه وسلم،صاحبزادهٔ عمرفاروق رضی الله عنه) د قول نه هم کیږی.د مبسوط په حواله سره علامه ابن الهمام رحمه الله پوره واقعه داسې ذکرکړې ده.

ابوجبله رحمه الله وائی.چه ما د عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه تپوس اوکړو.ما اوونیل.چه مونږ خلق ملك شام ته خو.او مونږ سره چه کوم سپین زر دی.دا په وزن کښې هم درنې دی.او رائج الوقت هم دی.او دوی سره چه کوم سپین زر دی.هغه سپك هم دی.او په بازار کښې هم ددې رواج کم دې.نو آیا مونږ خلق ددوی د سپینو زرو لس حصې د نه نیمو حصو په عوض واخلو؟ ابن عمر رضی الله عنه اوونیل.داسې مه کوئ.البته خپل سپین زر،د سرو زرو په عوض خرڅوه.او ددوی سپینو زر د سرو زرو په عوض اخله.او ددوی نه مه جداکیږه.تردې چه (خپل حق) وصول کړې.اوکه دې د چهت نه راټپکته شی.نو دده سره ته هم کوزشه.

**فوائد الواقعة>** ددې واقعې نه یوڅو خبرې معلومې شوې. ①یوه داکه سپینو زر د سپینو زرو په عوض خرڅ کړې شی.نو په دې کښې کمې زیاتې جائز نه دې.ځوکه په سپینو زرو او سرو زرو کښې لین دین اوکړې شو.نو کمې زیاتې جائز دې. ② دویمه خبره دامعلومه شوه.چه په عوضینو باندې د قبضې کولو نه بغیر جدا نشی③دریمه خبره دا معلومه شوه.چه د افتراق نه مراد افتراق بالابدان دې.ځکه چه

عبدالله بن عمر ﷺ فرمائی.که د قبضه نه وړاندې ستا ملګرې د جهت نه زمکې ته راکوزشي.چه افتراق بالابدان اوشي.او عقد صرف باطل شي.نوته هم دده سره راکوزشه.چه افتراق بالابدان اونشي.او عقدصرف باطل نشي.بهرحال دا قول په دې خبره باندې دلالت کوي.چه د افتراق نه مراد افتراق بالابدان دې.

**د سرو زرو، سپینو زرو سره تفاضلا د بیع حکم**

| وَإِذَا بَاعَ الذَّهَبَ بِالْفِضَّةِ او کله چې سرۀ زر د سپینو زرو په عوض خرڅ کړی جَازَ التَّفَاضُلُ نو کمې زیاتې جائز دې وَوَجَبَ التَّقَابُضُ اوپه مجلس کښې یو تربله ( لاس پلاس) قبضه واجب ده |
|---|

**حل اللغة> الذهب:** سرۀ زر_ **الفضة:** سپین زر

**تشریح> جواز بیع الذهب بالفضة تفاضلا>** صورت د مسئلې دادې.که سره زر د سپینو زرو په عوض خرڅ کړې شو.نو په دې کښې تفاضل ( یعنې د یو کم کیدل اود بل عوض زیات کیدل) جائز دی.اود جواز وجه اتحاد جنس نه موجودیدل دی. ځکه چه د اتحاد جنس نه موجودیدلو په صورت کښې په کمې زیاتی سره خرڅول جائز وی.البته په مجلس د عقدکښې دواړو عوضونو باندې لاس پلاس قبضه واجب ده.

**دلیله>** ځکه چه د الله پاك رسول ﷺ فرمائیلی دی. ((الذَّهَبُ بِالْوَرِقِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ)) سره زر د سپینو زرو په عوض خرڅول رِبا ده.یعنې حرام دی.خو په یوځائې ورکولوسره یعنې لاس پلاس جائز دی. (۱)

| وَإِنْ افْتَرَقَا فِي الصَّرْفِ قَبْلَ قَبْضِ الْعِوَضَيْنِ أَوْ أَحَدِهِمَا بیا که عاقدین په عقدصرف کښې په عوضینو باندې د قبضه کولو نه وړاندې یا په یو عوض باندې د قبضه کولو نه وړاندې جدا شو بَطَلَ الْعَقْدُ نو عقد به باطل وی |
|---|

**تشریح> صورة بطلان الصرف>** اوکه په عقد صرف کښې عوضین یا په احدالعوضین باندې د قبضه کولو نه وړاندې عاقدین جدا شو.نو عقد صرف به باطل وی.

**دلیله>** ځکه چه د عقدصرف صحیح کیدل باقی ساتلو دپاره چه کوم شرط وو.یعنی په عوضینو باندې قبضه کول،نودا شرط چونکه فوت شوې دې.ځکه به عقدصرف باطل وی.او چونکه د قبضه کولو نه بغیر دمجلس نه د عاقدینو جدا کیدل عقدصرف باطلوی.په دې وجه عقدصرف کښې نه د خیارشرط لګول صحیح دی.اونه د میعاد شرط لګول صحیح دی.د خیارصورت دادې.چه احدالعاقدین اووئیل.چه مادا دنانیر ددې دراهمو په عوض په دې شرط واخستل.چه ماته درې ورځې خیار دې.اود میعاد صورت دادې.چه مادا دنانیر ددې دراهمو په عوض په دې شرط واخستل.چه زه به ذکرشوی دراهم یوه میاشت پس درکوم.په دې دواړو صورتونوکښې دعدم جواز وجه داده چه خیارشرط چونکه د ،،من لاخیار له،، دپاره ملك ثابتول منع کوی.ځکه به په احدالعوضین باندې د ،،من لاخیارله،،ملك ثابت نه وی.او هرکله چه دده ملك ثابت نشو.نو دده دپاره به په دې عوض باندې قبضه کول هم واجب نه وی.بهرحال د خیارشرط په صورت کښې قبضه مستحق یعنې واجب شوې نه ده.اود میعاد شرط لګولوسره واجب شوې قبضه فوت کیږی.نو په خیارشرط سره قبضه نه واجبیږی.اود میعاد شرط سره واجب شوې قبضه فوت کیږی.حالانکه په عقدصرف کښې د جدا کیدلو نه وړاندې قبضه کول شرط دی.

۱) تقدم تخریجه فی الربا)_

## په ثمن صرف کښې د قبضه نه وړاندې د تصرف حکم

| وَلَا يَجُوزُ التَّصَرُّفُ فِي ثَمَنِ الصَّرْفِ قَبْلَ قَبْضِهِ اود بيع صرف په ثمن کښې د قبضه کولو نه وړاندې تصرف کول جائز نه دی |
|---|

**تشريح> صورة المسئلة>** مسئله داده.چه د بيع صرف په دواړو عوضونوکښې په يوعوض کښې هم د قبضه نه وړاندې تصرف کول جائز نه دی.هم دا ابو الحسن قدوری ﷫ فرمائي.چه د بيع صرف په ثمن کښې د قبضې نه وړاندې تصرف کول جائز نه دې.او چونکه ددې په دواړو عوضونوکښې هريو ثمن وی.لهذا په دواړو کښې د قبضې نه وړاندې تصرف کول جائز نه دې.صاحب د هدايه ﷫ په هدايه کښې په دې باندې ئې يوه مسئله تفريع کړې ده.فرمائي که يوکس يو دينار د لس درهمه په عوض خرڅ کړلو.او په لس درهمه باندې ئې دقبضه کولو نه بغير ددې په عوض يو تهان د کپړې واخستلو.نود کپړې د تهان بيع فاسد ده.

**دليله>** ځکه چه د يو دينار بيع د لس درهمه په عوض بيع صرف ده.او په بيع صرف کښې د الله تعالى د حق په وجه قبضه کول واجب دی.هم دا وجه ده.چه د عاقدينو په ساقطولو سره قبضه نه ساقطيږی. يعنى که دواړه عاقدين د بيع صرف په عوضونو باندې د قبضې په ساقطولو باندې اتفاق اوکړی.نو ددوی داتفاق په وجه قبضه نه ساقطيږی.بلکه پخپل حال به واجب پاتې وی.ځکه چه د قبضې وجوب ددوی حق نه دې.بلکه د الله تعالى حق دې.اود الله تعالى حق ځکه دې.چه د قبضه نه کولو په صورت کښې ربا لازميږی.او رباء حرام ده.او حرام کيدل د الله تعالى حق دې.د بندګانو حق نه دې.بهرحال ثابته شوه.چه په عقدصرف کښې د قبضه وجوب د الله تعالى حق دې.او په لس درهمو باندې د قبضې نه وړاندې ددې په عوض د کپړې تهان اخستلو کښې د الله تعالى ددې حق فوت کيدل لازميږی.اود الله تعالى حق فوت کول قطعاً ناجائز دی.په دې وجه د قبضه کولو نه بغير د لس درهمو په عوض د کپړې تهان اخستل ناجائز دی.

**مذهب زفر ﷫>** د قياس تقاضا داده.چه دقبضې نه وړاندې د ذکرشوی لس درهمو په عوض کپړه اخستل جائز وی.لکه څنګه چه دا د امام زفر ﷫ نه هم نقل دی.

**دليله>** ځکه چه دراهم د متعين کولو باوجود نه متعين کيږی.نود کپړې بيع به مطلق دراهمو طرف ته واپس کيږی.که يوکس کپړه واخستله.اودا ئې د بيع صرف بدل طرف ته منسوب نکړله.بلکه مطلق دراهمو طرف ته ئې منسوب کړله.نودا جائز دی.نوهم دغه شان که د بيع صرف بدل طرف ته ئې منسوب کړې وی.نو بياهم جائز کيدل پکاروو.

**الجواب>** ددې جواب دادې.چه عقدصرف عقدبيع دې.ځکه چه په عقدصرف کښې مبادله د مال بالمال کيږی.اوچونکه د مبادله، ،مال بالمال، ، نوم بيع ده.ځکه به عقدصرف هم عقدبيع وی.او بيع په مبيع او ثمن دواړو باندې مشتمل وی.حالانکه دلته کښې دواړه عوضونه ثمن دی.ځکه چه دينار هم د ثمن د قبيلې څخه دې.او دراهم هم د ثمن د قبيلې څخه دی.اوهيڅ يو عوض ته په مبيع جوړولو باندې څه مرجح موجود نه دې.ځکه به په دواړو کښې هريو عوض من وجه مبيع وی.او، ، من وجه، ، به ثمن وی.لکه څنګه چه په بيع مقايضه کښې دی.يعنى په بيع العرض بالعرض کښې هريو من وجه مبيع او من وجه ثمن وی.او په مبيع باندې د قبضه کولو نه وړاندې په دې کښې تصرف کول جائز نه دی.په دې وجه د عقدصرف عوض يعنى په لس درهمو کښې د قبضه نه وړاندې تصرف کول جائز نه دی.

**الاشكال** > که څوك اعتراض اوكړي.چه دعقد صرف عوض كه من وجه مبيع دي.نو من وجه ثمن هم دي. او د قبضه نه وړاندې، په ثمن كښې تصرف كول جائز دي.نود عقدصرف عوض يعني په لس درهمو كښې هم د قبضه نه وړاندې تصرف كول جائز كيدل پكار وو؟

**الجواب عنه** > ددې جواب دادې.چه د ثمن كيدلو تقاضا داده.چه د قبضه نه وړاندې د بيع صرف په عوض كښې تصرف كول جائز وي.اود مبيع كيدلو تقاضا داده.چه د قبضه نه وړاندې تصرف جائز نه وي.نو هركله ه په جواز اوعدم جواز كښې شك پيدا شو.نود شك په وجه به تصرف كول جائز نه وي.

## د سرو او سپينو زرو څپل مينځ كښې په اندازه سره د بيع حكم

| وَيَجُوْزُبَيْعُ الذَّهَبِ بِالْفِضَّةِ مُجَازَفَةً او سره زر د سپينو زرو په عوض اندازې سره خرڅول جائز دي |
|---|

**تشريح** > **جواز بيع الذهب بالفضة مجازفة** > د سرو زرو بيع د سپينو زرو په عوض اود سپينو زرو بيع د سرو زرو په عوض اندازې سره جائز ده.كه په وزن كښې دواړه عوض برابر وي.او كه كم وي.يا يو كم او بل زيات وي.ځكه چه د اختلاف جنس په صورت كښې برابرى شرط نه ده.لكه څنګه چه د عباده بن صامت رضي الله عنه حديث (اذا اختلف هذه الأصناف فبيعوا كيف شئتم اذا كان يدا بيد) شاهد دي.نو هركله چه د اختلاف جنس په صورت كښې د دواړو عوضونو برابركيدل شرط نه دي.نو په اندازه او اټكل سره خرڅول به هم حرام نه وي.البته د ،، افتراق بالابدان،، نه وړاندې قبضه كول شرط دي.

**دلائله** > ددې نقلي او عقلي دليلونه وړاندې تيرشوي دي.د نقلي دليل نه مراد (الذهب بالورق ربا الا هاء وهاء) حديث دي.يعني سره زر د سپينو زرو په عوض خرڅول رباء ده.خو لاس پلاس سره جائز ده.يعني كه يو تربله قبضه اوشي.نو جائز ده.

**عدم جواز بيع الذهب بالذهب مجازفة** > په خلاف د دې مسئلې كه سره زر ددې د جنس يعني د سرو زرو په عوض يا سپين زر د سپينو زرو په عوض په اندازه او اټكل خرڅ كړل.نو جائز نه دي.

**دليله** > ځكه چه په دې كښې د رباء احتمال دي.يعني كيدې شي.چه يوعوض كم او بل عوض زيات وي.او وړاندې باربار تيرشوي دي.چه احتمال رباء هم د حقيقت رباء پشان حرام دي. په دې وجه د سرو زرو يا سپينو زرو بيع پخپل جنس سره اندازې سره حرام او ناجائز دي.

## يوه توره په سپينو زرو ښائسته شوې په نصف نقد قيمت باندې د خرڅولو حكم

| وَمَنْ بَاعَ سَيْفًا مُحَلًّى بِمِائَةِ دِرْهَمٍ او چا چې خرڅه كړه په سپينو زرو ښائسته شوې يوه توره د سل درهمو په عوض خرڅه كړله. وَحِلْيَتُهُ خَمْسُوْنَ درهما او ددې حليه ( زيور) پنځوس درهمه دي فَدَفَعَ مِنْ ثَمَنِهِ خَمْسِيْنَ درهما اوده په ثمن كښې پنځوس درهمه اداكړل جَازَ الْبَيْعُ نو بيع جائز شوه وَكَانَ الْمَقْبُوْضُ مِنْ حِصَّةِ الْفِضَّةِ نو په كوم چه قبضه شوې ده.هغه د سپينو زرو( د زيور) حصه ده وَاِنْ لَمْ يُبَيِّنْ ذٰلِكَ اګر كه بيان كړې نې نه وي |
|---|

**حل اللغة** > **سيف**: توره، **خمسون**: پنځوس، **الولؤ**: ملغلرې، **المرجان**: دغمويوقسم

**تشريح** > **صورة المسئلة** > صورت د مسئلې دادې. چه يوسړى په سپينو زرو ښائسته شوې يوه توره د سل درهمو په عوض خرڅه كړله.په داسې حال كښې چه ددې زيور پنځوس درهمه دي.بيا مشترى په ثمن كښې پنځوس درهم اداكړل.اودا تصريح نې اونكړله.چه دا پنځوس درهمه د زيوراتو عوض دي.ياد تورې عوض دي.ياد دواړو عوض دې.نودا بيع به جائز وي.او هغه پنځوس درهم په كوم چه بائع قبضه كړې ده.د زيوراتو ثمن به شمارلې شي.

**دلیله** خکه چه د زیور په ثمن باندې قبضه کول واجب دی.په دې وجه د ښکاره حال تقاضا هم دا ده.چه اول به نې هم دا اداکړې وی.

| وَكَذٰلِكَ إِنْ قَالَ او هم دغه شان که ده اوونیل خُذْ هٰذِهِ الْخَمْسِينَ مِنْ ثَمَنِهِمَا چه دا پنځوس درهمه ددې دواړو په ثمن کښې واخله. |
|---|

**تشریح** **الصورة الثانیة** اوکه مشتری په صراحت سره دا اوونیل.چه دا پنځوس درهمه د تورې اود زیور دواړو ثمن دې.نوپه دې صورت کښې به هم دا د زیور ثمن شمارلې کیږی.ګویا
مشتری دا اوونیل.چه ددې دواړو په ثمن کښې چه څومره قدرې قبضه کول واجب دی.هغه واخله.

**دلیله** خکه چه دمسلمانانو کارونه حتی الامکان په جواز او صلاح باندې محمول کولې شی.او دلته کښې په جواز باندې محمول ممکن هم دی.په دې طریقه چه په(من ثمنهما)کښې د تثنیه ضمیر نه واحد مراد واخستلې شی.اودا اوونیلی شی.چه مشتری اګرچه (من ثمنهما) وئیلی دی.خو مراد(من ثمن الحلیة) دې.او تثنیه ذکرکول او واحد مراد اخستل جائز هم دی. لکه چه د الله تعالی قول(يَخْرُجُ مِنْهُمَا اللُّؤْلُؤُ وَالْمَرْجَانُ) کښې د ،،منهما،، ضمیر مرجع خوږ او تریو( مالګین) سمندر دې. خو موتیان ( ملغلرې) او مرجان صرف د تریو (مالګین) او منثور سمندر نه راوځی.ددې نه معلومه شوه.چه په ،،منهما،، کښې د تثنیه نه مراد واحد دې.داسې نور ډیر مثالونه دی. نو هرکله چه تثنیه وئیل او واحد مراد اخستل عام او شائع دی.نود مشتری د مسلمان کیدلو د حالت رعایت به کولې شی.او دده قول(من ثمنهما) به په (من ثمن الحلیة) باندې محمول کولې شی.خکه چه د مسلمان ښکاره حال دادې.چه دې د جائز کار ارتکاب کوی.د ناجائز کار ارتکاب نه کوی.اود بیع جواز په دې صورت کښې کیدلې شی.چه ذکرشوی پنځوس درهمه د زیور ثمن اوګرځولې شی.په دې وجه د(خذ هذه الخمسین من ثمنهما) وئیلو په صورت کښې به هم دا پنځوس درهمه د زیور ثمن شمارلې شی.اود زیور او تورې دواړو به نشی شمارلې.

| فَإِنْ لَمْ يَتَقَابَضَا اوکه یوځائې قبضه اونکړې شوه حَتّٰى بَطَلَ الْعَقْدُ فِي الْحِلْيَةِ تردې چه زیورکښې به عقد باطل وی |
|---|

**تشریح** **بطلان العقد فی الحلیة عند عدم القبض** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه په ذکرشوی دواړو صورتونوکښې یعنی د وینځې اود امیل په صورت کښې اود تورې او زیور په صورت کښې که په مجلس کښې لاس پلاس قبضه اونشوه.اوعاقدین دواړه جدا شو.نود امیل او زیور په حصه کښې به عقد باطل وی.

**دلیله** خکه چه د امیل او زیور په حصوکښې د دواړو عوضونو ثمن یعنی د سپینو زرو کیدلو په وجه دا عقدصرف دې.اود قبضه کولو نه بغیر جداکیدلو سره چونکه عقدصرف باطلیږی.په دې وجه به په حصه د امیل اوپه حصه د زیورکښې دا عقد باطل وی.او په وینځه کښې به ټیک وی.

| وَإِنْ كَانَ يَتَخَلَّصُ بِغَيْرِ ضَرَرٍ اوکه زیور د تورې نه د ضرر نه بغیر جدا شی جَازَ الْبَيْعُ فِي السَّيْفِ نو په توره کښې به بیع جائز وی وَبَطَلَ فِي الْحِلْيَةِ اود زیور بیع به باطل وی |
|---|

**حل اللغة** **السیف**: توره. **یتخلص**: جدا کیږی، **دون**: بغیر، **الحلیة**: کالی

**تشریح** **صورتین فی بیع السیف** ① پاتې شوه د تورې معامله،نو زیور که د تورې سره په داسې طریقه باندې پیوست او لګیدلې وی.چه زیور د تورې نه جداکول د ضررنه بغیر ممکن نه وی.نود تورې بیع به

هم باطل وي.ځکه چه په دې صورت کښې د ضرر نه بغير د تورې سپارل ممکن پاتې نشو.او په کوم صورت کښې چه د ضررنه بغير مبيع سپارل ممکن نه وي.په هغه صورت کښې بيع باطليږي.ځکه به په ذکرشوي صورت کښې دتورې بيع هم باطل وي.هم دا وجه ده.چه هرکله د زيور تورې نه جدا کول د ضررنه بغير ممکن نه وي.نود ځانله تورې بيع به جائز نه وي.لکه مثلاً په چهت کښې د لګيدلې تير(ګاډر) سپارل چونکه د ضررنه بغير ممکن نه دی.په دې وجه په چهت کښې د لګيدلې تير خرڅول ناجائز دی.

② اوکه د زيور تورې نه جدا کول د ضررنه بغير ممکن وي.نود تورې بيع به جائز وي.اود زيور بيع به باطل وي.ځکه چه په دې صورت کښې توره يعنی مبيع د ضررنه بغير سپارل ممکن دی.او په کوم صورت کښې چه مبيع د.ضرر نه بغير سپارل ممکن وي.په هغه صورت کښې بيع جائز وي.ځکه به په دې صورت کښې د تورې بيع جائز او درست وي.هم دا وجه ده.چه په دې صورت کښې د ځانله تورې خرڅول جائز دی.اودا د وينځې او اميل د يوځائې خرڅولو پشان شو.يعنی که وينځه او اميل يوځائې د دوه زره مثقاله په عوض خرڅ کړې.اود قبضه کولو نه بغير عاقدين جدا شو.نود اميل بيع به د عقدصرف کيدلو په وجه باطل وي.خود وينځې بيع به ټيك وي.ځکه چه د وينځې سپارل ممکن دی.

**د سپينو زرو لوخې خرڅولو نه پس د څه ثمن باقی پاتې کيدلوکښې د بيع حکم**

| |
|---|
| **وَمَنْ بَاعَ إِنَاءَ فِضَّةٍ** اوکه يو کس د سپينو زرو يو لوخې خرڅ کړو **ثُمَّ افْتَرَقَا** بيا دواړه جدا شو **وَقَدْ قَبَضَ بَعْضَ ثَمَنِهِ** حالانکه بائع په بعض ثمن باندې قبضه کړې ده **بَطَلَ الْعَقْدُ فِيمَا لَمْ يُقْبَضْ** نو په هغه حصه کښې په کوم چه بائع قبضه نه ده کړې.عقد به باطل وي **وَصَحَّ فِيمَا قُبِضَ** او په کوم ئې چه قبضه کړې ده.په هغې کښې به بيع صحيح وي **وَكَانَ الْإِنَاءُ مُشْتَرَكًا بَيْنَهُمَا** او لوخې به د بائع او مشتری په مينځ کښې مشترك وي |

**حل اللغة> الإناء:** لوښې

**تشريح> صورة المسئلة>** مسئله داده.چه يوکس د سپينو زرو يو لوخې خرڅ کړو.بيا عاقدين جدا شو.حالانکه د جداکيدلو نه وړاندې مشتری د ثمن يوه حصه ادا کړې ده.نو څومره قدرې ثمن ئې چه ادا کړې دې.هم ددې په اندازه به بيع صحيح وي.او څومره قدرې ئې چه نه دې ادا کړې.ددې په اندازه به باطل وي.اودا لوخې به د بائع اومشتری په مينځ کښې مشترك وي.مثلاً د سل درهمو وزن لوخې ئې د سل درهمو په عوض واخستلو.بيا مشتری صرف پنځوس درهمه اداکړل.او پنځوس ئې ادا نکړل.ددې نه پس دواړه جدا شو.نود پنځوس درهمو په اندازه د لوخی بيع صحيح ده.اود پنځوسو په اندازه باطل ده.اوچونکه مشتری نصف ثمن يعنی پنځوس درهمه اداکری دی.په دې وجه به د لوخی د نصف مالك مشتری اود نصف مالك به بائع وي.

**دليله>** دليل دادې.چه داعقد پوره په پوره عقدصرف دې.اود عقدصرف د بقائې جواز شرط تقابض دې.يعنی د جدا کيدلو نه وړاندې دواړو عوضونو باندې قبضه کول شرط دی.نويه څومره حصه کښې چه دا شرط موندلې شوې دې.په دومره کښې به دا عقد صحيح وي.او په څومره کښې چه دا شرط نه دې موندې شوې.په دومره کښې به دا عقد باطل وي.

| |
|---|
| **وَإِذَا اسْتُحِقَّ بَعْضُ الْإِنَاءِ** او کله چې د لوخی يوه حصه مستحق شوه **كَانَ الْمُشْتَرِي بِالْخِيَارِ** نو مشتری ته اختيار دې **إِنْ شَاءَ أَخَذَ الْبَاقِيَ بِحِصَّتِهِ مِنَ الثَّمَنِ** که غواړی.باقی دې ددې د حصې د ثمن په عوض واخلی **وَإِنْ شَاءَ رَدَّهُ** او که غواړی.واپس دې کړی |

**تشريح> استحقاق بعض الاناء>** صاحب د قدروی رحمه الله فرمائي.چه په ذکرشوې مسئله کښې که د لوخي يوه حصه مستحق شوه.يعني د بائع او مشتري نه علاوه يو دريم کس په نيم لوخي کښې د خپل استحقاق دعوه اوکړي.اودا ثابته کړي.نو مشتري ته به اختيار وي.چه دې غيرمستحق لوخې ددې حصې د ثمن په عوض واخلي.يا نې ردکړي.

**دليله>** ځکه چه په لوخي کښې شرکت پيداکيدل عيب دې.او عيب هم داسې چه په دې کښې د مشتري فعل ته هيڅ دخل نشته.اود عيب په صورت کښې چونکه مشتري ته اختيار وي.ځکه به په دې صورت کښې هم مشتري ته اختيار وي.

**د سپينو زرو يوه ټکړه خرڅولو نه پس د بعض مستحق کيدلو مسئله**

وَمَنْ بَاعَ قِطْعَةَ نُقْرَةٍ اوکه يو کس د سپينو زرو يوه ټکړه خرڅه کړله فَاسْتُحِقَّ بَعْضُهَا بيا ددې يوه حصه مستحق شوه أَخَذَ مَا بَقِيَ بِحِصَّتِهٖ نو مابقي به ددې د حصې د ثمن په عوض اخلي وَلَاخِيَارَ لَهٗ او ده ته به اختيار هم نه وي

**حل اللغة> قطعة** : ټکړه . **نقرة** : سپين زر

**تشريح> بعض قطعة نقرة ثم استحقاقها>** مسئله:که يوکس د سپينو زرو ټکړه خرڅه کړله.بيا دعاقدين نه علاوه دريم کس ددې په يوه حصه کښې خپل استحقاق ثابت کړو.نو په څومره اندازه ټکړه چه غيرمستحق پاتې شوه. مشتري به دا ددې د حصې د ثمن په عوض اخلي.او مشتري ته به د اخستلو اود نه اخستلو اختيار هم نه وي.

**دليله>** ځکه چه ددې ټکړې ټکړې کول مضر نه دی.او هرکله چه ټکړې کول مضر نه دی.نو په دې کښې به شرکت عيب نه شمارلې کيږي.او هرکله چه شرکت عيب نه دې.نو مشتري ته به اختيار هم حاصل نه وي.

**د دوه درهمو او يو دينار،د يو درهم او دوه دينارو سره د بيع حکم**

وَمَنْ بَاعَ دِرْهَمَيْنِ وَدِيْنَارًا بِدِيْنَارَيْنِ وَدِرْهَمٍ اوکه يوکس دوه درهمه او يو دينار،د دوو دينارو او يو درهم په عوض خرڅ کړل جَازَ الْبَيْعُ نودا بيع جائز ده وَجُعِلَ كُلُّ واحد من الجنسين بدلا عن الاخر او په دې کښې به په دوو جنسونو کښې هريو جنس د بل په عوض کښې ګرځولې شي

**تشريح> صورة المسئلة>** صورت د مسئلې دادې.چه يوکس دوه درهمه او يو دينار،د يو درهم او دوه دينارو په عوض خرڅ کړلو.نو زمونږ په نيز دا بيع جائز ده.او په دواړو کښې به هريو جنس ددې د خلاف عوض ګرځولې شي.يعني دوه درهم به د دوه دينارو په مقابله کښې شمارلې کيږي.او يو درهم به د يو دينار په عوض کښې شمارلې شي.ځکه که خلاف جنس طرف ته اونه ګرځولې شي.بلکه هر يو ددې د جنس مقابل اوګنړلې شي.يعني دوه درهمه د يو درهم په مقابله کښې، او يو دينار د دوه دينارو په مقابله کښې نو رباء به لازم شي.او رباء حرام او ناجائز ده.په دې وجه به دا عقد هم ناجائز وي.نود عاقدينو عقد صحيح کولو دپاره هريو جنس ددې خلاف جنس طرف ته ګرځولې شي.

**دليله>** دليل دادې.چه د دوه درهمو اود يو دينار مقابله،د يو درهم او دوه دينارو سره مطلق ده.په دې کښې هم احتمال دی.چه د مجموعي مقابله د مجموعي سره وي.اودا هم احتمال دې.چه د فرد مقابله د فرد سره وي.په مقابله د ،،فرد بالفرد،، کښې هم دوه احتماله دی.يودا چه مقابله د ،،فرد بالفرد،،من جنسه وي.يعني دوه درهم د يو درهم په مقابله کښې وي.او يو دينار د دوه دينارو په مقابله کښې وي.دويم داچه مقابله د ،،فرد بالفرد،،من غيرجنسه وي.يعني دوه درهمه د دوه دينارو په مقابله کښې

وی.او یو دینار د یو درهم په مقابله کښې وی.حاصل داچه څنګه مقابله مطلقه د ، ،مقابله کل بالکل، ، احتمال لري.دغه شان د ، ،مقابله فرد بالفرد ، ، احتمال هم لري.لکه څنګه چه د مقابله جنس بالجنس کښې د مقابله فرد بالفرد احتمال دې.په دې طریقه چه دوه دیناره د دوه دینارو په عوض خرڅ کړې شو.نو بالاتفاق یو دینار د یو دینار په مقابله کښې کیدلې شی.دغه شان دلته کښې په مقابله مطلقه کښې هم د مقابله فرد بالفرد احتمال موجود دې.نو په احتمالاتِ ثلاثه کښې دوه احتماله یعنی مقابله کل بالکل او مقابله فرد بالفرد من جنسه په صورت کښې د عاقدینو تصرف باطلیږی.او په مقابله فرد بالفرد من غیرجنسه په صورت کښې تصرف تیك پاتې کیږی.نو ګویا په مقابله د فرد بالفرد من غیرجنسه کښې دده د تصرف صحیح جوړولو یوه متعین طریقه ده.اودا خبره چونکه مسلم ده.چه د عاقل بالغ سړی تصرف د صحیح کولو حتی الامکان کوشش پکار دې.په دې وجه د عاقد تصرف صحیح کولو دپاره دده عقد په دې احتمال یعنی مقابله د ، ،فرد بالفرد من غیر جنسه ، ، باندې محمول کولې شی. (۱)

**مثاله**﴿ د دې مثال داسې دې.لکه یو غلام د دوه کسانو په مینځ کښې مشترك وی.په دوی کښې یوکس نصف غلام خرڅ کړې وی.نودا نصف مطلق دې.دا احتمال هم شته.چه ده خپله نصف حصه مراد اخستې وی.اودا احتمال هم شته.چه د دویم ملګری نصف حصه ئې مراد اخستې وی.او په دې طریقه بیع ناجائز وی.خود بائع دعقد تصرف صحیح کولو دپاره هم دده حصې طرف ته عقد ګرځولې شی.او په دې کښې زیات نه زیات وصف متغیر کیږی.په دې طریقه چه مطلق نصف غلام مراد اخستلو په صورت کښې شیوع وو.اود بائع حصه مراد اخستلو په صورت کښې تعین دې.نولکه څنګه چه د عقدصحیح کولو دپاره په دې مسئله کښې د وصف د تغیر باوجود عقد د بائع حصې طرف ته ګرځولې شی.دغه شان د متن په مسئله کښې هم د وصف د تغیر باوجود ،عقد صحیح کولو دپاره هر یو عوض خلافِ جنس طرف ته ګرځولې شی.

**د یوولسو درهمو،لس درهمه او یو دینار سره د بیع حکم**

| وَمَنْ بَاعَ أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ وَدِينَارٍ اوکه یوکس یوولس درهمه، د لس درهمو او یودینار په عوض خرڅ کړل جَازَ الْبَيْعُ نو بیع جائز ده وَكَانَتِ الْعَشَرَةُ بِمِثْلِهَا او لس درهم به د لس درهمو په عوض وی. وَالدِّينَارُ بِدِرْهَمٍ او یو دینار به د یو درهم په عوض کښې شی |
|---|

**تشریح**﴿ **صُورةُ المسئلة**﴿ مسئله داده.که یوکس یوولس درهمه، د لس درهمو او یودینار په عوض خرڅ کړل.نودا بیع به جائز وی.اودا به ونیلې شی.چه په یوولس درهموکښې لس درهمه د لس درهمو په مقابله کښې دی.او باقی پاتې شو یو درهم،نودا د یو دینار په مقابله کښې دې.

**دلیله**﴿ دلیل دادې.چه په حدیث مشهور( الفضة بالفضة.....الخ) سره ثابت دی.چه په دراهمو کښې د بیع جائزکیدلو شرط د دواړو عوضونو برابر ا و مساوی کیدل دی.او عاقدین چونکه مسلمانان دی.په دې وجه ددوی ښکاره حال ددې خبرې تقاضا کوی.چه دوی به دجائز عقد ارتکاب کړې وی.د عقد فاسد اقدام به ئې نه وی کړې.اود عقد جائز صورت هم هغه دې.کوم چه ابو الحسن قدوری رح ذکرکړې

---

(۱) **مذهب زفر والشافعي**﴿ او امام زفر او امام شافعی رحمهما الله فرمائیلی دی.چه دا عقدجائز نه دې.هم دا اختلاف هغه وخت دې.چه کله یوکړ اوربشې او یوکړ غنم،د دوه کړه غنمو او د یوکړ اوربشو په عوض خرڅ کړې شی.نو زمونږ په نیز جائز دی.او یوکړ اوربشې د دوه کړه غنمو،او یو کړ غنم د دوه کړه اوربشو عوض ګرځولې شی. خود امام زفر او امام شافعی رحمهما الله په نیز ناجائز دی.

دي.چه لس درهمه به دلسو درهموپه عوض كيني شي.او باقي يو درهم به د يو دينار په عوض كيني شي.او درهم او دينار چونكه دوه مختلف جنسه دي.په دې وجه به په دې كبني مساوات او برابري هم معتبر نه وي.ځكه چه د برابرئ كيدل د اتحاد جنس په وخت شرط وي.د اختلاف جنس په وخت شرط نه وي.

**صحيح درهم او دوه درهمه ماتې پيسې .د دوه صحيح درهمو اود درهم ماتو پيسو سره د بيع حكم**

| وَيَجُوْزُ بَيْعُ دِرْهَمَيْنِ صَحِيْحَيْنِ او په دوه ثابت دراهمو بيع جائز ده وَدِرْهَمٍ غَلَّةٍ بِدِرْهَمٍ صَحِيْحٍ او د يو مات درهم بيع د صحيح درهم په عوض جائز ده |
|---|

**حل اللغة> صحيح:** روغ، **الغلة:** ماتې

**تشريح> صورة المسئلة>** درهم صحيح يو پوره ثابت درهم ته وائي.يعني د چينج نه بغير درهم،درهم صحيح دادې.لكه زمونږ په زمانه كبني د يوې روپۍ نوټ يا د يوې روپۍ سكه، د صحيح درهم په مرتبه كبني دي.او درهم ، ،غله، ،( د غين فتحه اود لام په شد سره) د يو درهم هغه اجزاء او ټكړو ته وائي.كوم چه په وزن او ماليت كبني د يو درهم برابر وي.لكه زمونږ په زمانه كبني د يو روپۍ چينج، اتانيز( پنخوس پيسې) څلورانيز ( پنځويشت پيسې) او لس او پنځه پيسې سكې دي.مثلاً دوه اتانيزونه د يوې روپۍ ماليت برابر وي.او څلور څلور انيزونه هم د يوې روپۍ ماليت برابر وي.اود لس پيسو لس سكې يا د پنځو پيسو شل سكې هم د يوې روپۍ د ماليت برابر دي.هم دې چينج ته په بعض علاقوكبني ماتې پيسې او ميده پيسې ونيلې شي.او زمونږ په علاقو كبني ورته چينج يا ماتې پيسې ونيلې شي بهرحال درهم غله كهوټه درهم ته نه وائي.بلكه د يو درهم چينج او په وزن كبني د يو درهم ټكړو اواجزاؤ ته وائي.

**تعريف الغلة>** علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلي دي.چه درهم غله هغه دي.كوم چه سوداگر قبلوي.خو بيت المال ئې نه قبلوي.خود بيت المال نه قبلول ددې د كهوټه كيدلو په وجه نه دي.بلكه د چينج او ميده كيدلو په وجه دي.ځكه چه د چينج او ميده پيسو حفاظت او ددې په شمارلوكبني ډير تكليف او پريشاني راپيښيږي.زمونږ په ملك كبني هم كه په بينك كبني چينج جمع كړې شي.نود بينك والا دا نه قبلوي.بلكه په لويو او معيار(خاص) بينكونوكبني خو واړه نوټونه هم نه قبلوي.نود بينكونو چينج او ماتې پيسې نه قبلول ددې د كهوټه كيدلو په وجه نه دي.بلكه ددې په شمارلوكبني د تكليف او پريشانئ په وجه دي.

**دليله>** ددې د جواز وجه دا ده يعني كه يوكس يوصحيح درهم او دوه درهم ماتې پيسې، د دوه صحيح درهم او يو درهم ماتو پيسو په عوض خرڅ كړل.نودا بيع جائز ده.ځكه چه د وزن په اعتبار سره دواړه عوضونه برابر دي.اود درهم بيع ددرهم په عوض د جواز شرط هم دادې.او پاتې شو د درهم صحيح چينج نه كيدل،نودا ددې يو وصف دې.او ښه وصف دې.او وراندې تيرشوي دي.چه په جنس سره د مقابله په وخت د ښه والي وصف وغيره اعتبار نه كيږي.لكه چه د مديني آقا ﷺ ارشاد دې.( جيّدها ورديها سواء)

**د سرو او سپينو زرو د غلبې مسئله**

| وان كَانَ الْغَالِبُ عَلَى الدَّرَاهِمِ الْفِضَّةَ اوكه وي په دراهمو باندې سپين زر غالب وي فَهِيَ فِي حُكْمِ الْفِضَّةِ نودا دراهم به د سپينو زرو په حكم كبني وي. وَاِنْ كَانَ الْغَالِبُ عَلَى الدَّنَانِيْرِ الذَّهَبَ اوكه په دنانيرو كبني سره زر غالب وي فَهِيَ فِي حُكْمِ الذَّهَبِ نوهغه د سرو زرو په حكم كبني دي |
|---|

فَيُعْتَبَرُ فِيهِمَا مِنْ تَحْرِيمِ التَّفَاضُلِ او په دې کښې د زياتوالي حرام کيدل داسې معتبر دی مَا يُعْتَبَرُ فِي الْجِيَادِ لکه څنګه چه په کره دراهمو کښې معتبر دی

**تشريح> صورة المسئلة>** مسئله داده.که په دراهمو کښې سپين زر غالب وی.نودا دراهم د خالصو سپينو زرو په حکم کښې دی.او که په دنانيرو کښې سره زر غالب وی.نودا دنانير د خالصو سرو زرو په حکم کښې دی.او په دې کښې خپل جنس سره د بيع کولو په وخت به کمې زياتې داسې حرام وی.لکه څنګه چه د خالص سرو زرو او سپينو زرو خپل جنس سره په بيع کښې کمې زياتې حرام دې.که خالص دراهم د کهوټه او ګډون شوی دراهمو کښې بعض د بعض په عوض خرڅ کړې شو.نود وزن په اعتبار سره به مساوات او برابری ضروری وی.لکه څنګه چه خالص دراهم د خالص دراهمو په عوض،او خالص دنانير د خالص دنانيرو په عوض خرڅولو په صورت کښې برابری شرط ده.

## په سرو او سپينو زرو کښې د کهوټه والي د غلبې مسئله

وَإِنْ كَانَ الْغَالِبُ عَلَيْهِمَا الْغِشَّ او که په دواړو (سرو زرو او سپينو زرو باندې) کهوټ (ګډون) غالب وی فَلَيْسَا فِي حُكْمِ الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ نودا به د غالب په اعتبار سره د دراهمو او دنانيرو په حکم کښې نه وی.فَهُمَا فِي حُكْمِ الْعُرُوضِ نو دا دواړه د سامان په حکم کښې دی

**تشريح> صورة المسئلة>** صورت د مسئلې دادې.که دراهم يا دنانيرو کښې کهوټ او ملاوټ زيات وی.او سپين زر يا سره زر مغلوب وی.نودا دراهم مغشوشه او دنانير مغشوشه، د دراهم او دنانيرو په حکم کښې نه دی.ځکه چه د غالب اعتبار کيږی.نودا دراهم مغشوشه او دنانير مغشوشه به سپين زر او سره زر نشی ګڼړلې.بلکه داسې اسباب او سامان به ګڼړلې شمارلې شی.چه په هغې کښې د سپينو زرو يا سرو زرو ګډون يا ملاوټ وی.

**التفريع عليه>** که يو کس مغلوب سپين زر والا دراهم مغشوشه په عوض خالص سپين زر واخستل.نو په دې کښې به هم هغه صورتونه راوځی.کوم چه د توري په زيور کښې بيان شوی دی.يعنی که په دراهم مغشوشه کښې وی.نو په دې درې واړو صورتونو کښې به بيع نه په سپينو زرو کښې صحيح وی.اونه به په هغه دهات کښې صحيح وی.کوم دهات چه په دراهم مغشوشه کښې (ملاو) دی.او که خالص سپين زر د هغه سپينو زرو نه زيات وی.کوم چه په دراهم مغشوشه کښې دی.نودا جائز دی.ځکه چه د دراهم مغشوشه سپين زر به خالص سپينو زرو کښې د خپل مثل په عوض شی.او کوم سپين زر چه زيات دی.هغه به د ملاوټ اود دراهم مغشوشه د دهات په عوض کښې شی.

## کهوټ ملاو شوی دراهم خپل جنس سره تفاضلا د بيع حکم

فَإِذَا بِيعَتْ بِجِنْسِهَا مُتَفَاضِلًا نو کله چې کهوټ ملاو شوی دراهم ددې دجنس په عوض متفاضلاً خرڅ کړې شو جَازَ الْبَيْعُ نو بيع جائز ده

**تشريح> صورة المسئلة>** صورت د مسئلې دادې.چه داسې دراهم مغشوشه(ملاوټی دراهم) چه په دې کښې کهوټ غالب وی.که دا ددې هم جنس دراهمو په عوض کښې کمې زياتی سره خرڅ کړې شو.نوجائز دی.

**دليله>** اود جواز وجه داده.چه داسې دراهم مغشوشه د دوه څيزونو په حکم کښې دی. ① سپين زر ② پيتل او کانسه (يو قسم دهات) نو هريو به ددې د جنس خلاف طرف ته منسوب کولې شی.يعنی د احدالعوضين پيتل به،د دويم عوض د سپينو زرو په مقابله کښې اوسپين زر به د دويم عوض د پيتلو

په مقابله کښې ګرځولې شي. اوهرکله چه داسې ده. نود دواړو عوضونو جنس مختلف کيدلو په وجه به تفاضل اوکمې زياتې جائز وي.

**د کهوټ ملاو شوې دراهمو په عوض سامان اخستلو له پس ددې د ختميدلو مسئله**

وَإِنِ اشْتَرَى بِهَا سِلْعَةً اوکه دداسې دراهم مغشوشه په عوض ئې څه سامان واخستلو ثُمَّ كَسَدَتْ بيا ددې رواج او چلن بندشو فَتَرَكَ النَّاسُ الْمُعَامَلَةَ بِهَا قَبْلَ الْقَبْضِ او د قبض کولو نه وړاندې خلقو په دې سره معامله کول پريخودله بَطَلَ الْبَيْعُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نود امام ابوحنيفه ﷫ په نيز به بيع باطل وي

**تشريح> صورة المسئلة>** صورت د مسئلې دادې. که يو کس دداسې دراهم مغشوشه په عوض چه په هغې کښې کهوټ (ګډون) غالب وي. څه سامان واخستلو. بيا دا دراهم ټهپ شو. يعنى ددې رواج او چلن بندشو. او خلقو په دې سره معامله کول پريخودله. نود حضرت امام ابوحنيفه ﷫ په نيز به دا بيع باطل وي.

**دليله>** د حضرت امام ابوحنيفه ﷫ دليل دادې. چه داسې دراهم مغشوشه چه په هغې کښې کهوټ غالب وي. د دې ثمن کيدل د خلقو په اتفاق کولو سره وو. خو چه کله خلقو په دې سره معامله کول پريخودل. نود خلقو اصطلاح او اتفاق باطل شو. اوهرکله چه د خلقو اتفاقا باقى پاتې نشو. نو عقد بيع بلا ثمن پاتې شو. او بلاثمن عقد باطل وي. ځکه به په دې صورت کښې هم عقد باطل وي. او هر کله چه عقد باطل شو. نو په مشترى به مبيع واپس کول واجب وي. په دې شرط چه مبيع دده سره موجود وي. اوکه مبيع هلاك شوې وي. نو ددې قيمت به واجب وي. په دې شرط چه مبيع د ذوات القيم ځنې وي. اوکه مبيع د ذوات الامثال ځنې وي. نو ددې مثل واپس کول به واجب وي. لکه څنګه چه په بيع فاسد کښې هم دا حکم دې. يعنى په بيع فاسد کښې که مشترى په مبيع باندې قبضه اوکړله. نوکه مبيع موجود وي. نوهغه به واپس کوي. اوکه مبيع موجود نه وي. نو ددې مثل به واپس کوي. که د ذوات الامثال ځنې وي. اوکه د ذوات القيم ځنې وي. نو ددې قيمت به واپس کوي.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللّٰهُ او امام ابويوسف ﷫ فرمائى عَلَيْهِ قِيمَتُهَا يَوْمَ الْبَيْعِ چه په مشترى به د بيع د ورځې ددې دراهم مغشوشه قيمت واجب وي وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: قِيمَتُهَا آخِرَ مَا تَعَامَلَ النَّاسُ[1] او امام محمد ﷫ فرمائى. چه په آخرى ورځ چه خلقو ددې سره معامله کړې ده. د هغې ورځې ددې قيمت به واجب وي)

**حل اللغة> السلعة:** سامان تجارت، **الكسادة:** د رواج بنديدل، **التسليم:** سپارل

**تشريح> مذهب الصاحبين>** اوامام ابويوسف او امام محمد ﵉ فرمائى. چه بيع به باطل نه وي. بلکه په مشترى به ددې قيمت واجب وي. امام شافعى او امام احمد ﵉ هم ددې قائل دى. پاتې شوه داخبره چه د کومې ورځې قيمت به واجب وي. نو په دې باره کښې صاحبين ﵉ هم مختلف دى. حضرت امام ابويوسف ﷫ فرمائى. چه په کومه ورځ عقدبيع واقع شوې ده. په هغه ورځ چه ددې دراهم مغشوشه کوم قيمت وو. په مشترى به هم دا واجب وي.

اوامام محمد ﷫ فرمائى. چه آخره ورځ کله چه خلقو په دې سره معامله کول پريخودله. د هغې ورځ چه ددې څه قيمت وي. هغه به واجب وي.

**دليلهما>** د صاحبينو ﵉ دليل دادې. چه مبادله د مال بالمال موجود کيدلو په وجه د ثمن سپارل متعذر

[1]) القول الراجح هو هذا قول محمد﷫ كذا في فتح القدير(٢٧٧\٦) وردالمحتار(٢٧٠\٤) نقلاً عن القول الراجح (٨٦\٢)-

او ناممکن شو.اود ثمن سپارل چه متعذرشی.نو ددې په وجه بيع نه فاسد يږی.لکه مثلاً که يوکس د تازه کجورو په عوض څه څيز واخستلو.بيا د سپارلو نه وړاندې تازه کجورې بازارکښې منقطع شوې.يعنی ددې ملاويدل بندشو. نودا بالاتفاق نه باطليږی.بلکه په مشتری باندې ددې قيمت واجبيږی.اود علامه بدرالدين عينی رحمه الله د قول مطابق به د راروان کاله پورې د تازه کجورو انتظار هم نشی کولې.نوهم دغه شان به دلته کښې هم بيع باطل نه وی.او په بازار کښې د ټهپ والی په وجه چه هرکله بيع باطل نشوه.بلکه بيع باقی ده.نو په مشتری به ددې دراهم مغشوشه قيمت واجب وی.

**وجه قول ابي يوسف رحمه الله** ‹ خود امام ابويوسف رحمه الله په نيز به د عقد بيع د ورځې قيمت واجب وی.ځکه چه دراهم مغشوشه ضمان دداسې بيع په وجه واجب شوې دې.که چرې بيع نه وه شوې.نو په مشتری به ددې دراهم مغشوشه ضمان هم نه واجبيدلې.نو هرکله چه په مشتری باندې ددې بيع په وجه ضمان واجب شوې دې.نو هم ددې بيع د ورځې قيمت به معتبر وی.يعنی د بيع په ورځ چه د دراهم مغشوشه کوم قيمت وو.په مشتری به هم هغه واجبيږی.لکه مثلاً د شئ مغصوبه هلاکيدلو نه پس په غاصب باندې د غصب د ورځې قيمت واجبيږی.ځکه چه شئ مغصوب هم په دغه ورځ مضمون شوې دې.

**وجه قول محمد رحمه الله** ‹ اود امام محمد رحمه الله په نيز چه په کومه ورځ د دراهم مغشوشه چلن بازار نه بندشوې دې.ددغې ورځې قيمت به واجب وی.ځکه چه دراهم مغشوشه نه منتقل کيدل او قيمت طرف ته راتلل په دغه ورځ واجب شوی دی.نو په کومه ورځ چه قيمت طرف ته انتقال شوې دې. د قيمت په سلسله کښې به د دغه ورځې قيمت معتبر وی.

**الفائدة** ‹ کساد :( ټهپ کيدل ) يعنی چلن او رواج بنديدل.د امام محمد رحمه الله په نيز به کساد هغه وخت متحقق وی.چه کله په ټولو ښارونوکښې چلن بند شی.اود شيخينو رحمهما الله په نيز د کساد متحقق کيدلو دپاره دومره کافی ده.چه په کوم ښار کښې عقد واقع شوې دې.هم په دې ښارکښې چلن بند شی.(عينی)

## د فلوس ( پيسو) په عوض د بيع حکم

| وَيَجُوزُ الْبَيْعُ بِالْفُلُوسِ النَّافِقَةِ اود رانجو پيسو په عوض بيع جائز ده. وَإِنْ لَمْ يُعَيِّنْ اګرچه دا متعين نکړی |
|---|

**حل اللغة** ‹ **الفلوس**: جمع د فلس،پيسه، **النافقة**: رانج

**تشريح** ‹ **جواز البيع بالفلوس النافقة** ‹ ‹ مسئله داده.چه د فلوس په عوض بيع جائز ده.ځکه چه فلوس داسې مال دې.چه د مقدار او وصف په اعتبارسره معلوميږی.او کوم مال چه معلوم المقدار او معلوم الوصف وی.د هغې په عوض بيع جائز وی.ځکه به د فلوس په عوض بيع جائز وی.اوس به دا فلوس د عقدپه وخت يا خو رانج وی.يا به ددې رواج ټهپ وی.که دا رانج وی.نود دراهمو او دنانيرو پشان بيع کښې ددې متعين کول هم ضروری نه دی.بلکه دا په متعين کولو سره هم نه متعين کيږی.مثلاً د لس پيسو نې څه څيز واخستلو.نو ددې څيز متعين کول واجب دی.خو پيسې به نه متعين کيږی.بلکه په پيسو کښې به لس پيسې ورکوی.

**دليله** ‹ ځکه چه د خلقو د اتفاق په وجه فلوس( پيسې ) ثمن جوړ شوی دی.او ثمن په متعين کولو سره نه متعين کيږی.ځکه به دا فلوس هم نه متعين کيږی.

| وَإِنْ كَانَتْ كَاسِدَةً اوکه ددې پيسو چلن بند وی لَمْ يَجُزِ الْبَيْعُ بِهَا نو ددې په عوض بيع جائز نه ده حَتَّى يُعَيِّنَهَا |
|---|

**تشريح** ‹ **عدم جواز البيع بالفلوس الكاسدة** ‹ که دا فلوس رانج نه وی.بلکه ددې چلن بند شوې وی.نو په بيع

کښې ددې متعین کول ضروري دی. یعني په دې صورت کښې به ددې بیع هغه وخت جائز وي. چه کله دا متعین شوی وي.

**دلیله>** ځکه چه اوس دا فلوس سامان جوړشوې دې. اود سامان په بیع کښې سامان متعین کول ضروري وي. په دې وجه به ددې متعین کول هم ضروري وي.

### د رائج فلوس په عوض بیع نه پس ددې د ټهپ کیدلو مسئله

وَإِذَا بَاعَ بِالْفُلُوسِ النَّافِقَةِ اوکه د رائج الوقت فلوس ( پیسو ) په عوض ئې څه څیز خرڅ کړو ثُمَّ كَسَدَتْ قَبْلَ الْقَبْضِ بیا ددې چلن بند شو مخکښې د قبض نه بَطَلَ الْبَيْعُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به بیع باطل وي

**تشریح> بطلان البیع بعد کساد الفلوس>** مسئله داده. که یو کس څه څیز د رائج الوقت فلوس په عوض خرڅ کړلو. بیا په دې باندې د قبضه کولو نه پس ددې چلن بند شو. نودحضرت امام اعظم رحمه الله په نیز به دا بیع باطل وي.

**مذهب الصاحبین>** اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به باطل نه وي. بلکه په مشتري د ټهپ شوي فلوس قیمت واجب وي. د امام ابویوسف رحمه الله په نیز به د عقدبیع د ورځې قیمت واجب وي. اود امام محمد رحمه الله په نیز به د ټهپ کیدلو دورځې قیمت واجب وي. ددې اختلاف تفصیل سره د دلائلو د تیره شوې مسئلې (اذا اشتری بها سلعة فکسدت) لاندې تیرشوې دې. هلته کښې ئې اوګورئ.

### د نصف درهم فلوسو په عوض اخستلو حکم

وَمَنِ اشْتَرَى شَيْئًا بِنِصْفِ دِرْهَمٍ مِنْ فُلُوسٍ اوکه یوکس یوڅیز د نصف درهم فلوس ( پیسو) په عوض واخستلو جَازَ الْبَيْعُ نو بیع جائز ده وَعَلَيْهِ مَا يُبَاعُ بِنِصْفِ دِرْهَمٍ مِنْ فُلُوسٍ او په مشتري به دومره اندازه فلوس واجب وي. کوم چه د نصف درهم په عوض خرخولې شي

**تشریح> صورة المسئلة>** صورت د مسئلې دادې. یوکس اوونیل. چه ما دا څیز د نصف درهم فلوس په عوض واخستلو. یعني د دومره فلوس په عوض مې واخستلو. چه ددې قیمت نصف درهم سپین زر وي. نودا بیع جائز ده. او په مشتري باندې به دومره فلوس اداکول واجب وي. چه د نصف درهم په عوض خرڅیږي. اوکه دا ئې اوونیل چه دا څیز ما د یو دانق فلوس یاد یو قیراط فلوس په عوض واخستلو. یعني د دومره فلوس په عوض مې واخستلو. چه ددې قیمت یو دانق سپین زر یا یو قیراط سپین زر وي. نودا هم جائز دی. او په مشتري باندې دومره فلوس ادا کول واجب دی. چه د یو دانق سپین زر یا د یوقیراط سپینو زرو په عوض خرڅیږي.

**مذهب زفر رحمه الله>** په زیربحث مسئله کښې امام زفر رحمه الله فرمائي. چه په دې ټولو صورتونوکښې بیع ناجائز ده.

**دلیله>** د امام زفر رحمه الله دلیل دادې. چه مشتري د فلوس په عوض اخستل کړې دی. او فلوس د معدوداتو څخه دی. او نصف درهم، دانق او قیراط د موزوناتو څخه دی. یعني د فلوس اندازه په شمیر سره کیږي. په دانق، قیراط او نصف درهم سره نه کیږي. نود نصف درهم، دا نق او قیراط په ذکرکولو سره عدد ذکر نشو. او هرکله چه د فلوس عدد ذکر او بیان نشو. نو په دې بیع کښې د فلوس مقدار یعني ثمن مجهول شو. اود ثمن مجهول کیدلو په صورت کښې بیع ناجائز وي. په دې وجه به په دې ټولوصورتونوکښې بیع ناجائز وي.

**الجواب عنه**> د دې نه جواب دادې.چه كوم فلوس د نصف درهم، دانق اود قيراط په عوض خرڅيږي.هغه ټولو ته معلوم دی.او مونږ مسئله هم په دې صورت كښې فرض كړې ده.چه خلقو ته دا معلومه وی.چه د نصف درهم سپينو زرو په عوض څومره قدرې فلوس خرڅيږي.اود يو دانق عوض څومره قدرې،اود يو قيراط عوض څومره قدرې فلوس خرڅيږي.او مسئله هم په دې صورت كښې فرض شوې ده.نود فلوس مقدار او تعداد بيانولو هيڅ ضرورت نشته.نوهركله چه ددې علم ټولو ته دې.نود ثمن مجهول كيدل نه لازميږي.او هركله چه ثمن مجهول پاتې نشو.نو بيع به هم ناجائز نه وی.بلكه جائز به وی.

**د يو درهم د نيم په بدله كښې فلوس.اود نيم په بدله كښې**

**د يوحبه ( رتې) كم نصف درهم اخستلوحكم**

| وَمَنْ أَعْطَى صَيْرَفِيًّا دِرْهَمًا اوكه يوكس صراف ته يو درهم وركړو فَقَالَ او وې ونيل أَعْطِنِي بِنِصْفِهِ فُلُوسًا وَبِنِصْفِهِ نِصْفًا إِلَّا حَبَّةً چه ماته ددې دنصف په عوض فلوس اود نصف په عوض يو حبه ( رتې) كم نصف درهم راكړه بَطَلَ الْبَيْعُ فِي الْجَمِيعِ نو باطله ده بيع ټولو كښې |
|---|

**تشريح**> په دې عبارت كښې دا مسئله ذكر ده چه يو سړی صراف ته يو روپۍ وركړله.او وې ونيل.چه ته ماته ددې د نصف په عوض فلوس راكړه.اود نصف په عوض يو حبه ( رتې) كم نصف درهم راكړه. نود امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دا دې.چه په كُل كښې بيع باطل وی.

**دليله**- ځكه چه د پوره درهم صفقه يوه ده. او په نصف درهم كښې رباء لازميدلو په وجه فساد قوی دې. او فساد ځكه قوی دې.چه د رباء په وجه كوم فساد پيدا شوې دې.هغه مجمع عليه او متفق عليه دې. او فساد قوی چونكه په پوره عقد كښې خور دې.ځكه به پوره عقد فاسد وی.ددې مثال تيرشوې دې. مثلاً هركله چه څوك غلام او آزاد خرڅ كړی.او په دې كښې د هريو ثمن بيان نكړې شو.نود آزاد په بيع كښې فساد چونكه قوی دې.په دې وجه به دا فساد بالاجماع په پوره عقدكښې خوريږي.نوهم دغه شان په متن كښې په ذكرشوې مسئله كښې هم په پوره عقد كښې فساد خور شوې دې.او په كُل كښې به عقد باطل وی.

| وقالا صَحَّ الْبَيْعُ فِي الْفُلُوسِ وَبَطَلَ فِيمَا بَقِيَ او صاحبين رحمهما الله فرمائی چې فلوس كښې دا بيع جائز ده.او په مابقی كښې باطل ده. |
|---|

**تشريح**> **مذهب الصاحبين**> اود صاحبينو رحمهما الله په نيز فلوس كښې دا بيع جائز ده.او په مابقی كښې باطل ده.

**دليله**> ځكه چه ده د نصف درهم مقابله فلوس سره كړې ده.اود نصف درهم مقابله ئې حبه ( رتې)كم نصف درهم سره كړې ده.نو فلوس سره د نصف درهم په مقابله كښې چونكه دجواز هيڅ مانع نشته.په دې وجه د فلوس په عوض د نصف درهم بيع جائز ده.اود حبه كم نصف درهم مقابله نصف درهم سره كولو كښې چونكه رباء ده.ځكه به ددې بيع باطل وی.

| وَلَوْ قَالَ اوكه اوونيلی شو أَعْطِنِي نِصْفَ دِرْهَمٍ فُلُوسًا وَنِصْفًا إِلَّا حَبَّةً چه ماته نصف درهم فلوس او حبه ( رتې) كم نصف درهم راكړه جَازَ الْبَيْعُ چه ماته نصف درهم فلوس او حبه ( رتې) كم نصف درهم راكړه نو بيع جائز ده |
|---|

**تشريح**> **صورة المسئلة**> په دې عبارت كښې دريم صورت بيانوی چه يوكس صراف ته يو درهم وركړو.او

وي ونيل.چه ته ماته ددې درهم په عوض دنصف درهم فلوس او حبه کم نصف درهم راکړه.نودا پوره بيع جائز ده.يعني فلوس او حبه ( رتئ) کم نصف، د دواړو نصف درهم بيع جائز ده.

**دليله>** خکه چه په دې صورت کښې مشتری د يو درهم په مقابله کښې د نصف درهم قيمت فلوس،او حبه کم نصف درهم ذکر کړی دی.نود حبه کم نصف درهم په عوض به حبه کم نصف درهم شي.او نصف درهم او يوحبه به د برابر درهم په عوض فلوس شي.اود درهم او فلوس په مينځ کښې چونکه اختلاف جنس دې.خکه به کمې زياتې هم جائز وی.

| |
|---|
| **ولوقال اعطني درهماصغيراًا** او که اووائی چې ماته وړه روپئ راکړه **وزنه نصف درهم الاحبة** چې د هغې وزن د نيمې روپئ نه يوه رتئ کم وی **والباقي فلوساً** او باقي پيسې وی **جازالبيع** نو جائزه ده بيع **وكان النصف الاحبة** او د نيمې روپئ نه يوه رتئ کم به وی **بإزاءالدرهم الصغير** په مقابله د وړې روپئ **والباقي بإزاءالفلوس** او باقی به په مقابله د پيسو کښې وی |

**حل اللغة>** ① صغيروړکوتي ② حبة: رتئ ③ فلوس :پيسې ④ ازاء :مقابله ،عوض

**تشريح> صورة المسئلة>** وړه روپئ چې د هغې وزن يوه رتئ کم نيمه روپئ وی نو يو کس صراف ته يوه روپئ ورکړه او بيا ئې ورته داسې اووئيل چې په دې روپئ کښې يوه رتئ کم نيمه روپئ راکړه يعني وړه روپئ راکړه او باقي يوه رتئ زياتی نيمه روپئ چې کومه پاتې کيږی د هغې په بدله کښې پيسې راکړه نو بيع به جائز وی

**دليله>** خکه چې په دې صورت کښې به يو رتئ کم نيمه روپئ د يوې روپئ په مقابله کښې شی او يوه رتئ زياته روپئ د دې په مقابله کښې به پيسې شی نود دواړو جنس د يو بل نه جدا شو او چې جنس جدا شو نو سود نشو د دې وجې بيع جائز شوه

# كِتَابُ الرَّهْنِ

**ترجمه>** ( دا) کتاب د رهن ( د مسائلو په بيان کښگيگ) ديگ.

**تشريح>** د کتاب الصيد او کتاب الرهن په مينځ کښې مناسبت دا دی.چه ددې دواړو مقصود مال حاصلول دی. بيا رهن مصدر دې.ددې معنی ده گانړه ايخودل.او مصدر کله کله د اسم مفعول په معنی کښې استعماليږی.نورهن کله د مرهون په معنی کښې راځی.يعنی هغه سامان کوم چه گانړه ايخودې شي.راهن هغه دې.کوم کس چه خپل مال بل سره گانړه ايږدی.مرتهن هغه دې.د چا سره چه گانړه ايخودې شي.

**الرهن لغة وشرعاً>** د رهن معنی ده.په يو سبب د يو څيز محبوس کول ( او راگيرول).او په شريعت کښې رهن وائی.د قرض په بدله کښې يو څيز محبوس کول.چه د ضرورت په وخت د قرض وصولول په رهن سره اوشی.

**ثبوته من الكتاب>** د کتاب الله نه د دې د ثبوت دپاره دا ايت دليل دې ﴿وَإِنْ كُنْتُمْ عَلَى سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَقْبُوضَةٌ﴾ يعنی که په سفر کښې د قرض معامله کوئ.اود عهد ليکلو دپاره څوك ليکونکې ملاؤ نشی .نو د قرض په عوض څه څيز قرضدار له ايخودل پکار دی.په سفر کښې د رهن حاجت په نسبت د حضر( مقيم) زيات وی.خکه چه حضر( اقامت) کښې کتابت او شهادت سره هم په آسانتيا د قرضخواه اطمينان ممکن دې.په دې وجه چه سفر کښې د رهن حکم اوشو.کنی حضر( اقامت) کښې د ليکونکی په موجودگئ کښې هم رهن صحيح دې. لکه څنگه چه حديث کښې موجود دی.خلاصه د کلام دا چه د

قران ددې ایت نه د رهن جواز ثابتیږی.

**ثبوته من السنة** سنت رسول ﷺ د بخاری اومسلم روایت دې.چه نبی کریم ﷺ د یو یهودی نه غله واخستله.او د ثمن په بدله کښې ئې خپله زغره هغه سره رهن ( ګانړه) کیخودله.نو د حدیث نه معلومه شوه.چه رهن جائز دې.

**ثبوته من الاجماع** د رهن په جواز باندې اجماع منعقد ده.

**ثبوته من القیاس** کفالت بالاتفاق جائز دې.او ددې حقیقت دا دې.چه واجب حق د کفیل نه وصول کړې شی.نو د کفالت په وجه د صولولو په طرف کښې پوخوالې پیدا کیږی.دغه شان د رهن په وجه د حق وصولولو طرف پخیږی.نو رهن به کفالت باندې قیاس کولې شی.او ونیلې به شی.چه لکه څنګه کفالت جائز دې.دغه شان رهن هم جائز دې.خلاصه دکلام داچه په ادلهٔ اربعه سره د عقد رهن جواز ثابت دې.

**د رهن منعقد کیدو او قبضه کولو بیان**

| |
|---|
| الرَّهْنُ يَنْعَقِدُ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ چه رهن منعقد کیږی.په ایجاب او قبول سره وَيَتِمُّ بِالْقَبْضِ او تمامیږی په قبضې سره |

**تشریح** **انعقاد الرهن** لکه څنګه چه نور عقدونه په ایجاب او قبول سره منعقد کیږی.دغه شان رهن هم ایجاب او قبول سره منعقد کیږی.او قبضې سره تمامیږی.هم دا دجمهور احنافو مسلك دې.

**رکنه وشرطه** شیخ الاسلام خواهر زاده رحمه الله فرمائی.چه صرف او صرف ایجاب رکن دې.او قبول رکن نه دې. بلکه شرط دې.خو اصح دا دې.چه دا دواړه رکن دی.امام خواهرزاده رحمه الله فرمائی.چه رهن عقد تبرع ده.او کوم چه عقد تبرع وی.هغه صرف متبرع سره تمامیږی.لکه هبه او صدقه چه عقد تبرع دی. دا صرف په متبرع سره پوره کیږی.اوقبضه رکن نه دې.بلکه لزوم د عقد رهن دپاره شرط دې. [1]

**دلیله** ① دلیل ﴿فَرِهٰنٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾ دې دلته کښې رهن د مقبوضه کیدو په صفت سره متصف شوې دې.او کله چه د نکره وصف بیانولې شی.نو دا عام وی.لکه ( مثلاً .. لا اکلم الا رجلاً کوفیاً.. نو ددې نه دا خبره ثابته شوه. چه هر رهن به دې وصف سره مشروع وی.بیا رهان مصدر دې.چه په دې فاء داخل ده.او رهن په محل د جزاء کښې دې.اوکله چه داسې وی.نو هلته مصدر په معنی د امر وی.یعنی د رهن معامله کوئ.په داسې حال کښې چه په دې باندې قبضه کوئ.د قبضې په شرط کیدو باندې دلیل عقلی رهن عقد تبرع ده.او ددې په عقد تبرع کیدو باندې دوه دلیلونه دی (۱) راهن باندې زبردستی جائز نه ده.چه هغه خامخا رهن کیږدی.(۲) راهن ته د رهن په بدله کښې مرتهن نه هیڅ څیز نه حاصلیږی.نو د رهن امضاء ( حکم جاری کول) او نفاذ ضروری دې.چه د مرتهن استحقاق ثابت شی.لکه څنګه چه وصیت هم یوه تبرع ده.د موصی له د استحقاق دپاره نفاذ ضروری دې. او هم دا نفاذ به د قبضې په ذریعه کیږی.بهرحال د رهن د جواز دپاره قبضه شرط ده.

**قسمیٔ القبض** اود قبضې دوه قسمونه دی.① تحقیقی ② حکمی.... تحقیقی دا دې.چه قابض دا واخلی.او خپل ځان سره ئې یوسی.اودحکمی نه مراد تخلیه ده.یعنی راهن دمرهون او مرتهن په مینځ کښې تخلیه اوکړی .چه هلته کښې د مرتهن په قبضه کولو کښې هیڅ مشکلات نه وی.نو دلته کښې کومه قبضه شرط ده. مرغینانی رحمه الله فرمانیلی دی.چه په ظاهرالروایة کښې قبضهٔ حکمی کافی ده.یعنی تخلیه کافی ده.لکه کله چه بائع د مشتری او مبیع په مینځ کښې تخلیه اوکړله.نو قبضه

---

[1] **مذهب مالك** رحمه الله:- د امام مالك رحمه الله مذهب دا دې.چه رهن صرف ایجاب او قبول سره لازمیږی.قبضه په دې کښې شرط نه ده.

اوشوه.دغه شان به دلته کښې هم کيږي .ځکه چه قبضه دواړو کښې د عقد مشروع حکم دې.نو دواړو کښې تخليه کافي ده.

**مرهون باندې د مرتهن د قبضې کولو بيان**

وَإِذَاقَبَضَ الْمُرْتَهِنُ الرهن نو کله چه په دې باندې مرتهن قبضه اوکړله مَحُوزًامُفَرَّغًامُمَيَّزًا په داسې حال کښې چه مرهون محوز، مفرغ او متميز وی تَمَّ الْعَقْدُفِيهِ‌نو عقد به لازم وی. وَمَالَمْ يَقْبِضْ او ترکومه پورې چه مرتهن په رهن باندې قبضه نه وی کړې. فَالرَّاهِنُ بِالْخِيَارِإِنْ شَاءَسَلَّمَهُ نو راهن سره اختيار دې.که غواړی.دا دې اوسپاری وَإِنْ شَاءَرَجَعَ عَنِ الرَّهْنِ او که غواړی.د رهن نه دې رجوع اوکړی

**تشريح> تکميل العقد بالقبض>** کله چه مرتهن په مرهون باندې قبضه اوکړله.نو عقد رهن تمام شو.او عقد لازم شو.او ترکومه پورې چه مرتهن قبضه نه ده کړې.نو راهن ته اختيار شته.که غواړی.مرهون دې مرتهن ته حواله کړی. اوکه غواړی.نه دې ورکوی.بلکه د رهن نه دې رجوع اوکړی.

**دليله>** ځکه چه لزوم د عقد قبضې سره کيږی.ځکه چه مقصود د رهن قبضه کولو نه وړاندې نه حاصليږی.خو د قبضې پوره کيدو دپاره امام قدوری رحمه الله دري څيزونه بيان کړی دی

**رهن باندې د مرتهن د قبضې کولو حيثيت**

فَإِذَاسَلَّمَهُ إِلَيْهِ او کله چه راهن مرهون ( څيز) مرتهن طرف ته اوسپارلو فَقَبَضَه) بيا مرتهن په دې باندې قبضه اوکړله دَخَلَ فِي ضَمَانِهِ نو مرهون د مرتهن په ضمان کښې داخل شو

**تشريح> دخول الرهن في ضمان المرتهن>** رهن باندې د مرتهن قبضه، قبضه د ضمانت ده. ز د مرهون په هلاکيدو سره قرض ساقطيږی.چه ددې تفصيل روستو راروان دې. ([1])

**دلائله>** ① رومبې حديث دا دې.چه رسول الله ﷺ مرتهن ته فرمائيلي وو. ذَهَبَ حَقُّكَ([2]) دده سره د رهن اس هلاکيدو نه پس ستا حق ختم شو.دا واضح دليل دې.چه رهن مضمون وی.

② دويم حديث إِذَاعَمِيَ الرَّهْنُ فَهُوَبِمَافِيهِ([3]) يعنی کله چه د رهن قيمت مشتبه شی.چه د قرض نه کم دې اوکه زيات دې.اوکه برابردې.نو رهن به د قرض برابر شمارلې کيږی.او د رهن په هلاکت سره به پوره قرضه ساقطيږی .د ،،إذاعمي الرهن،، معنی ،،إشتبهت قيمة الرهن،، ده.

③ دريم دليل د صحابه کرامو رضي الله عنهم او د تابعينو اجماع ده.چه رهن مضمون وی.اګرچه ددې حضراتو د ضمان په کيفيت کښې اختلاف دې.خو په نفس ضمان کښې هيڅ اختلاف نشته. نو د امام شافعی رحمه الله د امانت قول، د اجماع مخالف دې.او د اجماع مخالفت جائز نه دې.

---

[1] ) مذهب الشافعي رحمه الله:-د امام شافعی رحمه الله په نيز قبضه د امانت ده. د امام شافعی رحمه الله په نيز د مرهون په هلاکيدو سره د قرض نه هيڅ نه ساقطيږی.

[2] ) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه ابن حبان في صحيحه في النوع الثالث والأربعين من القسم الثالث والحاكم في المستدرك (٢\٥١) وقال الزيلعي رحمه الله أنه قول صاحب الهداية قالها ثلاثاً لم أجده في شي من طرق الحديث (نصب:٥\٤٢، ٤٣)_

[3] – من حديث عطاء أخرجه أبوداود في مراسيله وابن أبي شيبة في مصنفه (نصب:٥\٤٣)_

## رهن د کوم څيز په بدله کښې کېږي؟

وَلَا يَصِحُّ الرَّهْنُ او رهن به صحيح نه وي إِلَّا بِدَيْنٍ مَضْمُوْنٍ خو د دين مضمون په بدله کښې دې

**تشريح> صحة الرهن بدين مضمون>** رهن صرف د قرض په بدله کښې صحيح کيږي.

**دليله>** ځکه د رهن حکم دا دې.چه مرتهن ته په رهن باندې داسې قبضه حاصله شي.چه په دې سره هغه خپل قرض وصول کړي.او وصولولې به هله شي.کله چه د مخکښې نه د دين وجوب ثابت شوې وي.

## مرهونه څيز په کوم مقدار کښې د مرتهن په ضمان کښې داخل دې؟

وَهُوَ مَضْمُوْنٌ بِالْأَقَلِّ مِنْ قِيْمَتِهٖ وَمِنَ الدَّيْنِ [1] او مرهون مضمون وي.په کم سره، د قيمت د رهن او د قرض نه ،فَإِذَا هَلَكَ فِيْ يَدِ الْمُرْتَهِنِ نو کله چه مرهون هلاك شو.د مرتهن په قبضه کښې وَقِيْمَتُهٗ وَالدَّيْنُ سَوَاءٌ او ددې قيمت او قرض برابر وي صَارَ الْمُرْتَهِنُ مُسْتَوْفِيًا لِدَيْنِهٖ نو شي به مرتهن د خپلې قرضې وصول کونکې، وَإِنْ كَانَتْ قِيْمَةُ الرَّهْنِ أَكْثَرَ مِنَ الدَّيْنِ فَالْفَضْلُ أَمَانَةٌ او که د رهن قيمت زيات وي.نو زياتوالې امانت دې وَإِنْ كَانَتْ قِيمة الرهن أَقَلَّ مِنْ ذٰلِكَ اوکه وي قيمت د رهن سَقَطَ مِنَ الدَّيْنِ بِقَدْرِهَا نو د قرض نه به ددې په اندازه ساقطيږي وَرَجَعَ الْمُرْتَهِنُ بِالْفَضْلِ او مرتهن به زياتې واپس اخلي

**تشريح> توضيح الضمان>** وړاندې ونيلې شوي دي.چه مرهون د مرتهن په ضمانت کښې داخل وي.اوس په دې باندې سوال پيدا کيږي.چه په څومره مقدار کښې به مضمون وي؟ نو دلته کښې ددې جواب ورکړې شوې دې.

**جواب>** حاصل د جواب دا دې.چه د رهن قيمت او قرض کښې چه کوم يو درهم کم وي.هغه مقدار سره به مضمون وي.نوکه د رهن قيمت دوه سوه روپۍ وي.او قرض سل روپۍ وي.نو سل روپۍ کمې دي.او د رهن قيمت زيات دې.نو په دې صورت کښې به ضمان په اندازه د سلو روپو وي.اوکه ددې په عکس وي.بيا به هم ضمان په اندازه د سلو روپو وي.نو که مرتهن سره مرهون هلاك شو.او د قرض او رهن قيمت برابر وي. نو مسئله برابر سرابر شوه.او مرتهن به د خپلې قرضې وصولونکې شمارلې کيږي.او که د رهن قيمت زيات وي.نو زياتوالې به امانت وي.اوکه قرض ادا شو.ځکه چه مرتهن په څومره مقدار سره خپله قرضه وصول کولې شي.هم په هغه اندازه مضمون وي.او دا مقدار په اندازه د دين ده.اوکه د رهن قيمت کم وي.او قرض زيات وي.نو څومره چه د رهن قيمت وي.په رهن هلاکيدو سره دومره قرضه ساقط شوه.او باقي قرض به مرتهن د راهن نه وصول کوي. ځکه چه دلته کښې مرتهن د دومره مقدار وصول کونکې شمارلې شي.څومره چه د رهن ماليت دې.

**دلائله>** ① نقلي دليل دا دې.چه د حضرت عمررضی الله عنه او عبدالله بن مسعود رضي الله عنهما نه هم دغه شان نقل دی.ځنګه چه زمونږ مذهب دې.(۲)

② عقلي دليل دا دې.چه د مرتهن قبضه د وصولولو قبضه ده.نوڅومره مقدار چه د وصولولو وي.هم

---

[1] القول الراجح هو هذا قول الأئمة الثلاثة رحمهم الله كذا في الإختيار لتعليل المختار (۳۰۸\۱) وملتقى (۲۷۲\٤) والدرالمختار (۳٤۲\۵) نقلا عن القول الراجح (۳۲۵\۲)۔

[2] – أما رواية عمر رضي الله عنه فأخرجه البيهقي في السنن الكبرى (۷۱\٦) رقم ۱۱۲۲۸) وأما رواية ابن مسعود رضي الله عنه فأخرجه فقال الزيلعي رحمه الله وقال هي غريبة (نصب :٤۸\۵)۔

هغومره ضمان واجبيدل پكار دي.ځكه چه د مرتهن دا وصولول خو حقيقي وصولول نه دي.بلكه دا وصولول شمار كړې شوي دي.اوكه حقيقي وصولول وي.نو بيا هم دا حكم دې.كوم چه مونږ بيان كړو.چه په اندازه د دين دا مضمون دې.اوباقي امانت دې.مثلاً د زيد په خالد باندې يو زر روپۍ دي.او خالد زيد ته يوه تهيلۍ چه په دې كښې دوه زره روپۍ دي.رهن وركړله.اتفاق سره د زيد نه دا تهيلۍ هلاكه شوه.نو د زيد قرض وصول شو.او باقي زر روپۍ به امانت شمارلې كيږي.نو دلته كښې هم دغه شان كيدل پكار دي.

**مذهب زفر** رحمه الله ﴿ د امام زفر رحمه الله مذهب دا دې.چه د رهن كوم قيمت وي.د هغې په اندازه به مرتهن باندې ضمان وي.نو كه د رهن ايخودو په ورځ د مرهون قيمت پنځلس سوه روپۍ وي.او قرض زر روپۍ وي.او رهن مرتهن سره هلاك شي.نو د مرتهن قرضه به هم ادا وي.او راهن به مرتهن نه پنځه سوه روپۍ اخلي.امام زفر رحمه الله دليل نقلي او دليل عقلي پيش كړې دې.

**دلائله:-** ① رومبې دليل نقلي دې.چه حضرت علي رضي الله عنه د رهن په باره كښې فرمائيلي دي.چه ،، راهن او مرتهن به د زياتوالي لين دين كوي،، يعني كه قرض د رهن نه زيات دې.نو زياتوالې به د راهن نه اخستلې شي.او كه د رهن قيمت زيات دې.نو زياتوالې به د مرتهن نه وصولولې شي.

**الجواب عنه** ﴿ د دې نه جواب دا دې چه امام زفر صاحب رحمه الله تاسو دهوكه شوي يئ.او د حديث هغه مطلب نه دې.كوم چه تاسو ګنړلې دې.بلكه مطلب دا دې.كه مرهون خرڅ كړې شي.نو د كمي زياتي وركړه راكړه به كولې شي.او په بيع كښې هم مونږ هم ددې قائل يو.او زمونږ او ستاسو بحث د مرهون په هلاكت كښې دې.او دا د حديث مراد نه دې.

كه څوك دا اووائي چه تاسو سره څه دليل دې.چه حديث كښې د بيع حالت مراد دې؟ددې جواب دا دې چه زمونږ سره دليل دا دې.چه د حضرت علي رضي الله عنه نه دويم روايت دا نقل دې.چه د زياتي په سلسله كښې مرتهن امانت دار دې. (أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه (نصب:۳۹۱۵))ددې نه معلومه شوه.چه رومبې حديث بيع باندې محمول كړې شي.ګنې د حضرت علي رضي الله عنه په اقوالو كښې به تعارض لازم شي.

② دويم دليل عقلي دې.ددې حاصل دا دې.چه لكه څنګه د رهن هغه مقدار مرهون دې.كوم چه د دين په اندازه دې.دغه شان ددې نه زيات مقدار هم مرهون دې.ځكه چه اصل او زياتوالې دواړه د قرض په بدله كښې محبوس دي. نو لكه څنګه چه د رهن هغه مقدار مضمون دې.كوم چه د دين په اندازه دې.دغه شان به هغه مقدار هم مضمون وي.كوم چه ددې نه زيات دې.مثلاً يو اس رهن دې.چه ددې قيمت پنځه سوه روپۍ دي.او قرض دوه سوه روپۍ دي.نو ټول اس مرتهن سره مرهون او محبوس دې.نو ضمان هم د پوره واجبيدل پكار دي.

**الجواب عنه** ﴿ د دې نه جواب دا دې چه قاعده دا ده.(الضرورة تتقدر بقدر ضرورته) نو مرتهن سره پوره اس ځكه رهن ايخودې شوې دې.چه د دوه سوه مقداره پورې اس دده سره رهن كيخودې شي.او درې سوه مقدار والا كينخودې شي.نو دا صورت ممتنع دې.نو د ضرورت په بناء باندې پوره اس كيخودې شو.خو ضرورت د ضرورت حده پورې وي.نو زياتي په رهن ايخودو كښې ضرورت وو.په دې وجه دا جائز اوګرځولې شو.او د ضمان په حق كښې هيڅ ضرورت نشته.په دې وجه به ضمان واجب نه وي.

### د غير منقسم رهن حكم

| وَلَايَجُوزُرَهْنُ الْمُشَاعِ او د مشاع (غيرمنقسم) رهن جائز نه دې |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **مشاع**: خور وور ،ناقابل تقسيم ② **يتناول**: شامليږي]

تشريح> عدم جواز رهن المشاع> د مشاع رهن نجائز نه دي.بلكه ضروري ده.چه دا تقسيم شوې وي. ([1])
دلائله> ① زمونږ دليل په دوه طريقو دې زمونږ په نيز د رهن حكم د يد استيفاء ( د وصولولو د قبضې) ثبوت دې.او د يد استيفاء ثبوت.مشاع كښې نشي حاصليدې.نو د مشاع رهن به هم جائز نه وي.( دويم دليل لاندې دې)

② دويم دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه د رهن مقبوض كيدل شرط دی.لكه د الله تعالى فرمان﴿فَرِهٰنٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾ په دې دلالت كوی.او د رهن مقصود هم دا واضح كوی.خكه د رهن مقصود دا دې.چه مضبوطى حاصله شي.چه راهن د قرض انكار اونكړي.بهرحال د مضبوطيا او قبضې حاصلولو دپاره ضروری ده.چه مرهون برابر مرتهن سره محبوس پاتې وی.او مرتهن ته د دين اداكولو پورې د حبس استحقاق حاصل وی.او په مشاع كښې دائمی حبس د سره كيدې نشي.خكه چه دې كښې د دويم حق موجود دې.كه د مشاع رهن جائز اوګرځولې شي.نو په دې كښې مهايات ( او نمبرې) ضروری ده.چه يوه ورځ دا مرتهن سره وی.او په بله ورځ د راهن شريك سره وی.او دا هم دغه شان ناجائز دې.لكه خنګه كه راهن د غير مشاع مرهون په باره كښې صراحت سره دا اووانی.چه مرهن به يوه ورځ مرتهن سره وی.او يوه ورځ به زما سره وی.او دا ناجائز دې.نو رومبې قول به هم جائز نه وی.هركله چه دا خبره شوه.چه مشاع كښې به دائمی حبس فوت شي. چه دا په رهن كښې ضروری دې.نو د مشاع رهن به جائز نه وی.كه دا د تقسيم قابل وی.اوكه نه وی.خكه چه حبس دائمی دواړو صورتونو كښې موجود نه دې.

## د كومو څيزونو رهن ايخودل صحيح نه دي

| |
|---|
| وَلَارَهْنُ ثَمَرَةٍ عَلَى رُءُوسِ النَّخْلِ او جائز نه دې.د هغه ميوو رهن كومې چه په وُنو كښې دی د وُنو نه بغير وَلَازَرْعٍ فِي الْأَرْضِ دُونَ الْأَرْضِ او نه د زمكې د فصل رهن د زمكې نه وَلَا يجوزرَهْنُ النَّخِيلِ وَالْأَرْضِ دُونَهَا او نه د هغه وُنو رهن كوم چه زمكه كښې دی.بغير د زمكې نه |

تشريح> عدم جواز رهن الثمرة علي النخيل> هركله چه دا صورت راپيښ شي.چه مرهون غير مرهون سره داسې متصل وی.چه د اختلاط ( او ګډون) نه بغير يواخې مرهون باندې قبضه ممكن نه وی.نو دا صورت به جائز نه وی.او دې ته د مشاع درجه وركړې شوې ده.او ناجائز شمار كړې شوې ده.دا داسې قاعده كليه ده.چه په دې باندې ډير جزئيات متفرع دی.مثلاً ① كومې ميوې چه په وُنو كښې لګيدلې دی.د وُنو نه بغير ددې ميوو رهن جائز نه دې. ② كوم فصل چه په زمكه ولاړ دې د زمكې نه بغير ددې فصل رهن جائز نه دې. ③ كومې وُنې چه په زمكه ولاړې دی.د زمكې نه بغير ددې رهن جائز نه دې

دليله> خكه چه مرهون هغه څيز سره پيدائشى متصل دې.كوم چه مرهون نه دې.نو دا د شائع په مرتبه كښې شو.

## د كومو كومو څيزونو رهن صحيح دې ؟

| |
|---|
| وَلَا يَصِحُّ الرَّهْنُ بِالْأَمَانَاتِ او صحيح نه دې رهن په بدله د امانتونو كښې كَالْوَدَائِعِ پشان د ودانعو |

[1] مذهب الشافعي رحمه الله:-د امام شافعی رحمه الله په نيز د مشاع رهن جائز دې.خكه چه د امام شافعی رحمه الله په نيز د رهن حكم دا دې.چه دا خرڅيدې شي. او دمشاع بيع جائز ده.نو ددې رهن جائز دې.

وَالْعَوَارِيّ او عاريتونو وَالْمُضَارَبَاتِ او مضاربتونو وَمَالِ الشِّرْكَةِ او د شركت د مالونو.

**حل اللغة** ① **الودائع:** جمع د **وديعة:** امانت ② **العواري:** جمع د **عارية:** په خواست سره يو څيز غوښتل يا وركول

**تشريح** **الفرق بين الامانة والوديعة** په متن كښې د امانت او وديعت الفاظ راغلي دي دنفس مسئلې د وضاحت نه وړاندې په دې دواړوكښې فرق زده كړه هغه دا چه په وديعت او امانت كښې د عموم خصوص مطلق نسبت دې.يعني وديعت هغه دې.كوم چه په قصد سره د بل سره كيخودې شي.يعني په دې كښې د بل په قبضه كښې وركول مقصود وي.او امانت كښې اثبات د يد ضمني وي.مثلاً هوا شروع شوه.او دې د زيد كپړې والوځولې.او د خالد په غيړه كښې ئې اوغورځولې.نو دا امانت دې.او كه زيد په قصد سره دا كپړه خالد سره ايخودې وه.نو دا وديعت دې...كذا في النهايه..

**توضيح المسئلة** اوس د متن حل كولو ته راشه وړاندې تير شوى دى.چه رهن ځكه ايخودې شي.چه د مرهون نه وصولى اوشي.او مرهون مرتهن سره مضمون وي.تردې كه مرهون مرتهن سره هلاك شي.نو قرض د مذكوره حكم مطابق ساقطيږى.ددې تفصيل نه دا خبره پخپله معلومه شوه.چه كوم څيز مضمون نه وي.نو د هغې په عوض به رهن ايخودل هم جائز نه وي.

**دليله** ځكه چه هركله دلته ضمان واجب نه دې.نو په رهن سره به د كوم څيز وصولول كولې شي. نومعلومه شوه.چه كوم څيزونه د امانت په فهرست كښې راځى.د هغې په عوض رهن جائز نه دې.د امانت په فهرست كښې كوم څيزونه راځي.نو د هغې نه بعض بيان كړې شوى دى. ① زيد د بل كس سره خپل څه څيز وديعت كيخودو.او د مودع نه ئې ددې په بدله كښې رهن اوغوښتلو.نو رهن باطل دې. ② زيد خالد ته يو څيز مستعار وركړو.او ددې په بدله كښې ئې خالد نه رهن اوغوښتلو.نورهن باطل دې.ځكه چه عاريت پشان د امانت او وديعت مضمون نه وي. ③ زيد خالد ته خپل څه مال مضاربت باندې وركړو.او د هغې په بدله كښې ئې د خالد نه څه رهن اوغوښتلو نو دا رهن باطل دې. ④ د زيد او خالد په مينځ كښې شركت دې.په دوى كښې يوكس د بل نه دشركت مال په عوض رهن اوغوښتلو.نو دا عقد رهن به باطل وي.هركله چه په دې ټولو صورتونو كښې عقد رهن باطل شو.نو كله چه دا مرهون د مرتهن سره هلاك شي.نو په ده به رهن احكام نه جارى كيږى.بلكه د امانت احكام به جارى كيږى.او ضمانت به واجب نه وي.

**د بيع سلم د راس المال، د بيع صرف د ثمن،**
**او د مسلم فيه په بدله كښې د رهن حكم**

وَيَصِحُّ الرَّهْنُ بِرَأْسِ مَالِ السَّلَمِ او صحيح كيږى بيع سلم د راس المال په بدله كښې وَثَمَنِ الصَّرْفِ او د بيع صرف د ثمن په بدله كښې وَالْمُسْلَمِ فِيهِ او د مسلم فيه په بدله كښې رهن صحيح دې

**تشريح** **صحة الرهن براس مال السلم** د بيع سلم او بيع صرف تفصيلي بيان وړاندې تير شوې دې.په بيع سلم كښې ثمن ته راس المال ، او مبيع ته مسلم فيه، او بائع ته مسلم اليه، او مشترى ته رب السلم وائي.په بيع سلم كښې د معاقدينو د جدا كيدو نه مخكښې راس المال باندې قبضه ضرورى ده او كوم چه راس المال يا مسلم فيه مقرر كړې شوې دې.د هغې بدلول جائز نه دى.دغه شان بيع صرف كښې هم د عاقدينو د جدا كيدو نه مخكښې مخكښې په ثمن او مبيع باندې قبضه شرط ده.او د ثمن بدلول جائز نه دى.هركله چه دا تفصيل په ذهن كښې كيناستو.نو اوس واورئ چه زمونږ په نيز د راس المال په عوض او د بيع صرف د ثمن په عوض او هم دغه شان د مسلم فيه په عوض كښې رهن ايخودل

جائز دی.

**الاعتراض**> البته په دې ځاني کښې دا اعتراض کيدې شي چه دا رهن جائز نه وی.ځکه چه کله ددې په بدله کښې رهن ايخودې شي.نو ددې څيزونو بدلول به لازميږي.يعني راس المال بل څه مقرر دې.او ددې په بدله کښې نې بل څه ورکړل.يعني مرهون خو حق وصولول نشو.بلکه په حق کښې تبديلي شوه.په دې وجه امام زفر رحمه الله مذکوره رهنونه ناجائز ګرځولی دی.ځکه چه د مرهون او حق په مينځ کښې مجانست نشته.نو د استيفاءِ حق په ځاني استبدال لازميږي؟

**الجواب عنه**> نوددې جواب دا دې چه وړاندې تير شوی دی.چه د مرهون عين امانت دې.او ددې ماليت مضمون دې. نو مذکوره رهن اګرچه د خپل عين په اعتبار سره غير جنس دې.خو د خپل ماليت په اعتبار سره غير جنس نه دې.بلکه د مجانس حق دې.او هرکله چه رهن کښې اصل مضمون ماليت دې.نو ماليت په دواړو کښې موجود دې.نو مجانست متحقق دې.او د بدلولو اعتراض غلط دې.

**که د ثمن يا راس المال په بدله کښې رهن وی.**

**اوهم په دې مجلس کښې هلاک شي؟**

| فَإِنْ هَلَكَ فِي مَجْلِسِ الْعَقْدِ او که په مجلس د عقد کښې (د بيع صرف د ثمن او د بيع سلم د راس المال په عوض ) رهن هلاک شی تَمَّ الصَّرْفُ وَالسَّلَمُ نو بيع صرف او بيع سلم به تمام وی وَصَارَ الْمُرْتَهِنُ مُسْتَوْفِيًا لِحَقِّهِ حُكْمًا او مرتهن به دخپلي قرضي وصولونکي وی.په اعتبار د حکم |
|---|

**تشريح**> **صورة هلاک الرهن في مجلس العقد**> په بيع صرف کښې د ثمن په بدله کښې رهن کيخودې شو.يا د راس المال په بدله کښې رهن کيخودې شو.او تر اوسه د عاقدينو مجلس نه دې بدل شوې.چه مرهون هم په دې مجلس کښې هلاک شو.نو بيع صرف او بيع سلم به تام شمارلې کيږي.چونکه د مرتهن په قبضه کښې د مرهون هلاکيدو په وجه حکماً مرتهن پخپل قرض باندې قبضه کړې ده.نو دواړه عقد تام شو.البته که د مرهون د هلاکيدو نه مخکښې دواړه جدا شو.نو اوس دواړه عقدونه، يعني بيع صرف او بيع سلم باطل دی.

**دليله**> ځکه چه ثمن او راس المال باندې نه حقيقتاً قبضه شوې ده.لکه څنګه چه ښکاره ده.او نه حکماً شوې ده.ځکه چه مرهون نه دې هلاک شوې.که هلاک شوې وې.نو حکماً به قبضه شمار کيدله.

**السوال**> که دلته څوک دا اووائي چه تاسو خو وړاندې خپل او د امام زفر رحمه الله اختلاف بيان کړې دې.چه زمونږ په نيز د راس الماله په بدله کښې او د بيع صرف د ثمن په بدله کښې رهن صحيح دې.او دلته کښې تاسو فرمايئ:چه هم په دې مجلس کښې که هلاک شی.نو عقد صرف او عقد سلم تام دې.ګني باطل دې؟

**الجواب عنه**> مونږ جواب ورکوو چه ددې مسئلې مطلب هم دا دې.چه رهن ددې څيزونو په بدله کښې جائز دې.خو روستو به دا څيز کتلې شی.چه مرهون هم په دې مجلس کښې هلاک شوې دې.او که نه ( روستو هلاک شوې دې).که هم په دې مجلس کښې هلاک شوې وی.نو عقد تام دې.ګني نه دې.ځکه چه هيڅ قسمه قبضه نه ده شوې.ځکه چه دواړه عقدونه به باطل وی.په نورو الفاظو کښې داسې چه دا د مخکښې اجمالي مسئلې تفصيل دې.

**عادل سره د رهن ايخودو حکم**

| وَإِذَا اتَّفَقَا عَلَى وَضْعِ الرَّهْنِ عَلَى يَدِ الْعَدْلِ .او هرکله چه دوی دواړه ( راهن او مرتهن) عادل سره په رهن ايخودو باندې اتفاق اوکړی جَازَ نو جائز دی |
|---|

**تشريح﴾ اتفاق العاقدين علي وضع الرهن في يد العدل﴾** كه راهن او مرتهن دواړو اتفاق اوكړو.چه رهن عادل سره كيږدى.نو دا جائز دې.امام مالك رحمه الله طرف ته دا قول منسوب دې.چه جائز نه دې ولې؟ دوى فرمائي.چه د رهن د جواز دپاره ضروري ده.چه په دې باندې د مرتهن قبضه اوشي.او دلته د مرتهن قبضه نه ده شوې.بلكه د عادل قبضه ده.چه دا د راهن د قبضې قائم مقام ده.

**دليله﴾** دليل دا دې.چه لكه څنګه امام د مقتديانو او د خدائي دواړو نائب وى.دغه شان دلته كښې عادل هم د راهن اومرتهن دواړو نائب دې.او دا ځكه ضروري دې.چه د رهن مقصد پوره شي.نو هركله چه عادل د دواړو نائب شو.نو داسې به وئيلې شي.چه مرهون كښې دوه څيزونه دى.يو ددې ذات او بل ددې ماليت، نو عادل په ذات او صورت كښې د راهن نائب دې.خو په ماليت كښې د مرتهن نائب دې.او مضمون ماليت وى.صورت او عين نه وى.خلاصه د كلام دا چه هركله د عادل په واسطه مرهون باندې دده په ماليت كښې د مرتهن قبضه ثابته شوه.نو رهن صحيح شو.او د امام مالك رحمه الله اعتراض غلط ثابت شو.

**السوال﴾** په ذكر شوى صورت كښې عادل تاوان د راهن نه ولې وصول كوى؟

**الجواب﴾** علامه مرغيناني رحمه الله بيان كړى دى چې عادل د عين په حفاظت كښې د راهن نائب دې.او دا بالكل داسې ده.چه زيد د خالد سره خپل وديعت كيخودو.نو خالد مودع دې.اوس خالد سره دا وديعت هلاك شو.بيا بكر په دې وديعت كښې خپل استحقاق ثابت كړو.او د خالد نه ئې تاوان واخستلو.نو خالد به تاوان د زيد نه وصول كوى. دغه شان په دې صورت كښې هم شوى دى.

## راهن او مرتهن ته د يو بل د حق باطلولو حكم

| |
|---|
| وَلَيْسَ لِلْمُرْتَهِنِ وَلَا لِلرَّاهِنِ أَخْذُهُ مِنْ يَدِهٖ او مرتهن او راهن ته دا حق نشته.چه مرهون د عادل د لاس نه واخلي |

**تشريح﴾ عدم جواز الاخذ من العدل﴾** هغه مرهون كوم چه عادل سره ايخودې شوې دې. په دوى كښې به هيڅ يوكس ته دا حق هم نه وى.چه مرهون د عادل نه واخلي.

**دليله﴾** ځكه چې په دې كښې د راهن او مرهون دواړو حق دې.د ړومبى په اعتبار د عين، او د دويم په اعتبار د ماليت، نو په عاقدينو كښې به هيڅ يو كس ته دا حق نه وى.چه د دويم حق باطل كړى.نو

| |
|---|
| فَـاِنْ هَلَكَ فِي يَدِهٖ نو كه مرهون د عادل په قبضه كښې هلاك شى هَلَكَ مِنْ ضَمَانِ الْمُرْتَهِنِ نو د مرتهن په ضمان كښې به هلاك وى |

**تشريح﴾ هلاك المرهونة في يد العدل﴾** بيا كه دا مرهون د عادل سره هلاك شى.نود مرتهن په ضمان كښې به هلاك وى.او د تيرشوى تفصيل مطابق به قرض ساقطيږى.

**دليله﴾** ځكه چه مرهون باندې په اعتبار د ماليت د عادل قبضه د مرتهن د قبضې قائم مقام ده.او ماليت مضمون وى.

## د مكيلى او موزونى څيزونو د رهن ايخودو حكم

| |
|---|
| وَيَجُوْزُ رَهْنُ الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيْرِ وَالْمَكِيْلِ وَالْمَوْزُوْنِ او دراهم او دنانير اود مكيل او موزون رهن جائز دې. |

**تشريح﴾ جواز رهن الدراهم﴾** لكه څنګه چه نور سامانونه رهن ايخودې شى.دغه شان دراهم او دنانير او مكيلى او موزونى څيزونه هم رهن ايخودې شى.

دلیله> خکه چه د رهن مقصد د حق وصولول دی.کوم چه په دې تولو صورتونو کښې هم ثابت دې.نو معلومه شوه.چه ذکر شوی څیزونه مرهون جوړیدې شی.او دا د رهن محل دی.

الفائدة> کیلی هغه څیزونه دی.کوم چه کیل سره اخستلې شی.او ورکولې شی.لکه په اعتبار د زمانې د رسول الله ﷺ غنم وغیره،او وزنی هغه دی.چه د هغې اخستل او ورکول په وزن او تول سره کیږی.او درهم او دینار هم اگرچه وزنی دی.خو نورڅیزونه مراد دی.او دې ته نقدین، یا حجرین یا ثمنین وئیلې شی.او درهم او دینار رهن ایخودل، او ددې نه قرض نه ادا کول، د بعضو موقعو په لحاظ سره دی.مثلاً سره او سپین زر د یوکس نه دڅه مقصد دپاره واخلی.مثلاً د یوکس نه د سرو زرو هار (امیل) واخلی.دده مقصد دادې.چه دا به واپس کوم.او ددې په بدله کښې درهم یا دینار رهن کیږدی.بیا د رهن په ذکر شوی صورت کښې د مرهون د هلاکیدو په صورت کښې مختلف احکام پیدا کیږی.او مختلف صورتونه به وی.

## څیز د خپل جنس په بدله کښې د رهن ایخودو حکم

| فَإِنْ رُهِنَتْ بِجِنْسِهَا نو که مذکوره څیزونه ئې د خپل جنس په عوض رهن کیخودل وَهَلَكَتْ نو دا هلاك شو هَلَكَتْ بِمِثْلِهَا مِنَ الدَّيْنِ نو د خپل مثل دین په عوض به هلاك وی وَإِنْ اخْتَلَفَا فِي الْجَوْدَةِ والصیاغة اگرچه دواړه پخپل کره والی (او اصلیت) کوټه والی کښې مختلف وی. |
|---|

تشریح> استواء الجودة والصیاغة: دراهم ئې مثلاً د دراهمو په بدله کښې رهن کیخودو.مثلاً سل درهم قرض دی.چه ددې په بدله کښې سل درهمه رهن کیخودې شو.او مرهون مرتهن سره هلاك شو.نو مرتهن د خپل وصولونکې شو.اگرچه دې دراهمو کښې د کره والی (اصلیت) په اعتبار سره هیڅ فرق نشته.

دلیله> بیا هم دا د امام صاحب رحمه الله فرمان دې.خکه امام صاحب رحمه الله فرمانی.چه کله د جنس، جنس سره مقابله وی.او د هغه څیزونو خنې وی.چه هغې کښې کموالی، زیاتوالی سره سود جوړیږی.نو په دې کښې د کره والی هیڅ اعتبار نه کیږی.او نه د قیمت اعتبار کیږی.بلکه صرف د وزن اعتبار کیږی.نو مرتهن خپل حق اوموندلو.

مذهب الصاحبین رحمهما الله> خو صاحبین رحمهما الله فرمانی.چه په ذکر شوی صورت کښې به مرتهن د سل درهمو په ځانې دومره دینار رهن ایږدی.کوم چه د سلو درهمو د قیمت برابر وی.مثلاً لس دینار، اوس به لس دینار مرهون شمارلې کیږی.راهن به هغه ته سل درهمه ورکوی.او لس دیناره به اخلی.

دلیلهما> خکه چه دا د مرهون قائم مقام دی.

| وَمَنْ كَانَ لَهُ دَيْنٌ عَلَى غَيْرِهِ او د چا چې په بل کس باندې قرض وی فَأَخَذَ مِنْ مِثْلِ دَيْنِهِ فَأَنْفَقَهُ نو د هغه نه ئې د خپل قرض په مثل باندې واخستل او هغه ئې خرچ کړل ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ كَانَ زُيُوفًا بیا ورته پته اولګیده چې هغه خو کوټه روپئ وې فَلَا شَيْءَ لَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نو دامام ابو حنیفه په نیز دده څه نه کیږی |
|---|

تشریح> مسلك ابي حنيفة> که د زید په عمرو باندې دوه زره روپئ قرض وی زید د عمرو نه دوه زره روپئ واخستې او هغه ئې خرچ کړې بیا ورته پته اولګیده چې ما ترې کومې روپئ اخستې وې هغه کوټه وې اوزما چې ورته کومې وې هغه ښې وې نو دامام ابو حنیفه په نیز د زید په عمرو باندې مزید څه حق نشته د هغه نه مطالبه اوکړی.

دلیله> دلیل دا دې چې د زید په عمرو باندې څومره عدد روپئ وې هغه ئې وصول کړی دی اوجنس ئې

هم یو دې باقي کړه والې او کوټه والې دا صفت دې ددې څه اعتبار نشته.

وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله يَرُدُّ مِثْلَ الزُّيُوْفِ او صاحبين فرمائي چې د اخستونکې به ورته د کوټه پشان واپس کړي وَيَرْجِعُ مِثْلَ الجِيَادِ او د هغه نه به د جيدو پشان واخلي

**تشريح**> په مذکوره صورت کښې د صاحبينو مذهب دا دې چې زيد څنګه کوټه دراهم اخستې وو هغه شان به کوټه روپۍ د چرته نه پيدا کړي او هغه به ورته واپس کړي اودعمرو نه به مطالبه اوکړي چې ما درته څنګه کره دوه ذره روپۍ درکړې وې هغه شان به ماته راکړې.

**دليلهما**> دليل دا دې چې په قرض وغيره کښې صرف وزن او شمار برابرول کافي نه دي بلکه د ماليت او قيمت په اعتبار سره هم برابري ضروري ده او د دې صورت هم دا دې کوم چې صاحبين وائي.

**نوټ**> صاحب د الجوهرة النيرة فرمائي چې د مشهور قول مطابق امام محمد د امام ابوحنيفه سره دې.

### د دوو غلامانو د رهن ايخودو حکم:

وَمَنْ رَهَنَ عَبْدَيْنِ بِأَلْفٍ او چا چه د زرو (روپو) په بدله کښې دوه غلامان رهن کيخودل فَقَضٰى حِصَّةَ أَحَدِهِمَا نو په دوی کښې ئې د يو حصه ادا کړله لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَقْبِضَهُ نودده دپاره به دا حق نه وي چه په دې باندې قبضه اوکړي حَتّٰى يُؤَدِّيَ بَاقِيَ الدَّيْنِ تردې چه باقي قرض اداکړي.

**تشريح**> **رهن عبدين ثم قضاء حصة احدهما**> د زيد په خالد باندې زر روپۍ دي.زيد د زرو روپو په بدله کښې خپل دوه غلامان خالد سره رهن کيخودل.په دوی کښې د يو قيمت اووه سوه روپۍ دې.او ددويم درې سوه روپۍ دې.زيد اووه سوه روپۍ ادا کړې.او درې سوه روپۍ باقي پاتې شوې.نو آيا زيد ته دا حق شته .چه دا غلام د خالد نه واخلي.دکوم قيمت چه اووه سوره روبۍ دې؟ نو وې فرمائيل.چه زيد ته دا حق نشته.کله چه د خالد پوره قرض ادا کړي .بيا به خپل دواړه غلامان اخلي.

**دليله**> څکه چه رهن د پوره قرض په بدله کښې ګير دې.نو داسې به ګڼړو چه د قرض د هر هر جزء په بدله کښې ګير دې.نو ترکومه پورې چه يوه پيسه هم باقي پاتې وي.زيد ته به دا حق نه وي.چه مرهون د راهن نه واخلي.او په دې کښې دا راز هم دې.چه زيد د قرض اداکولو فکر( او غم) اوکړي.ګويا چه دا په قرض ادا کولو باندې د زيد د تيزولو يو تدبير ( او چل) دې.

**مثاله**>اوددې مثال بعينه داسې دې.چه زيد د خالد نه دوه غلامان په زر روپۍ کښې واخستل.او اووه سوه روپۍ ثمن ئې خالد ته ورکړو.نو اوس به زيد ته دا حق نه وي. چه يو غلام د خالد نه واخلي.بلکه کله چه د هغه پوره ثمن ادا کړي.هله به هغه ته مبيع حواله کولې شي.

**السوال والجواب**> څوکه څوك داتپوس اوکړي چه دده حصه څه څيز دې؟ نو ددې جواب ئې ورکړو چلا(حصة كل واحد منهما..) يعنى کله چه ددوی دواړو قيمت اولګولې شو.او قرض په دوی باندې تقسيم کړې شو.نو دکوم په حصه کښې چه څومره قرض راغې هم دا دهغه حصه ده.لکه څنګه چه په ذکر شوی مثال کښې د يوحصه اووه سوه او د بل درې سوه ده.

### د نيټې په راتلو باندې د رهن خرڅولو د وکيل جوړولو حکم

فَإِذَا وَكَّلَ الرَّاهِنُ الْمُرْتَهِنَ أَوِ الْعَدْلَ أَوْغَيْرَهُمَا فِي بَيْعِ الرَّهْنِ اوکله چه راهن مرتهن، يا عادل، يا ددوی دواړو نه بغير څوك د مرهون د بيع وکيل جوړکړې وی. عِنْدَ حُلُوْلِ الدَّيْنِ د قرض ادا کولو وخت راتلو باندې، فَالْوَكَالَةُ جَائِزَةٌ نو وکالت جائز دې.

**تشريح>** راهن كه هرڅوك وكيل جوړ كړو.چه كله د قرض ادا كولو وخت راشي.نو مرهون خرڅ كړه او قرض ادا كړه.نو چونكه دا د خپل د بيع وكيل جوړول دي.نو ددې په جواز كښې شبه نشته.
**دليله>** دليل دا دې چې دا خو دې د خپل مال د خرڅولو څوك وكيل جوړول دي او هر سړې بل كس د خپل مال د خرڅولو وكيل جوړولې شي نو دا صورت جائز دې

**كه عقدكښې د وكالت شرط وي نو د وكيل معزول كولو حكم**

| فَإِنْ شُرِطَتْ الوكـالة فِي عَقْدِ الرَّهْنِ اوكه وكالت په عقد رهن كښې شرط شوې وي فَلَيْسَ لِلرَّاهِنِ نو راهن ته دا حق نشته عُزله عنها چه وكيل د هغې نه معزول كړي ،فَإِنْ عَزَلَهُ لَمْ يَنْعَزِلْ .اوكه دا نې معزول كړو.نو دا به نه معزول كيږي. |
|---|

**تشريح> شرطية الوكالة في عقد الرهن>** كه په رهن كښې وكالت شرط كړې شو.نو اوس به دا لازم وي.نوكه راهن اوغواړي.چه وكيل معزول كړم.نونشي كولې.او كه معزول نې كړي.نو وكيل به نه معزول كيږي.
**دليله>** ځكه چه اوس وكالت د عقد رهن د حقوقو ځنې يو حق جوړ شوې دې.چه دا د رهن د لزوم په وجه لازميږي.ځكه چه د وكالت د شرط مقصد د مضبوطئ زياتوالې دې.او دويمه وجه دا هم ده.چه اوس ددې سره د مرتهن حق متعلق شوې دې.او د وكيل په معزولولو كښې د مرتهن د حق ابطال دې.چه ددې راهن ته حق نشته.
**مثاله>** ددې مثال بالكل داسې دې.چه مدعى د مدعى عليه نه مطالبه اوكړله.چه عدالت كښې د جواب وركولو دپاره څوك وكيل كړه. په دې سره مدعى عليه څوك وكيل جوړكړو.نو اوس به مدعى عليه ته حق نه وي.چه د مدعى د علم نه بغير وكيل معزول كړي.ځكه چه ددې سره د مدعى حق متعلق شوې دې.دغه شان د رهن وكيل سره هم د مرتهن حق متعلق شوې دې.خو په دې دواړو كښې دومره فرق دې.چه د رهن په صورت كښې راهن ته د وكيل معزول كولو حق صرف هغه وخت وي.كله چه مرتهن راضي شي. او په وكيل بالخصومت كښې د مدعى رضامندي ضروري نه ده.بلكه د هغه علم ضروري دې.

**د راهن په مرګ باندې د وكيل معزول حكم**

| وَإِنْ مَاتَ الرَّاهِنُ لَمْ يَنْعَزِلْ ايضاًاوكه راهن مړ شو.نو هم وكيل به نه معزول كيږي |
|---|

**تشريح> صورة موت الراهن>** لكه څنګه چه په ذكر شوي دواړو صورتونو كښې وكيل نه معزول كيږي.دغه د راهن په مرګ سره هم نه معزول كيږي.
**دليله>** ځكه چه د راهن په مرګ سره رهن هم نه باطليږي.نو حقوق د رهن به هم نه باطليږي. اود موكل په مرګ سره چه وكالت كله هم باطليږي.د وارثانو د حق په وجه كيږي.ځكه چه ملكيت وارثانو طرف ته منتقل كيږي.خو دلته كښې دا هم نشي كيدې.ځكه چه د مرتهن حق په وارثانو باندې مقدم دې.

| وَلِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يُطَالِبَ الرَّاهِنَ بِدَيْنِهِ وَيَحْبِسَهُ بِهِ |
|---|

**صورة المسئلة>** د مرهون څيز د مرتهن سره موجود دې او راهن قرض نه دې ادا كړې او مرهون څيز واپس غواړي نود مرتهن حق دې چې د خپل قرض مطالبه د راهن نه اوكړي اوتر كومې پورې چې هغه قرض نه وي ادا كړې مرتهن مرهون څيز خان سره اوساتي.
**دليله>** وجه دا ده چې د مرتهن سره د مرهون څيز كيخودلو مقصد وثيقه وه.چې مرتهن د خپل قرض په وصولئ باندې مطمئن وي كه قرض ورته ورنكړي نو شئ مرهون به په قرض كښې واخلي اوس چې

راهن د قرض ادا کولو نه وړاندې د شئ مرهون مطالبه کوی نو دده دا مطالبه جائز نه ده د دې وجې مرتهن ته حق حاصل دې چې مرهونه ورنکړی.

| وَاِنْ كَانَ الرَّهْنُ فِيْ يَدِهٖ فَلَيْسَ عَلَيْهِ اَنْ يُمَكِّنَهٗ مِنْ بَيْعِهٖ حَتّٰى يَقْبِضَ الدَّيْنَ مِنْ ثَمَنِهٖ |
|---|

**تشريح** که چې د مرتهن سره موهونه موجوده وی نو په مرتهن باندې لازمه نه ده که راهن خپل څیز خرخوی چې هغه ته په مرهونه باندې قدرت ورکړی چې خرڅ ئې کړی تردې چې د هغې څیز مرهون د پیسو نه خپل قرض وصول کړی

**دليله** دلیل دا دې چې په مرهونې پورې د مرتهن حق متعلق دې نو هغه ته ترهغه وخته پورې دمرهونې خپل ځان سره د ساتلو حق شته ترڅو چې هغه ته خپل قرض نه وی ملاو شوې د دې وجې په مرتهن باندې لازمه نه ده چې راهن ته د خرڅ دپاره د هغه څیز ورکړی.

### د راهن مرهونه څیز د مرتهن د اجازت نه بغير د خرخولو حکم

| (وَاِذَا بَاعَ الرَّاهِنُ) الرَّهْنَ بِغَيْرِ اِذْنِ الْمُرْتَهِنِ او كله چه راهن د مرتهن د اجازت نه بغير، مرهون خرڅ کړو فَالْبَيْعُ مَوْقُوْفٌ نو بيع موقوف ده |
|---|

**تشريح** **توقف بيع الراهن بغيراذن المرتهن** اصول دا دې.که یوڅیز سره د یوکس حق متعلق شی.نو ترکومه پورې چه هغه کس اجازت ورنکړی. دچا چه دې څیز سره حق متعلق شوې دې.تر هغه پورې به د مالك تصرف په دې کښې نه نافذ کيږی.لکه مثلاً يو كس د خپل پوره مال وصيت اوکړو.نو چونکه دې مال سره د وارثانو حق متعلق دې.په دې وجه د دريمې حصې نه زيات کښې به د وصيت د نفاذ دپاره د وارثانو اجازت پکار وی.دغه شان مرهون سره د مرتهن حق متعلق دې.نو ترکومه پورې چه مرتهن اجازت ورنکړی.د راهن بيع به نه نافذ کيږی.بلکه موقوف به وی.اگرچه راهن پخپل ملك کښې تصرف کوی.

**دليله** څکه چه توقف د مرتهن د حق په وجه وو.اومرتهن خپل حق پورته کړو.نو بيع به جائز وی.

| (فَاِنْ اَجَازَ الْمُرْتَهِنُ جَازَ) نو که مرتهن اجازت ورکړو.نو بيع جائز ده |
|---|

**تشريح** **جوازالبيع بالاذن** او کله چه مرتهن اجازت ورکړی.نو بيع به صحيح وی.

**دليله** څکه چه توقف دده د حق په وجه دې او هغه پخپل حق ساقطولو باندې راضی شو

### که راهن د مرتهن دين اداکړونو د بيع حکم

| (وَاِنْ قَضَاهُ الرَّاهِنُ دَيْنَهٗ جَازَ اَيْضًا) اوکه راهن د مرتهن قرضه ادا کړله نو بيا هم بيع جائز ده |
|---|

**تشريح** **جاز بيع الرهن عند اداء الدين** که راهن د مرتهن قرضه ادا کړله.نوبيع جائز شوه

**دليله** څکه چې د مرتهن حق مرهون سره د قرض په وجه متعلق دې.اوچې هغه قرض ادا کړو نو مانع ختم شو. په دې وجه به بيع جائز شوه.

**السوال** که څوك دا اووائی چه صرف د مانع په زوال سره خو مسئله نه حل کيږی.ترکومه پورې چه مقتضی موجود نه وی؟

**الجواب** نومونږ وايو چه مقتضی د مخکښې نه موجود ده.څکه چه مرهون محل د بيع دې.څکه چه دا د راهن مملوك دې.او راهن د عاقل بالغ کيدو په وجه د بيع اهل دې.نو هرکله چه مانع ختم شو.نو مقتضی به خپل کار( عمل) کوی.

## د راهن په آزادولو سره مرهون غلام آزادیږي او که نه؟

(وَاِنْ اَعْتَقَ الرَّاهِنُ عَبْدَ الرَّهْنِ او که راهن د رهن غلام آزاد کړو نَفَذَ عِتْقُهُ نو دده عتق (آزادول) به نافذ کیږي

**تشریح﴾ نفذ عتق الراهن الرهن-** که راهن مرهون غلام خرڅ کړي.نو دده بیع موقوف وي.،،کمامر،، خو که راهن مرهون غلام آزاد کړي. نوڅه حکم دی؟ نو وي فرمانیل.چه دي کښې اختلاف دي.نو آزادونکې که مالدار وي.اوکه غریب وي.نافذ کیږي.او غلام آزادیږي.دویمه خبره دا ده.چه دواړو صورتونو کښې به جدا جدا احکام جاري کیږي.خو عتق صحیح دي.

**دلیله﴾** عتق (آزادي) مطلق جائز او نافذ ګرځولې ده.ددې دلیل دا دی.چه راهن عاقل بالغ دي.چه د شرعی احکامو مخاطب او مکلف دي.او دې خپل مملوك آزاده وي.نو د مرتهن اجازت نه ورکولو په وجه به دده تصرف لغوه نه وي. [1]

**السوال﴾** که څوك دا اعتراض اوکړي چه مالك اګرچه راهن دي.خو دده قبضه نشته.نو عتق هم نافذ کول پکار نه دي؟

**الجواب﴾** نو جواب دادې چه قبضه د بیع دپاره ضروري وه.چه په سپارلو باندې قدرت حاصل شي.او په آزادولو کښې د سپارلو دسره ضرورت نشته.نو د قبضې نه بغیر به عتق نافذ وي.ددې درې مثالونه واوریٔ:① زید یو غلام د بکر نه واخستلو.او اوسه پورې زید په غلام باندې قبضه نه ده کړې.چه ددې نه مخکښې نې غلام آزاد کړو.نو عتق نافذ دي.اګرچه غلام باندې قبضه نشته.② د زید غلام اوتختیدو.او زید هغه آزاد کړو.نو عتق به نافذ وي.اګرچه غلام دده په قبضه کښې نشته.③ زید د بکر غلام غصب کړو.او بکر په دې حال کښې دې آزاد کړو.نو عتق به نافذ وي.حالانکه په دې دریو واړو مثالونو کښې په وخت د اعتاق قبضه نشته.دغه شان به مرهون هم آزادیږي.اګرچه قبضه نه وي.بهرحال دلته کښې راهن خپل ملك کښې تصرف کړي دي.او په دې کښې هیڅ شبه نشته.چه مرهون د راهن ملکیت دي.ګني که ملکیت نې نه وې.نو ددې ځان سره ساتل به هم صحیح نه وو.رهن صحیح کیدل پخپله د ملك د قیام تقاضه کوي.او د رهن د عارض په وجه چه مرتهن ته قبضه د استیفاء حاصله شوه.په دې سره به ملك نه زائل کیږي.

## د غلام په آزادیدو سره به د مرتهن قرضه څنګه وصولولې شي؟

فَاِنْ كَانَ الدَّيْنُ حَالًّا که ا قرض فی الحال ادا کول واجب وی طُولِبَ بِاَدَاءِ الدَّيْنِ نو د راهن نه به د قرض ادا کولو مطالبه کولې شی

**تشریح﴾ مطالب اداء الدین من المرتهن﴾** موجوده مسئله خو صاحب د قدوری رحمه الله بغیر د قید د مالدارئ او غریبئ نه ذکر کړې ده خو صاحب د هدایه په دې کښې د مال او غریب تقسیم کړي دي او فرمائیلي یې دی راهن که مرهون غلام آزاد کړو.نو دې آزاد شو.خو په دې کښې ښکاره د مرتهن تاوان دي.په دې وجه به حکم ورکولې شی چه اوس اوګوره.چه راهن غریب دې.اوکه مالدار دي.که مالدار وي.بیا

[1] د امام شافعی رحمه الله په دې کښې درې اقواله دی① که آزادونکې مالدار دي.نو عتق به نافذ وي.او که غریب وي. نو نه به نافذ کیږي.هم دا مرغینانی رحمه الله بیان کړي دي.② دویم قول نې د احنافو موافق دي چه مطلق عتق نافذ کیږي. ③ مطلق عتق نه نافذ کیږي.که راهن مالدار وي.اوکه غریب وي.ځکه چه هرکله دده بیع نه نافذ کیږي.نو عتق به په درجه اولي نه نافذ کیږي.علامه مرغینانی دې دوه اقوالو ته اشاره کړې ده

اوګوره.قرض في الحال ادا کول واجب دي.او که نيته دار( ميعادي) دي.ځکه چه د هرصورت احکام جدا جدا دي. که آزدونکي مالدار وي.او قرض في الحال ادا کول واجب وي.نو راهن نه به د دين ادا کولو مطالبه کولې شي.

**دليله**﴾ ځکه که قيمت واخستلې شو.او قيمت او قرض د يو جنس ځني وي.نو د قرض په اندازه به مقاصه کيږي.او که په قيمت کښې څه زياتي دې.نو هغه به راهن ته واپس کولې شي.نو په قيمت واجبولو کښې هيڅ فائده او نشوه.په دې وجه به د قرض ادا کولو مطالبه کولې شي.

**السوال**﴾ که څوک آووائي چه د مرهون د عوض يعني د قيمت مطالبه کول پکار دي؟

**الجواب**﴾ مونږجواب ورکوو چه دلته چونکه د قرض ادا کولو وخت راغلې دې.نو اوس به د قيمت د مطالبې هيڅ فائده نه وي.

| وَإِنْ كَانَ مُؤَجَّلًا او که قرض مؤجل ( نيته دار) وي أُخِذَ مِنْهُ قِيمَةُ الْعَبْدِ نو د راهن نه به دغلام قيمت اخستلې شي فَجُعِلَتْ رَهْنًا مَكَانَهُ او قيمت به د غلام په ځائې رهن کولې شي حَتَّى يَحِلَّ الدَّيْنُ تردې چه د قرض ادا کولو وخت راشي |
|---|

**تشريح**﴾ **اخذ قيمة العبد في صورة تاجيل الدين**﴾ او که قرض ميعادي ( نيته دار) وي.نو راهن نه به د غلام قيمت وصولولې شي.او د مرهون په ځائې به ايږدلې شي.او د قرض ادا کولو وخته پورې به دا قيمت رهن وي.بيا کله چه د قرض ادا کولو وخت راشي.نو که قيمت او قرض د يو جنس ځني وي.يعني دواړه دراهم وي.يا دنانير وي.نو مرتهن به ددې قيمت نه خپل حق وصول کړي.بيا که قيمت د قرض نه زيات وي.نو زياتي دې راهن ته واپس کړي.اوکه کم وي.نو کمې دې د راهن نه وصول کړي.اوکه قيمت او قرض خلاف جنس وي.نو نه به وصوله وي.بلکه قيمت به ځان سره ګير ساتي.تردې چه راهن دده قرضه ادا کړي.يا قاضي د وصولولو حکم ورکړي.

**دليله**﴾ اوپاتې شو په راهن باندې د ضمان وجوب اوددې فائده نو ددې وضاحت دا دې ضمان خو پرې ځکه واجب شو.چه ده مرهون آزاد کړې دې.او د مرتهن يد استيفاء ئې زائل کړې دې.نو دا د ضمان سبب دې.اود دې فائده دا ده.چه په دې سره به د مرتهن د قرض وصولولو دپاره مضبوطي حاصليږي.خو دا حکم هغه وخت دې.کله چه راهن مالدار وي.اوکه دې غريب وي.نو ددې حکم دا دې.کوم چه راروان دې.

**که راهن غريب وي نو غلام به پخپل قيمت کښې سعي کوي**

| (وَإِنْ كَانَ مُعْسِرًا او که راهن غريب وي اسْتَسْعَى الْعَبْدُ فِي قِيمَتِهِ نو غلام به پخپل قيمت کښې سعي ( مزدوري) کوي فَقَضَى بِهِ الدَّيْنَ او په دې مزدورئ سره به قرض ادا کولې شي |
|---|

**تشريح**﴾ **صورة اعسار الراهن**﴾ که راهن غريب وي.نو مرتهن دې آزاد شوې غلام اونيسي.او په ده دې مزدوري کوي.چه په دې مزدورئ سره د مرتهن قرض ادا شي.اوس دلته قدرتي طور باندې دوه سوالونه پيدا کيږي.چه غلام به مزدوري ولې کوي.او څومره به کوي.ددې بيان دا دې:

**دليله**﴾مزدوري به ددې دپاره کوي.چه د راهن د غريب کيدو په وجه مرتهن د هغه نه خپل حق نشي وصولولې.نو د مجبورئ په وجه به دا غلام ګرفتارولې شي.ځکه چه د هغه د عتق نه فائده اخستونکې هم دا غلام دې.ځکه چه نفع حاصلول په اندازه د ضمان وي.يعني د آزادئ نفع حاصلولو سره به په ده باندې قيمت واجب وي.په نورو الفاظو کښې داسې چه حاصلات او منافع د ضمان په وجه دي.

**توضيح سعي العبد**﴾ اوس پاتې شوه دا خبره چه څومره مزدوري به کوي؟ نو ددې جواب دا دې.چه قيمت

او قرض کښې چه کوم يو کم وی.د هغې برابر مزدوري به په ده لازم وی.يعني که قرض کم وی.نو د قرض په مقدار، اوکه قيمت کم وی.نو د قيمت په مقدار به مزدوري کوی.( يعني نفع به حاصله وی).په دې وجه صاحب دهدايه رحمه الله په دې مقام کښې تفسير کړې دې .چه دا ونيلی شوی دی. (سعى العبد فى قيمته) دا هغه وخت دې.کله چه قيمت د قرض نه کم وی.

**مرتهن به پخپل ادا شوی رقم سره راهن باندې رجوع کوی**

| (ثُمَّ يَرْجِعُ الْعَبْدُ بيا به غلام رجوع کوی عَلَى الْمَوْلَى خپل مولی ته |
|---|

**تشريح﴿ رجوع الغلام على الراهن بالقيمة﴾** په رومبی صورت کښې چه مرهون غلام کومه مزدوری کړې ده.او د راهن قرض ئې ادا کړې دې.نو آيا دې دا قرض د راهن نه واپس اخستلې شي؟ نو فرمائی.چه اخستلې شي.کله چه راهن مالدار شي.نو واپس دې واخلی.

**دليل﴾** ځکه چه دلته کښې غلام په حکم د شريعت د مجبورئ او ضرورت په وجه د راهن قرض اداکړې دې.نود ذکرشوې قاعدې په وجه به واپسی جائز وی. (په دې مسئله کښې د مزيد د تفصيل دپاره هدايه اوګورئ) .

**که راهن مرهون هلاک کړو نو څه حکم دې ؟**

| وَكَذٰلِكَ اِنِ اسْتَهْلَكَ الرَّاهِنُ الرَّهْنَ او هم دغه شان ( به په راهن باندې ضمان واجب وی) کله چه راهن رهن هلاک کړې وی . |
|---|

**تشريح﴾ حكم استهلاک راهن الرهن﴾** که راهن مرهون هلاک کړو.نو ددې هلاکولو حکم هغه دې.کوم چه د راهن د ازادولو حکم دده په مالدارئ کښې وی.يعني که قرض فی الحال واجب دې.نو دده نه به پوره قرض وصولولې شي.اوکه قرض نيته دار وی.نو د مرهون قيمت به د راهن نه اخستلې شي.او دا قيمت به د ( قرض ادا کولو) نيتې راتلو پورې مرتهن سره رهن وی.

**دليل﴾** ځکه چه د مرتهن حق محترم حق دې.چه ددې د هلاکولو په وجه ضمان لازميږی.او دا ضمان به مرتهن سره ځکه پروت وی.چه دا د عين مرهون قائم مقام دې.

**که مرهون بل چا هلاک کړونوضامن به څوک وی؟**

| (وَاِنِ اسْتَهْلَكَهُ اَجْنَبِيٌّ نو که مرهون چا اجنبی ( غير کس) هلاک کړې وی فَالْمُرْتَهِنُ هُوَالْخَصْمُ فِى تَضْمِيْنِهٖ نو د اجنبی په ضامن جوړولو کښې به مرتهن خصم وی فَيَاْخُذُ الْقِيْمَةَ نو مرتهن به قيمت اخلی فَيَكُوْنُ الْقِيْمَةُ رَهْنًا فِى يَدِهٖ او دا قيمت به د مرتهن په قبضه کښې رهن وی وَالْوَاجِبُ عَلٰى هٰذَا الْمُسْتَهْلِكِ او په دې هلاکونکی باندې به د مرهون هغه قيمت واجب وی قيمته يوم هلک کوم چه د هلاکت په ورځ ددې قيمت دې فَاِنْ كَانَتْ قِيْمَتُهٗ يَوْمَ اسْتَهْلَكَهُ خَمْسَمِائَةٍ نو که د هلاکولو په ورځ د مرهون قيمت پنځه سوه وی وَ قِيْمَتُهٗ يَوْمَ رَهَنَ اَلْفًا او د رهن په ورځ زر (روپی) وی غَرِمَ خَمْسَمِائَةٍ نو هلاکونکې به د پنځو سوو تاوان ادا کوی وَكَانَتْ رَهْنًا وَسَقَطَ مِنَ الدَّيْنِ خَمْسُمِائَةٍ او دا قيمت به رهن وی.او په قرض کښې پنځه سوه ساقط شوې |
|---|

**تشريح﴾ حكم استهلاک اجنبي الرهن﴾** که د مرهون په ځائې د راهن نه علاوه بل چا اجنبی سړی دا هلاک کړو.نو په دې اجنبی به ضمان واجب وی.خو ددې اجنبی نه به تاوان مرتهن وصوله وی.يعني د اجنبی نه

به مرتهن قيمت وصوله وي.او خپل ځان سره به ئې رهن ايږدي.

**دليله** او مرتهن تاوان ځکه ورکوي که مرهون موجود وي.نو ددې زيات حقدار به مرتهن وو.نو کوم ځيز چه د مرهون قائم مقام دي.د هغې د واپس اخستلو حقدار به هم مرتهن وي.

**قيمة اي يوم يجب علي المستهلك؟** اوس سوال پيدا شو.چه د اجنبي نه به څومره تاوان اخستلې شي؟ نو ددې جواب ئې ورکړو.چه په کومه ورځ اجنبي مرهون هلاك كړو.دغه ورځ چه د مرهون كوم قيمت وي.دغه اومره تاوان به د اجنبي نه اخستلې شي.مثلاً د رهن ايخودو په ورځ قيمت زر روپئ دې.او قرض هم اتفاق سره زر روپئ دي.او د هلاکت په ورځ د مرهون قيمت پنځه سوه روپئ دې.نو په اجنبي به صرف د پنځو سوو روپو تاوان واجب وي.او دا پنځه سوه روپئ به مرتهن سره رهن وي.او د قرض نه به پنځه سوه روپئ ساقطيږي.يعني اوس راهن باندې صرف پنځه سوه روپئ قرض پاتې.شو.چه ددې عوض اوس دا قيمت دي.کوم چه مرتهن سره ايخودې شوې دې.

که مرهون مرتهن سره هلاك شي.كه د مرتهن په هلاکولو سره هلاك شوې وي.او كه د آسماني آفت په وجه هلاك شوې وي.نو د مرهون د قيمت په اندازه به قرض ساقطيږي.،، کما مر،،نو دلته اگرچه پوره مرهون هلاك نشو.بلکه نصف هلاك شو.ځکه چه پنځه سوه روپئ مرتهن ته د اجنبي نه ملاؤ شوې دي.نو څومره قيمت چه کمولو سره هلاك شوې دې.هغه هلاك شو.او كه كمې به د مرتهن په ذمه وي.نو داسې به گڼلې شي.چه مرتهن سره د پنځو سوو روپو په اندازه هلاك شوې دې.نو دومره به دده قرض ساقطيږي.ځکه که اجنبي هلاك کړې وو.نو په هغه د هلاکت د ورځې ضمان واجبيږي.چه هغه ده ورکړو. و مرتهن باندې د قبضې د ورځې د قيمت ضمان واجبيږي.او د خلاصولو د ورځې د قيمت اعتبار کيږي ځکه چه د مرتهن قبضه د استيفاء قبضه وي.نو مرهون د مرتهن په ضمانت کښې د رهن په وخت داخل شوې دې.او اوس ددې قيمت کم شوې دې.او نيم پاتې شوې دې.نو د باقي ضمان په مرتهن باندې به باقي پاتې شو.او ددې په اندازه د مرتهن قرض ختم شو.او پنځه سوه باقي پاتې شو.

**د راهن په مرهون باندې جنايت مضمون دې**

| وَجِنَايَةُ الرَّاهِنِ عَلَى الرَّهْنِ مَضْمُوْنَةٌ)او د راهن جنايت په مرهون باندې مضمون وي |
|---|

**حل اللغة** ① **جناية**:گناه،جرم

**تشريح** **جناية الرهن مضمونة** كه مرهون باندې راهن څه جنايت اوكړو.نو راهن باندې به ددې تاوان ادا كول لازمي وي.

**دليله** ځکه چه بعضو صورتونو کښې مالك د اجنبي پشان جوړيږي.او په ده باندې ضمان واجبيږي.

**القاعدة** ددې دپاره قاعده كليه دا ده.که د يوکس مال سره د بل چا حق متعلق شو.نو اوس مالك د اجنبي پشان شو.نو كه يوكس د مرض الموت مريض دې.هغه د خپل مال مالك دې.خو دده د مال سره د وراثانو حق متعلق شوې دې.په دې وجه د ثلث نه زيات کښې به دده تبرعات صدقه، وصيت وغيره نه نافذ كيږي.يعنى د ثلث نه زيات كښې دې د اجنبي په مثل شوې دې. دغه شان به په راهن باندې هم ضمان واجب وي

**په مرهون د مرتهن جنايت په اندازه دجنايت قرض ساقطه وي**

| وَجِنَايَةُ الْمُرْتَهِنِ عَلَيْهِ تَسْقُطُ مِنَ الدَّيْنِ بِقَدْرِهَا)او په مرهون باندې د مرتهن جنايت ( جرم) په اندازه د جنايت دده قرض ساقطه وي |
|---|

**تشريح** **سقوط الدين بقدر الجناية** كه مرتهن په مرهون باندې جنايت اوكړو.نو د جنايت په اندازه به

قرض ساقطیږي.یعنی کله چه قرض او ضمان د یو جنس څخه وي.او که قرض مثلا مکیلی یا موزونی څیزونه وي.نو قرض به نه ساقطیږي.بلکه په مرتهن به ددې ضمان واجبولې شي.او دا ضمان به هم مرهون کولې شي.بیا کله چه راهن قرض ادا کړي.نو راهن به د مرتهن نه مرهون سره د ضمان نه واپس اخلي.

**دلیله>** په مرتهن باندې د ضمان د وجوب وجه دا ده.چه مرهون د راهن ملك دې.چه په ده باندې مرتهن تعدی کړې ده.نو ددې تعدی په وجه به په ده باندې ضمان واجب وي.

**په راهن او مرتهن او ددوی دواړو په مال د رهن د جنایت مسئله**

(وَجِنَايَةُ الرَّهْنِ عَلَى الرَّاهِنِ وَالْمُرْتَهِنِ وَعَلَى مَالِهِمَا هَدَرٌ [1]) او په راهن او مرتهن او ددوی په مال باندې د مرهون جنایت عبث (او غیر معتبر) دې وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دې رحمه الله وَقَالَا جِنَايَتُهُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ مُعْتَبَرَةٌ او صاحبین رحمهما الله فرمائي.چه دمرهون په مرتهن باندې جنایت معتبر دې وَالْمُرَادُ بِالْجِنَايَةِ عَلَى النَّفْسِ مَا يُوجِبُ الْمَالَ او په نفس باندې د جنایت نه مراد هغه جنایت دې.کوم چه مال واجبه وي أَمَّا الْوِفَاقِيَّةُ فَلِأَنَّهَا جِنَايَةُ الْمَمْلُوكِ عَلَى الْمَالِكِ بهرحال اتفاقی مسئله،نو دا ځکه چه دا د مالك او مملوك جنایت دې أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ مَاتَ كَانَ الْكَفَنُ عَلَيْهِ آیا تاسو نه ګورئ.که غلام مرهون مړشی.نو کفن به په راهن باندې وي

**تشریح> هدر الجناية علي الراهن والمرتهن>** که غلام مرهون په راهن یا مرتهن باندې جنایت اوکړو.نو ددې څلور صورتونه دي ① مرهون، راهن یا مرتهن په قصد سره قتل کړو.نو په دې کښې به مرهون باندې قصاص واجب وي. ② مرهون، راهن یا مرتهن خطاء قتل کړو.نو دلته به غلام مرهون باندې هیڅ ضمان نه وي.③مرهون د راهن یا مرتهن بعض اندامونه کټ کړل.چه دې سره هغه هلاك نشو.خو به مشقت کښې راګیر شو.په دې کښې به هم مرهون باندې هیڅ ضمان نه وي.④ مرهون د راهن یا مرتهن مال ضائع کړو.په دې کښې به هم ضمان واجب نه وي.دا تفصیل د امام ابوحنیفه رحمه الله د مذهب مطابق دې.

**دلیله>** د امام صاحب رحمه الله دلیل دا دې.چه مرهون دا جرم د مرتهن په ضمانت کښې کړې دې.نو ددې جرم د عیب (او بدنامۍ) نه خلاصول به د مرتهن په ذمه وي.نو یو طرف خو دې مرتهن دپاره ضمان وي.او بل طرف دې مرتهن باندې ضمان وي.په دې کښې به هیڅ فائده نه وي.په دې وجه ددې جنایت اعتبار اونکړې شو.دا خبره خو د مرتهن د نفس په جنایت کښې وه.

**مذهب الصاحبين>** البته صاحبین ورسره په دې صورت کښې مختلف دی چې مرهون د مرتهن په نفس باندې جنایت اوکړي دوی د جنایت اعتبار کوي.پاتې شوه دا خبره چه مرهون غلام د راهن ملك دې؟ نو ددې دلیل دا دې چه که مرهون غلام مړشی.نو ددې کفن په راهن باندې واجبیږي.نودا ددې خبرې دلیل دې.چه راهن دده مالك دې.نود شارح مقصد دا دې که د مملوك نقصان نې اوکړو.نو ضمان به واجب نه وي؟

**دلیلهما>** دلیل دا دې.چه دلته د مرهون په مرتهن باندې جنایت مالك باندې جنایت نه دې.ځکه چه مالك خو راهن دې.اودلته که جنایت معتبر اومنو.نو په دې کښې فائده ده.ځکه چه د جنایت په وجه به

[1] القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٤٨\٤) وملتقى (٣٠٠\٤) وكشف الأستار(٢٧٦\٢) نقلاً عن القول الراجح (٣٣١\٢)-

مرهون غلام مرتهن ته ملاوېږي.اګرچه ددې په وجه به د مرتهن قرض خو ساقط شي.خو کله د غلام مالك جوړيدل عين مقصود وي.ځکه که هغه په دې کښې فائده اوګنړي.نو وادېخلي.اګرچه قرض به ساقط شي.خو مقصود حاصليږي.او که هغه په دې کښې منفعت اونګنړي.نو نه دې اخلي.اونو چې کله مرتهن په جنايت کښې مرهون قبول کړي نو خبره ټيك ده او که مرتهن دا اووائي.چه ماته د جنايت تاوان پکار نه دې.نو بيا به غلام پخپل حال باندې مرهون پاتې وي.

**حكم الجناية علي المرتهن عند استواء الدين والمرهون**﴾ او که مرهون د مرتهن په مال باندې جنايت اوکړي.نو ددې مختلف صورتونه دي.په هغې کښې يو دا دې.چه کله د مرهون قيمت او قرض برابر وي.نو په دې صورت کښې به بالاتفاق جنايت معتبر نه وي.ځکه چه د جنايت اعتبار کولو کښې هيڅ فائده نشته.ځکه چه دې به د جنايت په وجه د غلام نه مالك کيږي. بلکه د قرض په وجه ده ته د غلام د ماليت استحقاق حاصل دې.نو د جنايت په اعتبار کولو کښې څه فائده شوه؟ حالانکه د جنايت اعتبار کولو نه بغير مرتهن د غلام د ماليت مستحق شوې دې.او دلته کښې اصل فائده د غلام مالك کيدو کښې وه.چه دا به ده ته نه حاصليږي.بلکه د ماليت د استحقاق په وجه به ده ته دا حق وي.چه غلام خرڅ کړې شي.چه ددې نه مرتهن خپل قرض وصول کړي.اوکه د جنايت اعتبار اوکړې شي.بيا به هم دا نتيجه راوځي. په دې کښې نور صورتونه هم دي د هغې د تفصيل دا مقام نه دې که څوك خواهش لري نو زما عاجز شاه فيصل شرح تسهيل الهدايه دې اوګوري.

**د مرهونه څيز د حفاظت د اجرت مسئله**

| وَأُجْرَةُ الْبَيْتِ الَّذِي يُحْفَظُ فِيهِ الرَّهْنُ او د هغه کور اجرت په کوم کښې چه د مرهون حفاظت کولې شي عَلَى الْمُرْتَهِنِ دمرتهن په ذمه دې وَأُجْرَةُ الرَّاعِي عَلَى الرَّاهِنِ او د څرونکي اجرت په راهن دې وَنَفَقَةُ الرَّهْنِ عَلَى الرَّاهِنِ او د مرهون نفقه د راهن په ذمه ده |
|---|

**تشريح**﴾ داصل مسئلې بيانولو نه وړاندې يوه قاعده ياده کړئ هغه دا چې چه کوم څيز د حفاظت د باب ځنې وي .هغه خو د مرتهن په ذمه دې.اوکوم څيز چه د اصلاح او د باقي پاتې کيدو د باب ځنې وي.هغه به د راهن په ذمه وي.نو قاعده کليه دا ده.اوپه هرصورت کښې حکم دغه دې.که د رهن قيمت د قرض نه زيات وي.نوهم. اوکه کم وي.نو بيا هم.نو په کمره کښې چه دا ايخودې شوې وي.دا خبره د حفاظت ځنې ده.او دغه شان د څوکيدار مقرر کول هم د باب د حفاظت ځنې دي.

**اجرة البيت علي المرتهن**﴾ وړاندې دا خبره تيره شوې ده.چه مرهون مرتهن سره محبوس ( ګير) وي.نوپه کوم کور کښې چه ددې حفاظت کولې شي.د هغې کرايه به څوك ورکوي.دغه شان.د دې د راعي او د مرهون نفقه به په چا باندې وي نو د تيرې شوې قاعدې په رڼا کښې نو د کور کرايه او د څوکيدار مزدوري به مرتهن باندې واجب وي.او د څرونکي اجرت او د مرهون نفقه او کپړه تول به د راهن په ذمه وي.

**دليله**﴾ اوددې وجه داده.چه د مرهون عين د راهن ملکيت دې.او منافع د مرهون هم د راهن ملکيت دي.او ملکيت دپاره چه کوم څيز د اصلاح او د باقي پاتې کيدو دپاره وي.هغه د مالك په ذمه واجب وي.هم دا وجه ده.چه په خالص وديعت کښې هم د اصلاح او بقاء څيزونه د مالك په ذمه وي.

**السوال**﴾ که څوك دا اعتراض اوکړي چه راعي(څرونکې) چه څنګه څاروې څروي.نو ددې حفاظت هم کوي.نو د څرونکي اجرت دواړو باندې کيدل پکاردي؟

**الجواب**﴾ نود دې جواب دا دې چه د څرونکي اصل مقصد څرول دي.چه دا د اصلاح او د بقاء د باب ځنې دي.او حفاظت ضمني څيز دې.په دې وجه به د څرونکي پوره اجرت د راهن په ذمه وي.

**السوال الثاني** ﴾ که څوك دا اووائی چه ددې څه دلیل دې.چه د څرونکی اصل مقصد حفاظت نه دې؟
**الجواب** ﴾ نوموړ د دې جواب کوو که يوکس د چراګاه نه څاروې پټ ( غلا ) کړی.نو د هغه لاس به نشی کټ کولې. که څرونکې محافظ وې.نو د محفوظ مقام نه د غلا کولو په وجه به لاس کټ کيدو.

## د رهن زياتيدل د راهن حق دې

| |
|---|
| وَنَمَاءُهُ لِلرَّاهِنِ او د مرهون زياتيدل د راهن دی، فَيَكُونُ النَّمَاءُ رَهْنًا مَعَ الْأَصْلِ نو زياتيدل به اصل سره رهن وی |

**حل اللغة** ﴾ ① **التمر**:قجوري ② اللبن: پئ ]

**تشريح** ﴾ **نماء الرهن للراهن** ﴾ که په مرهون کښې د ميوې، يا پئ، يا وړئ، يا د بچی پيدا کيدو په وجه زياتې اوشو.نو ددې مالك به راهن وی.
**دليله** ﴾ خکه چه دا ټول څيزونه دده دملك پيداوار دې.خو ددې د اصل سره به مرهون جوړولې شی.او ايخودلې به شی.خکه چه دا يو داسې متاکد( او مضبوط) حق دې.چه لازم دې.نو که راهن دا فسخ کول اوغواړی.نو نشی کولې.او کوم چه داسې لازمی حق وی.هغه د مرهون توابع طرف ته هم سرايت کوی ( او متعدی کيږی).نو دا توابع اګرچه مرهون به وی.خو مضمون به نه وی.

| |
|---|
| فَإِنْ هَلَكَ النَّمَاءُ نوکه نماء او زياتی شوې هلاك شی. هَلَكَ بِغَيْرِ شَيْءٍ نو د څه څيز ( بدل) نه بغير به هلاك وی |

**تشريح** ﴾ **حكم هلاك النماء** ﴾ نوکه مرتهن سره توابع هلاك شی.نو نه به په ده باندې ضمان واجب وی.او نه به دده قرض ساقطيږی.
**دليله** ﴾ خکه چه قرض په حقيقت کښې داصل مقابل دې.د توابع په مقابله کښې د قرض هيڅ حصه نشته.خکه چه لفظ د عقد دې ته شامل نه وو.نو دا د عقد لاندې داخليدل، قصداً نه دی.بلکه ضمنی طور باندې دی.

## کوم څيز چه تابع وی د هغې په هلاکيدو د ثمن حکم

| |
|---|
| (وَإِنْ هَلَكَ الْأَصْلُ اوکه اصل هلاك شی. وَبَقِيَ النَّمَاءُ او زياتی شوې باقی پاتې شی افْتَكَّهُ الرَّاهِنُ بِحِصَّتِهِ نو راهن به دا( زياتی شوې) دده د حصې په بدله کښې خلاصه وی وَيُقَسَّمُ الدَّيْنُ عَلَى قِيمَةِ الرَّهْنِ يَوْمَ الْقَبْضِ وَعَلَى قِيمَةِ النَّمَاءِ يَوْمَ الْفِكَاكِ ( يعنی) قرض دې د مرهون د قبضې د ورځې په قيمت او د زياتی شوی د خلاصولو د ورځ والا په قيمت باندې تقسيم کړې شی |

**تشريح** ﴾ **المقدمة لتوضيح المتن** ﴾ د متن د تسهيل نه وړاندې به دې خبره څان پوهه کړه چه کوم څيز چه تابع وی.ترکومه پورې چه دا صرف تابع وی.ددې په مقابله کښې ثمن نه راخی.مثلاً يوکس يوه ميخه واخستله.چه دا پئ ورکوی.اوسه پورې مشتری قبضه نه وه کړې.چه ددې بچې مړ شو.نو د ثمن نه به هيڅ نه کميږی.خکه چه مړشوې صرف تابع دې.چه ددې په مقابله کښې ثمن نه وی.خو که تابع مقصود جوړ شی.نو اوس به ددې په مقابله کښې ثمن راخی.مثلاً هم په دې ذکرشوی مثال کښې د قبض نه وړاندې ميخه مړه شوه.او بچې باقی پاتې ( يعنی ژوندې) دې.چه دا مشتری اخستل غواړی.نو ددې په حصه کښې چه څومره ثمن راخی.چه دا ثمن ادا کړی.نو بچې اخستلې شی.خکه چه اوس قبض کولو سره مقصود جوړ شوې دې.
**هلاك الاصل وبقاء النماء** ﴾ ددې تفصيل نه پس پوهه شئ.چه په رومبئ مسئلې کښې نماء ( زياتی شوې)

هلاك شوې وو.دلته ددې په عكس دې.يعني نماء ( زياتي شوې) باقي پاتې دې.او اصل هلاك شوې دې.نو چونكه اوس نماء كوم چه تابع دې.مقصود جوړ شو.خكه چه راهن په دې باندې د قبضه كولو قصد كوى.نو ددې په مقابله كښې به مال وى.

| فَمَا أَصَابَ الْأَصْلَ سَقَطَ مِنَ الدَّيْنِ بِقَدْرِهٖ نو د قرض كوم مقدار چه اصل ته اورسيږى.هغه به ساقطيږى وَمَا أَصَابَ النَّمَاءَ او كوم مقدار چه زياتي شوى ته اورسيږى اِفْتَكَّهُ الرَّاهِنُ به نو خلاصه وى به راهن ( په دې سره) زياتي شوې، |
|---|

تشريح> صورة المسئلة> ددې صورت دا دې. چه شاكر د احمد سره د نهه سوه روپو د قرض په بدله كښې يوه ميخه رهن كيخوده.هغې بچې راوړو.د ميخې قيمت زر روپۍ دې.او اوس د بچې قيمت پنځه سوه روپۍ دې.نو د اصل قيمت د تابع د قيمت دوچند دې.اوس ميخه هلاكه شوه.او بچې باقى دې.راهن بچې خلاصول غواړى.نو ددې طريقه به دا وى.چه د دواړو په قيمت كښې دې تناسب اوګورى.يعنى په زرو او پنځو سوو كښې دې تناسب اوګورى. كله ئې چه اوكتل.نو معلومه شوه.چه زر د پنځو سوو دوچند دې.نو په دې حساب سره د قرض نه هغه مقدار كوم چه د ميخې قيمت جوړيږى.هغه دې اوبنكلې شى.يعنى دومره قرض ساقط شو.او كوم مقدار چه د بچې په حصه كښې راشى.هغه دې راهن مرتهن ته وركړى.او بچې دې د مرتهن نه راخلاص كړى.نو په ذكر شوى صورت كښې به د قرض درې حصې كولې شى.چه په دې كښې به شپږ سوه د ميخې مقابل وى.او درې سوه به د بچې مقابل وى.نو شپږ سوه د ميخې د هلاكت په وجه ساقط شوې.او درې سوه باقى دى.چه دا د بچې مقابل دى.نو راهن دې درې سوه روپۍ وركړى.او بچې دې راخلاص كړى.

## په رهن او قرض كښې د زيادت حكم

| وَيَجُوزُ الزِّيَادَةُ فِي الرَّهْنِ او په رهن كښې زيادت جائز دې وَلَا يَجُوزُ الزِّيَادَةُ فِي الدَّيْنِ او په قرض كښې جائز نه دې عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ() د امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله په نيز وَلَا يَصِيرُ الرَّهْنُ رَهْنًا بِهِمَا او مرهون به د زياتوالى په بدله كښې رهن نه وى |
|---|

تشريح> صورة المسئلة> يوه چيلۍ ئې رهن ايخودې وه.په لس روپۍ كښې، راهن يوه چيلۍ بله هم وركړله.چه دا دواړه رهن كيږده.نو دا جائز دى.دا په مرهون كښې زياتوالې دې.او كه مرتهن ددې چيلۍ په عوض لس روپۍ نورې هم وركړلې.چه ددې شلو روپو په بدله كښې دا چيلۍ رهن دې.نو دا جائز نه دى.دا د طرفينو رحمهما الله مذهب دې.چه مرهون كښې زيادت جائز دې.او قرض كښې جائز نه دې. (۲)

---

[۱] القول الراجح هوهذا قول الطرفين. رحمهما الله كذا في ملتقى الأبحر(۱۴\۳۵۰) وردالمحتار (۳۷۲،۳۷۲\۵)-

[۲] مذهب زفر والشافعي:- امام زفر او امام شافعى رحمهما الله په رهن او قرض دواړو كښې زيادت ناجائز ګرځوى. حضرت مرغينانى رحمه الله فرمائيلى دى.چه د امام شافعى او امام زفر رحمهما الله ذكر شوې اختلاف په پنځو څيزونو كښې دې. ① د مرهون زيادت زمونږ په نيز جائز دې.او ددوى په نيز جائز نه دې. ② په بيع كښې د ثمن زيادت زمونږ په نيز جائز دې.ددوى په نيز جائز نه دې. ③ په بيع كښې د مبيع زيادت زمونږ په نيز جائز دې.ددوى په نيز جائز نه دې.④ په نكاح كښې د مهر زيادت زمونږ په نيز جائز دې.ددوى په نيز جائز نه دې.⑤ په نكاح كښې د منكوحې زيادت زمونږ په نيز جائز دې.ددوى په نيز جائز نه دې.ددې صورت دا دې.چه مولا د خپلې وينځې نكاح د يو سړى سره اوكړله.په زر روپۍ مهر كښې، بيا په دې مهر كښې مولا د خپلې دويمې وينځې نكاح هم دده سره اوكړله. او خاوند قبوله كړله.نو دا جائز دى.او اوس به مهر په دواړو باندې تقسيميږى.ددې نه پس مرغينانى رحمه الله فرمائى. چه

**دليلهما** دليل دا دې چه وړاندې تير شوي دي.چه مرهون کښې شيوع جائز نه دې.اوکه شيوع په قرض کښې راشي.نو دا مضر نه دې.او په مرهون کښې د زيادت په وجه قرض کښې شيوع کيږي.چه دا جائز دې.او په قرض کښې د زيادت په وجه مرهون کښې شيوع راځي.چه دا جائز نه دې.په دې وجه مونږ اووئيل.چه د مرهون زيادت جائز دې.او د قرض زيادت جائز نه دې.

**توضيح الزيادة في الدين** پاتې شوه دا خبره چه په قرض کښې زيادت سره مرهون کښې شيوع څنګه لازميږي؟ نو ددې وضاحت دا دې چه کله چه غلام په لس روپۍ کښې رهن وو.او بيا مرتهن د لسو روپو زيادت نور هم اوکړو.نو د غلام نصف غير معين حصه، د رومبي لسو روپو بدل جوړ شو.او نصف غير معين د نورو لسو روپو بدل اوګرځيدو. نو په غلام کښې شيوع پيدا شوه.او که يوې چيلۍ سره يوه بله چيلۍ هم رهن کيږدي.نو په لسو کښې مثلاً د پنځو بدل رومبۍ چيلۍ شوه.او د باقي پنځو بدل دويمه چيلۍ شوه.نو دلته په مرهون کښې شيوع نشته.خو په قرض کښې شيوع اوشوه.او د قرض شيوع مضر نه دې.بيا دا په يو مثال سره واضح کوي.چه زيد زر روپۍ د خالد نه واخستلې.او يو غلام ئې د پنځو سوو روپو په بدل کښې رهن کيخودو.نو دا جائز دې.حالانکه قرض کښې شيوع دې.خود قرض شيوع مضر نه دې.په دې وجه دا جائز دې.

وَقَالَ أَبُويُوسُفَ هوجائز او امام ابويوسف رحمه الله فرمائي.چه دا (په قرض کښې زياتوالې هم) جائز دې

**تشريح** **مذهب ابي يوسف** رحمه الله امام ابويوسف رحمه الله په قرض کښې هم زيادت جائز ګرځوي.

**دليله** دليل دا دې.چه دوي مرهون او قرض په ثمن او مبيع باندې قياس کړې دې.او وئيلې ئې دي.چه په باب د رهن کښې قرض د بيع د ثمن پشان دې.او مرهون د مبيع پشان دې.او ددې دواړو زيادت د طرفينو رحمهما الله په نيز هم جائز دې.نو دلته د رهن او قرض هم زيادت کيدل پکار دي.د دواړو په مينځ کښې علت جامعه دا دې.چه دا دواړه زياتوالې به اصل عقد سره متعلق کولې شي.لکه په بيع کښې د ثمن او مبيع زياتوالې اصل عقد سره متعلق کولې شي.لکه څنګه چه هلته کښې ضرورت دې.دغه شان دلته کښې هم ضرورت دې.چه نوره مضبوطي هم حاصله شي.او لکه څنګه چه هلته کښې امکان دې.دلته هم امکان دې.يعني په شروع د رهن کښې دا جائز ده.چه د مرهون قيمت د قرض برابر يا کم يا زيات وي.نو که د پيوست کولو نه پس هم دا حالت راشي.نو په دې کښې هيڅ باك نشته.بهرحال دلته کښې حاجت او امکان شته.

**الجواب عنه** دا قياس صحيح نه دې.او په باب د رهن کښې د قرض زيادت اصل عقد سره نشي پيوست کيدې.څکه چه اصل عقد سره پيوست کيدل د معقود عليه يا معقود به کيدې شي.او قرض نه معقود عليه دې. او نه معقود به دې.او په باب د بيع کښې د ثمن زيادت اصل عقد سره څکه پيوست کيدې شي.چه ثمن معقود دې.او معقود عليه يعني مبيع، او معقود به يعني ثمن او قرض ددې دواړو نه هيڅ هم نه دي.څکه که قرض معقود به وې.نو د عقد رهن په وجه قرض واجبيږي.حالانکه قرض د عقد رهن نه بغير واجبيږي.او د قرض وجوب مخکښې اوشو.او عقد رهن روستو وي.جائز دې.

**بقاء الدين عند فسخ العقد** دغه شان که په څه وجه عقد رهن فسخ شي.نو قرض اوس هم باقي پاتې کيږي.معلومه شوه.چه دا معقود به نه دې.البته د ثمن وجوب د عقد بيع په وجه کيږي.اوکه بيع فسخ شي.نو د ثمن وجوب هم ختميږي.نو ستاسو قياس د سره صحيح نشو.

---

مونږ په كتاب البيوع كښې دا بيان ذكر كړې دې.

**يو څيز د دوو سړو د قرضو په بدله کښې د رهن ايښودو حکم**

| |
|---|
| وَاذَارَهَنَ عَيْنًا وَاحِدَةً عِنْدَ رَجُلَيْنِ بِدَيْنٍ نوکه يو څيز ئې دوو سړو سره رهن کيخودو لِكُلٍّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا د هغه قرض په بدله کښې کوم چه ددوی دواړو په ده باندې دې جَازَ نو جائز دې وَجَمِيعُهَا رَهْنٌ عِنْدَ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا او پوره څيز به په دوی دواړوکښې هر يو سره رهن وی.،والمضمون على كل واحد منهما حصته دينه فيها اوتاوان په هر يو کس باندې په دې دواړو راهن اومرتهن کښې هومره دې څومره چې د هغه حصه وی |

**تشريح﴾ رهن عين واحد عند رجلين﴾** په زيد د خالد او بکر سل روپۍ قرض دی.زيد خپله ګهړۍ د سلو روپو په عوض دوی دواړو سره رهن کيخوده.نو دا رهن جائز دې.او داسې به ګڼړلې شی.چه پوره ګهړۍ هر يو سره مرهون او ګانړه ده.

**السوال﴾** که څوك دا اعتراض اوکړی چه هرکله مستحقينو کښې تعدد دې.نو ددې په وجه رهن کښې شيوع پيدا شو.او دا د رهن د جواز نه مانع دې؟ نويکاردا وه چه دا جائز نه وه

**الجواب﴾** ددې جواب دا دې چه په يو محل کښې د مستحقينو تعدد شيوع نه ثابته وی.لکه ( مثلاً) يو جماعت دپاره زيد باندې قصاص واجب وی.نو د مستحقينو دا تعدد به د محل شيوع نه لازموی.

**السوال الثاني﴾**اوکه دغه معترض دا اووائی چه دا نه منم چه دا شيوع نه ده څکه چه د رهن دوه کسانو ته نسبت د دوی دواړو په مينځ کښې نيم په نيمه تقسيمول ثابته وی.لکه څنګه چه د هلاکت په صورت کښې مذکوره تقسيم منلې شوې دې؟

**الجواب﴾** نو مونږ جواب ورکوو چه د جواز تلاش کولو دپاره به انقسام نه وی.بلکه مرهون به ددوی دواړو په حق کښې محبوس ( قيد) شمارلې کيږی.يعنی ګويا د تقسيمولو نه بغير مرهون هر يو سره پوره دې.څکه چه ګهړۍ کښې دا صورت څو د سره کيدې نشی.چه دواړو سره ګير وی.نو داسې به شمارلې کيږی.چه په دوی دواړو کښې د هريو د حق په بدله کښې ګير دې.او د هبې مقصد چونکه تمليك دې.نو که يو څيز ئې دوه کسانو ته پوره پوره هبه کړو.نو دواړه ددې مالکان جوړول نا ممکن دی.په دې وجه امام محمد رحمه الله دا جائز نه دې ګرځولې.

**د يو مرتهن قرضه ادا کولو سره د مرهون حکم**

| |
|---|
| فَإِنْ قَضَى أَحَدُهُمَا دَيْنَهُ که راهن دوی دواړو کښې د يو کس قرضه ورکړله كَانَ كُلُّهَا رَهْنًا فِي يَدِ الْآخَرِ نو پوره مرهون به د بل په قبضه کښې رهن وی حتى يستوفى دينه تردې چې هغې خپله قرضه وصول کړی |

**تشريح﴾ قضاء دين احد الرجلين﴾** که راهن په دوی کښې د يوکس قرضه ادا کړله.نو اوس به پوره ګهړۍ دويم کس سره رهن وی.

**دليله﴾** څکه چه دده سره څو دا د مخکښې نه پوره رهن منلې شوې وو.نو اوس به هم دغه شان باقي پاتې وی.تر کومه پورې چه دده قرض ادا نکړې شی.لکه ( مثلاً) دوه کسانو يو څيز واخستلو.او په دوی کښې يوکس د خپلې حصې ثمن ادا کړو.نو ترکومه پورې چه دويم کس هم د خپلې حصې ثمن ادا نکړی.تر هغه وخته پورې به بائع ته حق وی.چه بيع هغه ته حواله نکړی.

| |
|---|
| وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا او چا چه غلام خرڅ کړو عَلَى أَنْ يَرْهَنَهُ الْمُشْتَرِي بِالثَّمَنِ شَيْئًا بِعَيْنِهِ په دې شرط چه مشتری به د دې د ثمن په عوض کښې څه معين څيز رهن ايږدی فَامْتَنَعَ الْمُشْتَرِي عَنْ تَسْلِيمِ الرَّهْنِ نو |

مشتري د مرهون سپارلو نه منع شو لَمْ يُجْبَرْ عَلَيْهِ نو په ده به زبردستي نشي کولې

**تشريح> عدم اجبار المشتري علي تسليم الرهن>** چا په دې شرط باندې غلام خرڅ کړلو چې د ثمن په بدله کښې به مشتري څه متعين څيز مثلا چيلۍ ګانړه اړدي او ثمن به روستو ورکوي خو مشتري هغه څيز رهن نکړلو نو هغه به په رهن باندې نشي مجبوره کولې

**دليله>** د عدم جبر دليل دا دې چې د ثمن په بدله کښې د رهن شرط لګول خلاف القياس دې ځکه چې دا په بيع کښې يو اضافي شرط دې او په دې کښې د بائع فائده ده اود ابوهريره (ر) نه روايت دې چې هغوی ددې نه منع فرمائيلې ده چې يوه معامله په بله معامله کښې ګډه کړې شي.ځکه چې اکثر دا مفضی الی النزاع وی او شريعت د هغه کار نه منع کړې کوم چې مفضی الی النزاع وی.

## په بائع د زبردستی کولو حکم

وَكَانَ الْبَائِعِ بِالْخِيَارِ او بائع په اختيار سره دې إِنْ شَاءَ رَضِيَ بِتَرْكِ الرَّهْنِ که غواړی.په رهن پريخودو دې راضي شي.وَإِنْ شَاءَ فَسَخَ الْبَيْعَ اوکه غواړی.نو بيع دې فسخ کړی

**تشريح> خيار البائع في اخذ الرهن وفسخ البيع>** په مذکوره صورت مشتري باندې زبردستي جائز نه ده.خو د بائع به څه کيږی.هغه ته هم څه اختيار شته.اوکه نه؟ نو وې فرمائيل چه هغه ته هم اختيار شته.که غواړی.د رهن نه بغير دې مشتري ته حواله کړی.او خپل ثمن دې پخپل وخت د هغه نه وصول کړی.اوکه غواړی.نو بيع دې فسخ کړی.

**دليله>** ځکه چه په قرض بيع کولو باندې دې د رهن په وجه راضي شوې وو.نو د وصف مرغوب فيه ( د خوښې صفت) د فوت کيدو په وجه به ده ته اختيار وی.

إِلَّا أَنْ يَدْفَعَ الْمُشْتَرِي الثَّمَنَ حَالًا خو دا چه مشتري ثمن د عقد ورکړی أَوْيَدْفَعَ قِيمَةَ الرَّهْنِ فيكون رَهْنًا يا مشتري د مرهون قيمت رهن ورکړی ؛

**تشريح> صورة عدم خيارالبائع>** خو که مشتري په ځانې د رهن ثمن ادا کړی.نواوس بائع ته اختيار نشته. ځکه چه اصل حاصل شوې دې.يا مشتري د مرهون په ځانې ددې قيمت رهن کيخودو.نو اوس هم بائع ته اختيار پاتې نشو.

**دليله>** ځکه چه مقصود حاصل دې ځکه چه عين مرهون خو امانت دې.او يد استيفاء مرتهن ته په ماليت باندې حاصليږی.او ماليت هغه قيمت دې.کوم چه ده ته ورکولې شی

## په کومو خلقو سره د رهن حفاظت کول جائز دی؟

وَلِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يَحْفَظَ الرَّهْنَ بِنَفْسِهِ او مرتهن له جائز دی.چه هغه د رهن پخپله حفاظت اوکړی وَزَوْجَتِهِ او د خپلې ښځې (بی بی ) په ذريعه، وَوَلَدِهِ او دخپل ځوی په ذريعه وَخَادِمِهِ الَّذِي فِي عِيَالِهِ او د خپل هغه خادم په ذريعه کوم چه دده په عيال کښې دې وَإِنْ حَفِظَهُ بِغَيْرِ مَنْ فِي عِيَالِهِ اوکه ده حفاظت دهغه کس نه علاوه سره اوکړو.کوم چه دده په عيال کښې نه دې أَوْأَوْدَعَهُ يا ئې دا وديعت ايخودې وی ضَمِنَ نو مرتهن به ضامن وی

**تشريح> حفاظة المرتهن الرهن بنفسه>** مرتهن باندې ضروری ده.چه د رهن حفاظت يا پخپله اوکړی.يا خپلې بی بی سره اوکړی.ياخپل ځوی سره،يا هغه خادم سره اوکړی.کوم چه دده په عيال کښې وی.ګنی که د نورو په ذريعه حفاظت اوکړی.نو په مرتهن به د مرهون د هلاکت په صورت کښې د غصب پشان د

پوره قیمت ضمان واجب وی.

**دلیله>** د دې مسئلې دلیل دا دې چې د دې رهن عین د مرتهن په لاس کښې امانت دې نو دا د ودیعت پشان شو او په ودیعت کښې په مودع باندې د ودیعې حفاظت کول ضروری وی.

**المراد من العیال>** د عیال کیدو مدار د هغه په کور کښې اوسیدل دی.که په ده د هغه نفقه واجب وی.اوکه نه وی.لکه بی بی او دده اولاد، او دده خادم، یا دده ماهانه نوکر، ټول به دده په عیال کښې شمارلې کیږی. کوم چه د روزانه مزدور دې.هغه به عیال کښې داخل نه وی. [شامی ص۳۱۲ج۵]

**مرتهن دپاره رهن کښې د تعدی حکم**

| وَإِذَا تَعَدَّى الْمُرْتَهِنُ فِي الرَّهْنِ اوکله چه مرتهن په رهن کښې تعدی ( زیاتې) اوکړله ضَمِنَهُ نو مرتهن به ددې ضامن وی ضَمَانَ الْغَصْبِ د غصب د ضمان په طریقه بِجَمِيعِ قِيمَتِهِ ددې د پوره قیمت |
|---|

**حل اللغة >** ① **التعدی:** تجاوز کول، زیاتې کول ]

**تشریح> تعدی المرتهن فی الرهن>** که د مرتهن د طرفه رهن کښې تعدی اوموندې شوه.نو د غصب په مثل به د مرهون د پوره قیمت ضمان واجب وی.

**دلیله>** ځکه چه د رهن کوم مقدار د دین نه زیاتی دې.هغه امانت دې.خو څه اوکړې شی.چه د تعدی په صورت کښې د امانتونو هم ضمان واجبیږی.

**د مرتهن، راهن سره د مرهون د عاریت ایخودو حکم**

| (وإذا أَعَارَ الْمُرْتَهِنُ الرَّهْنَ لِلرَّاهِنِ او کله چه مرتهن مرهون، راهن ته عاریت ورکړو. فَقَبَضَهُ نو راهن په دې باندې قبضه اوکړله خَرَجَ مِنْ ضَمَانِ الْمُرْتَهِنِ نو مرهون د مرتهن د ضمان نه اووتلو |
|---|

**تشریح> اعارة المرتهن الرهن للراهن>** صورت د مسئلې دا دې چه راهن ، مرهون د مرتهن سره کیخودو.ددې نه پس مرتهن هم دا مرهون، راهن ته عاریتاً کار ( او خدمت) کولو دپاره ورکړو.چه په دې باندې راهن قبضه اوکړله.نو اوس مرهون د مرتهن د قبضې نه اووتلو.نو اوس مرهون د مرتهن په ضمانت کښې نه دې.

**دلیله>** ځکه چه اوس مرهون د راهن په قبضه کښې دې.او د راهن قبضه، قبضه د امانت ده.او د مرتهن قبضه، قبضه د ضمانت ده.چه ددې په مینځ کښې منافات دې. ددې تقاضه دا ده.چه ددې دواړو قبضو اجتماع نه وی.ګنی اجتماع د نقیضینو به لازم شی.خلاصه د کلام دا چه اوس مرهون د مرتهن په ضمان کښې نه دې.

| (فَإِنْ هَلَكَ فِي يَدِ الرَّاهِنِ نو که مرهون د راهن په قبضه کښې هلاك شی هَلَكَ بِغَيْرِ شَيْءٍ نو د څه څیز نه بغیر به هلاك وی.( یعنی د مرتهن قرض به نه ختمیږی). |
|---|

**تشریح> هلاك الرهن فی ید الراهن>** نوکه مرهون د راهن سره هلاك شی.نو چونکه دده سره امانت دې.نو په راهن باندې هم ضمان نشته.

**دلیله>** دا ځکه چې د مرتهن د ضمان د قبضې نه خارج شوې وو.نو په مرتهن هم ضمان نشته.البته د مرتهن قرضه پخپل حال د راهن په ذمه قائم ده.

| وَلِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يَسْتَرْجِعَهُ إِلَى يَدِهِ؛ او مرتهن ته حق شته.چه مرهون واپس پخپله قبضه کښې واخلی فَإِذَا أَخَذَهُ عَادَ الضَّمَانُ عليه او کله چې مرتهن دا واپس واخستلو نو په ده باندې ضمان بیا راګرځی |
|---|

**تشریح> جواز استرجاع الرهن من الراهن>** مرتهن چه کله هم اوغواړي.مرهون د راهن نه واپس اخستلې شي.

**دلیله>** خکه چې ددې عاریت په وجه د مرتهن قبضه ختمه شوې ده.عقد رهن نه دې ختم شوې.بلکه عقد رهن قائم دې. خلاصه د کلام دا چه عقد رهن باقي دې.خو اوس حکم د ضمان نشته.اود ضمان نه کیدو وجه تیره شوې ده.

**توضیح کون عقد الرهن باق>** د مرتهن قبضه اګرچه ختمه شوه خو عقد رهن بیا هم باقي دې یعنی که راهن اوسه پورې مرهون مرتهن ته واپس کړې نه دې.چه راهن مړ شو.او په راهن باندې د نورو خلقو قرض هم دې.چه هغوی مرهون کښې شریکیدل غواړي.لیکن حق د مرتهن به مقدم وی.او هغه به خانله د مرهون حقدار وی.د باقي قرضخواهانو به په دې کښې شرکت نه وی.ددې نه معلومه شوه.چه عقد رهن باقي دې.او ددې وجه دا ده.چه د عاریت قبضه نه لازمیږي.بلکه مرتهن چه کله اوغواړي.دا دې د راهن نه واپس واخلي.په دې وجه عقد رهن باقي شمارکړې شوې دې.

**د راهن د مرګ نه پس د مرتهن د قرض او مرهون حکم**

| (وَإِذَامَاتَ الرَّاهِنُ او کله چه راهن مړشي بَاعَ وَصِيُّهُ الرَّهْنَ نو دده وصی دې مرهون خرڅ کړی وَقَضَى الدَّيْنَ او قرض دې ادا کړی |
|---|

**تشریح> حکم موت الراهن>** د راهن د مرګ نه پس دې وصی مرهون خرڅ کړی.اود مرتهن قرض دې ادا کړی.

**دلیله>** خکه چه دې د راهن نائب او دده قائم مقام دې.اوکه دا کار راهن پخپله کړې وې.نو جائز وو.خود مرتهن په اجازت سره، نو هم دغه شان به دا ولایت دده قائم مقام ( اونائب) ته هم ملاویږي.

**که د راهن خوك وصی نه وی نو د مرهون به څه کیږي؟**

| وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَصِيٌّ اوکه د راهن خوك وصی نه وی نَصَّبَ الْقَاضِي لَهُ وَصِيًّا نو قاضی دې دده دپاره خوك وصی مقرر کړی وَأَمَرَهُ بِبَيْعِهِ او هغه ته دې د مرهون د خرڅولو حکم اوکړی |
|---|

**تشریح> حکم صورة عدم الوصي>** د قاضی کار دا دې.چه دې د مسلمانانو د حقوقو پالنه ( او حفاظت) اوکړی.نو که راهن مړ شي.او داه خوك وصی نه وی.نو قاضی دې دده خوك وصی مقرر کړی.او دې وصی ته حکم اوکړی.چه مرهون خرڅ کړی.او قرض ادا کړی.او دلته به د وصی په مقررولو کښې دا فائده وی.که د راهن مرحوم په چا باندې حق وی.نو وصی دې دا وصول کړی.اوکه په راهن مرحوم باندې د چا حق وی.نو وصی دې دا ادا کړی.

**دلیله>** خکه چه قاضی د مسلمانانو د حقوقو نګران مقررکړې شوې دې کله چه هغه پخپله دحفاظت کولو نه عاجزه شي او د وصی په مقررولو کښې شفقت ( او مهرباني) دا ده چه وصی هغه حق ادا کړی.کوم چه په ده باندې دده د غیر دپاره دې.او دده غیر دا حق وصول کړی

# كِتَابُ الْحَجْرِ

**ترجمه>** ( دا) کتاب د حجر ( یعنی د منع کولو په بیان کښې) دې.

**تشریح> الربط بما قبله>** د کتابت الاکراه نه پس کتاب الحجر بیانوی.خکه چه دواړو کښې سلب د اختیار وی.خو اکراه د حجر نه زیات قوی ( او مضبوط) دې.خکه چه اکراه کښې سلب د اختیار دهغه

چا نه کیږي.د چا دپاره چه اختیار صحیح او کامل ولایت وي.نو اکراه مستحق د تقدیم دي.

**معني الحجر لغة** حجر ( بالتثلیث) په لغت کښې مطلق بندولو او منع کولو ته وائي.هم ددې نه حجر ( په کسرې سره) عقل ته وائي.خکه چه عقل انسان د قبیحه ( او ناکاره) کارونو کولو نه منع کوي.قال الله تعالی ﴿هَلْ فِيْ ذٰلِكَ قَسَمٌ لِّذِيْ حِجْرٍ﴾ ، ، ذِي لذي عقل، ، هم ددې نه حطیم ته حجر وائي.(لأنه منع من الكعبة)

**معني الحجر اصطلاحا** پاتې شو د حجر اصطلاحی تعریف، نو① په نهایه او عنایه کښې دی.(هو المنع عن التصرف في حق شخص مخصوص وهو الصغير والرقيق والمجنون) چه د حجر معنی مخصوص کس یعني صغیر، غلام، او مجنون د تصرف نه منع کول دی.خو په دې تعریف کښې په دوه وجو سره نقصان دې.[1] اول خکه چه شریعت کښې مطلقاً د تصرف نه منع کولو ته حجر نه وائي.بلکه صرف د قولي تصرف نه منع کولو ته وائي.[2] دویم خکه چه محجور علیه صرف په ذکرشوی دریو کسانو کښې منحصر نه دې.بلکه حیله باز مفتي، مطبب جاهل، او مکاری مفلس هم د صاحبینو ﷫ په نیز محجورعلیه دی.نو په مذکوره تعریف کښې د مقید اطلاق او د مطلق تقلید دې. ② دویم تعریف د صاحب د کافي دې.( الحجر في اللغة المنع وفي الشرع منع عن التصرف قولا بصغر ورق وجنون) په دې کښې اول محذور ( محجور) خو راغلې دې.خو محذور ثاني پخپل حال باقي پاتې دې.نو③ غوره تعریف هغه دې.کوم چه معراج الدرایه کښې مذکور دې.(ثم الحجر لغة المنع مصدر حجر علیه و شرعاً منع مخصوص و هو المنع من التصرف قولاً شخص معروف مخصوص وهو المستحق للحجر بأي سبب كان)

اوس د حجر اصطلاحی مطلب دا شو.چه مخصوص کس د مخصوص تصرف یعني د قولي تصرف نه منع کړې شي.قولي تصرفات کوم چه ژبې سره متعلق وي.لکه بیع او شراء او هبه وغیره، فعلي تصرفات کوم چه د جوارح افعال دی.لکه قتل، د مال هلاکول وغیره.نو په حجر کښې صرف قولي تصرف نه نافذ کیږي.که ماشوم د چا مال ضائع کړي.نو ضمان به واجب وي.

**موجب حجر اسباب ثلاثه**

( الْأَسْبَابُ الْمُوجِبَةُ لِلْحَجْرِ ثَلَاثَةٌ : الصِّغَرُ، وَالرِّقُّ، وَالْجُنُونُ، موجب حجر اسباب درې دی.د ماشوم توب عمر، غلام کیدل، لیوني کیدل، وَلَا يَجُوزُ تَصَرُّفُ الصَّغِيرِ إِلَّا بِإِذْنِ وَلِيِّهِ،نو جائز نه دې.د بچي تصرف، خو دهغه د ولي په اجازت سره، وَلَا يَجُوزُ تَصَرُّفُ الْعَبْدِ إِلَّا بِإِذْنِ سَيِّدِهِ،او نه د غلام تصرف، خود هغه د آقا په اجازت سره، وَلَا يَجُوزُ تَصَرُّفُ الْمَجْنُونِ الْمَغْلُوبِ عَلَى عَقْلِهِ بِحَالٍ ). او نه د مغلوب العقل لیوني تصرف په هیڅ حالت کښې،

**تشریح** **اسباب الحجر** اسباب د حجر درې دی.①اول د وړوکي عمر بچې، ②دویم رقیت او مملوکیت یعني وینخه یا غلام کیدل، ③دریم جنون او لیونتوب،

**عدم جواز تصرف الصغير** بچې ناقص العقل وي. او دې خپله نفع نقصان نه پیژني.په دې وجه شریعت کښې ددوی د قولي تصرفاتو اعتبار نشته.البته د بچي ولي یعني دده پلار یا وصي که دده د تصرف اجازت ورکړي.نو جائز به وي.خکه چه د ولي اجازت ورکول، ددې خبرې دلیل دې.چه په ده کښې د تصرف اهلیت او لیاقت موجود دې.

**عدم جوازتصرف العبد** مملوك ( غلام) اګرچه عاقل وي.خو دده سره چه کوم څه وي.هغه دده د آقا وي.نو د آقا د حق د رعایت په لحاظ دده تصرف هم غیر معتبر دې.چه دده د غلام منافع بې کاره نشي.او دده

سړی په قرضه کښې راګیر نشي.او د بل کس ملك نشي.خو که آقا ددې اجازت ورکړو.نو هغه د خپل حق په فوت کیدلو باندې پخپله راضي شو.

**عدم جوازتصرف المجنون المغلوب**> مجنون مغلوب یعنی هغه دیوانه چه هغه په هیڅ وخت کښې هم په هوش کښې نه راځي.د هغه تصرف په هیڅ حالت کښې هم صحیح نه دې.تردې که ولی د هغه تصرف جائز اوګرځوی بیا هم صحیح نه دې. ځکه چه هغه د جنون په وجه د تصرفاتو اهل نه دې.او که هغه کله لیونی کیږی.اوکله هوښیاریږی.نو د هغه حکم د ممیز ماشوم ( هوښیار ماشوم) پشان دې.

**سوال**> صاحب د کتاب د حجر صرف درې سببونه ذکر کړی دی.د هغې مطلب دا شو.چه د بچی، غلام، او د لیونی نه علاوه بل هیڅ څوك محجور نشته.حالانکه داسې نه ده.ځکه چه مفتی ماجن کوم چه خلقو ته باطل حیلې ښائي.او جاهل طبیب کوم چه خلقو ته ضررناك او مهلك دوایانې ورکوی.او ځاروی په کرایه باندې ورکونکې چه هغه غریب وی.دا هم د محجور کیدلو سبب دې.بلکه د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې مدیون او هغه سفیه چه د هغه بلوغ د هوښیارتوب په حالت کښې شوې وی.هغه هم محجور دې؟

**جواب**> دلته د اسبابوحصر د حجر شرعی معنی په اعتبار سره مقصود دې.او مفتی ماجن، جاهل طبیب، او مکاری مفلس باندې شرعی معنی نه صادقیږی.نو د مذکوره حصر نه ددوی خارج کیدل هیڅ مضر نه دی.

**تنبیه**> په نهایه او غایة البیان کښې دی.چه کوم کس کله هوښیار او کله لیونې کیږی.نو دې د هغه بچی پشان دې.چه هغه په ښه او بدو کښې فرق کولې شی.اوپه زیلعی کښې دی.چه هغه د عاقل پشان دې.شبلی مغشی زیلعی په دواړو قوتونو کښې تطبیق کړې دې.فرمائی.که د هوښیارتوب وخت مقرر وی.او هغه د افاقة په حالت کښې څه عقد اوکړی.نو په ده کښې د عاقل پشان د عقد د نفاذ حکم دې.او که د هغه د هوښیارتوب هیڅ معین وخت نه وی.نو په ده کښې د صغیر ماشوم پشان د توقف حکم دې.نو د زیلعی کلام په شق اول باندې محمول دې.او د نهایه او غایة البیان کلام په شق ثانی باندې محمول دې.(کذافی الطحاوی).

## د محجورینو د تصرفاتو احکام

| وَمَنْ بَاعَ مِنْ هٰؤُلَاءِ شَيْئًا او چا چه خرڅ کړو.ددې خلقو ځنې څه څیز. اواشتراه او یا یې واخستلو وَهُوَ يَعْقِلُ الْبَيْعَ یا ئې واخستلو، په داسې حال کښې، چه هغه په بیع پوهیږی.وَيَقْصِدُهُ او ددې قصد کوی. فَالْوَلِيُّ بِالْخِيَارِ،نو دده ولی ته اختیار دې.إِنْ شَاءَ أَجَازَهُ که غواړی.دا دې نافذ کړی.إِذَا كَانَ فِيهِ مَصْلَحَةٌ،که په دې کښې څه مصلحت وی.وَإِنْ شَاءَ فَسَخَهُ)او که غواړی.فسخ دې کړی. |
|---|

**تشریح**> **المراد من هولاء**> د ،،هؤلاء،، نه مراد ماشوم، غلام، او مجنون دې.چه کله لیونی او کله هوښیار وی.هم دا هغه معتوه(ناقص العقل کذا فی مختارالصحاح) دې.چه د غیر د طرفه وکیل کیدې شی.او دې په بیع پوهیږی.او ددې قصد کوی. اګرچه مصلحت ته په مفسد باندې ترجیح نشی ورکولې.ددې په خلاف هغه مجنون دې.چه دهغه عقل بالکل ختم شوې وی.دلته کښې هغه مراد نه دې.ځکه چه د هغه تصرف نه صحیح کیږی.اګرچه اجازت هم ملاؤ شی.

**معنی یعقل**> د (یعقل البیع) نه مراد دا دې. چه هغه په دې پوهیږی.چه بیع سره ثمن حاصلیږی.او مبیع دخپل ملك نه اوځی.او شراء ددې په عکس ده.

**معنی یقصد**> د ،،یقصد،، نه مراد دا دې.چه هغه د حکم د اثبات اراده کوی.نو په دې سره هازل ( توقې

کونکي) اووتلو.چه دهغه مقصد د بیع د حکم اثبات نه وي.
**المراد من الولي**> د ولی نه مراد پلار، نیکه، ددوی وصی، آقا او قاضی دي.
دقول مطلب دادي.چه په مذکوره محجورینو کښې چه کوم کس داسې عقد اوکړي.کوم چه د نفع او ضرر په مینځ کښې دائر وي.او هغه په عقد پوهیږي.او ددې قصد کوي.نو دده ولی ته اختیار دې.که غواړي.عقد دې نافذ کړي.که غواړي.فسخ دې کړي.
**دلیله**> د غلام تصرف د مولا د حق په وجه موقوف وو.په دې وجه آقا ته اختیار ورکړې شو.او د صبی او مجنون په صورت کښې توقف ددوی د حالت د فائدې لټولو دپاره وو.نو ولی به ددوی په حق کښې بهتري ګوري.او په کومه کښې چه بهتري وي.هغه به نافذ کوي.
**السوال**> د سوال تقریر د ترجمة نه واضح دي.چه توقف صرف په بیع کښې کیږي.پاتی شو اخستل، نو په دې کښې اصل هم دا دي.چه هغه په مباشر او فاعل (اخستونکی) باندې د توقف نه بغیر نافذ کیږي.
نو بیا دلته کښې اخستل اجازت باندې موقوف څنګه منعقد کیږي؟
**الجواب**> حاصل د جواب دا دي.چه اخستل په مباشر باندې د توقف نه بغیر نافذ کیږي.دا ټیك ده.خو دا هغه وخت کیږي.کله چه دا نفاذ اوموندې شی.لکه څنګه چه د فضولی په اخستلو کښې کیږي.که فضولی سړې د یو سړی مال د بل دپاره واخلی.( او اخستل مطلق اوساتی.غیر طرف ته ئې مضاف نکړي).نو هغه د توقف نه بغیر په ده باندې نافذ کیږي.او دلته د مذکورینو د اخستلو نفاذ اونه موندې شو.د بچی او مجنون کیدلو په صورت کښې خو ځکه چه په دوی کښې اهلیت نشته.او د غلام په صورت کښې ځکه چه دده د آقا نقصان دي.ځکه چه مونږ ددوی اخستل موقوف ګرځولې دي.بیا مذکوره اشکال په قول د صاحب د نهایه د مختصر القدوری په عبارت باندې پریوځی.چه هغې کښې لفظ د،،إشتری،، موجود دې.او دا لفظ په بدایه متن کښې هم ثابت دې.خو د هدایه اکثر نسخې ددې لفظ نه خالی دی.نو په دې باندې مذکوره اعتراض نه واقع کیږي.

**په اقوالو او افعالو کښې د اسباب ثلاثه د حجر حکم**

| (وَهٰذِهِ الْمَعَانِي الثَّلَاثَةُ تُوجِبُ الْحَجْرَ فِي الْأَقْوَالِ دُونَ الْأَفْعَالِ)او دا درې واړه خبرې واجبوی حجر په اقوالو کښې نه په افعالو کښې، |
|---|

**تشریح**>مذکوره اسباب ثلاثه یعنی ماشوم توب، غلامی، او جنون صرف په اقوالو کښې حجر واجبوی. افعالو کښې نه واجبوی.
**دلیل عدم الحجر في الافعال**> ځکه چه د افعالو منلو نه بغیر خلاصې نشته.ځکه چه دا محسوس او د مشاهدې په طور موجودیږي.که یوکس یو انسان قتل کړو.یا ئې د هغه لاس کټ کړو.یا ئې دچا څه څیز برباد کړو. نو قتل، کټ کول، او کوم نقصان چه ده کړې دې.هغې ته مونږ دا نشو وئیلې.چه هغه نه دی کړې.ګنی ددې نتیجه به دا وي.چه کوم کس قتل کړې شوې دې.هغه به مقتول نه وي.او د چا چه لاس کټ کړې شوې دې.هغه مقطوع الیه نه وي.او کوم څیز چه برباد کړې شوې دې.هغه هلاك شوې نه وي.حالانکه دا دخول فی السوفسطائیه او د حقائقو نه ښکاره انکار دې.
**دلیل الحجر في الاقوال**> په خلاف د اقوالو، چه ددې د موجود کیدلو اعتبار د شرع په ذریعه کیږي.چه دا په انشاءاتو کښې بالکل ښکاره دې.ځکه چه تطلیق، اعتاق، او بیع او هبه وغیره په محل کښې حساً اثر نه کوي.بلکه دا محل شرعاً حرام ، او آزاد مملوك کیږي.پاتی شو اخبارات، لکه اقرار او شهادات وغیره، نو ددې موجب شرعاً معلوم دې.ځکه چه دا امور مخبرعنه باندې دلالت کوي.په دې کښې دا څبره جائز ده.چه دا دلالت واقع نشی.ځکه چه دې کښې پخپله د صدق او کذب احتمال شته.حاصل دا

چه په خارج کښې د تصرفاتِ قولي وجود نه کيږي.بلکه دا صرف شرعا معتبر وي.په دې وجه ددې د عدم اعتبار مناسب دې.په خلاف د فعلي تصرفاتو، چه ددې په خارج کښې يو قسم وجود شته.لکه قتل او مال هلاکول ،.په دې وجه ددې د عدم اعتبار مناسب نه دې.

**د بچي او د مجنون د عقود حکم**

(وَاَمَّا الصَّبِيُّ وَالْمَجْنُوْنُ لَا تَصِحُّ عُقُوْدُهُمَا وَلَا اِقْرَارُهُمَا)او هر چې صبي او مجنون دې نو د دوی عقدونه صحيح نه دی.او نه ددوی اقرار،

**تشريح>** په (لايصح) کښې د عدم صحت نه مراد عدم نفاذ دې.څکه وړاندې تير شو.چه(ومن باع من هؤلاء شيئاً فالولي بالخيار) که په مذکورينو کښې يوکس اخستل يا خرڅول اوکړي.نو دا د ولي په اجازت باندې موقوف وی.نو مطلب دا شو.چه د بچي او ليونی عقدونه زمونږ په نيز نه نافذ کيږي.البته د ولي په اجازت باندې موقوف کيدو سره منعقد کيږي.بيا ددې مسئلې اعاده په اصل مذکور (هذه المعاني الثلاثة توجب الحجر عن الأقوال) باندې د تفريع په طور ده.،،فلا تکرار،،.

(وَلَا يَقَعُ طَلَاقُهُمَا او نه ددوی طلاق واقع کيږي.وَلَا عَتَاقُهُمَا)او نه اعتاق.

**تشريح> عدم وقوع طلاق الصبي والمجنون ولاعتاقهما>** د بچي او ليونی نه طلاق واقع کيږي.او نه ددوی اعتاق واقع کيږي.

**دليله>** د حضرت عائشة رضي الله عنها نه امام ابوداؤد، نسائي، ابن ماجه روايت نقل کړې دې چې ((أن رسول الله ﷺ قال: رفع القلم عن ثلاث عن النائم حتی يستيقظ و عن المبتلی حتی يبرأ و عن الصبي حتی يکبر،، نبي کريم ﷺ ارشاد اوفرمانيلو.چه د دريو کسانو نه قلم اوچت کړې شو.يو د اوده شوی نه تردې چه بيدار شی.او د ليونی نه تردې چه ښه شی.او د ماشوم نه تردې چه بالغ شی،، ددې په اسناد کښې حماد بن ابي سليمان رحمه الله د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله استاد دې.چه ددوی په حفظ کښې د ابن سعد او اعمش کلام دې.خو امام نسائي، عجلي،او يحي بن معين وغيره ثقه وئيلی دی.

**وجه عدم الوقوف في الاعتقا والطلاق>** آزادول خالص ضرر دې.چه دا بالکل ښکاره دې.پاتې شو طلاق نو ددې د نفع او نقصان په مينځ کښې دائر کول اگرچه ممکن دی.په دې اعتبار سره چه د بلوغ نه پس د زوجينو د اخلاقو په مينځ کښې موافقت وی.خو بچی ته د طلاق په مصلحت باندې نه في الحال علم ( او پوهه) شته.او نه په مآل ( راروانه زمانه ) کښې شته.في الحال خو څکه نشته.چه شهوت نه لری.او په مستقبل کښې څکه نشته.چه د طلاق په مصلحت باندې خبريدل د شهوت حد ته د رسيدلو نه پس د اخلاقو د تباين او د طبعيتونو د تنافر په علم باندې موقوف دې.حالانکه بچی ته علم نشته.او دده د ولي في الحال د طلاق مصلحت نه خبريدل اگرچه ممکن دی.خو د بالغ کيدو نه پس په دوی دواړو کښې دموافقت نه کيدلو علم ولي ته هم نشي کيدې.په دې وجه طلاق يا عتاق د ولي په اجازت باندې نه موقوف کيږي.او نه د ولي پخپله کولو سره د ماشوم او مجنون طلاق او عتاق نافذ کيږي.په خلاف د نورو عقدونو يعنی د بيع او شراء، د هبة او د صدقې قبلولو، چه په دې کښې مصلحت باندې خبريدل ممکن دی.

**د بچي يا د مجنون د اتلاف حکم**

(فَاِنْ اَتْلَفَا شَيْئًا او که دوی څه څيز هلاک کړو.لَزِمَهُمَا ضَمَانُهُ)نو په دوی به ددې ضمان لازم وی.د کوم

کس چه حق هلاك كړې شوې دې.

**تشريح>** **لوزم الضمان علي اتلاف شئ>** كه بچى يا ليونى يو څيز هلاك كړو.نو د كوم كس حق چه هلاك شوې دې.د هغه د حق په خاطر به دواړو باندې تاوان لازم وى.

**دليله>** ځكه چه هلاكيدلو باندې د ضمان وجوب، په قصد باندې موقوف نه دې.لكه مثلاً څوك اوده كس په يو څيز باندې راپريوځى.او هغه ضائع كړى.يا كوږ ديوال راپريوځى.او هغه په دې باندې ګواهان قائم كړې وى.نو تاوان لازميږى.

**د غلام د اقوالو او افعالو حكم**

(فَأَمَّا الْعَبْدُ فَإِقْرَارُهُ فِي حَقِّ نَفْسِهِ)بهرحال غلام نو دده اقرار نافذ دې.پخپله دده په حق كښې، (غَيْرُ نَافِذٍ فِي حَقِّ مَوْلَاهُ)اقرار نافذ نه دې په حق د مولا دده كښې.

**تشريح>** **نفاذ اقوال العبد في حقه>** په تيرشوى قول(والصبى والمجنون لايصح) باندې معطوف دې.مطلب دا دې.چه غلام د يوڅيز اقرار اوكړى.نو هغه به پخپله دده په حق كښې نافذ وى.

**دليله>** ځكه چه په ده كښې د اقرار لياقت موجود دې.

**عدم نفاذ اقواله في حق المولي>** خو د آقا په حق كښې به نه نافذ كيږى.نو كه ده دا اقرار اوكړو.چه ما د زيد : زر روپو مال ضائع كړو.نو غلام به د آزادئ نه پس ګرفتاروليې شى.او د آقا دحق په وجه به فى الحال نشى نيولې.د دواړو طرفونو رعايت هم په دې كښې دې.

**دليله>** ځكه چه دغلام د اقرار نافذ كيدل، دده د سټ يا مزدورئ سره د قرض متعلق كيدلو نه خالى نه دې.او دا په هرصورت كښې مال هلاكول دى.

(فَإِنْ أَقَرَّ بِمَالٍ نو كه ده د يو مال اقرار اوكړو.لَزِمَهُ بَعْدَ الْحُرِّيَّةِ)نو هغه به دده د آزادئ نه پس لازميږى. ولم يلزمه في الحال او فى الحال به پرې لازم نه وى.

**تشريح>** **حكم اقرار العبد بمال>** كه ده د يو مال اقرار اوكړو.نو په ده باندې به د ازادئ نه پس لازميږى

**دليله>** اودآزادئ نه پس به ځكه نيولې شى.چه په ده كښې د اقرار اهليت موجود دې.او امر مانع، يعنى د آقا د حق رعايت زائل شو.

( وَإِنْ أَقَرَّ بِحَدٍّ أَوْ قِصَاصٍ او كه د حد يا قصاص اقرار ئې اوكړو.لَزِمَهُ فِي الْحَالِ )نو فى الحال به لازميږى.

**تشريح>** **لزوم الحد والقصاص علي العبد في الحال>** او كه غلام د حد يا قصاص اقرار اوكړو.نو په دې كښې به فى الحال نيولې كيږى.

**دليله>** ځكه چه د حد او قصاص په حق كښې غلام پخپلې اصلى آزادئ باندې باقى ساتلې شوې دې.وجه دا ده.چه حد او قصاص د سړى توب د خواصو څنې دى.او غلام د سړى كيدلو په حيثيت سره نه مملوك كيږى.بلكه د مال كيدو په حيثيت سره مملوك كيږى.هم دا وجه ده.كه آقا پخپل غلام باندې د حد يا قصاص اقرار اوكړى.نو نه صحيح كيږى.

**السوال>** د حد او قصاص د اقرار په نفاذ كښې هم د آقا د حق بطلان دې؟

**الجواب>** دا بطلان ضمنى دې.(والضمنى لايعتبر)اوضمنى ته څه اعتبار نشته

(وَيَنْفُذُ طَلَاقُهُ)او دده طلاق به نافذ کیږي.

**تشریح> وقوع طلاق العبد>** د غلام طلاق ورکول به نافذ کیږي.

**دلائله>** ①دلیل د نبی کریم ﷺ ارشاد دي چې «لايملك العبد والمكاتب شيئاً إلا الطلاق»[1]

②او په دې وجه هم چه په طلاق کښې غلام خپل مصلحت پیژني.نو ده ته د طلاق لیاقت حاصل دې.او په دې کښې نه د آقا د ملك ابطال دې.او نه دده منافع فوت کیدل دی.نو طلاق به نافذ کیږي.

**فائده>** علامه زیلعی رحمه الله فرمائي.چه مذکوره حدیث د «لايملك العبد» الفاظو سره غریب دې.البته امام ابن ماجه رحمه الله د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت کړې دې. «قال: أتى النبي ﷺ رجل فقال: يارسول الله ﷺ أن سيدي زوجني أمته و هويريد أن يفرق بيني و بينها فصعد النبي ﷺ المنبر وقال: يا أيها الناس ما بال أحدكم يزوج عبده أمته ثم يريد أن يفرق بينهما إنما الطلاق لمن أخذ بالساق».

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما فرمائي.چه یو غلام په خدمت کښې حاضر شو.عرض ئې اوکړو.ایْ د الله رسوله ﷺ ! زما آقا خپلې وینځې سره زما نکاح کړې ده.او اوس هغه زما او د هغې په مینځ کښې جدائي کول غواړي .نو نبی کریم ﷺ ممبر ته تشریف راوړلو.او وې فرمائیل: خلقو څه حال دې چه په تاسو کښې یوکس د خپل غلام نکاح خپلې وینځې سره کوي.بیا غواړي.چه دوی دواړه جدا کړي.حالانکه طلاق هم هغه کس ورکولې شي.چا چه پنډۍ نیولې ده.. ددې په اسناد کښې اګرچه ابن لهیعه دې.چه دده په باره کښې خلقو کلام کړې دې.خو امام احمد او طحاوي رحمهما الله ده ته ثقه وئیلی دی.،،وکفی بهما حجة،،.

ولايقع طلاق مولاه على امراته او د ده د مالك طلاق د ده په ښځه باندې نه واقع کیږي

**تشریح> عدم وقوع طلاق المولي علي امراة العبد>** که د یو غلام واده کړې وی نو دده مولی او مالك ته دا اختیار نشته چې هغه د دې غلام ښځې ته طلاق ورکړی

**دلیله>** د عبد الله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې چې «اتى النبي ﷺ رجل قال يا رسول الله ان سيدى زوجني امته وهويريد ان يفرق بينهما قال فصعد رسول الله ﷺ المنبر فقال يا ايها الناس ما بال احدكم يزوج عبده امته ثم يريد ان يفرق بينهما انما الطلاق لمن اخذ الساق» په دې حدیث کښې دا دې چې مالك د خپل غلام ښځې ته طلاق ورکول غوښتل خو نبی کریم ﷺ هغه منع کړلو او دا ئې اوفرمائیل چې طلاق هغه کس ورکولې شي چا چې پنډۍ نیولې وی یعنی نکاح ئې کړې وی نو څکه مولی د خپل غلام ښځې ته طلاق نشی ورکولې[2]

# بَابُ الْحَجْرِ لِلْفَسَادِ

**ترجمه>** ( دا ) باب د فساد په وجه د محجور کولو ( په بیان کښې ) دې.

**تشریح> الربط بما قبله>** ددې باب د مؤخر کولو وجه دا ده.چه وړاندې کوم اسباب د حجر وو.هغه

[1]) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه ابن ماجه في الطلاق باب ۳۱ رقم ۲۰۸۱)۔

[2]) ابن ماجه باب طلاق العبد والدارقطني كتاب الطلاق )۔

سماوي دی.او دلته چه کوم سبب د حجر دې.هغه پخپله د بنده کسب دې.او سماوي امر په تاثیر کښې زیات مضبوط وي.نو هم هغه د تقدیم مناسب دې.او په دې وجه هم چه په تیر شوی باب کښې کوم حجر ذکر دې.هغه متفق علیه دې.او دلته چه کوم حجر دې.دا مختلف فیه دې.(و المتفق علیه احری بالتقدیم).

**المراد من الفساد>** په عنایه او بنایه وغیره کښې دی.چه دلته د فساد نه مراد ،،سَفَه،، دې.په احکام القرآن کښې دی.چه ،،سَفَه،، په اصل کښې خفت (او کموالی) ته وائی.(یقال: سفهت الریح الشجر) هوا ونه رانبکته کړله.و منه قول الشاعر~

مشین کما اهتزت رماح تسفهت　　　اعالیها مر الریاح النواسم

وقول آخر: نخاف أن تسفه احلامنا　　　فنحمل الدهر مع الحامل

**وجه تسمیة الجاهل سفیها>** جاهل ته سفیه ځکه وائی.چه هغه خفیف العقل یعنی ناقص العقل وی.نو د جهل معنی هرهغه کس ته شامل ده.په چا چه د سفیه لفظ اطلاق کیږی.تردې چه سفیه فی الدین به هغه وی.ځوك چه د دین په معامله کښې جاهل وی.او سفیه فی المال به هغه وی.ځوك چه د مال د حفاظت نه ناخبره وی.او سفیه فی الرایٔ به هغه وی.چه هغه ناقص العقل وی.ماشومانو او ښځو ته سفهاء ځکه ونیلې شی.چه ددوی په عقل او تمیز کښې نقصان وی.

بهرحال ،،سَفَه،، ناپوهتیا او د عقل کموالی ته وائی.کوم چه انسان ته په قهر او غصې یا فرحت او خوشحالئ سره لاحق کیږی.او دده د عقل قائمیدلو باوجود د شرع موجب نه په خلاف عمل کولو، او د خواهشاتو تابعداری کولو باندې راضی کوی.د فقهاؤ په عرف کښې ددې غالب استعمال د فضول خرچئ دپاره کیږی.کوم چه د عقل او شرع خلاف وی.نو ددې نه علاوه د نورو ګناهونو ارتکاب مثلا شراب ځکل، زناکاری، د سفیه په اصطلاحی تعریف کښې داخل نه دی. علامه حموی رحمه الله فرمائی.چه په نفقه کښې اسراف یا بې مقصده خرچ کول د سفیه عادت دې. دغه شان په داسې مقصد کښې خرچ کول کوم چه دیندار عاقلان مقصد نه شماری.مثلاً ډمانو (او ګانو بجانو والا)، لوبو او تماشو کونکو ته پیسې ورکول، اوچتې الوتونکې کونترې په ګران قیمت باندې اخستل وغیره.

**بناء مسائل الحجر علی قول الصاحبین>** صاحب د نهایه او صاحب د بنایه رحمهما الله فرمانیلی دی.چه ددې باب ټولې مسئلې د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې مبنی دی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول باندې مبنی نه دی.ځکه چه امام ابوحنیفه رحمه الله د ،،سَفَه،، په وجه د حجر قائل نه دې.

په دې باندې صاحب د نتائج رحمه الله لیکلی دی.چه دا خبره ټیك نه ده.ځکه چه ددې باب اکثرو مسئلو باندې د امام ابوحنیفه او صاحبینو رحمهم الله اتفاق دې.مثلا ① إن أعتق عبداً نفذ عتقه ② لو دبر عبده جاز ③ لو جاءت جاریته بولد فأدعاه ثبت نسبه منه و کان الولد حراً و الجاریة أم ولده ④ إن تزوج إمرأة جاز نکاحها و إن سمی لها مهراً جاز منه مقدار مهر مثلها ⑤ لو طلقها قبل الدخول وجب لها النصف ⑥ و تخرج الزکاة من مال السفیه و ینفق علی أولاده و زوجته و من تجب نفقته من ذوی أرحامه ⑦ إن أراد حجة الإسلام لم یمنع منها ⑧ لو أراد عمرة واحدة لم یمنع منها ⑨ إن مرض و أوصی بوصایا فی القرب و أبواب الخیر جاز ذالك فی ثلث ماله ⑩ ولا یحجر الفاسق عندنا إذا کان مصلحاً لماله.

**مسائل الاختلافیة بین ابی حنیفة وصاحبیه>** ددې نه پس ئې ونیلی دی.چه په دې باب کښې د امام ابوحنیفه

او صاحبینو رحمهما الله په مینځ کښې چه کومې اختلافي مسئلې دی.هغه صرف درې دی.چه د هغې نه دوه مسئلې په هدایه او بنایه کښې د باب په شروع کښې ذکر دی. ① یوه دا چه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز سفیه باندې حجر نشی کیدې.د صاحبینو رحمهما الله په نیز کیدې شی. ② دویمه مسئله دا ده.چه کوم هلك د،،سَفَه،،په حالت کښې بالغ شی.او پنځیشتو کالو ته اورسیږی.نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دده مال ده ته سپارلې کیږی.اګرچه په ده کښې د عقلمندئ آثار نه وی ښکاره شوې.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز ترکومه پورې چه د عقلمندئ آثارنه وی ښکاره شوې.تر هغه وخته پورې به مال نشی ورکولې. ③ او یوه مسئله صرف په هدایه کښې د باب په آخر کښې ذکر ده.او هغه دا چه د صاحبینو رحمهما الله په نیز به قاضی د غفلت په وجه حجر کوی.

بیا په ړومبو دواړو مسئلو کښې هم د امام ابوحنیفه رحمه الله قول په ذکر کښې اصل ګرځولې شوې دې.او د صاحبینو رحمهما الله قول ئې ددې تابع کړې دې.ددې باب صرف یوه مسئله داسې پاتې شوه.چه هغه د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې مبنی ده.د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول مبنی نه ده.او هغه آخری مسئله ده.چه صرف په هدایه کښې ذکر ده.نو دا ونیل صحیح نه دی.چه ددې باب ټولې مسئلې د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې مبنی دی.البته که قائل ددې په ځائې داسې ونیلی وو.چه دا باب د،،باب الحجر للفساد،،په لقب سره ملقب کول د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې مبنی دی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول باندې مبنی نه دی.نو په یوه درجه کښې به دا صحیح وه.

**په سفیه ناپوهه باندې د حجر حکم**

| (قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ: امام ابوحنیفه رحمه الله فرمانی. لَا يُحْجَرُ عَلَى السَّفِيهِ، اذاكَانَ عَاقِلًا بَالِغًا حُرًّا چه په سفیه باندې به حجر نشی کولې خو په دې شرط چې عاقل، بالغ او ازاد وی .وَتَصَرُّفُهُ فِي مَالِهِ جَائِزٌ او دده تصرف په مال کښې جائز دې.وَإِنْ كَانَ مُبَذِّرًا مُفْسِدًا يُتْلِفُ مَالَهُ فِيمَا لَا غَرَضَ لَهُ فِيهِ وَلَا مَصْلَحَةَ اګرچه دې فضول خرچه او مفسد وی.مال برباده وی.په هغه څیزونو کښې په کوم کښې چه دده نه څه فائده شته.او نه مصلحت، مثل ان يتلفه فى البحر او يحرقه فى النار.مثلاً چې په دریاب کښې یې ورلاهو کړی یا ئې په اور کښې اوسوزوی |
|---|

**تشریح:> عدم الحجر علي السفيه>** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز آزاد، عاقل، بالغ سړی باندې دده د سفاهت په وجه حجر نشی کیدلې.بلکه پخپل مال کښې به دده تصرف جائز وی.اګرچه دې داسې فضول خرچه وی.چه خپل مال په داسې کارونو کښې خرج کړی.چه هغې کښې نه دده څه مقصد وی.او نه مصلحت، مثلاً مال په دریاب کښې ډوبه وی.یا ئې په اور کښې سوزوی.د سفیه د حجر په باره کښې د عبیدالله بن الحسن قول هم د امام ابوحنیفه رحمه الله د قول پشان دې.او د حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله نه هم دا نقل دی.(انه قال: لايحجر على حر) او د محمد بن سیرین او حسن بصری رحمهما الله نه هم دغه شان نقل دی.(لايحجر على حر انما يحجر على العبد)،

**دلائله>** ① د امام ابوحنیفه رحمه الله نقلی دلیل دا دې.چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په وړاندې د حضرت حبان بن منقذ رضی الله عنه تذکره اوشوه.چه هغوی به اکثر په اخستلو خرڅولو کښې دهوکه خوړله.نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائیلو .چه ته د اخستلو نه پس داسې وایه چلا خلابة) په دې کښې به دهوکه نه وی.(

صحیحان عن ابن عمر)

② دلیل دا دی چې سفیه سړی مخاطب هم دی.او عاقل هم دی.په دې کښې رومبی وصف ( مخاطب کیدل) د تصرف اهلیت طرف ته اشاره کوی.ځکه چه مکلف کیدل ددې تقاضه کوی.چه په استیفاء باندې تمکن ( او قدرت) حاصل شی.او د تکلیف د موجب مطابق عمل اوکړی.او په استیفاء به قدرت هغه وخت حاصلیږی.کله چه مالونو ته رسیدل اوشی.او مالونو ته رسیدل د تملیك او تملك په ذریعه کیږی.دویم وصف عاقل کیدل دی.چه ددې په ذریعه د تمیز اهلیت ثابتیږی.بیا شریعت عقل د تملیك او تملك په اعتبار سره د تصرفاتو یوه لاره مقرر کړې ده.او دا ددې معنی په لحاظ سره دی.او دا معنی د عقل مند سړی پشان سفیه سړی کښې هم موجود ده.ځکه چه په ده کښې په دومره اندازه عقل موجود وی.چه د هغې په وجه الله تعالی دې مخاطب کړې دې.که د بچی پشان دې هم بې عقله وو.نو د ایمان او شرائعو مخاطب به نه وو.نو لکه څنګه چه عقل او سلامتیا سره تصرف کونکې نه محجور کیږی.دغه شان به سفیه هم نه محجور کیږی.ګنی ښکاره ده.چه دده ولایت په زبردستئ اخستل، ګویا دې د سړی توب نه غورځول، او څاروو سره ملاوول دی.حالانکه ددې نقصان د فضول خرچئ په نسبت ډیر زیات دې.نو د معمولی ضرر ( یعنی فضول خرچئ) اعلی ضرر ( حجر) نشی برداشت کولې.ځکه چه مال یو زیاتی نعمت دې. او د ژبې بندیز نه کیدل اصلی نعمت دې.نو سړی چه په نورو حیواناتو کومه مرتبه او فوقیت لری.هغه د خپلو قولی تصرفاتو په اعتبار سره لری.

**استثناء مسئلة**> البته که په محجور کولو کښې عام ضرر دفع کول وی.مثلاً څوك جاهل سړی طبیب جوړ شو.یا څوك بې پرواه او بې حیا سړی مفتی شی.یا څوك غریب سړی چه هغه سره څاروی وغیره نشته.هغه په کرایه باندې د ورکولو ټهیکدار شو.نو دوی ټول به محجور کولی شی.لکه څنګه چه د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی.ځکه چه دا د معمولی ضرر په ذریعه اعلی ضرر دفع کول دی.

**السوال**> د امام ابوحنیفه رحمه الله په دې دلیل باندې چې سفیه مخاطب دې او عاقل دې دا اشکال کیږی.چه دا دلیل غلام سره ماتیږی.چه غلام هم مخاطب او عاقل دې.ددې باوجود هغه باندې حجر کولې شی؟

**الجوابان**> ددې جواب په دوه طریقو دې. ① یو دا چه دلته کښې لفظ مخاطب مطلق دې.او مطلق خپل کامل فرد طرف ته واپس کیږی.او غلام کامل مخاطب نه دې.ځکه چه دده نه ډیر مالی خطابات لکه زکاة، صدقة فطر( سرسایه)، اضحیه ( قربانی) مالی کفارات، او بعض غیرمالی خطابات مثلا حج، جمعه، د اخترونو مونځونه، شهادات وغیره ساقط دی. ② دویم جواب دا دې.چه د مخاطب نه مراد په دلالت د محل د کلام هغه دې.کوم چه د مالی تصرفاتو مخاطب وی.ځکه چه بحث د مسئلې د مالی تصرفاتو نه د حجر په باره کښې دې.لکه بیع او شراء، هبې او صدقات وغیره.په دې صورت کښې مذکوره قول چې دې مخاطب دې غلام ته شامل نه دې.ځکه چه د غلام هیڅ مال نه وی.

**د بلوغت نه پس د سفیه ( کم عقل ) حکم**

| |
|---|
| إِلَّا أَنَّهُ قَالَ خو بیا دومره ده چې امام ابو حنیفه رحمه الله فرمائیلی دی إِذَا بَلَغَ الْغُلَامُ غَيْرَ رَشِيدٍ کله چه یو هلك د بې وقوف توب په حالت کښې بالغ شی. لَمْ يُسَلَّمْ إِلَيْهِ مَالُهُ نو دده مال به ده ته نشی حواله کولې. حَتَّى يَبْلُغَ خَمْسًا وَعِشْرِينَ سَنَةً، تردې چه هغه د پنځیشتو کالو شی. وَإِنْ تَصَرَّفَ فِيهِ قَبْلَ ذَلِكَ او که ده ددې نه وړاندې په مال کښې څه تصرف اوکړو. نَفَذَ تَصَرُّفُهُ، نو دده تصرف به نافذ وی. |

**تشریح**> **عدم التسلیم عند عدم الرشد عند البلوغ**> کوم سړی چه د بالغ کیدو نه پس هم دومره هوښیار نه وی.چه خپله نفع نقصان اوپیژنی.نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به ده ته دده مال نشی ورکولې.تردې چه دې د پنځیشتو کالو شی.ددې نه پس به ده ته مال ورکولې شی.که هغه مصلح وی.او که مفسد وی.

**دليله** خکه چه آيت (فَإِنْ آنَسْتُمْ مِنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوٓا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ) کښې مال حواله کول د رشد (عقلمندئ) په وجود باندې معلق دی.نو ددې نه وړاندې به مال ورکول جائز نه وی.خکه چه د ممانعت علت ،،سفه،، (بې وقوفي) ده.نو ترکومه پورې چه دا علت باقي پاتې وی.تر هغه وخته پورې به ممانعت هم باقي پاتې وی. او دا د صبی ( ماشوم توب) پشان شو.چه ترکومه پورې ماشوم توب باقی پاتې وی.تر هغه وخته پورې بچې ته اجازت نه وی.

| فَإِذَا بَلَغَ خَمْسًا وَعِشْرِينَ سَنَةً کله چه هغه د پنځیشتو کالو شي. يُسَلَّمُ إِلَيْهِ مَالُهُ وَإِنْ لَمْ يُؤْنَسْ مِنْهُ الرُّشْدُ.نو مال به ده ته حواله کولې شي.اګرچه دده نه د هوښيار توب آثار نه وی ښکاره شوی. |
| --- |

**تشريح** **التسليم عند خمس وعشرين سنة** امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی چې د پنځویشتو کالو په عمر کښې به ورته سپارلې شي اګرچې دده بې وقوفتيا ختمه شوې نه وی البته که د پنځویشتو کالو نه وړاندې ده په خپل مال کښې څه تصرف اوکړو نو هغه به نافذ وی

**دلائله** ① د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چه د بلوغ نه پس کله د عقل مندئ آثار ښکاره نشی.نو منع کول د ماشوم والی په اعتبار سره دی.چه دا د بلوغ ابتدائی زمانې پورې وی.او په اوګدې زمانې تيريدو سره ختميږی.او د اوګدې زمانې اندازه په پنځیشتو کالو سره څکه شوې ده.چه د عمر په لحاظ سره د بلوغ موده اَتلس کاله ده.او بلوغ ته نيزدې زمانه د بلوغ په حکم کښې ده.چه ددې اندازه د اووه کالو نه ده.په ابتداء کښې د تميز په مودې باندې قياس کولو سره.چه دې طرف ته په حديث (مروا صبيانکم بالصلاة اذا بلغوا سبعة) کښې اشاره ده.نو ددې مودې نه پس ممانعت نه پاتې کيږی.او په دې وجه ( چه ممانعت د ماشوم توب په اعتبار سره دې) امام ابوحنيفه رحمه الله اوفرمائيل.که هغه د بلوغ په وخت عقلمند شي.او بيا سفيه ( کم عقل) شي.نو دده به مال نشی منع کولې.خکه چه اوس دده بې وقوفی ( او کم عقل توب) د ماشوم والی اثر نه دې.

② د امام ابوحنيفه رحمه الله د دليل تقرير دا دې.چه د سفيه ( بې وقوف) نه مال منع کول په طريقه د تاديب دی.يعنی علت د منع کم عقل توب سره د قصد د تاديبه دې.چه ده ته په فضول خرچئ باندې تنبيه ( او خبرداري) وی.او ددې تقاضه دا ده.چه هغه محل د تاديب وی.او سفيه محل د تاديب کيدل هغه وخته پورې دې.تر کومه پورې چه د ادب قبلولو اميد وی.او ښکاره او غالب هم دا دی.چه د پنځیشتو کالو نه پس ده ته د ادب حاصليدلو هيڅ توقع نه پاتې کيږی.حالانکه بعضو وختونو کښې سړې په دومره موده کښې نيکه جوړيږی.خکه چه د هلك په حق کښې د بلوغ کم نه کمه موده دولس کاله ده.او د حمل کم نه کمه موده شپږ مياشتې ده.اوس مثلاً د دولس کالو په عمر کښې دده خوئي پيدا شو.بيا د دولسو کالو نه پس په شپږمه مياشت دده د خوئ خوئي پيدا شو.نو هغه د پنځیشتو کالو په عمر کښې نيکه شو.او هرکله چه په دومره موده کښې دده فرع هم اصل شو.نو اوس هغه په اصل کيدو کښې انتهاء ته اورسيدلو.او د ادب راتلو هيڅ توقع پاتې نشوه.نو په مال منع کولو کښې هيڅ فائده پاتې نشوه.امام محمد رحمه الله دې طرف ته اشاره کړې ده.فرمائی. چه (ارأيت انه لو بلغ مبلغاً صار ولده قاضياً وله نافلة اکان يحجر على أبيه ويمنع المال منه ـ هذا قبيح)

**السوال** د نيکه دپاره خو صرف د دوه ويشتو کالو موده کافی کيږی.مثلاً د دولس کالو په عمر کښې د بوکس په شپږمه مياشت لور پيدا شوه.چه هغه په نهمه مياشت بالغه شوه.او د واده نه پس په شپږمه مياشت ددې بچې پيدا شو.نو هغه په دوه ويشتو کالو کښې نيکه جوړ شو؟

**الجواب** دلته د جد ( نيکه) نه مراد جد صحيح يعنی د پلار د طرفه نيکه دې.جد فاسد يعنی د مور د

طرفه نيکه مراد نه دي.خکه چه د مور د طرفه د نيکه هيڅ اعتبار نه کيږي.

**فائده** د امام ابوحنيفه رحمه الله اصل دليل دا آيت﴿وَاٰتُوا الْيَتٰمٰى اَمْوَالَهُمْ ﴾ دې.په دې کښې مال ورکول د بلوغ نه پس مراد دی.نو د بالغ کيدو نه پس به مال ده ته حواله کولې شی.پاتې شوه د پنځيشتو کالو موده، نو دا ددې دپاره ده.چه د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه نه نقل دی.چه کله سړې د پنځيشتو کالو شی. نو دده عقل انتهاء ته رسيږي.

## سفيه به د تجارت نه منع کولې شي

وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله فرمانی. يُحْجَرُعَلَى السَّفِيْهِ چه په سفيه به حجر کولې شی. وَيُمْنَعُ مِنَ التَّصَرُّفِ فِي مَالِهٖ(¹)او هغه به پخپل مال کښې تصرف کولو نه منع کولې شی.

**تشريح- مذهب الصاحبين** د صاحبينو او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز به سفيه باندې حجر کولې شی.او دې به پخپل مال کښې د داسې تصرف کولو نه منع کولې شی.چه هغه د فسخ احتمال لری.لکه بيع او شراء او اجاره وغيره.البته په کومو کارونو کښې چه د فسخ احتمال نشته.هغې کښې به حجر نشی کولې.لکه طلاق او عتاق او د حدود د قصاص اقرار، او نکاح وغيره.

**دلائلهما** ① د صاحبينو دليل د الله تعالى ارشاد دې. ﴿فَاِنْ كَانَ الَّذِيْ عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيْهًا اَوْضَعِيْفًا اَوْلَا يَسْتَطِيْعُ اَنْ يُّمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهٗ بِالْعَدْلِ ﴾ ،،بيا که هغه کس په چا چه قرضه ده.بې عقله دې.يا ضعيف دې.يا پخپله نشی خودلې. نو اودې ښائی.کارګزار دده په انصاف سره،، ددې آيت نه صفا معلوميږي.چه سفيه باندې دده د ولی ولايت حاصل دې.په درمختار کښې دی.چه فتوی د صاحبينو رحمهما الله په قول ده.

② دويم دليل دا دې.چه ذکر شوې سفيه پخپل مال کښې فضول خرچه دې.چه مال د عقل د تقاضې مطابق نه خرچ کوی.نو دده د خيرخواهئ په لحاظ به محجور کولې شی.

**الجواب عنه** خو د دې قياس نه جواب دا دې چې سفيه باندې د حجر جواز، د مال د منع په جواز باندې قياس کول صحيح نه دې.خکه چه منع د مال خو په طريقه د عقوبت او د سزا په طور دی.چه دده په فضول خرچئ باندې تنبيه وی.او د مال منع کولو په نسبت محجور کولو کښې عقوبت زيات دې.نو زيات قوی څيز د خپل نه په کم او ضعيف څيز باندې قياس کول صحيح نه دی.او دده د دويم قياس( اِعتباراً بالصبی) جواب دا دې.چه سفيه په صبی باندې قياس کول هم صحيح نه دی.خکه چه صبی نه پخپله معامله کښې د بهترئ د فکر کولو اهليت نشته.او سفيه ته دا قدرت حاصل دې.خکه چه ده ته آزادی، عقل او بلوغ ورکړې شوې دې.خو هغه پخپلې بد اختيارئ سره ددې په خلاف لاره باندې چليږي.نو دا د قادر په عاجز باندې قياس کول شو.چه دا فاسد دې.

فَاِنْ بَاعَ لَمْ يَنْفُذْ بَيْعُهٗ فِيْ مَالِهٖ نوکه سفيه بيع اوکړه دده بيع به د ده په مال کښې نافذه نه وی وَاِنْ كَانَ فِيْهِ مَصْلَحَةٌ او که په دې کښې خه بهتری وی. اَجَازَهُ الْحَاكِمُ نو حاکم اجازت ورکولې شی.

**تشريح- تفريع المسئلة** امام قدوری رحمه الله فرمانی.چه دا تفريع د امام ابوحنيفه رحمه الله په قول باندې نشی کيدې.خکه چه امام صاحب رحمه الله حجر ته د سره جائز نه وائی.بلکه تفريع د هغوی په قول باندې کيدې

¹) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في ردالمحتار(٥\١٠٣) والبحرالرائق (٨\١٤٦) ومجمع الأنهر (٤\٥٣) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٥٠)_

شي.څوك چه حجر ته جائز وائي.نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز چونکه حجر صحيح دې.په دې وجه ددوی په نيز د سفيه بيع نه نافذ کيږي.کله چه هغه د حجر نه پس خرڅ کړي.چه د حجر پوره فائده ښکاره شي.نوکه د سفيه په بيع کښې څه بهتري وي.په دې طريقه چه دا د اصل قيمت په عوض وي.يا په دې کښې نفع وي.او ثمن دده سره باقي هم وي.او حاکم ددې اجازت ورکړي.نو دده موقوف بيع به جائز وي.

**دليله** څکه چه رکن د تصرف چه ايجاب او قبول دې.هغه دلته کښې موجود دې.پاتې شو ددې موقوف کيدل، نو هغه دده بهترئ ( او فائدې) ته په کتلو سره وو.او حاکم هم ددې فائدې د کتلو دپاره مقرر کړې شوې دې.نو هغه به دده بهتري ګوري.او اجازت به ورکوي.لکه مثلاً هغه بچې کوم چه په اخستلو او خرڅولو پوهيږي.او ددې قصد کوي.نو دده ولي دده فائده ګوري.او اجازت ورکوي.

**د سفيه د غلام آزادولو حکم**

| وَإِنْ أَعْتَقَ عَبْدًا که سفيه غلام آزاد کړو. نَفَذَ عِتْقُهُ)نو دده آزادول نافذ کيږي. |
|---|

**تشريح** که سفيه د محجور کيدو نه پس خپل يو غلام آزاد کړي. ([1])

**الاصل عندهما** په دې باب کښې د صاحبينو رحمهما الله په نيز اصول دا دې.چه په کوم تصرف کښې هزل او توقه اثر کوي.هغې کښې حجر هم اثر کوي.او په کوم کښې چه هزل اثر نه کوي.هغې کښې حجر هم اثر نه کوي.وجه دا ده.چه سفيه هم د هازل په معنې کښې دې.په دې حيثيت سره چه د هازل ګفتګو د نفس د خواهش مطابق او د عقل مخالف په داسې طريقه سره وي.چه عقل مند او هوښيار خلق داسې قسمه کلام نه کوي.خو دا په قصد سره کيږي.په دې وجه نه کيږي.چه عقل کښې څه نقصان دې.او هم دا حال د سفيه دې.چه دده کلام هم داسې وي.او په عتق کښې هزل اثر نه کوي.نو د سفيه آزادول به صحيح وي.

**السوال** هرکله چه سفيه د هازل په مرتبه کښې دې.نو لکه څنګه چه د هازل آزادولو سره په غلام باندې سعايت نه واجبيږي.نو هم دغه شان د سفيه آزادولو سره هم واجبيدل پکار نه دی.حالانکه د صاحبينو رحمهما الله په نيز دلته غلام باندې سعايت واجبيږي؟

**الجواب** د سفيه حجر د فائدې ( او بهترئ) په نظر سره دې.او بهتري د سعايت په وجوب کښې ده.په خلاف د هازل، چه هغه محجور نه دې.

| عَلَى أَنْ يَسْعَى فِي قِيمَتِهِ)نو په غلام به واجب وي.چه هغه پخپل قيمت کښې سعايت ( او مزدوري) اوکړي. |
|---|

**تشريح** **وجوب السعي علي العبد في القيمة** هرکله چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز د سفيه آزادول صحيح شو.نو په غلام به خپل قيمت کښې سعايت واجب وي.

**دليله** څکه چه حجر خو د فائدې په غرض سره وو.او بهتري هم په دې کښې ده.چه آزادي رد کړې شي.خو آزادي رد کول متعذر دی.څکه چه آزادي د فسخ قابل نه ده.نو دا به په دې طريقه رد کولې

---

[1] ) **مذهب الشافعي**: د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نيز نه نافذ کيږي،، وهو قياس قول مالک رحمه الله،،

**الاصل عند الشافعي**:-دامام شافعي رحمه الله اصول دا دې.چه د سفاهت په وجه محجور کيدل هم داسې دی.لکه د غلامئ په وجه محجور کيدل.تر دې چه د حجر نه پس دده هيڅ تصرف نه نافذ کيږي.سوا د طلاق نه،لکه څنګه چه د غلام حکم دې.او د غلام آزادول نه صحيح کيږي.نو هم دغه شان به د سفيه آزادول هم صحيح نه وي.

شي.چه دده قيمت به واپس کولې شي.لکه که قرضدارې بيمار که د مرض په حالت کښې غلام آزاد کړی.نو هغه به د قرضدارانو دپاره په پوره قيمت کښې سعايت کوی.اوکه د مريض په ذمه قرض نه وی.نو غلام به د وارثانو دپاره پخپل دوه ثلثه قيمت کښې سعايت کوی.

**الرواية عن محمد**> د امام محمد رحمه الله نه د سعايت د عدم وجوب روايت هم دې.(چه دې ته په مبسوط کښې د امام ابويوسف رحمه الله آخری قول ونيلی شوی دی.رومبنې قول د امام محمد رحمه الله د قول پشان د سعايت د وجوب دې). وجه دا ده.چه دلته سعايت د معتق ( آزادونکی) د حق په وجه واجبيږی.حالانکه په شريعت کښې ددې وجوب د غير معتق ( قرضدارانو) د حق په وجه معهود ( او مطلوب) دې.لکه مثلاً چه يو شريکوال غلام آزاد کړی.نو د دويم شريکوال د حق په وجه سعايت واجبيږی.

## د سفيه محجور د نکاح حکم

| (وَإِنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً که محجور سفيه يوې ښځې سره نکاح اوکړله. جَازَ نِكَاحُهُ نو دده نکاح جائز ده. |
|---|

**تشريح**> که سفيه محجور يوې ښځې سره نکاح اوکړله. دده نکاح جائز ده.[1]

**دليلهم**> ځکه چه د اخستلو پشان نکاح هم عقد معاوضه ده.نو د ولی د اجازت نه بغير به جائز نه وی.مونږ دا وايو.چه په نکاح کښې هزل ( ټوقه) اثر نه کوی.نو حجر به هم اثر نه کوی.او په دې وجه هم چه نکاح دده د اصلی ضرورياتو ځنې ده.

**دلائله**> ① ځکه چه نکاح کښې هزل ( ټوقه)اثرنه کوی.د دې وجې د ده نکاح جائز ده

②ځکه چه نکاح دده د اصلی ضرورتونو ځنې ده.

| (فَإِنْ سَمّٰى لَهَا مَهْرًا او که ددې دپاره ئې څه مهر مقرر کړو. جَازَ مِنْهُ مِقْدَارُ مَهْرِ مِثْلِهَا)نودهغې د مهر مثل په اندازه به جائز وی.وَبَطَلَ الْفَضْلُ)او زياتی مقدار به باطل وی. |
|---|

**تشريح**> **صورة تسمية المهر**> که سفيه د خپلې ښځې دپاره مهر مقرر کړی نو په دې صورت کښې به د ده مهر د مهر مثل په برابری وی او که زياتی وی نو هغه به باطل او ناجائز وی

**دليله**> په مقدار د مهر مثل ځکه جائز دې چې دا د نکاح د ضرورياتو ځنې دې.نو بغير د دې نه نکاح نه کيږی او زياتی ځکه باطل دې چه ددې هيڅ ضرورت نشته.اوغلام ده په بيانولو سره پخپله ذمه لازم کړې دې.،حالانکه په دې کښې دده بهتری نشته.نو زياتوالې به صحيح نه وی.

| وَقَالَا: فِيمَنْ بَلَغَ غَيْرَ رَشِيْدٍ صاحبين رحمهما الله فرمائی.دهغه چا باره کښې چه بالغ شوی وی خو پوهه نه وی لَا يُدْفَعُ إِلَيْهِ مَالُهُ أَبَدًا چه دده مال به ده ته کله هم نشی حواله کولې.حَتّٰى يُؤْنَسَ مِنْهُ رُشْدُهُ،تردې چه دده نه هوښيار توب ښکاره شی.وَلَا يَجُوزُ تَصَرُّفُهُ فِيهِ)([2])او په مال کښې به دده هيڅ تصرف جائز نه وی. |
|---|

**تشريح**> **السوال**> په قول د صاحب د عنايه رحمه الله لفظ د،،ابد،،او،،حتی،،دواړه جمع کولو کښې تسامح ده؟

---

[1] )**مذهب الائمة**> د امام مالك، امام شافعی،او د ابوالخطاب حنبلی رحمهم الله په نيز د ولی د اجازت نه بغير جائز نه ده.

[2] ) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في مجمع الأنهر(٤\٥٣) وردالمحتار(٥\١٠٥) والدرالمنتقى (٤\ ٥٣، ٥٤) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٥١)۔

**الجواب**> دا دي.چه د ابد نه مراد اوګده زمانه ده.لکه څنګه چه بعضو مفسرینو په آیت (وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ خٰلِدًا فِيهَا) کښې لفظ د خلود په مکث طویل باندې محمول کړي دي.(فلا تدافع بین أبد وحق).

**مذهب الصاحبين**> د صاحبینو او د آئمه ثلاثه په نیز به مال نشی ورکولې.ترکومه پورې چه د عقل منديٰ آثار ښکاره نشي.اګرچه ټول عمر تیر شي.

**دليلهما**> د صاحبینو دلیل دا دې چې د سفیه د منع کولو علت هغه سفه ده نو تر څو پورې چې سفه او بیوقوفتوب باقي وی نو ترهغه وخته پورې به ده ته د ده مال نشی ورکولې.او دې د ماشوم پشان شو نو لکه څنګه چه ماشوم ته د هغه مال نشي ورکولې دغه شان سفیه ته هم نشي ورکولې.

| (وَتُخْرَجُ الزَّكَاةُ مِنْ مَالِ السَّفِيهِ)او اوښکلې به شي.زکاة د سفیه د مال نه، |
|---|

**تشريح**> د سفیه په مال کښې به دده متولیان زکاة ورکوی

**دليله**> ځکه چې دا په ده باندې واجب دې. اوباقي دا خبره چې څنګه واجب دې نو د دې تفصیلي بحث به انشاء الله په هدایه کتاب الزکاة کښې راشي.الله مو ورته اورسوئ.

| فَإِنْ أَرَادَ حَجَّةَ الْإِسْلَامِ که سفیه د حج اسلام اراده اوکړله.لَمْ يُمْنَعْ مِنْهَا نو دده ځخه به نشی منع کولې. |
|---|

**تشريح**> نفس مسئله آسانه ده

**دليله**> ځکه چې حج په ده باندې دده د فعل نه بغیر په ایجاب د الله سره واجب شوې دې.

| وَلَا يُسَلِّمُ الْقَاضِي النَّفَقَةَ إِلَيْهِ خو قاضی به د حج خرچه ده ته نه ورکوی.وَيُسَلِّمُهَا إِلَى ثِقَةٍ مِنَ الْحَاجِّ يُنْفِقُهَا عَلَيْهِ فِي طَرِيقِ الْحَجِّ يو اعتمادی حاجی ته به ئې ورکوی.چه هغه ئې د حج په لاره کې په ده باندې خرچ کوی |
|---|

**تشريح**> نفس مسئله آسانه ده.

**دليله**> قاضي به دا کار د دې دپاره کوی چې سفیه دا نفقه بې ځایه خرچ نکړي.

| (فَإِنْ مَرِضَ که سفیه بیمار شو .وَأَوْصَى بِوَصَايَا فِي الْقُرَبِ وَأَبْوَابِ الْخَيْرِ او ده د قربت او د خیر په کارونو کې څه وصیتونه اوکړل.جَازَ ذٰلِكَ مِنْ ثُلُثِهِ فِي مَالِه)نو دا به دده د دریمې برخې (حصې) مال نه جائز وی. |
|---|

**تشريح**> نفس مسئله آسانه ده.

**دليله**> ځکه چې دده بهتری هم په دې کې ده. ځکه چې اوس د خپل مال نه دده د منقطع کیدو حالت دې.

## هلك كله بالغ كيږي؟

| بُلُوغُ الْغُلَامِ بِالْاحْتِلَامِ وَالْإِنْزَالِ وَالْإِحْبَالِ إِذَا وَطِئَ،د هلك بالغ كيدل احتلام، حامله كول، او انزال سره دی.كله چې دې وطی اوكړی.وَإِنْ لَمْ يُوجَدْ ذٰلِكَ كه په دې كې يوه خبره هم او نه موندې شی.فَحَتَّى يَتِمَّ لَهُ ثَمَانِي عَشْرَةَ سَنَةً،نو چې اتلس كاله پوره شی.عندابي حنيفة امام ابوحنيفه په نيز. |
|---|

**تشريح**> **علام البلوغ في الغلام**> د ماشوم هلك بلوغ په دريو امورو كي يو سره كيږی :

① احتلام يعنی خوب كي صحبت كول، او منی خارجيدل.
② احبال يعنی ښځې سره وطی اوكړی.او هغه حامله كړی.
③ انزال،په دې دريو واړو كي اصل انزال دی.خكه چې احتلام بغير د انزال نه معتبر نه دې.او ښځه هم د انزال نه بغير نه حامله كيږی.نو انزال اصل اوګرځيدلو.او احبال او احتلام ددې علامتونه شو.

وَبُلُوغُ الْجَارِيَةِ بِالْحَيْضِ وَالِاحْتِلَامِ وَالْحَبَلِ،او د انجلی بالغ كيدل حيض، احتلام، او په حمل كيدلو سره دې. فَإِنْ لَمْ يُوجَدْ ذَلِكَ كه يوه خبره هم اونه موندې شی. فَحَتَّى يَتِمَّ لَهَا سَبْعَ عَشْرَةَ سَنَةً)نو كله چې اوولس كاله پوره شي.( نو دوی به بالغ وی ). وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَاو دا هم د امام ابوحنيفه ؒ په نيز دی.

**تشريح> علام البلوغ في الجارية>** د ماشومې انجلی بلوغ هم په دريو امورو كي يو سره كيږی : ① حيض ② احتلام ③ حبل يعنی حامله كيدل.كه په دې كي يوه خبره هم اونه موندې شي.نو بيا به د عمر لحاظ كيږی.يعنی كله چې هلك د اتلسو كالو او انجلی د اوولسو كالو شي.نو د بالغ كيدلو حكم به لګولې شي.د هلک او د جينئ د بلوغ دا علامات داحكم د امام ابوحنيفه ؒ په نيز دې.

**دليله>** د امام ابوحنيفه ؒ دليل دا آيت دې. ؟﴿وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّى يَبْلُغَ أَشُدَّهُ﴾ په دې كي د اشد( پوخ عقل) نه مراد د حضرت ابن عباس ؓ د تفسير مطابق اتلس كاله نقل دې.امام ابوحنيفه ؒ هم دا اخستې دې. البته انجلی چونكه په عامه توګه (عام طور) باندې زر بالغيږی.په دې وجه ددې په حق كي يو كال كم كړې شوې دې.خكه چې په كال كي دننه څلور واړه موسمونه موجود دی.چه په دې كي به يو نه يو خامخا د مزاج ( او طبيعت) موافق وی.

وَقَالَ ابويوسف ومحمد:صاحبين ؒ فرمائی.إِذَا تَمَّ لِلْغُلَامِ وَالْجَارِيَةِ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً ([1])چې كله د هلك او انجلی لپاره پنځلس كاله پوره شي.نو دوی بالغ شو.

**تشريح>** د بلوغ علامت نه موجود كيدلو په صورت كي د صاحبينو، امام شافعی ، امام احمد او د اصحابو د امام مالك ؒ په نيز د هلك او د انجلی دواړو.د بلوغ موده پنځلس كاله ده.دا يو روايت د امام ابوحنيفه ؒ نه هم دې.او فتوی هم په دې ده.

**دلائلهما>** ①د كال په ذريعه پنځلس كاله موده د بلوغ په اره كي د صاحبينو او د امام شافعی ؒ دليل دا دې چې عام طور په دې عمر كنبې هلك او جينئ بالغان كيږی

② د حضرت ابن عمر ؓ نه روايت دې. (قال عرضت على النبي ﷺ يوم أحد و أنا ابن أربع عشرة فلم يقبلني ولم يرني بلغت وعرضت عليه يوم الخندق و أنا ابن خمس عشرة سنة فقبلني و رأني بلغت) حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما فرمائی چې زه دڅوارلسو كالو په عمر كنبې د غزوه احد په موقع نبی كريم ﷺ ته په جهاد كنبې د شركت دپاره پيش كړې شوم.نو زه ئې قبول نكړم اوزما په باره كنبې ئې د نه بالغ كيدو حكم اوكړو او د خندق په موقع چې زما عمر پنځلس كاله وو زه كله پيش كړې شوم نو زه ئې قبول كړم او زما دبلوغ حكم ئې اوكړو.

**الجواب عنه>** د دې حديث ځواب دا دې.چه په دې سره مدعا نه ثابتيږی.خكه چې د قتال د اجازت حكم د قتال په توان او قدرت باندې منحصر دې.او پنځلس كاله د كوم چې تاسو اجازت وركړې دې.

[1] القول الراجح هو قول الصاحبين ؒ كذا في الكفاية (٢٠١\٨) وملتقى الأبحر(٤٦١) ورد المحتار (١٠٧\٥) والهندية (٦١\٥) والدرالمنتقى (٦٠\٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٥٢\٢)

هغه په دې وجه وو.چه هغه دغه وخت د قتال لائق او طاقتور جوړ شوې وو.ددې نه مخکې نه وو. دا ( پنځلس کاله ددې لپاره نه ووچه مذکوره حکم د بلوغ او عدم بلوغ لپاره دې د حاکم روايت کې د سمره بن جندب رضي الله عنه الفاظ (ولوصارعته لصرعته قال: فصارعته فصرعته) هم په دې دلالت کوي.

**الفائدة** د زير ناف ( نامه د لاندې ) ايختو اعتبار شته اوکه نه؟ د امام احمد رحمه الله په نيز دا د بلوغ علامت دې.خو زموږ په نيز ددې هيڅ اعتبار نشته.البته په شرح طحاوي کې د امام ابويوسف رحمه الله نه د اصولو د روايت نه سوا ذکر دی.چه دوی ددې اعتبار کړې دې.پاتې شو د انجلۍ سينې راوتل. نو په ظاهرالرواية کې به په دې سره د بلوغ حکم نشي لګولې.

**د بلوغت په اړه کښې د هلك او د انجلۍ د قول حکم**

وَإِذَا رَاهَقَ الْغُلَامُ أَوِ الْجَارِيَةُ الْحُلُمَ کله چې هلك يا انجلۍ بلوغ ته نژدې شي.فَأَشْكَلَ أَمْرُهُمَا فِي الْبُلُوغِ او بالغ او نا بالغ کيدل مشکل شي.فَقَالَا او دواړه اووائي.قَدْ بَلَغْنَا، چې مونږ بالغان شو.فَالْقَوْلُ قَوْلُهُمَا نو د دوی قول به معتبر وي.وَأَحْكَامُهُمَا أَحْكَامُ الْبَالِغِينَ )او ددوی احکام به د بالغانو پشان وي.

**تشريح** راهق مراهقة، په معنی د ځوانۍ ته د نژدې کيدلو ، يقال رهقه(س) رهقاً، هغه دې ته نژدې شو. (و منه إذا صلى أحدكم إلى سترة فليرهقها و يقال صلى الصلاة مراهقاً) ده وخت ته نژدې لمونځ ادا کړو. (حلم بضم حاء بمعنى احتلام) د د دې قول مطلب دا دې.که هلك يا انجلۍ بلوغ ته نژدې اورسيږي.او د بلوغ په اړه کې ددوی حالت مشتبه شي. يعنې دا نه معلوميږي.چه واقعی دوی بالغ شوی دی.او که نه دی.او دوی د خپل بالغ کيدو دعوه اوکړي. نو ددوی قول به قبلولې شي.لکه که ښځه د حيض راتلو خبر ورکړي.نو ددې قول قبلولې شي.

**دليله** ځکه قاعده کليه ده.چه کوم امر صرف د ښځې د اړخه معلوميدې شي.هغې کې د ښځې ښکاره کول د آيت؟﴿وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّى يَبْلُغَ أَشُدَّهُ﴾ په حکم قبلولې شي.نو هم دغه دول بلوغ ته د نژدې هلك قول به هم قبلولې شي.ځکه بلوغ داسې خبره ده.چه ددې علم هم ددوی د اړخه کيداې شي.

**د قرض په وجه د حجر حکم**

(قَالَ أَبُو حَنِيفَةَ :امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي.لَا أَحْجُرُ فِي الدَّيْنِ عَلَى الْمُفْلِسِ چه زه به د قرض په وجه حجر نه کوم.وَإِذَا وَجَبَتْ دُيُونٌ عَلَى رَجُلٍ او کله چه په يوکس باندې ډيرې قرضې واجب شي.وَطَلَبَ غُرَمَاؤُهُ حَبْسَهُ وَالْحَجْرَ عَلَيْهِ او دده قرضخواه دده قيد کول يا محجور کول اوغواړي.لَمْ أَحْجُرْ عَلَيْهِ)نو زه به په ده باندې حجر نه کوم.لِأَنَّ فِي الْحَجْرِ إِهْدَارَ أَهْلِيَّتِهِ ځکه چه حجر کولو کښې دده اهليت ختمول دي.فَلَا يَجُوزُ لِدَفْعِ ضَرَرٍ خَاصٍّ نو د خاص ضرر دفع کولو دپاره به جائز نه وي.

**تشريح** حکم الحجر بسبب الدين په دې کښې کلمه د ،،في،، سببيه ده.لکه چه ونيلې شي.(يجب القطع في السرقة) امام صاحب رحمه الله فرمائي.چه په غريب قرضدار باندې حجر نشي کيدې.اګرچه قرضخواهان ددې مطالبه اوکړي.

**دليله>** ځکه چه په ده باندې حجر کول، ددې اهليت ختمول بالکليه ختمول دی.او دده سره د څناورو پشان د سلوك کولو پشان دی.په دې وجه د خاص ضرر يعنی د قرضخواهانو د قرض ضرر لرې کولو په خاطر به داسې نشی کولې.البته قاضی به دې قيد کوی.چه دې د قرض ادا کولو په سلسله کښې خپل مال خرڅ کړی.ځکه چه قرضدار باندې دين اداکول واجب دی.او ټال متول ظلم دې.نو د ظلم لرې کولو په لحاظ قاضی دې قيد کولې شی.

وَإِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ بيا که دده مال وی.لَمْ يَتَصَرَّفْ فِيهِ الْحَاكِمُ)نو حاکم به په دې کښې هيڅ تصرف نه کوی. (وَلَكِنْ يَحْبِسُهُ أَبَدًا)خو دې به برابر قيد ساتی.حَتَّى يَبِيعَهُ فِي دَيْنِهِ)تردې چه دې خپل مال پخپله قرضه کښې خرڅ کړی.

**تشريح> عدم تصرف الحاكم في مال المديون>** بيا که د مذکوره قرضدار څه مال وی.نو حاکم به هغې کښې هيڅ تصرف نه کوی.

**دلائله>** ① ځکه چه دا هم يوقسم حجر دې.او مديون د قرض د وجې نشی محجور کولې ② او په دې وجه هم چه دا د رضا مندئ نه بغير تجارت دې.نو په حکم د نص به باطل وی.لکه د الله تعالی ارشاد دې.يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ او تاسو خلق پخپل مينځ کښې خپل مالونه په باطله طريقه مه خورئ.مگر دا چه ستاسو په رضامندئ سره تجارت وی،، معلومه شوه.چه د رضامندئ نه بغير کوم اخستل خرڅول وی.هغه باطل دی.نو هرکله چه قاضی قرضدار باندې دده د رضامندئ نه بغير دده مال خرڅ کړو.نو په حکم د نص به باطل وی.البته قاضی دې دا قرضدار برابر قيد کښې اوساتی.تردې چه هغه پخپله خپله قرضه کښې دا مال خرڅ کړی.چه د قرضخواهانو حق ادا شی.او د قرضدار ظلم لرې شی.

**كم مدة يحبس المديون المفلس؟>** مذکوره غريب قرضدار څومره مودې پورې قيد کښې ساتل جائز دی؟

① په دې کښې مختلف اقوال دی.په بعضو کښې دوه مياشتې، ② په بعضو کښې درې، ③ او په بعضو رواياتو کښې د څلورو مياشتو نه شپږ مياشتو پورې قيد ساتل نقل دی.

**القول الصحيح>** خو صحيح دا ده.چه ددې هيڅ حد نشته.بلکه دا د قيدی په حال باندې مبنی ده.ځکه چه بعض خلق په معمولی تنبيه سره يرېږی.او بعض خلق داسې زړه ور وی.چه ډيرې مودې پورې جيل کښې د ساتلو باوجود صحيح خبره نه ښائی.په دې وجه به د حاکم په رائې باندې محمول وی.هغه چه څومره مودې پورې مناسب اوګڼړی.قيد کښې دې اوساتی.بيا قيدی د شرعی او غير شرعی هيڅ ضرورت دپاره بهر نه نشی راتلې.البته د بعضو فقهاؤ په نيز د مور پلار،نيکونو، او نياګانو، او د اولاد جنازې دپاره راوتلې شی.تردې چه فقهاؤ تصريح کړې ده.چه د رمضان مياشت، د اخترونو، جمعې، فرض مونځونو، فرض حج، او د هيڅ چا د جنازې مونځ دپاره هم بهر نه نشی راتلې.په دې شرط چه خپل څوك کفيل پيش کړی.فتوی هم په دې قول ده.

## د قرضدارې په سامان او دراهمو سره د قرض ادا کولو حکم

وَإِنْ كَانَ لَهُ دَرَاهِمُ که د قرضدار قرض دراهم وی.وَدَيْنُهُ دَرَاهِمُ أَوْعَلَى ضِدِّ ذٰلِكَ او قرض هم دراهم وی.يا ددې برعکس وی فَقَضَاهُ الْقَاضِي بِغَيْرِ أَمْرِهِ نو ادا دې کړی.قاضی دده د اجازت نه بغير،

**تشريح> اداء الدين من الدارهم>** که د قرضدار مال او دده قرض دراهم يا دنانير وی.نو قاضی دې د قرضدار د امر نه بغير د دراهمو او دنانير نه قرض ادا کړی.

**دليله>** څکه مسئله دا ده.که قرضخواه د خپل قرضدار هم ددې جنس مال باندې قابو ( او قدرت) اومومي. د کوم جنس چه قرضه ده.نو هغه د خپلې قرضې په اندازه د قرضدار د رضامندئ نه بغير هم اخستې شي.نو هغه ته د اخستلو حق د وړاندې نه حاصل دې.نو قاضي به صرف مددګار وی.لکه مثلاً که د غائب داسې مال موجود وی.چه هغه دده د اهل او عيال د واجب نفقې د جنس څنې دې.نو قاضي مدد کوی.او ددې مال نه نفقه ورکوی.

(وَإِنْ كَانَ دَيْنُهُ دَرَاهِمَ وَلَهُ دَنَانِيرُاو که قرض دراهم وی.او مال دنانير يا ددې په عکس وی. بَاعَهَا الْقَاضِي فِي دَيْنِهِ)نو قاضي دې دا خرڅ کړی.دده په دين کښې.

**تشريح> اداء الدين من الدنانير>** که د مديون مال دراهم وی.او قرض دنانير يا ددې عکس وی.نو دا دې خرڅ کړی.او قرض دې ادا کړی.اوکه دده مال سامان او جائيداد وی.نو دا به هم خرڅولې شي.

**دليله>** دنانير او دراهم دواړه ثمن دی نو لکه چې داوړه يو جنس دې د دې وجې د قرضخواه چې کوم جنس کښې حق دې نو داسې شوه چې هم هغه جنس د مقروض سره موجود دې او قاضي ته د دائن نه زيات اختيار حاصل دې نو د دې وجې دينار د درهم په قرض کښې او دغه شان درهم د دينار په قرض کښې خرڅولې شي

(وَقَالَ ابويوسف ومحمد: صاحبين ﷫ فرمائی.إِذَا طَلَبَ غُرَمَاءُ الْمُفْلِسِ الْحَجْرَ عَلَيْهِچه کله : غريب ( قرضدار) قرضخواه په ده باندې حجر طلب کړی. حَجَرَالْقَاضِي عَلَيْهِ،نو قاضي به په ده باندې حجر کوی.

**تشريح> مذهب الصاحبين>** صاحبين او آئمه ثلاثه ﷭ فرمائی.که قرضخواهان په غريب قرضدار باندې د حجر قائمولو درخواست اوکړی.نو په ده باندې حجر کولې شي.نو قاضي به دې دخرڅولو،اودهرقسمه تصرف او اقرار کولو نه منع کوی.چه د قرضخواهانو نقصان اونشي.

وَمَنَعَهُ مِنَ الْبَيْعِ وَالتَّصَرُّفِ وَالْإِقْرَارِحَتَّى لَا يُضِرَّ بِالْغُرَمَاءِ)()او دې به د بيع او تصرف او اقرار نه منع کوی.چه قرضخواهانو ته ضرر او نه رسيږی.

**تشريح> منع السفيه من التصرفات>** بيا د صاحبينو ﷫ د قول ( و منعه من البيع) مطلب دا دې.چه د ثمن مثل نه د کم په عوض خرڅولو نه به نې منع کوی.که هغه نې د ثمن مثل په عوض خرڅ کړی.نو ددې نه به نې نه منع کوی.څکه چه په دې سره د قرضخواهانو حق نه فوت کيږی.

**المفتي به>** په اختيار، درمختار، تنوير، تصحيح قدوری،بزازيه، جوهره، قاضي خان، ملتقى، او طائی شرح کنز وغيره کښې دی.چه په نفس حجر کښې او د قرضدار په اسباب او جائيداد خرڅولو کښې فتوی د صاحبينو ﷫ په قول باندې ده.

**د غريب قرضدار د مال خرڅولو حکم**

(وَبَاعَ مَالَهُ إِنِ امْتَنَعَ الْمُفْلِسُ مِنْ بَيْعِهِاو قاضي دې خرڅ کړی.دده مال که غريب ددې د بيع نه منع کيږی. وَقَسَمَهُ بَيْنَ غُرَمَائِهِ بِالْحِصَصِ او دده د قرضخواهانو په مينځ کښې دې د حصو موافق تقسيم کړی.

---

[1] ) القول الراجح هو قول الصاحبين ﷫ كذا في الخانية (٤\٥٠٣) والهندية (٥ \٥٤) والمبسوط (٢١\٤١٧) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٥٣)_

**تشريح﴿ بيع مال المفلس﴾** که مفلس د خپل مال خرڅولو نه منع شی.نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز به قاضی دا خرڅ کړی.او ثمن دې د قرضخواهانو د حصو مناسب تقسيم کړی.
**دليله﴾** ځکه چه د قرض خلاصولو دپاره مال خرڅول قرضدار باندې واجب دی.تردې چه هغه ددې په وجه قيد کولې شی.نو دده په منع کيدو باندې قاضی دده قائم مقام شو.لکه مجبوب( مقطوع الذکر) او عنين ( هجرا) که ښځې ته د طلاق ورکولو نه منع شی.نو قاضی دده قائم مقام جوړيږی.او طلاق ورکوی.

**د حجر په حالت کښې د قرضدارئ د اقرار حکم**

(فَإِنْ أَقَرَّفِي حَالِ الْحَجْرِبِإِقْرَارِمَالٍ که قرضدار په حالت د حجر کښې څه اقرار اوکړو.لَزِمَهُ ذٰلِكَ بَعْدَ قَضَاءِالدُّيُونِ )،نو دا به په ده لازم وی.د قرضونو د ادا کولو نه پس.

**تشريح﴾ اقرارالمفلس بمال﴾** بيا که مذکوره قرضدار د حجر په حالت کښې څه اقرار اوکړو.نو دا اقرار به بالفعل لازم نه وی.بلکه د قرضونو ادا کولو نه پس به لازم وی.
**دليله﴾** ځکه چه دې موجوده مال سره مخکښې د قرضخواهانو حق متعلق شوې دې.نو هغه ددوی نه د علاوه دپاره اقرار کولو سره ددوی حق نشی باطلولې.

**د غريب محجور قرضدار د کور د خلقو د نفقې حکم**

(وَيُنْفَقُ عَلَى الْمُفْلِسِ مِنْ مَالِهِاو خرچ کولې به شی غريب باندې دده د مال نه، وَعَلٰى زَوْجَتِهِ وَاَوْلَادِهِ الصِّغَارِوَذَوِي الْأَرْحَامِاو دده په ښځه، په وړو ماشومانو، او دده په ذوی الارحامو باندې،

**تشريح﴾ النفقة علي المفلس وعياله﴾** د مفلس ( غريب) نه مراد هم دا محجور قرضدار دې.يعنی ددې مفلس، او دده د ښځې او دده د وړو بچو او د ذوی الارحامو نفقه به هم دده د مال نه ورکولې شی.
**دليله﴾** ځکه چه دده اصلی ضرورت د قرضخواهانو په حق باندې مقدم دې.او په دې وجه هم چه د نفقې حق د نورو دپاره ثابت دې.نو حجر دا نشی باطلولې.او په دې وجه چه دده حالت اصليه د قرضخواهانو په حق باندې مقدم دې.که ده د يوې ښځې سره نکاح اوکړله.نو هغه
به د خپل مهرمثل مقداره پورې قرضخواهانو سره يوشان شريکه وی.

وَإِنْ لَمْ يُعْرَفْ لِلْمُفْلِسِ مَالٌ بيا که د غريب هيڅ مال نه معلوميدو.وَطَلَبَ غُرَمَاؤُهُاو قرضخواه دده قيد کول طلب کړی.حَبْسَهُ وَهُوَيَقُوْلُ لَامَالَ لِي حَبَسَهُ الْحَاكِمُاو هغه هم دا وائی.چه زما سره مال نشته.نو حاکم به دې قيد کوی. فِي كُلِّ دَيْنٍ لَزِمَهُپه هر داسې ورخ کښې چه دهغې پرې لازم وی بَدَلًاعَنْ مَالٍ حَصَلَ فِيْ يَدِهٖ چې بدل وی د داسې مال چې هغه راغلې وی دده لاس ته كَثَمَنِ الْمَبِيْعِ لکه د مبيع پيسې وَبَدَلِ الْقَرْضِاو د قرض بدل وَفِيْ كُلِّ دَيْنٍاو په هر هغه قرض کښې اِلْتَزَمَهُ بِعَقْدٍ چې ده لازم کړی وی په عقد سره كَالْمَهْرِوَالْكَفَالَةِ لکه مهر او کفالت

**تشريح﴾ طلب الغرماء الحال﴾** که د مفلس هيڅ مال ښکاره نشو.او قرضخواه خلق دده د قيد کولو درخواست اوکړی.حالانکه قرضدار هم دا وائی.چه زما سره هيڅ مال نشته.نو حاکم به دې په هر داسې قرضه کښې قيد کوی.نو قاضی دې په دوه قسمه قرضو کښې قيد کولې شی
**الدين الذي وجب بالقبض﴾** يوه داسې قرضه چې هغه د چا د مال د قبض کولو په وجه په ده باندې لازم شوې وی لکه چې يو څيز يې خرڅ کړې وی او د هغې قيمت ئې نه وی ورکړې او يا يې د چا نه قرض

اخستي وی او د هغې بدل یعنی قرض یې نه وی ادا کړي نو په دې قسم کښې کې قرضخواه دې قید کول غواړي نو حاکم به دې قید کوی

**دليله** ځکه چې د مفلس په لاس کښې دغه مبيع راغلې ده نو دا د دې خبرې دليل دې چې د ده په لاس کښې مال شته که نور مال نه وی نو کم نه کم مبيع خو ده نو هغه به خرڅه کړی او قرض به يې ادا کړی او يا به يې په قيد کښې اوساتی

**الدين الذي وجب بالعقد** او که داسې قرض وو کوم چې د عقد په وجه په ده باندې لازم شوې وو لکه د مهر قرض نو د مهر په بدله کښې بضع د ده لاس ته راځی کومه من وجه مال کښې شمارلې شی

**دليله** چې واده کوی نو دا د دې خبرې دليل دې چې ده سره مال شته که مال ورسره نه وو نو د مهر اقرار به نې ولې کولو نو ځکه به قيد کولې شی دغه شان که د چا کفيل او مه وار جوړ شی که هغه پيسې درنړی نو زه به نې درکړم نو د دې عقد کفاله په وجه دهه په ذمه باندې قرض راغلې دې او مفلس وائی چې ما سره مال نشته نو په دې صورت کښې به هم حاکم دې قيد کوی ځکه چې داسې عقد کول چې د هغې په وجه په ده باندې قرض لاميږی د دې خبرې دليل دې چې ده سره مال شته

| |
|---|
| **وَلَمْ يَحْبِسْهُ فِيْمَا سِوٰى ذٰلِكَ** او ددې نه په علاوه کښې به نې نه قيد کوی **كَعِوَضِ الْمَغْصُوْبِ وَاَرْشِ الْجِنَايَاتِ** لکه په عوض د مغصوب کښې اود جناياتو په بدله کښې. **اِلَّا اَنْ تَقُوْمَ الْبَيِّنَةُ بِاَنَّ لَهُ مَالاً** البته که ګواهان قائم کړی په دې خبره چه ده سره مال شته. **وَيَحْبِسُهُ الْحَاكِمُ شَهْرَيْنِ** حاکم به دې دوه مياشتې قيد کړی او **ثَلَاثَةَ اَشْهُرٍ** او يا به يې درې مياشتې قيد کړی **سَأَلَ عَنْ حَالِهٖ** او تپوس به اوکړی دده د حالت **فَاِنْ لَمْ يَنْكَشِفْ لَهُ مَالٌ** که چرته دده مال ښکاره نشو **خَلّٰى سَبِيْلَهٗ** نو دده لار به خوشې کړی (يعنی ازاد به يې کړی) |

**تشريح** **حبس المفلس الي شهرين** ذکرشوې مفلس به حاکم دوه مياشتې يا درې مياشتې قيد کړی او دده د مال په باره کښې به لټون کوی که چرته دده دمال چرته درک اونه لګيدلو نو حاکم به دا مفلس ازاد کړی

**دليله** دليل دا دې چې د ده قيد کول د سزا دپاره نه وو بلکه ددې دپاره وو چې د ده دمال تحقيق اوکړې شی اوهرکله چه مال معلوم نشو نو د نور قيد کولو څه فائده نشته ځکه به يې د قيد نه ازاد کړی

| |
|---|
| **وَكَذٰلِكَ اِذَا اَقَامَ الْبَيِّنَةَ** او دغه شان حکم دې (يعنی قيد کولې به نشی) کله چې ګواهان قائم کړی **عَلٰى اَنَّهٗ لَا مَالَ لَهٗ** په دې باندې چې د ده مال نشته |

**تشريح** **حکم اقامة البينة علي عدم المال** په ذکرشوی صورت کښې که مفلس د دوو مياشتو نه وړاندې په دې خبره ګواهان قائم کړل چې دده مال نشته نو په دې صورت کښې به هم دې ازادولې شی او دوو مياشتو نه به دده قيد نشی رسولې

**دليله** ځکه چې قيد دده د مال په باره کښې تحقيق کولو دپاره وو او هغه حالت د ګواهانو په ګواهئ ورکولو باندې معلوم شو

**د قيد نه د وتلو نه پس د قرضخواهانو معامله او د هغې حکم**

| |
|---|
| ( **وَلَا يَحُوْلُ بَيْنَهٗ وَبَيْنَ غُرَمَائِهٖ بَعْدَ خُرُوْجِهٖ مِنَ الْحَبْسِ** او نه به حائل کيږی قاضی د قرضدار او قرضخواهانو په مينځ کښې. دده د قيد خانې نه د وتلو نه پس. **وَلَا يُلَازِمُوْنَهٗ وَلَا يَمْنَعُوْنَهٗ مِنَ التَّصَرُّفِ وَالسَّفَرِ** |

)بلكه هغوى دې په ده پسې اولګى.خو د تصرف او سفر نه دې نه منع كوى.

**تشريح> عدم الحائل بين مفلس وغرمائه بعد الخروج من الحبس>** دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز كله چه مفلس ته د قيدخانې نه آزادى ملاؤ شى.نوحاكم به دده او د قرضخوانانو په مينځ كښې نه حائل كيږى.البته قرضخواه خلق به په ده پسې هر وخت لګيدلې وى.

**دلائله>** ① ځكه چه دار قطنى په سنن كښې او ابن عدى په الكامل كښې د نبى كريم ﷺ ارشاد روايت كړې دې. (أن لصاحب الحق أليد و اللسان) [1] ② په صحيحينو كښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې.(قال: أن النبى ﷺ رجل يتقاضاه فأغلظ له فهم به أصحابه فقال: دعوه فإن لصاحب الحق مقالا)

**الاستدلال>** په رومبى حديث كښې د ،،يد،،او ،،لسان،، نه مراد په لاس سره وهل نه دى.بلكه ورپسې لګيدل، او تقاضه كول مراد دى.د قدورى په بعضو نسخو كښې ،،ولا يلازمه،، د لاتې نافيه سره دې.دا غلط دې.

(وَيَأْخُذُونَ فَضْلَ كَسْبِهِ او دده زياتى مزدورى دې اخلى.فَيُقَسَّمُ بَيْنَهُمْ بِالْحِصَصِ ) ([2]او پخپل مينځ كښې دې دحصو مطابق تقسيموى.

**تشريح> اخذفضل الكسب وتقسيمه بينهم>** صاحب د قدورى رحمه الله فرمائى چې د مفلس په ګټه كښې كوم مال د هغه د بال بچ د خرچ نه زياتى كيږى قرضخواهان به هغوى د مفلس نه اخلى او په خپل مينځ كښې به ئې په حصو سره تقسيموى او د تقسيم طريقه وړاندې په دې متن كښې تيره شوې ده چې « وقسمه بين غرمائه بالحصص»

**دليله>** په خپل مينځ كښې به يې برابر ځكه تقسيموى چې په حصو كښې برابر دى د يوپه بل باندې فوقيت اوفضيلت نشته

(وَقَالَ اَبُويُوسُف وَمُحَمَّدرَحِمَهُمَا اللهُ: صاحبين رحمهما الله فرمائى.إِذَافَلَّسَهُ الْحَاكِمُ چه كله حاكم ده لره مفلس اوګرځولو.حَالَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غُرَمَاءِه نو حائل دې شى.دده او دده د قرضخواهانو په مينځ كښې.إِلَّاأَنْ يُقِيمُواالْبَيِّنَةَأَنَّهُ قَدْحَصَلَ مَالٌ مګر دا چه هغه بينه قائم كړى.چه دده په ملكيت كښې هيڅ مال نشته.

**تشريح> مذهب الصاحبين>** صاحبين رحمهما الله فرمائى. چه كله حاكم ده لره مفلس اوګرځولو.نو اوس دې هغه دده او د قرضخواهانو په مينځ كښې حائل شى.او هروخت دې تقاضه كولو ته نه پريږدى.البته كه قرضخواه په دې خبره بينه قائم كړى.چه دده په ملك كښې څه مال شته.

**دليله>** وجه دا ده.چه د قاضى د چا په حق كښې د افلاس فيصله كول، د صاحبينو رحمهما الله په نيز صحيح دى.نو د مفلس غريبى او فقيرى ثابته شوه.او هغه مالدارئ پورې د مهلت وركولو مستحق شو.ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دى.

## فاسق باندې د حجر كولو حكم

(وَلَا يُحْجَرُ عَلَى الْفَاسِقِ او حجر به نشى كولې.په فاسق باندې، إِذَاكَانَ مُصْلِحًا لِمَالِهِ كله چه هغه

---

[1] ) من مكحول رحمه الله أخرجه الدراقطنى فى سننه (٤\٢٣٢)ـ

[2] ) القول الراجح هو(؟) قول أبى حنيفة رحمه الله كما ظهر من داب المنصف رحمه الله :ما وجدت ها الإختلاف بعد تتبع سوا البحر والزيلعى ولكن لم يرجحا أحد القولين كذا قاله المفتى غلام قادر مدظله العالى انظرالقول الراجح (٢\٢ ٥٣)ـ

مصلح د مال وی. وَالْفِسْقُ الْأَصْلِيُّ وَالطَّارِءُ سَوَاءٌ)او فسق اصلی او طاری ( روسته پیدا شوي دواړه ) برابر دی.

**تشريح﴿ عدم الحجر على الفاسق﴾** فاسق باندې حجر نشی کولې.کله چه هغه د مال په معامله کښې ټیک کار کونکې وی.که د هغه فسق اصلی وی.چه هم په دې حالت کښې بالغ شوې وی.او که طاری (یعنی روسته پیدا شوې ) وی.چه د بلوغ نه پس فاسق شوې وی.[1]

**دليله﴾** دليل د الله تعالى ارشاد دې: ،، ﴿فَإِنْ آنَسْتُمْ مِنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوا إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ﴾ الْآيَةَ. که ته په دوی کښې هوښيار توب اوګورې.نو دوی ته ددوی مال ورکړه.، [النساء:۶]

وجه د استدلال دا ده.چه په دې کښې لفظ د ،،رشد،، نکره واقع شوې ده.چه ددې نه مراد بالاجماع اصلاح فی المال دې.اصلاح فی الدين مراد نه دې.د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه هم دا نقل دی.په شرح طحاوی کښې دی.چه امام مالك، امام احمد، او اکثر عالمان رحمهم الله هم ددې قائل د ی.نو د ،، رشد،، نه مراد صلاح فی الدين نشی کيدې.چه نکره مطلقه عامه نشی.څکه چه نکره په موضع د اثبات کښې خاص وی.عام نه وی.

**غريب قرضدار سره د قرضخواه د عين سامان موجود کيدوحکم**

(وَمَنْ أَفْلَسَ څوك چه مفلس شو.وَعِنْدَهُ مَتَاعٌ لِرَجُلٍ بِعَيْنِهِ ابْتَاعَهُ مِنْهُ او هغه سره د يوکس سامان بعينه موجود دې.کوم چه ده دهغه نه اخستې وو.فَصَاحِبُ الْمَتَاعِ أُسْوَةٌ لِلْغُرَمَاءِ فِيهِ)نو د سامان مالك په دې (سامان) کښې د نورو قرضخواهانو برابر دې.

**تشريح﴿ استواء حق صاحب المتاع وبقية الغرماء﴾** يو سړې مفلس اوګرځولې شو.او دده سره د يو کس څه څيز بعينه موجود دې.کوم چه ده دهغه نه اخستې وو.نو زمونږ په نيز به دغه سړې د نورو قرضخواهانو سره برابر شريك وی.په دې شرط چه افلاس د قبضې نه پس وی.امام زهری،عمربن عبدالعزيز، قاضی شريح، ابن جنيد، ابراهيم نخعی،او ابن شبرمه رحمهم الله هم ددې قائل دی.او محمد بن سيرين رحمه الله به هم ددې فتوه ورکوله. ([2])

**دليله﴾** دليل دا دې.چه افلاس ددې امر موجب دې.چه هغه د عين سپارلو نه عاجز وی.حالانکه دلته کښې هيڅ مال عين د عقد په ذريعه نه دې واجب شوې.نو د افلاس په لحاظ سره به بائع ته د فسخ حق نه وی.او د عقد په وجه صرف د داسې څيز استحقاق دې.چه هغه د مشتری په ذمه وصف دې.يعنی قرضه، او هغه نقد ثمن دې.او کله چه بائع په مال عين باندې قبضه اوکړله.نو د بائع او مشتری په مينځ کښې به حکمی مبادله متحقق شی.او حقيقی معنی نه ده.نو ددې اعتبار ضروری دی.سوا دهغه موقع نه، چرته چه دا مبادله محال ( ناممکن) وی.لکه څنګه چه عقد سلم کښې کيږی.څکه چه هلته کښې استبدال ممتنع دې.(لقوله ﷺ : لا تأخذ إلا سلمك أو رأس مالك)نو مال عين ته د دين حکم ورکړې

---

[1] ) مذهب الشافعي رحمه الله:- د امام شافعی رحمه الله په نيز د سفيه پشان به په فاسق هم د زجر او سزا په طور حجر کولې شی.په دې وجه ددوی په نيز فاسق لائق د ولايت او شهادت نه دې.

[2] ) مذهب الشافعي رحمه الله:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه دغه سړې د خپل څيز حقدار دې.نو د بائع په درخواست به قاضی دا مشتری محجور کوی.اوس بائع عقد فسخ کولې شی.او خپل څيز واپس اخستلې شی.امام مالك، امام احمد، اوزاعی،اسحاق، ابوثور، او ابن المنذر رحمهم الله هم ددې قائل دی.

شو. (تحرير عن الإستهدال).
د دليل خلاصه دا ده.چه كوم امر د عقد په ذريعه مستحق دي.هغه داسې وصف دې.چه ثابت فی الذمه دې.او د قرض ادا كول واجب دی.چه دا د وصف په ذريعه سره نشی كيدې.په دې وجه شارع عين څيز ددې بدل اوګرځولو.نو هركله چه ده په بدله كښې عين څيز باندې قبضه اوكړله.نو په دوی دواړو كښې مبادله متحقق شوه.مطلب دا چه دوی كښې هر يو كس دپاره د بل په ذمه يو وصف ثابت شو.او د دين ادا كولو په سلسله كښې ثبوت د مبادلې حقيقت دې.نو ددې اعتبار به ضروري وی.

# كِتَابُ الإِقْرَارِ

**ترجمه**﴿ (دا) كتاب د اقرار (په بيان كښې) دې.

**تشريح﴿المناسبة بين الكتابين**﴿ د مدعی دعوی كله مدعی عليه طرف ته متوجه شي.نو مدعی عليه كه ددې اقرار كوی.نوخبره خلاصه شوه اوكه انكار كوی. نودا به د جګړې سبب جوړيږی.او خصومت د صلح مستدعی (او مقتضی) وی.نوځكه نې په دې پسې د صلح حكم بيان كړې دې
بيا د اقرار مقدم كولو وجه داده.چه اقرار قريب تر حق دې.ځكه چه د مدعی پخپله دعوه كښې،او د مقر پخپل اقرار كښې رشتونې كيدل غالب دی.ځكه چه عقل مند سړې پخپل خان باندې د دروغو اقرار نه كوی. چه ددې په وجه دده يا دده د مال نقصان اوشی.نو فی نفسه د رشتياؤ طرف راجح شو.او د اقرار حق قريب تر د مسلمان حال سره ځكه دې.چه د دعوې نه بغير د اقرار احكام بيانوی.

**حجية الإقرار**﴿ ① اقرار يوشرعی حجت دې ددې حجيت د كتاب الله، نه هم ثابت دې. د الله تعالی ارشاد دې. ﴿وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ﴾ پكار ده.چه اوښاني (اقرار اوكړی) هغه سړې په چا چه حق (قرض) دې.كه اقرار حجت نه وې.نو ددې حكم به هيڅ مطلب نه وو. ②اود صحيح احاديثو نه هم ثابت دې. نبی كريم ﷺ حضرت ماعز رضی الله عنه باندې ددوی د زنا اقرار په وجه د رجم حكم اوفرمائيلو. ③ سد امت محمديه په دې خبره باندې اجماع ده.چه په اقرار د مقر سره حدود او قصاص ثابتيږی.نو مال به په درجه اولی ثابتيږی.

**د اقرار شرعي حيثيت**

| (وَإِذَا أَقَرَّ الْحُرُّ الْبَالِغُ الْعَاقِلُ بِحَقٍّ كله چه اقرار اوكړی.آزاد، عاقل، بالغ د يو حق، لَزِمَهُ إِقْرَارُهُ نو دا اقرار به په ده باندې لازم وی. مَجْهُولًا كَانَ مَا أَقَرَّ بِهِ د كوم څيز اقرار نې چه كړې دې.كه دا مجهول وی.أَوْ مَعْلُومًا) اوكه معلوم وی. |
|---|

**تشريح﴿ لزوم الحق بالاقرار**﴿ كله چه څوك آزاد، عاقل، بالغ سړې په بيدارئ كښې خوشحالئ سره، يا عبد ماذون ،يا صبی ماذون، يا څوك ناپوهه د يو حق اقرار اوكړی.نو دده اقرار صحيح دې.اګرچه د مجهول حق اقرار اوكړی.

**دليله**﴿ ځكه چه اقرار دپاره د مقر به مجهول كيدل مضر نه دی.

**شرط الحرية**﴿ د مقر د آزاد كيدلو شرط ځكه دې.چه دده اقرار مطلقاً صحيح وی.يعنی مال وغيره ټولو ته شامل وی.ځكه چه عبد ماذون د اقرار په باره كښې،اګرچه ملحق بالاحرار دې.د عبد محجور مالی اقرار صحيح نه دې.البته د حدودو اوقصاص اقرار نې صحيح دې.وجه داده.كه د عبد محجور مالی اقرار صحيح وی.نو دده په سټ به لازم وی.حالانكه دده سټ د مالك مال دې.په خلاف د عبد ماذون، چه هغه په مال باندې پخپله د مالك د طرفه مسلط دې.او په خلاف د حدودو او قصاص چه

دې کښې عبد محجور اصلی ازادئ باندې باقی دې.ترديې چه په دې کښې د مولا پخپل غلام باندې اقرار کول صحيح نه دی.ځکه چه سزا د نقصان په بنياد باندې کيږی.او جنايت ( جرم او نقصان) دده په مکلف کيدلو باندې مبنی دې.او مکلف کيدل د آدميت ( د سړی) د خواصو څنې دې.او آدميت غلامئ سره زائل کيږی.

**شرط البلوغ والعقل**> د مقر عاقل، بالغ کيدل ځکه ضروری دی.چه ماشوم او ليونې پخپل خپل ځان باندې د څه څيز لازمولو لياقت ( او قابليت) نه لری.البته که ماشوم ماذون فی التجارت وی.نو هغه د تجارت په وجه بالغانو سره ملحق ( او پيوست) دې.

**عدم ضرر جهالة المقربه**> اقرار سره متعلق جهالت د دريو حالو نه خالی نه دې.يا به مقر مجهول وی.يا مقر له، او يا مقر به.نود مقربه جهالت د اقرار په صحت کښې هيڅ مضر نه دې.ځکه چه کله کله سړی باندې حق مجهول هم لازميږی.مثلاً د يوکس مال ئې هلاك کړو.چه دهغې قيمت معلوم نه دې.يا ئې څوك زخمی کړو.او ددغه زخم جرمانه معلومه نه ده.يا په يوکس باندې د معاملاتو په حساب کښې څه باقی دی.چه هغه ده ته معلوم نه دی.نو لکه څنګه چه دلته حق مجهول لازم دې.دغه شان اقرار کښې هم حق مجهول جائز دې.او که مقرله مجهول وی.نودا د اقرار صحت دپاره مانع دې.ځکه چه مجهول او نامعلوم سړې مستحق کيدې نشی.

شيخ الاسلام مبسوط کښې، او امام ناطفی په واقعات کښې ذکرکړی دی.چه ددې مانع کيدل هغه وخت دی.کله چه جهالت فاحشه وی.(بأن قال هذا العبد لواحد من الناس) که جهالت فاحشه نه وی.نو مانع نه دې.(بأن قال هذا العبد لأحد هذين الرجلين)

شمس الائمه سرخسی رحمه الله فرمائی.چه اقرار به په دې صورت کښې هم صحيح نه وی.ځکه د اقرار فائده هم دا وه.چه مقر په بيان باندې مجبوره کړې شی.او مجبوره کول د حق والا په وجه کولې شی.او هغه مجهول دې.خو په کافی کښې ئې هم دې ته اصح ونيلې دی.چه په مذکوره صورت کښې به اقرار صحيح وی.پاتې شو د مقر مجهول کيدل، (بأن يقول لك على أحد ألف درهم) ځکه چه په دې صورت کښې مقضی عليه مجهول ده.

## د مجهول څيز اقرار کولو حکم

| (وَيُقَالُ لَهُ:او ده ته به ونيلې شی.بَيِّنْ الْمَجْهُولَ)چه مجهول بيان کړه. |
|---|

**تشريح**> **بيان الجهالة**> که مقر د يو مجهول څيز اقرار اوکړی.نو صحيح به وی.او هغه ته به ونيلې شی.چه دا مجهول بيان کړه.

**دليله**> ځکه چه د جهالت اجمال هم دده د طرفه واقع شوې دې.نو بيان به هم دده په ذمه وی.لکه مثلاً يو کس د خپلو دوه غلامانو په نسبت اوواٸی.چه په دوی کښې يو آزاد دې.نو هم ددې يو تعين دده په ذمه دې.

| (فَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ:که هغه ئې بيان نکړی.أَجْبَرَهُ الْقَاضِي عَلَى الْبَيَانِ)نو قاضی به دې په بيانولو باندې مجبوره وی. |
|---|

**اجبار المقر على البيان**> اوس که هغه د بيانولو نه منع کيږی.نو قاضی به هغه په بيانولو باندې مجبوره کوی.

**دليله**> ځکه چه دده په صحيح اقرار سره چه کوم څيز په ده باندې لازم شوې دې.ددې ذمه دارئ نه بهر کيدل هم په ده باندې لازم دی.او ددې صورت هم دا دې.چه دا بيان کړی.دا مسئله اجماعی ده.

(فَإِنْ قَالَ:نوکه ده اووئيل.لِغُلَامٍ عَلَيَّ شَيْءٌ لَزِمَهُ‌چه ما باندې د فلانی څه څيز لازم دي.أَنْ يُبَيِّنَ مَالَهُ قِيمَةٌنو ده له به داسې څيز بيانول لازم وی.چه د هغې څه قيمت وی

**تشريح> اقرار شئ الذي له قيمة>** په ، ، «لغلام على شئ» وئيلو کښې به بيان په داسې څيز سره ضروری وی.کوم چه قيمتی وی.اګرچه کمتر وی.

**دليله>** خکه چه لفظ د ، ، على ، ، ايجاب او الزام دپاره وی.

**حكم ما لا قيمة له>** اود کوم څيز چه څه قيمت نه وی.هغه د سړی په ذمه نه واجبيږی.نو که ده دا بيان کړل.چه د غنمو يوه دانه ده.نو صحيح به نه وی.خکه چه دا خو د اقرار نه رجوع کول دی.محيط کښې دی.که مقر دا اووائی. چه ما په حق سره د حق اسلام اراده کړې ده.نو دده تصديق به نشی کولې.( کله نې چه مفصولاً وئيلې وی.که موصولا نې وئيلې وی.نو تصديق به کولې شی.د آئمه ثلاثه په نيز به دواړو صورتونو کښې تصديق نشی کولې).او که مړ ، يا خنزير ، يا شراب نې مراد واخستل.نود ماوراء النهر د مشائخو په نيز به تصديق نه کيږی.خکه چه ددې څيزونو هيڅ قيمت نشته.په يوه وجه کښې امام مالك او امام شافعي رحمهما الله هم ددې قائل دی.اود عراق د مشائخو په نيز به تصديق کولې شی.

اوکه دا نې اووئيل.چه يوه پيسه مراد ده.نو تصديق به کولې شی.

وَالْقَوْلُ فِيهِ قَوْلُهُ مَعَ يَمِينِهِ اوقول به قول د مقر معتبر وی سره د قسم نه إِنِ ادَّعَى الْمُقَرُّ لَهُ که دعوی اوکړی مقرله أَكْثَرَ مِنْهُ)زيات د هغې نه «د کومو چې مقر اقرار کړی وی»

**تشريح> آلاعتبار لقول المقر>** کله چې مقر د چا دپاره د دوه زره روپو اقرار اوکړی او مقر له د د درې زرو روپو دعوی دارکوی نوپه دې صورت کښې به د مقر قول معتبر وی البته قسم به هم خوری چه د فلانی په ما باندې دومره څيز دې د دې نه زيات نه دې

**دليله>** قول به د مقرخکه معتبروی چې دې د زيادت نه منکردې اوقاعده دا ده چې منکر قسم اوخوری نو د هغه قول به معتبر وی

(وَاذاقَالَ:که وې وئيل.له عَلَيَّ مَالٌ چه د هغه په ما باندې مال دې.فَالْمَرْجِعُ فِي بَيَانِهِ اليه نو ددې په بيان کښې به هغه طرف ته رجوع کولې شی.وَيُقْبَلُ قَوْلُهُ فِي الْقَلِيلِ وَالْكَثِيرِ)او په کم او زيات کښې به دده قول قبلولې شی.

**تشريح> الاقرار بالمال>** کله چې يو کس د بل کس دپاره د مال اقرار اوکړی نو د ده په بيان کښې به رجوع هم ده ته کيږی.او دده قول به په قليل او کثير دواړو کښې قبليږی

**دليله>** خکه چه دا که کم وی.اوکه زيات وی.بهرحال مال دې.خکه چه مال هم هغه ته وائی.چه دې سره انسان مالداری حاصله کړی.

**الاقوال في القليل والكثير>** بيا شيخ الاسلام خواهرزاده پخپل مبسوط کښې ذکر کړی دی.چه په مقتضاء دقياس،يو درهم نه کم بيان هم قبلول پکار دی.خکه چه دا هم مال دې.خو استحساناً به تصديق نشی کولې.خکه چه عرف کښې دې ته مال نه وائی.اسبيجابی په شرح کافی کښې د«ولو قال له على مال كان القول قوله فيه و درهم مال» ذکرکولو نه پس ليکلی دی.چه ددې نه دا وهم کيږی.چه د يو درهم نه په کم کښې به دده قول نه قبليږی.او بعضو وئيلی دی.چه قبلول پکار دی.خکه چه دمال اطلاق په نصف او سدس درهم باندې هم کيږی.خو صحيح داده.چه قبول نکړې شی.خکه چه کوم مال تحت الالزام

داخليږي.هغه په حکم د عادت يو درهم نه کم نه وي.شيخ ناطفي په اجناس کښې د نوادر هشام نه، د امام محمد رحمه الله د قول(لوقال لفلان علي مال له أن يقر بدرهم) نقل کولو نه پس د شيخ هاروني قول ذکر کړې دې.چه د امام ابوحنيفه او امام زفر رحمهما الله په قول کښې د لس کره دراهمو نه کم کښې به تصديق نه کيږي.او امام ابويوسف رحمه الله فرمائي.چه په درې دراهمو کښې به تصديق کيږي.ددې نه په کم کښې به نه کيږي.

(فَإِنْ قَالَ:له علي اوکه وې ونيل.چې د هغه په ما باندې مَالٌ عَظِيمٌ مال عظيم دې.لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ)نود دوه سوه درهمو نه به په کم کښې تصديق نشي کولې.

**تشريح> الاقرار بالمال العظيم>** د مال عظيم په اقرار کښې به د زکاة د نصاب يعنی د دوه سوه درهمو نه په کم کښې به تصديق نه کيږي.

**دليله>** ده مال د عظيم په صفت سره موصوف کړې دې.نودا وصف نشی لغو کيدلې.بيا په شريعت کښې د زکاة نصاب مال عظيم دې.چه شريعت نصاب والا مالدار شمار کړې دې.او په عرف کښې هم دې مالدار ګڼړلې شي.نو ددې اعتبار به کولې شي.هم دا اصح ده.(اختيار)

**الرواية الثانية>** بيا دا د صاحبينو رحمهما الله قول دې.په دې باره کښې امام محمد رحمه الله په مبسوط کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله قول نه دې ذکر کړې.په دې وجه د مشائخو روايات مختلف شوي دی.په يو روايت کښې دی.چه د غلا نصاب، يعنی د لس درهمو نه به په کم کښې تصديق نه کيږي.ځکه چه دا هم مال عظيم دې.چه ددې په غلا کولوکښې محترم اندام ( لاس) کټ کولې شي.او دويم روايت هم هغه دې.کوم چه په کتاب کښې د صاحبينو رحمهما الله قول ذکر کړې شو.

(وَإِنْ قَالَ:له علي او که وې ونيل چې د ده دپاره په ما باندې دَرَاهِمُ كَثِيرَةٌ چه دراهم کثيره دی.لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ) [1] نود لسو نه په کم کښې به تصديق نه کيږي. اودا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی.

**تشريح> الاقرار بالدارهم الكثيرة>** په دې اقرار کښې چه ده د کوم جنس اموال ( درهم، دينار، اوښ وغيره) ذکرکړې دی.هم ددغه جنس درې نصابه بيانولو سره به اندازه کيږي.په دې لحاظ سره چه ادنی د جمع درې دی.اود دراهم کثيره په اقرار کښې به د امام صاحب رحمه الله په نيز لس دراهم لازم وی.[2]

**دليله>** امام صاحب رحمه الله فرمائي.چه د لس عدد د جمع کثرت دمصداق ادنی مرتبه ده.او دجمع قلت منتهاء ده.نود لفظ په اعتبار سره هم دا اکثر شو.(لانه يقال عشرة دراهم ثم يقال احد عشر درهماً) يعنی کله چه عدد د لس نه زيات شي.نو د هغې مميز مفرد راځي.جمع نه راځي.

(فَإِنْ قَالَ دَرَاهِمُ که وې ونيل چه دراهم دی.فَهِيَ ثَلَاثَةٌ)نودا به درې وی. (إِلَّا أَنْ يُبَيِّنَ أَكْثَرَ مِنْهَا) خودا که دې ددې نه زيات بيان کړي.

**تشريح> الاقرار بالدراهم>** که مقر اوونيل.چه ما باندې د فلانی دراهم دی.نودا به په دريو دراهمو باندې واقع کيږي.

---

[1]) القول الراجح هو قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٤\٥٠١) والخانية (٣\٢٠٤) وملتقى الابحر(٣\٣٩٨) والعناية (٧\٣٠٨) ومجمع الأنهر(٣\٢٩١) والدرالمنتقى (٢\٢٩١) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٩٥)-

[2]) **مذهب الصاحبين:-** اود صاحبينو رحمهما الله په نيز به د زکاة د نصاب نه په کم کښې تصديق نه کيږي.ځکه چه د شريعت په نظر کښې ( مالدار) نصاب والا دې.

دلیله> ځکه چه د جمع صحیح کمتر درې دی.

**په مبهم عدد سره د اقرار اندازه**

(وَاِنْ قَالَ :له علي كه وي ونيل چې د هغه په ما باندې كَذَا كَذَا دِرْهَمًا دومره دومره دراهم دي. لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا)نود يوولس درهمو نه په کم کښې به تصديق نه كيږي.

**تشريح>** **الاقرار بكذا كذا درهم>** كه مقر، ، على كذا كذا درهماً ، ، اووئيل.نو په ده به يوولس درهمه لازم وي.او كه حرف عطف سره ئې كذا وكذا اوئيل.نو يوويشت درهم به لازم وي.

**دليله>** ځکه چه رومبی صورت كښې ده دوه عدد مبهم د حرف عطف نه بغير ذكر كړى دى.او ددې پشان د اقل عدد مفسر، ، احدعشر، ، دې.او كه اكثر تسعة عشر ( ني اووئيل).نو اقل متيقن به لازم وي.او په دويم صورت كښې حرف عطف سره ذكر كړى دى. چه ددې ادنى مثال احد و عشرون دې.نو هر وجه به ددې په مثال باندې محمول كولې شي.

(وَاِنْ قَالَ :كه وې ونيل، كَذَا وَكَذَا دِرْهَمًا چه دومره او دومره دى. لَمْ يُصَدَّقْ فِي أَقَلَّ مِنْ أَحَدٍ وَعِشْرِينَ درهما)نو د يو ويشتو نه كمو روپو كښې به تصديق نه كيږي.

**تشريح>** **الاقرار بكذا وكذا درهم>** كه وې ونيل. (له على كذا درهماً) نو د معتمد قول مطابق به صرف يو درهم لازم وي.

**دليله>** ځکه چه لفظ درهماً د شئ مبهم تفسير دې.او هغه كذا دې.ځکه چه دا د عدد مبهم نه كنايه دې.او ددې اقل متيقن يو دې.نو هم په دې به محمول كولې شي.خوشرف الدين ابوحفص عمروبن محمد عمر انصارى عقيلى په كتاب المنهاج كښې ونيلى دى.چه په دې صورت كښې هغه څه هم بيان كړى.هم هغه به لازم وي.

**..په ما..يا..زما طرف ته..الفاظو سره د اقرار حكم**

(وَاِنْ قَالَ :كه وې ونيل. لَهُ عَلَيَّ أَوْ قِبَلِي چه د فلانى، ، په ما، ، يا، ، زما په طرف، ، دى. فَقَدْ أَقَرَّ بِالدَّيْنِ)نو ده د قرض اقرار اوكړو.

**تشريح>** **الاقرار بكلمة علي او قبلي>** كه مقر، ،له على كذا يا له قبلى كذا، ، اووئيل.نودا به د قرضې اقرار وي.په رومبى صورت كښې

**دليله>** ځکه چه دده په قول كښې دين اگرچه صراحةً مذكور نه دې.البته كلمه د، ،على، ، ايجاب كښې استعماليږى.قال الله تعالى(وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ) اود ايجاب محل ذمه ده.او ثابت فى الذمه دين وى.عين نه وى.او په دويم صورت كښې ځکه چه لفظ د، ،قبلى، ، ضامن كيدل ښائى. ځکه چه دا د لزوم نه عبارت دې.په دې وجه د ضمانت كاغذ ته قباله، او كفيل ته قبيل وائى.

(وَلَوْ قَالَ له كه وې ونيل چې د هغه عِنْدِي زما سره، أَوْ مَعِي يا زما په لاس، فَهُوَ إِقْرَارٌ بِأَمَانَةٍ فِي يَدِهِ) نودا دده په قبضه كښې د امانت كيدلو اقرار دې.

**تشريح>** **الاقرار بكلمة عندى ومعي>** يعنى د مختصرالقدورى په بعضو نسخو كښې دى.چه، ،قبلى، ، ونيل. د امانت اقرار دې.

**دليله>** ځکه چه لفظ د، ،قبل، ،امانت او قرضې دواړو ته شامل دې.ترديې كه څوك دا اووائى. چه ، ،لا

حق لی قبل فلان،، نودا به دقرضې او امانت دواړو نه بری کول وی. ددې صراحت په مبسوط کښې موجود دې .نو هرکله چه په،، قبلی،، وئیلو کښې د قرضې او امانت دواړو احتمال دې.او په دې کښې امانت کمتر دې.نو اقرار به هم په دې باندې محمول کولې شی.خو اصح داده.چه مذکوره قول د قرضې اقرار دې.

**د مقرله د سوال په جواب کښې د مقر بعضو الفاظو سره د اقرار حکم**

(وَان قَالَ لَهُ رَجُلٌ:یوکس ده ته اوونیل.لِی عَلَیْكَ اَلْفُ دِرْهَمٍ چه زما په تا باندې زر درهم دی.فَقَالَ ده ورته اوونیل.اِتَّزِنْهَا دا اوتله.اَوْاَنْتَقِدْهَا یا اوشماره.اَوْاَجِّلْنِی بِهَا یا ددې ماته مهلت راکړه.اَوْقَدْقَضَیْتُکَهَا یا ما تاته درکړې دې.فَهُوَاِقْرَارٌ)نودا اقرار دې.لِاَنَّ الْهَاءَ فِی الْاَوَّلِ وَالثَّانِی کِنَایَةٌ عَنِ الْمَذْکُورِ فِی الدَّعْوٰی ،خکه چه هاء ضمیر په اول او دویم کښې هم د هغې نه کنایه دې.کوم چه دعوه کښې ذکر دې.فَکَاَنَّهُ قَالَ:نو گویا ده دا اوونیل.اِتَّزِنِ الْاَلْفَ الَّتِی لَكَ عَلَیَّ،چه اوتله هغه زر کوم چه ستا په ما دی.حَتّٰی لَوْلَمْ یَذْکُرْحَرْفَ الْکِنَایَةِ تردې که هغه کنایه حرف ذکر نکړی.لَایَکُونُ اِقْرَارًا نو اقرار به نه وی.لِعَدَمِ انْصِرَافِهٖ اِلَی الْمَذْکُورِ،مذکور طرف ته د نه منصرف کیدلو په وجه، وَالتَّاجِیلُ اِنَّمَا یَکُونُ فِی حَقٍّ وَاجِبٍ،او مهلت ورکول په واجب حق کښې کیږی.وَالْقَضَاءُ یَتْلُوالْوُجُوبَ او اداکول د وجوب نه پس کیږی.

**تشریح> الاقرار بالکلمات المختلفة>** یو سړی زید ته اوونیل.چه زما په تا باندې یو زر دی.زید په جواب کښې اوونیل.چه دا وزن کړه.یا ئې اوشماره. یا ددې مهلت راکړه.یا ما تاته درکړې دې.یا ما دا په فلانی باندې حواله کړې دې.نو په دې ټولو صورتونو کښې د زید د طرفه ددغه سړی دپاره د یو زر اقرار دې.خکه چه، ،اتزنها، انتقدها، ،جملو کښې هاء ضمیر هم دې زر طرف ته راجح دی.نودا دده د کلام جواب یعنی اثبات شو.انکار نشو.یا بل څه جدا کلام شو.البته که زید د ضمیر نه بغیر داسې اوونیل چه ،، اتزن یا انتقد. الخ،،نو هیڅ به نه لازمیږی.خکه چه دا جداګانه کلام دې.دده د کلام جواب نه دې پاتې شوه د میعاد مسئله، نو مهلت ورکول په هغه حق کښې کیږی.چه واجب وی.

**فائدة>** د مسئلې قاعده کلیه داده.چه کوم کلام د جواب کیدلو صلاحیت لری.اود کلام د ابتداء کیدلو صلاحیت نه لری.نو هغه جواب ګرخیدلې شی.او کوم چه د کلام د ابتداء کیدلو صلاحیت لری.اود جواب کیدلو صلاحیت نه لری.یا د دواړو صلاحیت نه لری.نودا جدا کلام ګرخولې شی.

**د مقرله میعادی اقرار.د مقرپه رد کولو سره د فی الحال واجبیدلو حکم**

(وَمَنْ اَقَرَّبِدَیْنٍ مُؤَجَّلٍ کوم کس چه د مقرر وخته پورې د دَین اقرار اوکړو.فَصَدَّقَهُ الْمُقَرُّلَهٗ فِی الدَّیْنِ او مقرله دا په دین کښې اومنلو.وَکَذَّبَهٗ فِی التَّاجِیلِ او په مقرره وخت کښې ئې دروغ کړو.لَزِمَهُ الدَّیْنُ حَالًا)نو په ده به دین فی الحال لازم وی. (وَیَسْتَحْلِفُ الْمُقَرَّلَهٗ عَلَی الْاَجَلِ)او په موده کښې به مقرله نه قسم اخستې شی.

**تشریح> الاقرار بالدین المؤجل>** یو سړی د قرض دین اقرار اوکړو.او مقرله دعوه اوکړله.چه دین قرض نه دې.فوری دې.نو په مقر به دین فوری لازم وی.اود مقرله نه به په دې خبره قسم اخستلې شی.چه د دین هیڅ موده نه وه.

**دلیله>** خکه چه مقر د حق غیر اقرار سره خپل خان دپاره د فوری حق دعوه کړې ده.نودا داسې شوه.لکه چه یوکس د بل دپاره د غلام اقرار اوکړی.او ورسره دا دعوه هم اوکړی.چه ما دده نه دا غلام په اجرت

باندې اخستې دي. په دې صورت کښې د مقر تصدیق نه کیږی.نو دلته کښې به هم تصدیق نه کیږی.د امام محمد رحمه الله په نیز،

## د اقرار سره د متصل استثناء حکم

(وَمَنْ اقربدين چا چې د.قرض اقرار اوکړو وَاسْتَثْنَی او استثناء ئې اوکړله.مُتَّصِلًا بِإِقْرَارِهٖ د خپل اقرار سره یوځائې،صَحَّ الِاسْتِثْنَاءُ نو استثناء به صحیح وی.وَلَزِمَهُ الْبَاقِي)او باقی به لازم وی.(وَسَوَاءٌ اسْتَثْنَى الْأَقَلَّ أَوِ الْأَكْثَرَ،که د قلیل وی.او که د کثیر وی.

**تشریح﴾ الاقراربالدین والاستثناء﴿** مقر چه د کوم څیز اقرار کړې دې.هغې کښې د بعض استثناء کول صحیح دی.په دې شرط چه متصلاً وی.که استثناء کمه وی.(کما فی قوله لفلان علیّ ألف إلا أربع مائة) اوکه زیاته وی.(کما فی قوله لفلان علیّ ألف إلا ست مائة) اوس چه کوم څه باقی پاتې شی.هغه به په مقر باندې لازم وی.خود کُل استثناء کول صحیح نه ده.فاسد ده.( جوهره).ځکه چه د استثناء نه پس څه نا څه باقی پاتې کیدل ضروری دی.

**دلیله**-د جواز دلیل دا آیت دې. ﴿قُمِ اللَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا ۝ نِصْفَهُ أَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيلًا ۝ أَوْ زِدْ عَلَيْهِ﴾،، ولاړ اوسه د شپې خو لږه شان حصه نیمه شپه یا ددې نه هم کمه کړه، لږه شان یا زیات کړه په دې باندې،،

فَإِنِ اسْتَثْنَى الْجَمِيعَ نو که د کُل استثناء ئیگ اوکوله.لَزِمَهُ الْإِقْرَارُ نو اقرار به لازم وی.وَبَطَلَ الِاسْتِثْنَاءُ)او استثناء به باطل وی.

**تشریح﴾ بطلان استثناء الجمیع﴿** که یوك د کُل استثناء اوکړله.مثلاً وې ونیل.،،لفلان علیّ إلا ألف درهم،،نو اقرار به لازم وی.او استثناء به باطل وی.

**دلیله﴿** ځکه چه دلته کښې هیڅ باقی پاتی نشو.حالانکه د استثناء نه پس څه نا څه باقی پاتې کیدل ضروری دی.گنی د اقرار نه به رجوع کول وی.چه دا جائز نه دی.په دې وجه ئې اوفرمائیل.چه اقرار به لازم وی.او استثناء به باطل وی.

**التنبیه﴿** د کُل نه د کُل استثناء باطلیدل هغه وخت دی.کله چه استثناء په لفظ د مستثنی منه سره وی.مثلاً داسې اووائی.(له علیّ عشرة إلا عشرة ، هؤلاء أحرار إلا هؤلاء ، نسائی طوالق إلا نسائی ، عبیدی أحرار إلا عبیدی) او که استثناء د لفظ مستثنی منه نه په علاوه سره وی.مثلاً داسې اووائی.(عبیدی أحرار إلا هؤلاء ، نسائی طوالق إلا هؤلاء ، نسائی طوالق إلا زینب ، وعمرة و فاطمه)(حقی أنّ علیّ الکل) نودا استثناء صحیح نه ده.لکه چه صاحب دهدایه رحمه الله د خپل کتاب الزیادات په،،ابواب الایمان،، کښې ددې تصریح کړې ده. حیث قال (استثناء الکل من الکل إنما لا یصح إذا کان الاستثناء بعین ذالك اللفظ أما إذا کان بغیر ذالك اللفظ فیصح کما إذا قال نسائی طوالق إلا نسائی لایصح الإستثناء ولو قال إلا عمرة و زینب و سعاد حتی أنّ علی الکل صح)

صاحب د نهایه رحمه الله ددې دنقل کولو نه پس فرمائیلی دی.چه دا فرق په یوه فقهی معنی باندې مبنی دې.او هغه داچه استثناء تصرف لفظی ده.نو ددې بناء به په صحت د لفظ باندې وی.په صحت د حکم باندې به نه وی.آیا نه گورې، که یو سړې خپلې ښځې ته دا اووائی.(أنت طالق ست طلقات إلا أربعاً)نو استثناء صحیح ده.تردې چه دوه طلاقونه واقع کیږی.اگرچه د حکم په رو سره د شپږو طلاقونو صحت نشته.ځکه چه د دریو طلاقونو نه زیاتی خو دسره طلاق نه وی.ددې باوجود دا نښی گڼلې کیدې،چه

لکه ده دا اووئیل.چه (أنت طالق ثلاثاً إلا اربعا)وجه هم داده.چه د استثناء صحت د لفظ د صحت تابع ده.د حکم د صحت تابع نه ده.

## دراهم او دنانیر سره ددې د غیر د استثناء حکم

(وَإِنْ قَالَ :که وې ونیل.لَهُ عَلَيَّ مِائَةُ دِرْهَمٍ إِلَّا دِينَارًاچه د فلانی زما په ذمه سل درهم دی.خو یو دینار، أَوْإِلَّا قَفِيزَ حِنْطَةٍیا مگر د غنمو یو قفیز، لَزِمَهُ مِائَةُ دِرْهَمٍ إِلَّا قِيمَةَ الدِّينَارِنو په ده به لازم وی.سل درهمه سوا د یو دینار نه،أَوِالْقَفِيزِ)یا (سوا) د یو قفیز د قیمت نه.([1])

**تشریح>** **الاقراربمائة درهم الا دینارا>** که یوسړی د دراهمو او دنانیرو نه د کیلی یا وزنی یا د غیر متفاوت عدد څیزونو استثناء اوکړی.مثلاً داسې اووانی. (له علی مأة درهم إلا قفیز برّ أو إلا مأة جوز) د استحسان په طریقه صحیح ده.

**دلیله>** اول(له علی مأة درهم إلا دینارا أو إلا قفیز حنطة) کښې مجانست د ثمن په لحاظ سره موجود دې.یعنی سلو درهمو سره یو دینار او یو قفیز غنم څکه هم جنس (د یو جنس) دی.چه دواړه ثمن کیدې شی.چه دا د دینارو په حق کښې خو بالکل ښکاره ده.پاتې شو مکیل او موزون، نو په دې کښې ددې اوصاف ثمن وی.مثلاً غنم یا خو د وصف بیانولو سره معلومیږی.یا دا متعین کیږی.کله چه متعین وی.نودا به مبیع وی.او کله چه ددې وصف بیان کړی.او پخپله ذمه ئې واخلی.نو غیر متعین به په ذمه کښې واجب وی.لکه څنګه چه دینار په ذمه واجبیږی.نو غیرمتعین، په ذمه واجبیدلو کښې د درهمو او دینارو پشان مکیل او موزون دې. نو په ثمن کیدلو کښې یو جنس دې.

(وَإِنْ قَالَ :که وې ونیل.لَهُ عَلَيَّ مِائَةٌ وَدِرْهَمٌچه د فلانی په ما باندې سل او یو درهم دې.فَالْمِائَةُ كُلُّهَا دَرَاهِمُ. نو په ده به ټول درهمونه لازم وی.

**تشریح>** **الاقرار بالمائة وثوب>** مقر اقرار اوکړو.چه زما په ذمه دده سل او بل درهم دې.نو په ده به ټول درهمونه لازم وی.یعنی یو سل یو،

**دلیله>** عام طور باندې لفظ د درهم د مائة بیان کیږی.څکه چه خلق درهم دوباره ونیل مشکل ګڼړی.او صرف په یو ځل ذکرکولو باندې اکتفاء کوی.اودا دهغه څیزونو څنې وی.کوم چه زیات استعمالیږی.اود زیات استعمال تحقق هغه وخت کیږی.کله چه د زیاتو اسبابو په وجه څیزونه په ذمه کښې زیات وی.لکه دراهم او دنانیر، مکیل او موزون.چه دا په سلم، قرض او ثمن کښې واجب فی الذمه وی.په خلاف د ثیاب او غیرمکیل او غیرموزن، چه ددې وجوب دومره زیات نه واقع کیږی.په دې وجه د ثیاب، او غیرمکیل او غیرموزون څیزونو تفسیر به په مقر باندې موقوف وی.او په دراهمو او دنانیر وغیره کښې به موقوف نه وی.

وَإِنْ قَالَ:لهعلی که وې ونیل. چې د ده په ما باندې مِائَةٌ وَثَوْبٌسل او یوه کپړه ده.لَزِمَهُ ثَوْبٌ وَاحِدٌنو په ده به یوه کپړه لازم وی.وَالْمَرْجِعُ فِي تَفْسِيرِ الْمِائَةِ إِلَيْهِ)اود سلو په تفسیر کښې به دده طرف ته رجوع کولې شی.

[1] ) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا في المبسوط للسرخسي رحمه الله و ردالمحتار(٥١٠\١٤) ومجمع الأنهر(٤٠٧\٣) نقلاً عن القول الراجح (٢٠١\٢)–

**تشریح﴾ الاقرار بالمائة وثوب﴿** که ده اوونیل.چه دده په ما سل او یوه کپړه ده.نو په ده به د سلو تفسیر کولې شی.چه د سلو نه څه مراد دې؟ درهم مراد دی.اوکه کپړې مراد دی.هم دا حکم د(له علیّ مأة و ثوبان) دې.

**دلیله﴾** ځکه چه یو سل خو مبهم دی.او یوه جامه په هغې باندې په واؤ عاطفه سره معطوف دې.د هغې تفسیر نه دې. ځکه چه عطف د بیان دپاره موضوع نه دی.بلکه دا خو د معطوف او معطوف علیه په مینځ کښې د مغایرت تقاضا کوی.نو لفظ د مائة پخپل ابهام باندې باقی پاتې شو.لکه څنګه چه په اول صورت یعنی،،له علیّ مأة و درهم،، دې،،فلابد من المصیر الی البیان،،.

**اقرار سره د متصل انشاء الله حکم**

(وَمَنْ أَقَرَّ بِحَقٍّ که یوکس د یو حق اقرار اوکړو.وَقَالَ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ مُتَّصِلًا) بِإِقْرَارِهٖ او خپل اقرار سره ئې،،انشاءالله،، اوونیل.(لَمْ يَلْزَمْهُ الْإِقْرَارُ)نو په ده به اقرار لازم نه وی. وَمَنْ أَقَرَّ وَشَرَطَ الْخِيَارَ لِنَفْسِهٖ او چاچه اقرار اوکړو اوخان دپاره ئې دخیار شرط اولګولو لَزِمَ الْإِقْرَارُ وَبَطَلَ الْخِيَارُ نو اقرار لازم شو او خیار باطل شو.

**تشریح﴾ الاقرار بالمائة والاستثناء متصلا﴿** مسئله داده.چه یو سړی د یو حق اقرار اوکړو.او ورسره ئې انشاء هم اوونیله.نو په ده به اقرار لازم نه وی.

**دلیله﴾** ځکه چه د الله تعالی د مشیئت ( رضا) استثناء یا خو حکم دده د منعقد کیدلو نه وړاندې باطلولو دپاره دی.لکه څنګه چه د امام ابویوسف رحمه الله مذهب دې.یا د معلق کولو دپاره دې.لکه څنګه چه د امام محمد رحمه الله مذهب دې. که د حکم باطلولو دپاره وی.بیا خو دهیڅ ونیلو ضرورت نشته.ځکه چه هغه پخپله باطل کړو.اوکه دتعلیق دپاره وی.نودا هم باطل دې.ځکه چه اقرار د خبر کیدلو په وجه د معلق کیدلو احتمال نه لری.ځکه چه اقرار د تیرشوی خبر ورکول دی.او تعلیق د راروان په لحاظ سره وی.او په دې دواړو کښې تضاد دې.ځکه چه د الله تعالی دمشیئت ( غوښتل) شرط داسې دې. چه دې باندې وقوف نشی کیدلې.

**د کور په اقرار کښې د عمارت د استثناء حکم**

(وَمَنْ أَقَرَّ بِدَارٍ چا چه اقرار اوکړو.د دار.وَاسْتَثْنٰى بِنَاءَهَا لِنَفْسِهٖ او د هغې د عمارت استثناء ئې اوکړله خپل خان دپاره.فَلِلْمُقَرِّ لَهُ الدَّارُ وَالْبِنَاءُ جَمِيعًا)نو دار او عمارت دواړه به د مقرله وی.

**تشریح﴾الاقرار بالدار دون البناء﴿** مقر دیوکس دپاره د دار اقرار اوکړو.او ددې دعمارت استثناء ئې اوکړله.نو دار او عمارت دواړه به د مقرله دپاره وی.

**دلیله﴾** ځکه چه ابادی او عمارت خو په دې اقرار کښې د معنی په اعتبار سره تبعاً داخل دې.داسې نه چه په اعتبار د لفظ یعنی د لفظ نه مقصود کیدلو سره داخل دې .وجه داده.چه لفظ د دار د زمکې او عمارت د دواړو نوم نه دې.بلکه صرف د زمکې نوم دې.البته که په دې کښې عمارت وی.نو هغه هم شاملیږی.خو مقصوداً نه بلکه تبعاً داخلیږی.ځکه چه بناء په دار کښې یو وصف دې.او وصف تبعاً داخلیږی.قصداً نه داخلیږی.

ددې دلیل دادې.که د دار په بیع کښې د قبضې نه وړاندې د بناء او عمارت څوک مستحق راوځی.نو د هغې په مقابله کښې ثمن هیڅ هم نه کمیږی.بلکه مشتری ته اختیار ورکولې شی.اوهرکله چه لفظ د دار عمارت ته لفظاً شامل نشی.نو استثناء به هم صحیح نه وی.ځکه چه استثناء خو په ملفوظ کښې

تصرف وی.حاصل دا چه کوم لفظ مستثنی منه دې.هغه چه د لفظ په اعتبار سره کومو څیزونو ته شامل وی.کله چه په دغه څیزونو کښې د کوم څیز استثناء اوکړی.نو صحیح به وی.او کومو څیزونو ته چه د معنی په اعتبار سره شامل وی.د هغې استثناء به صحیح نه وی.

**د کور د صحن په اقرار کښې د عمارت د استثناء حکم**

(وَاِنْ قَالَ اوکه وې وئیل.بِنَاءُ هٰذَا الدَّارِ لِي چه ددې دار عمارت زما دې.وَالْعَرْصَةُ لِفُلَانٍ اوانګنړ( صحن) د فلانی ده.فَهُوَ كَمَا قَالَ)نودا دده وئیلو سره موافق دهٔ.

**تشریح>الاقرار بالبناء دون العرصة>** یوزید دا اقرار اوکړو چې د دې کور ابادې زما دې او د دې زمکه د فلانی ده نو دده اقرار به صحیح وی او څنګه چې ده وئیلی دی هم دا به ټیک وی

**دلیله>** څکه چې ،،عرصة ،، د میدان نه عبارت دې ابادی ته ،،عرصة،، نه وائی نو دا داسې شوه لکه چې دې داسې اووائی د دې میدان د فلانی دپاره دې او ابآدې یې نه دې نو دا اقرار صحیح دې دغه شان مذکوره صورت هم صحیح دې

**الاصلان>** صاحب د ذخیره لیکلی دی.چه دلته کښې پنځه مسئلې دی.چه ددې تخریج په دوه اصولو باندې دې. ①ړومبې اصل: دادې.چه د اقرار نه وړاندې دعوه کول، د روسته د اقرار صحت دپاره مانع نه وی.اود اقرار نه پس دهغه څیز د بعض دعوه کول،کوم چه د اقرار لاندې داخل شوې وی.نه صحیح کیږی. ②دویم اصل دادې.چه د سړی اقرار پخپله خپل ذات باندې دلیل دې.غیر باندې دلیل نه دې.هرکله چه دا اصول معلوم شو.نو اوس د هرې مسئلې حکم اوګوره.

| نمبرشمار | صورت د مسئلې | حکم |
|---|---|---|
| ① | بناء هذه الدار وأرضها لفلان | زمکه او بناء دواړه به د فلانی دپاره وی. |
| ② | أرضها لي وبناءها لفلان | د مقر د اقرار مطابق به وی. |
| ③ | أرض هذه الدار لفلان وبناءها لي | زمکه اوعمارت دواړه به دمقرله دپاره وی. |
| ④ | أرض هذه الدار لفلان وبناءها لفلان آخر | زمکه او عمارت دواړه به د ړومبی مقرله دپاره وی. |
| ⑤ | بناء هذه الدار لفلان وأرضها لفلان آخر | د مقر د اقرار مطابق به وی. |

**په ټوکرئ کښې د چوارو اقرار سره د دواړو لازمیدلو حکم**

(وَمَنْ اَقَرَّ بِتَمْرٍ فِي قَوْصَرَةٍ کوم کس چه په ټوکرئ کښې د چوارو اقرار اوکړو.لَزِمَهُ التَّمْرُ وَالْقَوْصَرَةُ) نو په ده به چوارې د ټوکرئ سره لازم وی.

**حل اللغة> قوصره:** د بانړس ټوکرئ،

**تشریح>الاقرار بالتمر دون القوصرة>** یوکس اقرار اوکړو.چه ما باندې د فلانی دپاره په ټوکرئ ( زنبیل) کښې چوارې دی. علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.چه امام محمد رحمه الله په اصل یعنی مبسوط کښې ددې مسئلې تفسیر غصب سره کړې دې.یعنی مقر اووئیل.چه ما چوارې په ټوکرئ کښې غصب کړی ( یعنی په زبردستئ اخستې) دی.نو په دې اقرار کښې د مقر په ذمه چوارې د ټوکرئ سره یعنی ظرف او مظروف دواړه لازم وی.اوکه داسې اقرار ئې اوکړو.چه ما باندې د فلانی خاروې دې.په اصطبل ( یعنی باړ) کښې.نو صرف خاروې به لازم وی.د امام محمد رحمه الله په نیز دلته به هم دواړه لازم وی.

**القاعدة** > په دې باره کښې قاعده کليه داده.چه کوم څيز د ظرف کيدلو صلاحيت لري.او د هغې منتقل کول ممکن وی.نود داسې څيز په اقرار کښې به ظرف او مظروف دواړه لازم وی.لکه د کجورو اقرار په ټوکرئ کښې، د غلې اقرار په بوريا کښې.د کپړې اقرار په رومال کښې،وغيره. او که منتقل کول ممکن نه وی.لکه اصطبل وغيره، نود شيخينو رحمهما الله په نيز به صرف مظروف لازم وی.لکه ځاروې وغيره، د امام محمد رحمه الله په نيز به دواړه لازم وی.اوکه دغه څيز د ظرف کيدلو صلاحيت نه لري.نو صرف رومبې څيز به لازم وی.لکه چه داسې اووائی.چه ما باندې يو درهم دې په درهم کښې،نوصرف رومبې درهم به لازم وی.

(وَمَنْ أَقَرَّ بِدَابَّةٍ فِي إِصْطَبْلٍ چاچه اقرار اوکړو.د اس په باړ کښې، لَزِمَهُ الدَّابَّةُ خَاصَّةً )[1]نو لازم به وی په ده باندې صرف اس.

**حل اللغة** > ① **اصطبل:** د اس د تړلو ځائې، باړ،

**تشريح**>**الاقرار بالدابة في اصطبل**> که يو کس دا اقرار اوکړو چې په باړ کښې کوم اس ولاړ وو هغه ما غصب کړې دې نو په ده باندې دغه دابه لازم وی

**دليله**> ځکه چه د شيخينو په نيز باړ مضمون بالغصب نه وی. البته د امام محمد رحمه الله په قول باندې قياس کولو سره د دواړو ضامن کيدل پکار دی

(وَإِنْ قَالَ که وې وئيل. غَصَبْتُ ثَوْبًا فِي مِنْدِيلٍ چه ما کپړه غصب کړې ده.په رومال کښې. لَزِمَاهُ جَمِيعًا)نو دواړه به لازم وی.

**تشريح**>**الاقرار بالثوب في منديل**> که يو کس دا اقرار اوکړو چې ما په رومال کښې کپړه غصب کړې ده نو په ده باندې به کپړه او رومال دواړه لازم وی

**دليله**> ځکه چې رومال د پکړې دپاره ظرف او لوښې دې ځکه چې کپړه په رومال کښې انغستې شی نو دوراه به په ده لازم وی

وان قَالَ له اوکه وې وئيل چې د هغه دپاره عَلَيَّ ثَوْبٌ فِي ثَوْبٍ)چه ما باندې تهان دې.په کپړه کښې. لَزِمَاهُ جَمِيعًانو دواړه په ده باندې لازميږی

**تشريح**>**الاقرار بالثوب في ثوب**> که يو کس د کپړې اقرار اوکړو چې هغه په بله جامه کښې انغستې وه نو په ده باندې به دواړه کپړې لازميږی

**دليله**> ځکه چې رومال د کپړې دپاره ظرف او لوښې دې ځکه چې کپړه په رومال کښې انغستې شی نو دوراه به په ده لازم وی

### په لسو کپړو کښې د يوې کپړې د اقرار حکم

(وَإِنْ قَالَ :که وې وئيل له علي ثَوْبٌ فِي عَشَرَةِ أَثْوَابٍ چه د هغه په ما باندې يوه کپړه ده.په لسو کپړو کښې، لَمْ يَلْزَمْهُ إِلَّا ثَوْبٌ وَاحِدٌ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ([2]) نو لازم به نه وی.مګر يوه کپړه.د امام ابويوسف رحمه الله په

---

[1] ) القول الراجح هو قول الشخين رحمهما الله كذا في ملتقى الأبحر(۳\۲۰٤) وكنز (ص،۲۸۸) وتنوير الأبصار (٤\٥٠٥) والدرالمنتقى (۳\۲۰٤) نقلاً عن القول الراجح (۲\۱۹٦)-

[2] ) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله كذا في نتائج الأفكار(۷\۳۱۹) وكنز (ص،۲۸۸) والدرالمختار(٤\٥٠٥)

نیز.

تشریح> الاقرار بثوب واحد في عشرة أثواب> یوسړی اقرار اوکړو.چه ما باندې د فلانی یوه کپړه ده.په لسو کپړو کښې،نود امام ابویوسف رحمه الله په نیز به صرف یوه کپړه لازم وی.د امام صاحب رحمه الله قول هم دادې (کافی). علامه زیلعی رحمه الله په تبیین الحقائق کښې دا د امام ابوحنیفه رحمه الله روميې قول منلې دې.

دلیله> دلیل دادې.چه لفظ د فی د وسط او مینځ دپاره استعمالیږی.قال الله تعالی (فَادْخُلِي فِي عِبَادِي) ای بین عبادی، نود یو نه زیات کښې شك پیدا شو.او اصل د ذمو برائت دې.ځکه چه دا د حقوقو نه خالی او عاری پیدا کړې شوې دې.نود مضبوط دلیل نه بغیر به دده حقوقو سره مشغولول جائز نه وی.

او په مذکوره قول،، ثوب فی عشرة أثواب،، کښې د لسو کپړو مجموعه د یوې کپړې دپاره ظرف نه دې.بلکه هره کپړه مظروف ده.ځکه چه هرکله یوه کپړه په څوکپړو کښې راتولولې شی.نوهره یوه کپړه به د ما وراء ( یعنی د علاوه) په حق کښې مظروف وی.او ظرف به صرف هغه کپړه وی.کومه چه د ټولو دپاخه ده.هرکله چه د لسو کپړو یوې کپړې دپاره ظرف نه کیدل ثابت شو .نو،،فی،، په ظرف باندې محمول کول ناممکن دی.نودا متعین شو.چه ده په لسو کښې یوه کپړه اوبنکلې ده.

| وَقَالَ مُحَمَّدٌ:امام محمد رحمه الله فرمائی.يَلْزَمُهُ أَحَدَ عَشَرَ ثَوْبًا)چه یوولس کپړې به لازم وی. |
|---|

تشریح> مذهب محمد رحمه الله> مام محمد رحمه الله فرمائی.چه یوولس کپړې به لازم وی.

دلیله> ځکه چه بعض ښه قسم او قیمتی کپړې په څو څو کپړو کښې راتولولې شی.نو لفظ د ،،فی،، په ظرف باندې محمول کول ممکن دی.

| وَمَنْ أَقَرَّ بِغَصْبِ ثَوْبٍ یو کس د کپړې غصب کولو اقرار اوکړو.وَجَاءَ بِثَوْبٍ مَعِيبٍ بیا نې عیب دار کپړه راوړله.فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ فِيهِ مَعَ يَمِينِه)نو قول به هم دده ( راجح) وی سره د قسم د ده نه |
|---|

تشریح> الاقرار بغصب ثوب> که یو کس د جامې په غصب کولو اقرار اوکړو خو بیا چې یې کله جامه راوړه نو هغه عیبژنه وه او دا اووائی چې دا هم دغه شان عیبژن ما غصب کړې وه نو د ده قول به معتبر وی خو قسم به خوری

دلیله> ځکه چې څوک یو څیز غصب کوی نو دا ضروری نه ده چې هغه دې دغیب نه خالی وی بلکه ډیره کرته یو عیبژن څیز هم غصب کولې شی نو ځکه د ده قول معتبر دې

(وَكَذَلِكَ لَوْ أَقَرَّ بِدَرَاهِمَ او هم دغه شان حکم دې که اقرار نې اوکړود دراهمو وَقَالَ هِيَ زُيُوفٌ او وائی چې هغه کوټه وی

الاقرار بالدراهم ضيوفا> که یو کس د دراهمو اقرار اوکړی چې د فلانی کس په ما باندې دراهم دی خو بیا اووائی چې هغه کوټه دی نو په دې کښې به هم د ده تصدیق کولې شی او قسم به ترې اخستې شی چې هغه کوټه وې کره روپئ نه وې

دلیله> ځکه چې دراهم دواړه قسمه کیدې شی کره هم او کوټه هم نو هرکله چې په ظاهره د ده د دعوی دپاره څه مکذب او دروغ گرزونکې نشته نو د ده قول به منلې شی

| (وَإِنْ قَالَ: که وې ونیل.له عَلَيَّ خَمْسَةٌ فِي خَمْسَةٍ چه د فلانی په ما پنځه په پنځو کښې دی.يُرِيدُ بِهِ الضَّرْبَ وَالْحِسَابَ او هغه په دې سره د ضرب او حساب قصد کوی.لَزِمَهُ خَمْسَةٌ وَاحِدَةٌ)نو صرف پنځه به لازم وی. |
|---|

**تشريح ﴿الاقرار بخمسة في خمسة﴾** يوکس اقرار اوکړو.چه ما باندې د فلاني پنځه دي.په پنځو کښې،نو صرف پنځه به لازم وي.اګرچه هغه د ضرب او حساب نيت اوکړي.

**دليله﴾** ځکه چه ضرب سره صرف اجزاء زياتيږي.اصل مال نه زياتيږي.نود ،، خمسة في خمسة،، مطلب دا شو.چه په پنځو کښې د هر يو پنځه پنځه جزءه دي.نود پنځو درهمو به پنځه ويشت اجزاء وي.دا نه چه د پنځو درهمو نه به پنځه ويشت جوړيږي.لکه که د وزن په حساب سره د پنځو درهمو زر جزءه ( او حصې) هم جوړې کړې شي.نو يو قيراط به هم وزن زيات نه وي.

(وَإِن قَالَ اوکه ده اوونيل.أَرَدْتُ خَمْسَةً مَعَ خَمْسَةٍ چه ما د پنځو سره د پنځو اراده کړې ده.لَزِمَهُ عَشَرَةٌ)نو په ده به لس لازم وي.

**تشريح ﴿ايراد الخمسة مع خمسة﴾** که يو کس دا اقرار اوکړو چې په دې قول سره چې ‹‹ خمسة في خمسة ›› نه زما اراده وه پنځه د پنځه نورو سره نو په ده باندې به لس درهمه لازم وي يعنی که في يې د مع په معنی کښې اخستې وي

**دليله﴾** کلمه د ،،في،، په حقيقت کښې ظرفيت دپاره وي.او درهم د درهم دپاره په ظرف او غيرظرف کښې ددې استعمال مجازاً دې.چه دا کله په معنی د مع سره راځي.لکه( فَادْخُلِي فِي عِبَادِي ) اي مع عبادي)

(وَإِذَا قَالَ اوکه ده اوونيل.لَهُ عَلَيَّ مِنْ دِرْهَمٍ إِلَى عَشَرَةٍ چه د فلاني په ما باندې د يو نه لسو پورې دي. لَزِمَهُ تِسْعَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو په ده به نهه لازم وي.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ، يَلْزَمُهُ الِابْتِدَاءُ وَمَا بَعْدَهُ نو شروع او ددې نه روستنۍ به لازم وي.وَيَسْقُطُ الْغَايَةُ،او غايت( انتهاء) ساقط شو.وَقَالَا:صاحبين رحمهما الله فرماني.يَلْزَمُهُ الْعَشَرَةُ كُلُّهَا)چه پوره لس به لازم وي.

**تشريح ﴿الاقرار بقوله من درهم الي عشرة﴾** يو سړي اقرار اوکړو.چه ما باندې د يو نه لس پورې، يا په مينځ د يو نه لس پورې دي.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به نهه لازم وي.

**مذهب الصاحبين﴾** دصاحبينو رحمهما الله په نيز لس لازم وي.ګويا د شروع او انتهاء دواړه حدونه به په محدود کښې داخل وي.

**دليلهما﴾** دوی دا فرماني.چه د دواړو حدونو موجود کيدل ضروری دی.ځکه چه د امر وجودی دپاره معدوم خيز حد نشي کيدلې.

### د مقرله د غلام په عوض کښې د زر درهمو د اقرار حکم

(وَإِن قَالَ که وې ونيل.لَهُ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ چه د فلاني په ما باندې زر درهم دي.مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ اشْتَرَيْتُهُ مِنْهُ د هغه غلام د ثمن کوم چه ما د هغه نه اخستې وو.وَلَمْ أَقْبِضْهُ،او په هغې مې قبضه نه وه کړې. فَإِنْ ذَكَرَ عَبْدًا بِعَيْنِهِ نو که هغه متعين غلام ذکرکړی.قِيلَ لِلْمُقَرِّ لَهُ نو مقرله ته به ونيلې شی.إِنْ شِئْتَ فَسَلِّمِ الْعَبْدَ که غواړې.نو غلام ورکړه.وَخُذِ الْأَلْفَ او زر درهم واخله.وَإِلَّا فَلَا شَيْءَ لَكَ عليه) ګنی ستا دپاره په ده هيڅ نشته.

**تشريح ﴿الاقرار باشتراء عبد﴾** زيد اقرار اوکړو.چه ما باندې د فلاني زر درهم دي.د هغه غلام د قيمت،چه هغې باندې ما تر اوسه پورې قبضه نه ده کړې.ددې يو څو صورتونه دي. مقر غلام متعين کړو.او مقرله دده تصديق اوکړو.غلام نې ده ته حواله کړو.دا صورت په کتاب کښې ذکر . .ددې حکم دادې.چه مقر

باندې به زر درهم لازم وی.

**دلیله** خکه چه کوم څیز د مقر او مقرله په خپل مینځ کښې رضامندئ سره ثابت شي.هغه داسې وی.لکه چه معائنة ثابت شوې وی.اودا خبره ښکاره ده.که دوی دواړو ددې معائنه کړې وه.چه مقر سړی دده نه دا غلام په زر درهم اخستې دې.حالانکه دا غلام دده په قبضه کښې دې.نو په ده به زر درهم لازم وو.دغه شان به دلته کښې هم لازم وی.

(**وَإِنْ قَالَ** له علي الف اوکه ده دا اوونیل چې د ده په مال باندې زر روپئ دی.**مِنْ ثَمَنِ عَبْدٍ** چه د یو غلام ثمن دې.**وَلَمْ يُعَيِّنْهُ** او غلام ئې متعین نکړو.**لَزِمَهُ الْأَلْفُ** نو په ده به زر( درهم) لازم وی.**فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ**([1]) په قول د امام ابو حنیفه رحمه الله کښې

**تشریح** **الاقرار بالف بثمن عبد غیرمعین** په مذکوره صورت کښې چې مقر غلام متعین نکړی نود امام ابوحنیفه، په نیز به په مقر باندې زر درهم لازم وی.او دده دې ونیلو( چه ما تر اوسه په دې باندې قبضه نه ده کړې) ته به توجه نشي ورکولې.که ده دا متصلاً ونیلې وی.او که منفصلاً ونیلې وی.

**دلیله** خکه چه دده دا ونیل د اقرار نه رجوع کول دی.خکه چه ده کلمه د،،علی،، استعمالولو سره د مال واجبیدلو اقرار کړې دې.اود غیرمتعین غلام په صورت کښې دده د قبضې نه انکار کول، بالکلیه د وجوب منافي دی.یعنی که غیرمعین مبیع باندې قبضه نه وی.نود سره ثمن نه واجبیږی.خکه چه د مبیع مجهول کیدل،ددې ضائع کیدل واجبوی.که د مبیع جهالت دعقد مقارن وی.لکه څنګه چه د مجهول غلام اخستلو په صورت کښې کیږی.یا ددې نه پس پیدا شوې وی.لکه اخستلې شوې غلام نورو غلامانو کښې ملاؤ شو.( او ګډ وډ شو).او متعاقدینو دده شناخت هیر کړو.بهرحال داسې جهالت مبیع د مستهلك ( ضائع کیدلو) په مرتبه کښې کوی.خکه لکه څنګه چه د مستهلك حواله کول ناممکن دی.دغه شان مجهول سپارل هم نا ممکن دی.نودا د ثمن د وجوب نه مانع وی.نود مقر په غیر معین غلام کښې د قبضه کولو نه د انکار نتیجه داده.چه ثمن دسره واجب نشو.حالانکه ده پخپل خان باندې د وجوب اقرار کړې دې.نودا د اقرار نه رجوع کول شو.اود اقرار نه رجوع کول باطل دی.که موصولا وی.او که مفصولا وی.

**مذهب الصاحبین** صاحبین او آئمه ثلاثه رحمهم الله فرمائی.که ده«لم اقبضه»متصلاً ونیلی وی .نوبیا به دده تصدیق کولې شی.او مال به نه لازمیږی.او متصلا ئې «لم اقبضه» نه وی ونیلې نوتصدیق به ئې نه کیږی.البته که مقرله د وجوب په سبب کښې دده تصدیق اوکړی.چې او زما نه ئې غلام اخستې وو نوپه دې صورت کښې به هم د مقر تصدیق کولې شی.اوکه مقرله په جهت د وجوب کښې د مقر تصدیق اوکړو.په دې طریقه چه ده اوونیل.ما دده په لاس اسباب ( غلام وغیره) خرڅ کړې وو.اود مبیع د قبضې په انکار کښې ئې دروغجن کړو.نود مقر قول به قبلولې شی.که موصول وی.او که مفصول وی.

**دلیلهما**: د صاحبینو رحمهما الله د قول وجه داده.چه مقر له په،،علی الف،، ونیلو سره خپل خان باندې د مال د وجوب اقرار کړې دې.او په (من ثمن عبد اشتریته منه) ونیلو سره ئې یو سبب بیان کړې دې.نو که طالب ( مقرله) د بیع په سبب کښې د مقر موافقت اوکړو.حالانکه صرف د سبب ( بیع) په وجود سره د مشتری

---

[1] ) القول الراجح هو قول الإمام كذا في الدرالمنتقى (۳\۱۰٤) وكنز (ص،۲۸۹) وملتقى الأبحر(۳\۱۰٤) والبحرالرائق (۷\۲۵۳) والدرالمختار(٤\۵۱۲) نقلاً عن القول الراجح (۲\۲۰۱)-

په ذمه د ثمن وجوب نه متاکد کیږی.( ځکه چه په مبیع د قبضې نه وړاندې د ثمن وجوب شکي وی.تردې که مبیع د بائع په قبضه کښې هلاك شی.نود مشتری د ذمې نه ثمن ساقطیږی.بلکه د قبضې په ذریعه متاکد کیږی.د کوم چه مقرله مدعی دې.او مقر منکر دې.نو قول به د منکر ( مقر) قبلولې شی.او مقرله په مذکوره سبب کښې مقر دروغجن کړو.نود مقر د طرفه به مذکوره بیان، بیان مغیر وی.ځکه چه دده د کلام شروع ( له علی الف) نه مطلقاً وجوب ثابتیږی.او په آخر د کلام سره دا احتمال راوځی.چه د عدم قبضه په تقدیر سره وجوب نشته.نودا به د کلام دشروع مقتضی دپاره مغیر وی.او مغیر بیان موصولاً صحیح کیږی.مفصولاً نه صحیح کیږی.

(وَاِنْ قَالَ عَلَيَّ اَلْفُ دِرْهَمٍ اوکه مقر اووئیل په ما باندې زر روپئ دی .مِنْ ثَمَنِ خَمْرٍ اَوْخِنْزِيْرٍ)چه د شرابو یا خنزیر ثمن دې. (لَزِمَهُ الْاَلْفُ نو په ده به زر درهم لازم وی.وَلَمْ يُقْبَلْ تَفْسِيْرُهٗ او دده بیان به نه قبلیږی.

**تشریح**> **الاقرار بالف من ثمن خمراو خنزیر**> زید اقرار اوکړو.چه ما باندې د فلانی یو زر درهم دی.کوم چه د شرابو یا خنزیر قیمت دې.نود امام صاحب رحمه الله په نیز به په زید باندې زر درهم لازم وی.(من ثمن خمر) متصلاً اووائی.اوکه منفصلاً اووائی.امام احمد اوپه اصح قول کښې امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دلیله**> وجه داده.چه(من ثمن خمر) وئیل.د اقرار نه رجوع کول دی.ځکه چه د شرابو او خنزیر ثمن واجب نه دې.او شروع د کلام یعنی کلمه د،،علی،، په وجوب باندې دلالت کوی.نودا د اقرار نه رجوع شوه.چه جائز نه ده.

**مذهب الصاحبین**> صاحبین او امام مالك رحمهم الله په یو قول کښې، او امام شافعی او اسحاق بن راهویه رحمهما الله فرمائی.که ده دا متصلاً وئیلې وی.نو مال به لازم نه وی.امام مزنی شافعی رحمه الله هم دا اختیار کړې دې.

**دلیلهما**> ځکه چه ده په آخر د کلام سره دا بیان کړل.چه زما مقصد ایجاب نه دې.اودا داسې شوه.لکه چه دې د ،،له علی ألف،، نه پس ،،انشاءالله،، اووائی.جواب دا دې.چه انشاء الله وئیل تعلیق دې.او دلته کښې ابطال دې.

**د مقر د دراهمو د اقرار نه پس ددې د کوټه کیدلو د اقرارحکم**

(وَاِنْ قَالَ که وې وئیل.لَهٗ عَلَيَّ اَلْفٌ مِنْ ثَمَنِ مَتَاعٍ چه د فلانی په ما باندې زر درهم دی.د اسبابو د قیمت، وَهِيَ زُيُوْفٌ چه هغه کوټه وې.فَقَالَ الْمُقَرُّ لَهٗ او مقرله اووئیل.جِيَادٌ چه کره وې.لَزِمَهُ الْجِيَادُ فِي قَوْلِ اَبِي حَنِيْفَةَ ([1])نو په ده به کره لازم وی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول کښې.وَقَالَ:ابویوسف ومحمد اوصاحبین رحمهما الله فرمائی.اِنْ قَالَ ذٰلِكَ مَوْصُوْلًا که دا ئې یوځائې ئې وئیلی وی.صُدِّقَ ،نو تصدیق به کولې شی.وَاِنْ قَالَهُ مَفْصُوْلًا اوکه دا ئې جدا ئې وئیلی وی.لَا يُصَدَّقُ)نو تصدیق به نشی کولې.

**حل اللغة**> **متاع**: اسباب، **زیوف**: جمع د زیف، کوټه، **جیاد**:کره، ستوقه: کوټه دراهم چه په دې باندې د سپینو زرو( اوبه) پالش وی.

---

[1] ) القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر(۱۳\٤۱۰) وكنز الدقائق (ص،۲۸۹) والدر المختار (٤\٥۱۲) نقلا عن القول الراجح (۲\۲۰۲)–

**تشریح> الاقرار بالف من ثمن متاع>** یو سړی اقرار اوکړو.چه ما باندې د فلانی یو زر درهم د سامان قیمت ،یا قرض دی.خو هغه کوټه وې.نو د امام صاحب رحمه الله په نیز به په ده باندې کره دراهم لازم وی.او دده دا قول چه،، کوټه وې،، دسره به نه قبلیږی.که متصلاً اووانی.او که منفصلاً اووانی.

**دلیله>** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه دا د اقرار نه رجوع کول دی.ځکه چه مطلق عقد صحیح سلامت بدل غواړی.او کوټه او غیر مروج کیدل عیب دې.اود عیب دعوه کول، رجوع کول دی.نودا داسې شوه.لکه چه څوك دا اووانی.چه ما ستا په لاس عیب دار مبیع خرڅ کړې وو.او مشتری اووانی.نه صحیح سلامت دې خرڅ کړې وو.نود مشتری قول معتبر وی.ځکه چه مطلق عقد هم ددې تقاضا کوی.چه مبیع عیب دار نه وی.پاتې شو ستوقه( د سپینو زرو اوبه ورکړې شوی دراهم)، نودا د اثمان د جنس څنې نه دی.ځکه چه دې ته دراهم وئیل مجازاً دی.حالانکه د بیع ورود په ثمن باندې کیږی.نود ستوقه ( اوبه ورکړې شوی دراهمو) دعوه کول د خپل اقرار نه ګرځیدل دی.

**مذهب الصاحبین>** د صاحبینو او د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نیز د اتصال په صورت کښې به دده تصدیق کولې شی.

**دلیلهما>** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه په لفظ د درهم کښې کره او کوټه د ټولو احتمال دې.چه کوټه ته لفظ دراهم حقیقتاً شامل دې.ځکه چه دا هم د دراهم د جنس څنې دې.تردې چه په بیع صرف او بیع سلم کښې هم ددې په ذریعه اِستیفاء حاصلیږی.استبدال نه کیږی.او ستوقه ته مجازاً دراهم وئیلې شی.صرف دومره خبره ده.چه د اطلاق په وخت کره مراد وی.او کله چه ده هم دې ستوقه وئیلو سره تصریح اوکړله.نودا بیان تبدیل شو.او داسې شوه.لکه چه دې اووانی. (له علیّ ألف درهم إلا أنها وزن خمسة) یعنی په مطلق دراهمو وئیلو نه وزن سبعه مراد وی.خو کله چه ده وزن خمسه اووئیل.نو خپل کلام نې متغیر کړو.کوم چه د موصول کیدلو په صورت کښې مقبول وی.اود مفصول کیدلو په صورت کښې مردود وی.

حاصل د اختلاف دې خبرې طرف ته راجع دې.چه کوټه دراهم په مطلق اسم دراهم کښې داخل دی اوکه نه دی؟ نو امام ابوحنیفه رحمه الله عیب طرف ته ترجیح ورکړې ده.او داخل کړې نې نه دی.او صاحبینو رحمهما الله داخل کړی دی.خو په طریقه د توقف، (حتی کان دعوی الزیافة بعد ذکر إسم الدراهم بیان تغییر)

> (وَمَنْ أَقَرَّ لِغَيْرِهِ بِخَاتَمٍ اوچا چه اقرار اوکړو.د بل دپاره د ګتمې، فَلَهُ الْحَلْقَةُ وَالْفَصُّ نو لازم به وی په ده باندې ګتمه او غمې. وَإِنْ أَقَرَّ لَهُ بِسَيْفٍ کوم کس چه اقرار اوکړو.د تورې، فَلَهُ النَّصْلُ وَالْجَفْنُ وَالْحَمَائِلُ نود مقرله دپاره به

**حل اللغة > خاتم:** ګتمه، **حلقة:** ګول دائره، **فص:** غمې،

**تشریح> الاقرار بالخاتم>** که یو کس د بل دپاره د ګوتمې اقرار اوکړوچې دا ګوتمه د فلانی ده نو په ده باندې د ګوتمې کړئ او په هغې کښې چې کوم غمې لګیدلې وی دواړه لازم دی

**دلیله>** ځکه چې خاتم هغه ګوتمې ته وائی چې په هغه کښې کړئ او غمې دواړه وی نو هرکله چې دواړو ته شامل دې نو دواړه به په ده باندې لازم وی

> (وَإِنْ أَقَرَّ لَهُ بِسَيْفٍ کوم کس چه اقرار اوکړو.د تورې، فَلَهُ النَّصْلُ وَالْجَفْنُ وَالْحَمَائِلُ )نود مقرله دپاره به سوکه( تیره طرف)، تیکې، او تسمه (کمربتې) ټول وی.

**حل اللغة > سیف:** توره، **نصل:** سوکه، ( د تورې تیره طرف) **جفن:** نیام، تیکې، **حمائل:** د حماله جمع

د،د توري تسمه ( کمربټی)،

**تشریح> الاقرار بالسیف>** که یو کس دا اقرار اوکړو چه د فلانی زما سره توره ده نو په ده باندې به د تورې پلک،تیغې او پټۍ درې واړه لازم وی

**دلیله>** څکه چې په پورته کښې دا ټول څیزونه شامل وی نو کله چې د تورې نوم واخستې شی دا به ورسره خامخا وی

| (وَإِنْ أَقَرَّ له بِحَجَلَةٍ چاچه د بل دپاره اقرار اوکړو د چپرکټ،فَلَهُ الْعِيدَانُ وَالْكِسْوَةُ)نو دده دپاره به لرګی او پرده وی. |
|---|

**حل اللغة > حجلة:** چپرکټ، عیدان: د عود جمع ده، لرګی، **کسوة:** پرده،

**تشریح> الاقرار بالحجلة>** که یو کس د بل دپاره د چپرکټ اقرار اوکړو چې دا چپرکټ د فلانی دې نو په چپرکټ کښې چې کوم لرې او پرده وی دواړه به په ده لازم وی

**دلیله>** څکه چې په عرف کښې چې کله، ،حجلة، ، ذکر شی نو مراد ترې لرې او پرده دواړه وی

**د حمل دپاره د اقرار حکم**

| (وَمَنْ قَالَ : لِحَمْلِ فُلَانَةَ عَلَيَّ أَلْفُ دِرْهَمٍ،چه د فلانی د حمل دپاره ما باندې زر درهم دی.فَإِنْ قَالَ نوکه هغه دا اووانی.أَوْصَى لَهُ فُلَانٌ چه فلانی دده دپاره وصیت کړې وو.أَوْمَاتَ أَبُوهُ یا دده پلار مړ شوې دې.فَوَرِثَهُ چه دې دهغه وارث دې.فَالْإِقْرَارُ صَحِيحٌ)نو اقرار صحیح دې.لِأَنَّهُ أَقَرَّ بِسَبَبٍ صَالِحٍ لِثُبُوتِ الْمِلْكِ لَهُ څکه چه ده د حمل دپاره د ملك د ثبوت د یو صالح سبب اقرار کړې دې. |
|---|

**تشریح> الاقرار لحمل فلان>** په متن کښې چه کومه مسئله ذکرکړې شوې ده.د هغې وضاحت دادې.که یوکس د حمل دپاره اقرار اوکړی.نو د هغې درې صورتونه دی.یا به څه سبب بیانوی.او یا نه.بیا به سبب یا صالح وی.او یا غیر صالح،که سبب صالح بیان کړی.مثلاً داسې اووانی.چه د فلانۍ ښځې حمل دپاره ما باندې زر درهم لازم دی.چه ددې وصیت فلانی سړی ددې حمل دپاره کړې وو.یا ددې حمل پلار مړ شوې دې.اودا روپۍ ده په میراث کښې حاصل کړی دی.نودا اقرار به صحیح وی.

**دلیله>** څکه چه اقرار کونکی حمل دپاره د ملك د ثبوت یو سبب صالح بیان کړې دې.چه په دې باندې عمل ممکن دې.

**د مبهم اقرار حکم**

| (وَإِنْ أَبْهَمَ الْإِقْرَارَ اوکه اقرار ئې مبهم اوساتلو.لَمْ يَصِحَّ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ،[1]نو صحیح به نه وی. د امام ابویوسف رحمه الله په نیز، وَقَالَ مُحَمَّدٌ:امام محمد رحمه الله فرمائی.يَصِحُّ)چه صحیح به وی. |
|---|

**تشریح> ابهام الاقرار>** که اقرار کونکی اقرار مبهم اوساتلو.یعنی صالح یا غیر صالح هیڅ سبب ئې بیان نکړو.نود امام ابویوسف رحمه الله په نیز به اقرار صحیح نه وی.د بعضو په قول امام ابوحنیفه رحمه الله هم ددې قائل دې.اود امام شافعی رحمه الله قول هم دادې.

**دلیله>** د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه مطلق اقرار داسې اقرار طرف ته ګرځولې شی.کوم چه د

---

[1] ) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر(٣\٤٠٤) و كنز الدقائق (ص،٢٨٨) والبحر (٧\٢٥٢) ولعناية (٧\٣٢٥) ونتائج الأفكار(٧\٣٢٥) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٢٠٠)-

تجارت په سبب سره وي.لکه په عبد ماذون یا متفاوضین کښې که یو شریك څه مطلق اقرار اوکړي.نود تجارت په سبب باندې به محمول کولې شي.نود اقرار کونکی مبهم اقرار داسې شو.لکه چه ده تصریح اوکړله.چه د حمل دا مال ما باندې د تجارت په وجه لازم دې.او چونکه داسې قسمه مبهم اقرار باطل دې.نو مبهم اقرار به هم باطل وي.

**مذهب محمد رحمه الله**> د امام محمد رحمه الله په نیز اقرار بهرصورت صحیح دې.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی.اود امام شافعی رحمه الله اصح قول هم دا دې.

**دلیله**> څکه چه اقرار هم د شرعی حجتونو څخې یو حجت دې.نو ترکومه پورې چه ممکن وي.عمل کول به ضروری وي.نو د صریح کیدلو په صورت کښې به په یو صالح سبب ( وصیت یا میراث) باندې محمول کولې شي.

| (وَاِن اَقَرَّ بِحَمْلِ جَارِيَةٍ که اقرار ئې اوکړو د وینځې د حمل اَوْحَمْلِ شَاةٍ لِرَجُلٍ یا د چیلۍ د حمل اقرارئې اوکړو دپاره د یوکس صَحَّ الْاِقْرَارُنو اقرار صحیح دې.وَلَزِمَهُ)او په ده باندې لازم دې. |
|---|

**تشریح**>که یوکس دچا دپاره د حمل اقرار اوکړي.نو اقرار بالاتفاق صحیح دې.( که هغه د وینځې حمل وي اوکه د څاروی حمل وي).اګرچه اقرار کونکې ددې هیڅ سبب بیان نکړي.

**دلیله**> څکه چه ددې اقرار صحیح وجه ممکن ده.دا په دې طریقه کیدې شي.چه یو مړکیدونکی ددې وصیت کړې وي.او دده وارثان اقرار کوي.چه دا حمل د فلانې دپاره دې.نودا به په جواز باندې محمول کولې شي.ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی.او امام مزنی رحمه الله چه د امام شافعی رحمه الله دا قول نقل کړې دې.چه د اقرار مطلق کیدلو په صورت کښې به صحیح نه وي.دا ددوی غیر اصح قول دې.

## په مرض الموت کښې د قرضونو د اقرار حکم

| (وَاِذَا اَقَرَّ الرَّجُلُ فِي مَرَضِ مَوْتِهِ بِدُيُونٍ کله چه اقرار اوکړو، یوکس پخپل مرض الموت کښې،د قرضونو، وَعَلَيْهِ دُيُونٌ فِي صِحَّتِهِاو حال دادې.چه په ده باندې څه قرضې دده د صحت هم دی.وَدُيُونٌ لَزِمَتْهُ فِي مَرَضِهِ بِاَسْبَابٍ مَعْلُومَةٍاو څه قرضې داسې دی.کومې چه په ده باندې دده په مرض الموت کښې په معلومو اسبابو سره لازم شوی دی.فَدَيْنُ الصِّحَّةِ وَالدَّيْنُ الْمَعْرُوفُ بِالْاَسْبَابِ مُقَدَّمٌ) نودا د صحت او د معلومو اسبابو قرضونه به مقدم وي. |
|---|

**تشریح**>**اقرارالمریض بدیون في مرض موته**> بیمار باندې چه کوم دین دده د صحت د زمانې وي.که د ګواهانو په ذریعه سره معلوم وي.او که په اقرار سره،که د وارث دین وي.اوکه د یو اجنبی ( پردی کس).د عین اقرار وي.اوکه د دین وي.بهرحال د صحت د حالت دین مطلقا، او کوم دین چه په ده باندې په مرض الموت کښې په معلومو اسبابو سره لازم شوې وي.هغه دواړه به زمونږ په نیز، هغه دین باندې مقدم وي.د کوم چه مریض پخپل مرض الموت کښې اقرار کړې دې.سفیان ثوری او ابراهیم نخعی رحمهما الله هم ددې قائل دی.اود قاضی حنبلی رحمه الله په قول د امام محمد رحمه الله د مذهب قیاس هم دادې.نوکه دده انتقال اوشي.نو مخکښې به دده د ترکې ( مال میراث) نه د صحت دین او هغه دین اداکوي.کوم چه په مرض الموت کښې معلومو اسبابو سره لازم شوې دې.ددې نه پس چه کوم مال باقی پاتې شي.د هغې نه به هغه قرض ادا کوي.د کوم چه هغه په مرض الموت کښې اقرار کړې دې. [1]

---

[1] ، **مذهب الشافعي رحمه الله**:- د امام شافعی،امام مالك، ابوثور، ابوعبیده، امام مزنی، او په قول د ابوعبیده د مدینې د خلقو په نیز د صحت دین اود مرض دین دواړه برابر دی.

**دليله**> دليل دادي.چه بې شکه اقرار دليل دي.خو ددې دليل کيدل، هغه وخت معتبر وی.کله چه په دې سره د بل حق نه باطليږی.اوکه دا د غير حق باطلوی.نو معتبر نه وی.لکه که يوکس يو څيز رهن کيخودلو.يا ئې په اجاره باندې ورکړو.بيا ئې اقرار اوکړو.چه دا څيز دغير دې.نود مرتهن او مستاجر په حق کښې دده اقرار نه نافذ کيږی.ځکه چه دې څيز سره د هغوی حق متعلق شوی دې.اود بيمار په اقرار کښې دا خبره موجود ده.يعنی د بل حق باطليږی.ځکه چه د صحت د قرضخواهانو حق دده مال سره متعلق شوې دې.

**وجه تقديم ديون معروف الاسباب**> بيا د بيمارئ د حالت داسې قرضې چه ددې اسباب معلوم دی.مثلاً د بيع په وجه د يو مبيع ثمن،يا د نکاح په وجه د ښځې مهر لازم شوې دې.نو ددې د مقدم کيدلو وجه داده.چه ددې په ثبوت کښې د تهمت هيڅ امکان نشته.ځکه چه د کتلی شوی څيز د ردکولو گنجائش نه وی.ددې مثال دادې.چه قرضه د داسې مال په وجه لازم شوه.کوم مال چه ده پخپل ملکيت کښې اخستې دې.يا ده دچا مال ضائع کړو.او ددې وجوب د اقرار نه علاوه په معائنه يا د گواهئ په دليل سره معلوم شو.يا ده د يوې ښځې سره دهغې په مهرمثل باندې نکاح اوکړله.نو داسې قرضې د صحت د قرضو برابر دی.کوم يو ته به په بل باندې ترجيح نه وی.ځکه چه ددې په ثبوت کښې هيڅ تهمت نشته.

## د مقدم قرضو اداکولو نه پس د مرض الموت حالت د قرضو اداکول

| (**فَإِذَا قُضِيَتْ**)او هرکله ئې چه اداکړلې.(يعنی هغه قرضې کومې چه مقدم دی) (**وَفَضَلَ شَيْءٌ مِنهَا**او د هغې نه څه مال بچ شو.(**كَانَ فِيمَا أَقَرَّبِهِ فِي حَالَ الْمَرَضِ**)نو هغه به خرچ کولې شی.په هغې کښې د کوم چه ده د بيمارئ په حالت کښې اقرار کړې دې. |
|---|

**تشريح**> **فضل شئ بعد اداء ديون العرض**> هرکله چه مخکښې ديون يعنی د صحت ديون او هغه قرضې کومې چه د بيمارئ په حالت کښې په معلومو اسبابو سره معلومې شوې دی. خلاصې کړې شوې.اود ترکې نه څه مال بچ پاتې شو.نو دا به د قرضې ادا کولو کښې خرچ کولې شی.د کومو چه ده د بيمارئ په حالت کښې اقرار کړې دې.

**دليله**> ځکه چه ده د بيمارئ په حالت کښې کوم اقرار کړې وو.هغه پخپله صحيح وو.(لصدوره عن أهله فی محله) خود صحت د قرضخواهانو د حق په وجه دا اقرار منع کړې شوې وو. او اوس ددوی حق باقی پاتې نشو.نود بيمارئ د حالت اقرار به ښکاره کيږی،(لزوال المانع).

| وَإِنْ لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ دُيُونٌ اوکه نه وی په مقر باندې قرضونه.لَزِمَتْهُ فِي صِحَّتِهِ کوم چې په هغه باندې د هغه د صحت په زمانه کښې لازم شوی وی جَازَ إِقْرَارُهُ نو دده اقرار جائز دې |
|---|

**تشريح**> وړاندې د دې خبرې بيان اوشوچې مريض په خپل مرض کښې دچا دپاره اقرار اوکړو چې مثلاً دزيد په ما باندې پنځه زره روپئ دی.نود هغه دترکې نه به اول د صحت د مودې قرض ادا کولې شی اوبيا به د مرض د مودې اقرار طرف تـه راتلې شی خو اوس پـه دې مـتن کـښې دا فرمائی چې زيد پـه مرض کښې د چا دپاره اقرار اوکړو.اوپه ده باندې د صحت د ورځو څه قرض وغيره نه وی نو پـه دې صورت کښې به د مقر اقرار جائز وی اوهغه به نافذ کولې شی.

**دليله**> دليل دا دې چې پـه دې صـورت کـښې د مقر لـه سره بـل مقابـل نشـته دائـن اوحقـدار مقابـل نشته.نوځکه به د مقر اقرار صحيح وی.اونافذ کولې به شی.

**وَكَانَ الْمُقِرُّلَهُ مِنَ الْوَرَثَةِ** اود چا دپاره چې ئې اقرار کړې دې هغه به په وارثانو کښې شامل وی

**تشریح**> هرکله چې د مقر له دپاره اقرار صحیح شو.نو اوس به د مقرله حصه وړاندې ورکولې شی او دهغې نه پس به وارثانو ته میراث ملاویږی.

**دلیله**> دلیل دا دې چې د چا دپاره ئې اقرار کړې دې نو دغه اقرار د دین دې او دین به د میراث د تقسیم نه وړاندې ادا کولې شی.

## وارث دپاره د بیمار د اقرار حکم

**وَإِقْرَارُ الْمَرِيضِ لِوَارِثِهِ** اوکه اقرار اوکړو، بیمار د خپل وارث دپاره **بَاطِلٌ** باطل دې **إِلَّا أَنْ يُصَدِّقَهُ فِيهِ بَقِيَّةُ الْوَرَثَةِ**>خودا چه په دې کښې باقی وارثان دده تصدیق اوکړی.

**تشریح**>**اقرار مریض لوارثه**> که بیمار دخپل وارث دپاره دخه دین یا عین اقرار اوکړو.نو اقرار صحیح نه دې.البته که باقی وارثان هم دده تصدیق اوکړی.امام احمد، ابراهیم نخعی، سفیان ثوری ﷺشعبی، حکم، قاضی شریح، یحي انصاری، قاسم بن سلام،ابو هاشم،سالم، ابن اذینه ﷺاو په یو قول کښې امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دی.خو ددوی اصح قول دادې.چه اقرار صحیح دې.امام مالك رحمه الله فرمائی.چه کوم ځائې کښې د تهمت خطره نه وی.هلته صحیح دې.ګنی باطل دې.لکه مثلاً د یوکس یوه لور او یو د تره ځوئې دې.بیمار د خپلې لور دپاره اقرار اوکړو.نو صحیح به نه وی.ځکه چه د تهمت امکان دې.اوکه د تره د ځوی دپاره ئې اقرار اوکړو.نو صحیح به وی.په شوافعو کښې رویانی هم دا اختیار کړې دې.د حسن بن صالح نه نقل دی.چه صرف د خپلې ښځې د مهر اقرار صحیح دې.باقی باطل دې. ([1])

**دلائله**> ①دلیل د سنن دار قطنی روایت دې.(قال رسول الله ﷺ لا وصية لوارث ولا إقرار له بدين)([2]) یعنی د وارث دپاره وصیت نشته او نه د هغه دپاره په دین باندې اقرار شته

سوال>دا روایت مرسل دې؟ جواب>اول خو حافظ ابو نعیم په تاریخ اصبهان کښې د اشعث بن شداد خراسانی لاندې دې ته مسند ونیلی دی. و سنده هکذا..... (حدثنا أبو محمد بن حيان ثنا أبو عبد الرحمن المقدسي ثنا أشعث بن شداد الخراساني ثنا يحي بن يحي ثنا نوح بن دراج عن أبان تغلب عن جعفر بن محمد عن أبيه عن جابر) اوکه مرسل اومنلې شی.لکه څنګه چه د اکثرو رائې هم داده.بیا هم مرسل صحیح زمونږ په نیز حجت دې.

سوال> ابن معین د نوح بن دراج تکذیب کړې دې.امام ابوداؤد فرمائی.چه دې دروغجن دې.حدیثونه د خانه جوړوی.د ابن حبان او حاکم بیان دادې.چه دې د ثقاتو نه هم موضوعی روایات نقل کوی.بیا مرسل مذکور صحیح څنګه شو؟

جواب>جعفر فریابی د محمد بن عبدالله بن نمیر نه ددې توثیق رانقل کړې دې.شیخ ابوزرعه فرمائی.چه دې د کوفې قاضی وو.او ماته امید دې.چه په دې کښې هیڅ باك نشته.د ابن عدی رحمه الله قول دې.چه دې(مکثر في الحديث) خو نه دې.خو دده حدیثونه لیکلې شی.معلومه شوه.چه نوح بن دراج مختلف فیه دې.(والإختلاف غير مضر عندنا)(إعلاء السنن).

---

[1] ، **مذهب الشافعي** رحمه الله:- د امام شافعی رحمه الله دلیل دادې.چه د بیمار اقرار کول، د یو ثابت حق ښکاره کول دی.

[2] ) من حديث جعفر بن محمد عن أبيه اخرجه الدارقطني في سننه في كتاب الوصايا (٤\١٥٢) رقم ١٢)_

② عقلي دليل دادي.چه د بيمار مال سره د ټولو وارثانو حق تړلي شوي دي.په دې وجه ده ته د وارثانو په حق کښې د تحفې يا وصيت وغيره احسان کولو نه ممانعت دې.

**د اجنبي دپاره اقرار کولو نه پس د نسب دعوي کول**

(وَمَنْ أَقَرَّ لِأَجْنَبِيٍّ فِي مرض موته اوکه اقرار ئې اوکړو.اجنبي دپاره. په مرض موت خپل کښې ثُمَّ قَالَ:بيا ئې اووئيل.هُوَابْنِي چه دا زما خوئې دې.ثَبَتَ نَسَبُهُ نو دده نه به دهغه نسب ثابت وي.وَبَطَلَ إِقْرَارُهُ،او دهغه دپاره به دده اقرار باطل وي.

**تشريح﴿الاقرار لاجنبي﴾** بيمار د يو اجنبي دپاره اقرار اوکړو.او بيا د هغه د نسب مدعي شو.نو د هغه نسب به ثابت وي.او اقرار به باطل وي.په دې شرط چه ددې اجنبي نسب معلوم نه وي.او د مقِر تصديق اوکړي.او د تصديق کولو لياقت (او قابليت) لري.

ولوأَقَرَّ لِأَجْنَبِيَّةٍاوکه د اجنبيه (ښځې) دپاره ئې اقرار اوکړو.ثُمَّ تَزَوَّجَهَابيا ئې هغې سره نکاح اوکړله. لَمْ يَبْطُلْ إِقْرَارُهُ لَهَا)نو هغې دپاره به دده اقرار باطل نه وي.

**تشريح﴿الاقرار لاجنبية﴾** اوکه بيمار د يوې اجنبيه ښځې دپاره اقرار کولو نه پس هغې سره نکاح اوکړي.نو اقرار به صحيح وي.د امام زفر رحمه الله په نيز به صحيح نه وي.

**وجه الفرق بين المسئلتين﴾** وجه د فرق داده.چه د نسب دعوه د علوق (دنطفې د قرار) طرف ته منسوب کيږي.نو خپل خوي دپاره اقرار شو.او دا جائز نه دې.په خلاف د زوجيت (او دنکاح)،چه دا نکاح وخت طرف ته منسوب کيږي.نو اقرار اجنبيه دپاره شو.اودا صحيح دې.خوکه اجنبيه دپاره ئې وصيت اوکړو.يا ئې څه څيز تحفه کړو.بيا ئې هغې سره نکاح اوکړله.نو وصيت او هبه به صحيح نه وي.ځکه چه وصيت بعد الموت تمليك وي.او د مرګ نه پس ښځه دده وارثه ده.نو وصيت به جائز نه وي.او په مرض الموت کښې تحفه د وصيت په حکم کښې کيږي.،،على مايأتي بيانه،،

وَمَنْ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ فِي مَرَضِ مَوْتِهِ ثَلَاثًاچاچه خپلې ښځې ته د بيمارئ په حالت کښې درې طلاقونه ورکړل.ثُمَّ أَقَرَّ لَهَا بِدَيْنٍ وَمَاتَ بيا ئې اقراراوکړو.د هغې د قرضې،او مړ شو.فَلَهَا الْأَقَلُّ مِنَ الدَّيْنِ وَمِنْ مِيرَاثِهَا مِنْهُنو ښځې دپاره به د قرضې او ميراث نه کمتر وي.

**تشريح﴿الاقرارللمطلقة في مرض الموت﴾**که په مرض الموت کښې ئې ښځې ته درې خله طلاق بائن ورکړو.بيا ئې هغې دپاره اقرار اوکړو.نو په ميراث او اقرار کښې چه کوم کمتر وي.هغه به ښځې ته ملاويږي.

**دليله﴾** ځکه چه دلته کښې زوجين په اقرار کښې متهم کيدې شي.په دې معنى سره چه د عدت زمانه موجود ده.او د اقرار دروازه بنده ده.نو ممکن ده.چه ده د ميراث نه زيات ورکولو دپاره طلاق بائندې اقدام کړې وي.او په کمتر مقدار کښې د تهمت امکان نشته.نو کمتر مقدار به ثابت وي.خود مذکوره حکم دپاره دا شرط دې. چه مقر د عدت په دوران کښې مړ شوې وي.که د عدت نه روسته مړ شو.نو اقرار به صحيح وي.

**التنبه﴾** د مذکور حکم دپاره دا هم شرط دې.چه خاوند د ښځې په طلب بائندې طلاق ورکړې وي.که طلاق د طلب نه بغير وي.نو ښځې ته به ميراث ملاويږي.خومره هم چه ددې په حصه کښې راځي.او ددې دپاره به اقرار صحيح نه وي.ځکه چه ښځه خو دده وارثه ده.او ددې خاوند زوج فار دې.په جامع،

محيط، تبيين وغيره اكثرو كتابونو كښې دا شرط ذكر دي.

## د غلام دپاره د نسب اقرار كول

(وَمَنْ أَقَرَّ بِغُلَامٍ)او چاچه اقرار اوكړو.د داسې هلك په نسبت، (يُولَدُ مِثْلُهُ لِمِثْلِهِ)چه دده په شان دده نه پيدا كيدې شي.(وَلَيْسَ لَهُ نَسَبٌ مَعْرُوفٌ)اود هغه كوم مشهور نسب نه وى.(أَنَّهُ ابْنُهُ)چه دا زما خوئې دې.(وَصَدَّقَهُ الْغُلَامُ)او هلك دده تصديق اوكړو.(ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ)نو مقر نه به دده نسب ثابتيږى.(وَإِنْ كَانَ مَرِيضًا)اګرچه هغه بيمار وى.

**تشريح>الاقراربالنسب لغلام>** مقِر اقرار اوكړو.چه فلانې بچې زما خوئې دې.نو مقر نه به دده نسب ثابتيږى.خكه چه نسب د هغه امورو ځنې دې.كوم چه خاص طور باندې هم ده لازميدونكې دې.

**شروط ثبوت النسب>** خود نسب د ثبوت دپاره يو څو شرطونه دى. ① دده پشان ماشوم دده نه پيدا كيدې شى.چه دې په ښكاره لحاظ سره دروغجن اونه ګرځولې شى. ② ماشوم مجهول النسب وى.كه معلوم النسب وى.نو د بل چا نه دده نسب نه ثابتيدل يوه ښكاره خبره ده.

③ ماشوم دده تصديق اوكړى.چه زه د ده خوئې يم.خكه چه دا هلك پخپله ذاتى قبضه كښې دې.خكه چه مسئله د داسې بچى په حق كښې فرض كړې شوې ده.كوم چه پخپل ذات سره تعبير كولې شى.په خلاف د داسې بچى، چه هغه پخپل ذات سره تعبير نشى كولې.چه هغه د خپل قابض په قبضه كښې وى.لكه څنګه چه ،،كتاب الدعوه،، كښې تير شو.او په دې وجه هم چه د نسب په ثابتيدلو كښې بعض حقونه مرتب كيږى.لكه مثلاً د ميراث ثبوت، د نفقې لزوم وغيره،او د اقرار په نسب كښې ددې حقونو الزام دې.نود مقرله د طرفه دده التزام ضرورى دې.او دا به دده په تصديق سره كيږى.

(وَيُشَارِكُ الْوَرَثَةَ فِي الْمِيرَاثِ)او هلك به وارثانو سره ميراث كښې شريك وى.

**تشريح>الشركة في الميراث>** هركله چه د مذكوره شرطونو په موجودګئ كښې دده نسب ثابت شو.نو د نورو وارثانو سره به دا ماشوم هم د مقِر وارث جوړيږى.او ميراث به حاصلوى.

**دليله>** خكه هركله چه دده نه د هغه نسب ثابت شونو دا د ميراث مشهور پشان شو.نود مړى وارثانو سره به شريك وى.

## د موربلار، اولاد، ښځې او مولا دپاره د اقرار حكم

(وَيَجُوزُ إِقْرَارُ الرَّجُلِ بِالْوَالِدَيْنِ وَالزَّوْجَةِ وَالْوَلَدِ وَالْمَوْلَى)جائز دې اقرار د يو كس په باره كښې،د مور، پلار، ښځه، خوئې،اود مالك كيدلو،

**تشريح>جواز الاقرار بالوالدين الخ >** كه يوسړې د صحت په حالت كښې يا د بيمارئ په حالت كښې بل چاته خپل پلار، يا خپله مور، يا خپل خوئې اووائى.نو( د كافى، معراج، او درمختار وغيره معتبراتو مطابق) مذكوره تيرشوى شروط ثلاثه سره دده اقرار صحيح دې.اوكه دې يوې ښځې ته خپله بى بى اووائى.نودا هم صحيح ده.په دې شرط چه① دا ښځه د بل چا بى بى نه وى. ② د بل چا په عدت كښې نه وى. ③ ددې ښځې خور، يا ترور( د پلار يا د مورخور) د مقر منكوحه يا طلاقه كړې شوې نه وى. ④ ددې ښځې نه علاوه څلور ښځې دده په نكاح كښې نه وى.( درمختار، كافى وغيره) ⑤ دا ښځه مجوسيه يا بت پرسته نه وى.(حموى) ⑥ دا ښځه مقر باندې په رضاعت سره حرامه نه وى.( حاشيه زيلعى).

دغه شان كه دې اووبنائى. چه فلانې سړې زما مولا عتاقه دې.نودا اقرار هم صحيح دې.په دې شرط چه

دده ولاء د غير مقر نه ثابت نه وي.

**دليله>** مطابق دليل دادي.چه په دې كښې دداسې امر اقرار دې.كوم چه پخپله ده ته لازميدونكي دې.او په دې كښې نسب غير طرف ته منسوب كول هم نشته.په دې مسائلو كښې قاعده كليه داده.چه د سړى اقرار پخپله خپل ذات باندې حجت دې.غير باندې نه دې.

**التنبيه>** د موركيدلو اقرار صحيح كيدل، لكه څنګه چه پورته تير شو.هم دا مشهور دې.اكثر عالمان هم په دې دى.او هم دا د تحفة الفقهاء، د سراج الدين شرح فرائض اود علامه مرغيناني رحمه الله د روايت موافق دې. خوپه فرائض عتابي، ضوء السراج، او مبسوط، ايضاح، اود شيخ محبوبي د جامع صغير په عامو نسخو كښې ددې خلاف دادى.چه د مور كيدلو اقرار صحيح نه دې.ځكه چه نسب آباء (پلار، نيكه) نه كيږى.امهات (مياندو) نه نه كيږى.او په دې كښې غيرسړى يعنى د مقر پلار باندې زوجيت لازمول دى.نو اقرار به صحيح نه وى.خو صاحب د درمختار فرمائى،چه د مذكوره اقرار صحت حق دې.ځكه چه په اصل كيدلو كښې مور او پلار دواړه برابر دى.نو مور د پلار پشان شوه.

**په موريلار خاوند او مولي باندې د ښځې د اقرار صحت**

| (وَيُقْبَلُ اِقْرَارُ الْمَرْاَةِ بِالْوَالِدَيْنِ وَالزَّوْجِ وَالْمَوْلٰى) او قبلولې به شى.د ښځې اقرار د چا متعلق د مور، پلار، خاوند، اود مالك كيدلو. |
|---|

**تشريح> قبولية اقرارالمرآة بالوالدين الخ >** كه څوك ښځه دا اقرار اوكړى.چه فلانۍ ښځه زما مور ده.يا فلانې سړې زما پلار دې.يا خاوند يا مولا عتاقه دې.نو ددې دا اقرار صحيح دې.

**دليله>** وجه هم داده.كومه چه پورته ذكر شوه.(لأنه أقر بما يلزمه وليس فيه تحميل النسب على الغير) پاتې شوه د هغه ښځه (منكوحه) كيدل،نودا د هغه په ذات باندې ددې د اقرار د صحت نه مانع نه دې.

| (وَلَا يُقْبَلُ اقرارهـا بِالْوَلَدِ) او قبلولې به نشى.اقرارد دې د خوى كيدلو.(اِلَّا اَنْ يُصَدِّقَهَا الزَّوْجُ فِىْ ذٰلِكَ) خودا كه خاوند ددې تصديق اوكړى.(نوجائز ده) (اَوْتَشْهَدَ بِوِلَادَتِهٖ قَابِلَةٌ) يا ګواهى وركړى.دائى ددې بچى د پيدا كيدلو. |
|---|

**تشريح> عدم صحة الاقراربالولد للمراة> تشريح>** كه څوك ښځه د يو بچي په باره كښې دا اووائى.چه دا زما خوئې دې.نو تركومه پورې چه ددې خاوند ددې تصديق اونكړى.يا څوك دائى ددې شهادت ورنكړى.چه دا بچې ددې نه پيدا شوې دې.د هغه وخته پورې به دا اقرار نه قبليږى.

**دليله>** ځكه چه دې اقرار كښې نسب په بل يعنى خاوند باندې لازمول دى.ځكه چه د نسب اصل تعلق سړى سره دې.ښځې سره نه دې.

**تصديق الزوج اوشهادة القابلة>** خو كه خاوند د دې تصديق اوكړى نو بيا به د دې اقرار بالولد صحيح وى.ځكه چې د هغه د اقرار په قبلولو كښې د خاوند نقصان دې خو چې هغه تصديق اوكړو نو اقرار به ئې قبلولې شى يا دا چې دائنړه د دېه په ولادت باندې ګواهى وركړى ځكه چې د قابلې قول په داسې صورت كښې مقبول وى د دې تفصيل په طلاق كښې تير شوې دې

**د موريلار او ولد صلبي نه د علاوه نه د نسب د اقرار حكم**

| (وَمَنْ اَقَرَّ بِنَسَبٍ مِنْ غَيْرِ الْوَالِدَيْنِ وَالْوَلَدِ) څوك چه د مور او پلار اود اولاد نه د علاوه د نسب اقرار اوكړى.(مِثْلُ الْاَخِ وَالْعَمِّ) لكه د رور، او تره (اقرار اوكړى). (لَمْ يُقْبَلْ اِقْرَارُهٗ بِالنَّسَبِ) نودده قول به په نسب كښې نه قبليږى. |
|---|

**تشریح> الاقرار بنسب غیرالوالدین>** که یوسړي د مور، پلار، او د ولد صلبي نه د علاوه د نسب اقرار اوکړی. لکه رور، تره، نیکه، نمسي وغیره، نو اقرار به نه قبلیږی. ځکه چه دې کښې نسب په غیر باندې لازمیږی. **دلیله>** ځکه چه رور به هغه وخت وی. کله چه د پلار خوني وی. او تره به هغه وخت وی. کله چه د نیکه خوني وی.

## د معروف وارث په وجود کښې د غیردپاره د نسب د اقرار عدم صحت

(فَإِنْ كَانَ لَهُ وَارِثٌ مَعْرُوفٌ قَرِيبٌ أَوْ بَعِيدٌ نوکه دده څوك معلوم وارث وی. که قریبي وی اوکه لرې وی. فَهُوَ أَوْلَى بِالْمِيرَاثِ مِنَ الْمُقَرِّ لَهُ) نو هغه به د میراث مستحق وی. (په نسبت) د مقرله نه. (وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَارِثٌ البته که دده څوك وارث نه وی. اسْتَحَقَّ الْمُقَرُّ لَهُ مِيرَاثَهُ) نو مقرله به دده د میراث مستحق وی.

**تشریح> عدم صحة الاقراربالنسب عند وجود الوارث المعروف>** اوس که د مقر څوك معلوم النسب وارث وی. که قریبي وی. لکه اصحاب فروض، او عصبه، اوکه لرې وی. لکه ذوی الارحام، نود مقر میراث به مقرله ته نه ملاویږی. بلکه دې مشهورالنسب وارث ته به ملاویږی.
**دلیله>** ځکه هرکله چه مقر نه د مقرله نسب ثابت نشو. نود مشهور وارث مزاحم (او مقابل) به هم نه وی.
ځکه چې ید رور، اوتره وغیره کیدلو مذکوره اقرار حقیقي وصیت نه دې. بلکه په مرتبه د وصیت دې. د حقیقي وصیت نه کیدلو وضاحت خو په هغه جزئیه سره کیږی. که یوکس د رور کیدلو اقرار کولو نه پس د بل یوکس دپاره د خپل پوره مال وصیت اوکړو. نو موصی له ته د پوره مال دریمه ملاویږی. که اول یعنی د رورکیدلو اقرار حقیقي وصیت وې. نو مقرله او موصی له به نیم په نیمه دواړه شریك وو.
**مثاله>** اوپه مرتبه د وصیت کیدلو وضاحت دې جزئیه سره کیږی. که یوکس پخپل مرض الموت کښې د یوکس په نسبت د رور کیدلو اقرار اوکړو. او مقرله د هغه تصدیق اوکړو. ددې نه پس مقر دده د قرابت نه انکاراوکړو. بیا ئې د خپل پوره مال وصیت بل چا دپاره اوکړو. نودا مال به پوره دې موصی له ته ملاویږی. اوکه دده د انکار نه پس ده هیڅ چا دپاره وصیت اونکړو. نو پوره مال به بیت المال کښې داخلیږی. ځکه چه د نسب د داسې اقرار نه دده رجوع کول صحیح دی. لکه څنګه چه د وصیت نه رجوع کول صحیح کیږی. که مذکوره اقرار د وصیت په مرتبه کښې نه وې. نو دده رجوع کول به نه صحیح کیدله.

## د پلار د مرګ نه پس د رور کیدلو په اقرار سره د نسب اود میراث حکم

وَمَنْ مَاتَ أَبُوهُ اود کوم کس چه پلار مړشو. فَأَقَرَّ بِأَخٍ نو هغه د یوکس په نسبت د رورکیدلو اقرار اوکړو. لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُ أَخِيهِ منه وَيُشَارِكُهُ فِي الْمِيرَاثِ) نو دده رور کیدلو نسب به د ده نه نه ثابتیږی.

**تشریح> عدم صحة الاقراربالاخ>** د یوکس پلار مړشو. او ده د یوکس په نسبت دا اقرار اوکړو. چه دا زما خوني دې. نود رور کیدلو نسب به خو نه ثابتیږی.
**دلیله>** ځکه چه دا په غیر باندې نسب اچول دی. البته مقرله به مقر سره د پلار په میراث کښې شریکیږی. امام مالك، امام احمد رحمهما الله او اکثر اهل علم هم ددې قائل دی.
مذکوره اقرار په دوه خبرو باندې مشتمل دې. ① یو په بل باندې نسب لازمول، او مقر ته په غیر باندې ددې اختیار حاصل نه دې. نودا به نه ثابتیږی. ② دویم دمیراث په مال کښې اشتراك او مقر ته ددې

اختیار دي.خکه چه دا پخپل ذات باندې اقرار دې.او ده ته پخپل ذات باندې ولایت حاصل دې.نودا مالی شرکت به حاصلیږی.ددې مثال هم موجود دې.مثلاً یو مشتری پخپل بائع باندې دا اقرار اوکړو.چه ما کوم غلام دده نه اخستې دې.هغه ده آزاد کړو.نو بائع باندې دده دا اقرار مقبول نه دې.تردې چه دې د بائع نه د غلام ثمن واپس نشی اخستلې.خود آزدئ په حق کښې دده دا اقرار قبلولې شی.خکه چه په حق آزادئ کښې دده دا اقرار پخپل ذات باندې اقرار دې.تردې چه دا غلام به مشتری باندې ازادیږی.نوهم دغه شان د نسب مذکوره اقرار به ، د میراث د اشتراك په باره کښې قبلیږی.

## (كِتَابُ الْإِجَارَة)

**ترجمه>** ( دا) کتاب د اجارې ( په بیان کښې) دې.

**تشریح>الربط بما قبله>** د تملیك اعیان بلاعوض ( یعنی د هبه) د احکامونه د فراغت نه پس د تملیك منافع بالعوض ( یعنی د اجارې) احکام بیانوی.او اول یعنی هبه ئې خکه مقدم کړه.چه په هغې کښې تملیك د اعیان وی.او په دویم یعنی اجاره کښې تملیك د منافعو وی.او اعیان په منافعو باندې مقدم وی.او په اول ( هبه) کښې عوض نه وی.او په دویم یعنی اجاره کښې عوض وی.او عدم په وجود باندې مقدم وی.

**اقسام الاجارة>** د اجاره مخلتف انواع دی. ① د اجارې یوه نوع داده.چه په دې کښې منفعت په ذریعه د مودې معلوم وی.لکه مثلاً د اوسیدو دپاره کورونه، او کروندې ( زمینداریٔ) دپاره زمکې په اجاره باندې اخستل. ② دویمه نوع داده.چه په دې کښې بیانولو سره منفعت معلومیږی.لکه مثلاً رنګریز د کپړې رنګ کولو یا درزی د کپړې ګنډلو دپاره اجرت باندې اخستل. ③ دریمه نوع داده.چه په دې کښې نفع تعین اواشاره سره معلومیږی.لکه قلی( بار اوړونکې مزدور) په کرایه باندې اخستل.چه هغه دا غله ( غنم وغیره)دفلانی مقام پورې اورسوی.په کتاب کښې ئې چه روسته دا وئیلی دی.چه (و المنافع تارةً تصیر معلومة بالمدة و تارةً تصیر معلومةً بنفسه و تارةً تصیر معلومةً بالتعین و الإشارة)په دې سره هم ددې انواع ثلاثه بیان دې.چه ددې تفصیل روسته نیزدې راروان دې.

**دلائل جواز الاجارة>** ① په قرآن او حدیث کښې د اجارهٔ د صحت شهادت موجود دې.د حضرت موسی او شعیب علیهما السلام په قصه کښې د الله تعالی ارشاد دې. ﴿قَالَ إِنِّيٓ أُرِيدُ أَنْ أُنكِحَكَ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هَٰتَيْنِ عَلَىٰٓ أَن تَأْجُرَنِي ثَمَٰنِيَ حِجَجٍ﴾ ، فرمانی.زه غواړم.چه په نکاح درکړم تا ته یوه لور،په دې خپلو دوه لونړو کښې، په دې شرط چه ته زما نوکری اوکړې اته کاله.، احادیث او آثار هم په کثرت سره موجود دی.

② حدیث د ابوهریره رضی الله عنه: قال رسول الله ﷺ (أعطوا الأجیر أجره قبل أن یجف عرقه)[1] یعنی نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی تاسو مزدور ته د هغه مزدوری د خولې اوچیدو نه وړاندې ورکړئ

### د اجارې لغوی او شرعی تعریف

(الْإِجَارَةُ: عَقْدٌ عَلَى الْمَنَافِعِ بِعِوَضٍ)اجاره داسې عقد دې.چه په منافعو باندې په عوض واقع کیږی.

**تشریح>تعریف الاجارة>** صاحب د کتاب فرمائی.(الإجارة عقد علی المنافع بعوض.....) یعنی اجاره داسې عقد

---

۱) عن ابن عمر رضی الله عنهما اخرجه ابن ماجه فی کتاب الأحکام باب أجر الأجراء رقم ۲۴۴۳)_من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه اخرجه عبدالرزاق فی البیوع (۳۲۵)_

دي.چه په منافعو باندې په عوض سره واقع کيږي.په دې کښې د منافعو د قيد په ذريعه د بيع داعيان نه، او د ،،بعوض،، په ذريعه د عاريت نه احتراز دې.سعدي چلپي وائي.که صاحب د کتاب د عقد په ځاني تمليك ونيلې وو.نو غوره به وو.چه په دې صورت کښې به تعريف نکاح ته نه شامليدلو.ځکه چه نکاح کښې تمليك نه وي.نکاح خو په عوض سره د منافعو جائزکيدلو نوم دې.لکه څنګه چه علامه زيلعي رحمه الله په شرح د کنز کښې ددې صراحت کړې دې.په خلاف دکتاب والا د تعريف،چه دا نکاح ته هم شامل دې.البته که په قرينه د شهرت سره د عقد نه مراد عقد د تمليك واخستلې شي.

صاحب د نتائج فرمائي.چه د موصوف دا خبره صحيح نه ده.ځکه چه په تمليك المنافع سره هم دا خبره پاتې کيږي.هيڅ فرق نه کيږي.ځکه چه نکاح کښې يقيني طور باندې مالك کيدل دي.استباحت محضه نه وي.( يعنې عارضي ملکيت نه وي) ګنې ددې عوض به نه واجبيدلو.په دې وجه د کتابونو په ټولو متونو او شروحاتو کښې ددې تصريح موجود ده.چه نکاح شرعي د تمليك د منافعو دپاره موضوع شوې ده.او دا خبره هم معلومه ده.چه نکاح د اباحت او احلال په لفظ سره نه منعقد کيږي.ځکه چه دا الفاظ دملك متعه سبب نه جوړيږي. بلکه د کتاب النکاح په شروع کښې علامه زيلعي رحمه الله پخپله هم ددې اعتراف ( او اقرار) کړې دې.چه(أن النكاح سبب لملك المتعة ولهذا لاينعقد بلفظ الإباحة....).

**عدم جواز الاجارة قياساً**> که د قياس په رو سره اوکتلې شي.نو اجاره ناجائز معلوميږي.ځکه چه دې کښې معقود عليه منفعت وي.چه د عقد کولو په وخت موجود نه وي.بلکه ددې وجود روسته کيږي.او روسته موجوديدونکې څيز طرف ته د تمليك اضافت نه صحيح کيږي.ځکه چه د کوم څيز وجود نه وي.د هغې عقد کول هم نه صحيح کيږي.هغه خو ليس بشئ وي.اود وجود نه پس د عقد د انعقاد دپاره دمعقود عليه مملکوك کيدل ضروري دي.حالانکه معدوم مملکوك کيدلو سره نه متصف کيږي.اوعقد د وجود زماني طرف ته هم نشي مضاف کيدلې.ځکه چه معاوضاتو کښې د اضافت احتمال نه وي.

بعض حضراتو د خلاف قياس کيدلو دا وجه بيان کړې ده.چه د عقد موجب دادې.چه معقودعليه في الحال اوسپارلې شي.او په اجاره کښې دا خبره نه وي.خودا وجه ځکه صحيح نه ده.چه د عالمانو په دې باندې اتفاق دې.چه د عرف د تقاضې په وجه تاخير د تسليم جائز دې.لکه که يو سړې د خزانې والا ځانې خرڅ کړي.چه په هغې کښې ډير زيات سامان وي.چه هغه په يوه ورخ کښې نشي منتقل کيدې.نو په ده باندې دټول ښار ځاروي لګيا کول، او په يو وخت کښې منتقل نه واجبيږي.بلکه دومره وخت د عرف د تقاضې په وجه ورکول ضروري وي.چه په دې کښې هغه دا سامان بل ځانې ته منتقل کړي.

**د اجاره صحيح کيدلو شرطونه**

| ( وَلَا تَصِحُّ اواجاره نه صحيح کيږي.حَتّٰى تَكُونَ الْمَنَافِعُ مَعْلُومَةً،تردې چه منافع معلوم وي.وَالْأُجْرَةُ مَعْلُومَةً)او اجرت هم معلوم وي. |
|---|

**تشريح**> **شروط صحة الاجارة**> داجارة د صحت دپاره د منافعو اود اجرت معلوميدل ضروري دي. د دې نه بغير اجاره نه صحيح کيږي.

**دلائله**> ① دليل (من استاجر أجيراً فليعلمه أجره) دا حديث د اجرت معلوميدلو په شرط باندې په طريقه د عبارت دلالت کوي.اود منافع معلوميدلو په شرط باندې په طريقه د دلالت دال دې.ځکه چه عقد اجاره کښې معقود عليه منفعت وي.او اجرت معقود به،او عقودو کښې اصل معقود عليه وي.او معقود به د تابع په مرتبه کښې وي.نو هرکله چه حديث نه د تابع معلوميدل شرط اوګرځولې شو.نود متبوع معلوميدل به په طريقه اولي شرط وي.دغه شان د منافعو نه خبرول، او د اجرت بيانولو دواړو په شرط باندې د حديث نه استدلال صحيح شو.

② عقلي دليل دادې چه په معقود عليه ( منافعو) كښې او ددې په بدل ( اجرت) كښې جهالت كيدل جګړې پورې رسوي.لكه څنګه چه په عقد بيع كښې، ثمن او مبيع مجهول كيدلو سره جګړې پورې نوبت رسيږي.

(وَمَا جَازَ أَنْ يَكُونَ ثَمَنًا فِي الْبَيْعِ او كوم څيز چه ثمن كيدې شي.په بيع كښې جَازَ أَنْ يَكُونَ أُجْرَةً فِي الْإِجَارَةِ) هغه اجرت كيدې شي.په اجاره كښې

**تشريح> ما يصلح ثمنا يصلح اجرة>** ①كوم څيز چه په عقد بيع كښې ثمن كيدې شي.لكه نقود، مكيل، او موزون. نو هغه په عقد اجاره كښې هم اجرت كيدې شي.

**دليله>** ځكه چه اجرت د نفع قيمت دې.لكه څنګه چه په عقد بيع كښې د مبيع ثمن وي.نو اجرت به د مبيع په ثمن باندې قياس كولې شي.

**مالايصلح ثمنا يصلح اجرة>** او كوم څيز چه په عقد بيع كښې د ثمن كيدلو لائق نه دې.په اجاره كښې هغه هم اجرت كيدې شي.لكه مثلاً هغه اصلي څيزونه كوم چه د مثلي څيزونو څخې نه دي.مثلاً څاروي او عدديات متفاوته، چه دا په اجاره كښې اجرت كيدې شي.حالانكه په عقد بيع كښې ثمن نشي كيدې.

**دليله>** ځكه چه بيوع كښې دا خبره ثابت شوې ده.چه اموال په درې قسمه وي.[1]يو ثمن محض لكه دراهم،[2] دويم مبيع محض لكه هغه اعيان كوم چه د ذوات الامثال څخې نه دي.[3] دريم هغه كوم چه ددې دواړو په مينځ مينځ كښې دي.لكه مكيلات او موزونات.

نود صاحب كتاب دا ونيل چه (**قوله: و ما جاز أن يكون ثمناً في البيع جاز أن يكون أجرة....**) په دې سره د غير ثمن نفي نه كيږي.ځكه چه اجرت خو مالي عوض دې.نو كوم څيز چه مال وي.او عوض كيدې شي.نو هرداسې څيز اجرت هم كيدې شي.په خلاف د ثمن چه ثمن هغه ته وائي.كوم چه دچا په ذمه واجب وي.( **فيختص بما يثبت في الذمة كالنقود**)

## د منافع معلومولو درې طريقې

(وَالْمَنَافِعُ تَارَةً تَصِيرُ مَعْلُومَةً بِالْمُدَّةِ او منافع كله د مودې په ذريعه معلوميږي. كَاسْتِئْجَارِ الدُّورِ لِلسُّكْنَى لكه په اجرت باندې اخستل.كورونه لپاره د اوسيدلو، وَالْأَرْضِينَ لِلزِّرَاعَةِ او زمكې لپاره د زميندارئ. فَيَصِحُّ الْعَقْدُ عَلَى مُدَّةٍ مَعْلُومَةٍ نو صحيح كيږي عقد په موده معلومه باندې. أَيِّ مُدَّةٍ كَانَتْ) كومه موده چې هم وي.

**تشريح>** د اجارۀ د صحت لپاره مزدورى او منفعت دواړه معلوميدل ضروري دي.د مزدورئ په معلوم كيدلو كې خو هيڅ خفاء نشته.البته په منفعت معلوميدلو كې څه خبره مخفي ده.په دې وجه هغه بيانوي.د منفعت معلوميدلو درې طريقې دي.اول داچه د هغې موده بيان كړې شي.چه مودې بيانولو سره د نفع مقدار معلوميدل يوه لازمي خبره ده.په دې شرط چې منفعت متفاوت نه وي.مثلاً د كور په اجاره كې دا بيانول.چه د دومره مودې پورې د رهائش ( او اوسيدلو) لپاره دې.اوكه منفعت متفاوت وي.لكه زمكه ئې د زميندارئ لپاره اجاره باندې واخستله.نو د مودې معلوميدلو سره سره دا هم ضروري ده.چه په دې كې به د كومې غلې كرونده كوي.هركله چې ئې داخبره بيان كړله.نو اوس كه موده كمه وي.اوكه زياته وي.چه څه هم معين كړې شي.اجاره به صحيح وي.

په ذخيره كتاب كې دي.كه د اجارې دومره موده ئې معين كړله.چه دغه وخته پورې به په دوى كې يو هم ژوندې پاتې نشي.نو اجاره به صحيح نه وي.د قاضى ابوعاصم عامري فتوى هم داده.ځكه چې د

احکامو په حق کي د غالب حکم د یقین پشان دي.نو اجاره مؤبد شوه.او تابید مبطل د اجارهٔ وي.خود امام خصاف رحمه الله په نیز جائز ده.ځکه چي اعتبار د لفظ دي.او هغه د وخت تقاضه کوي. پاتي شوه د مودي نه وراندي په دوی کي د یوکس ژوندی نه پاتي کیدل،نو ددي هیڅ اعتبار نشته.چه مستاجر د ځپل ملك کیدلو دعوه اونکړی.،،هو المختار للفتوی ،، د بلخ مشانخو هم دا اختیار کړي ده.نورو مشانخو د دریو کالو نه زیات هم جائز ګرځولي ده.خو په دي صورت کي به حاکم ارخ ته مرافعه کول وی. چي هغه دا ماته کړی.د فقیه ابوالليث رحمه الله فتوی هم په دي ده.

## په نفس عقد سره منافع معلومول

(وَتَارَةً تَصِيرُ مَعْلُومَةً بِالْعَمَلِ وَالتَّسْمِيَةِاو منافع کله کله په عمل او په نوم اخستلو سره معلومیږی.كَمَنْ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا عَلَى صَبْغِ ثَوْبٍلکه یوکس په اجرت باندي یو سړي ددي لپاره اونیولو.چه دده کپړه رنګ کړی.أَوْخِيَاطَةِ ثَوْبٍيا ددي د ګنډلو دپاره.أَوْاسْتَأْجَرَدَابَّةًیا ئي په کرایه باندي سوارلئ واخستله.لِيَحْمِلَ عَلَيْهَامِقْدَارًامَعْلُومًا چي بار کړی په دي باندي یو معلوم مقدارالى موضع معلوم.تریو ځائي معلومه پوري أَوْيَرْكَبَهَامَسَافَةً مَعْلُومَةً)یا سورشی په دي باندي یو معلوم مسافه پوري.

**حل لغة::صبغ**: رنګ کول، **خیاطة** : ګنډل،

**تشریح**› د منافعو معلومولو دویمه طریقه هغه عمل بیان کړي شی.دځه لپاره چي اجاره مطلوب ده.لکه دکپړي رنګ کول،او وینځل،یا زرګری ، یا په ځاروی سوریدل، یا بوج اوچتول، وغیره.چه په دي سره هم منفعت معلومیږی.په دي شرط چي دا خبري په داسي طریقه بیان کړي شی.چه روسته جګړه پیدا نشی.مثلاً په رنګ کولو کي کپړه، او ددي رنګ بیانول، چي سور مطلوب دي.اوکه زیړ پکار دي.دغه شان په ګنډلو کي د ګنډلو قسم بیانول،،و على هذا القياس،،

**دلیله**› ځکه کله چي ده کپړه،د رنګ کولو رنګ، ددي مقدار، د ګنډلو جنس،کوم شئ به چي بار کوی دهغي مقدار، او جنس اومسافه بیان کړو.نومنفعت معلوم شو. نو عقد به صحیح وی.

وَرُبَّمَايُقَالُ:اوکله داسي ونیلي شی.الْإِجَارَةُقَدْتَكُونُ عَقْدًاعَلَى الْعَمَلِ چي اجاره کله په عمل باندي عقد وی.كَاسْتِئْجَارِالْقَصَّارِوَالْخَيَّاطِ،لکه دهوبی یا درزی په اجاره باندي اخستل.وَلَابُدَّأَنْ يَكُونَ الْعَمَلُ مَعْلُومًاپه دي کي د کار معلومیدل ضروری دی.وَذَلِكَ فِي الْأَجِيرِالْمُشْتَرَكِ، اودا په اجیر مشترك کي کیږی.

**تشریح**› صاحب د کتاب د اجارهٔ کوم ویش ذکر کړي دي.هغه دري قسمونه دی.او صاحب د اسرارقاضي ابوزید ، او صاحب د تحفه وغیره مشانخو دوه قسمونه بیان کړی دی.او داسي ئي ونیلی دی.چه اجاره کله کله په عمل باندي واقع کیږی.لکه دهوبی یا درزی په اجاره باندي اخستل.په دي صورت کي د کار معلومیدل ضروری دی.اودا اجاره په اجیر مشترك کي کیږی.او کله کله اجاره په منفعت باندي واقع کیږی.چه دا په اجیرخاص کي کیږی.په دي کي وخت بیانول ضروری دی.

**اعتراض**› په دي ویش باندي اعتراض کیږی.چه د کتاب الاجاره په پیل کي دا خبره تیره شوي ده.چه عقد اجاره داده.چه د منافعو په عوض کي واقع کیږی.نو ددي ویش عقد على العمل او عقد على المنفعت ارخ ته څنګه صحیح کیدي شی ؟

**جواب>** دادي. چه ددې ويش عبارت د هيرې په وجه ليکلې شوې دې. او مراد دادې. چه اجاره کله د کار په نفع باندې واقع کيږي. او کله پخپله د څيزونو په نفع باندې کيږي.

(وَتَارَةً تَصِيرُ مَعْلُومَةً بِالتَّعْيِينِ وَالْإِشَارَةِ او کله منفعت معلوميدل ضروري دی. په معين کولو يا اشاره کولو سره. كَمَنْ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا، لکه يوکس يو سړی په اجاره باندې واخستلو. لِيَنْقُلَ هٰذَا الطَّعَامَ إِلٰى مَوْضِعٍ مَعْلُومٍ) چې هغه دا غله يو معلوم ځاې پورې يوسی.

**تشريح>** **قوله:** د منافع معلومولو دريمه طريقه (قوله: بالتعيين والإشارة....) د منافعو معلومولو دريمه طريقه داده. چه ددې تعيين يا دې اړخ ته اشاره اوکړې شي. چه دا شئ فلانی ځاې ته رسول دی.
**دليله>** ځکه چې کله اجير دا شئ اوکتلو. او ځاې ئې هم اوپيژندلو. نو منفعت معلوم شو. نو عقد به هم درست وی.

### د کورونو او دوکانونو په کرايه د ورکولو حکم

(وَيَجُوزُ اسْتِئْجَارُ الدُّوْرِ وَالْحَوَانِيتِ لِلسُّكْنٰى جائز دی کورونه او دوکانونه په کرايه باندې اخستل. د اوسيدلو دپاره. وَإِنْ لَمْ يُبَيِّنْ مَا يَعْمَلُ فِيهَا) اگرچه بيان نه کی (نکړی) هغه کار کوم به چې په دې کې کوی.

**تشريح>** د کور او دوکان اجاره صحيح ده. اگرچه هغه کار بيان نکړی. کوم چې په دې کې کولې شی. ځکه چه په دې کې عمل متعارف رهائش او اوسيدل دی. چه دا په اختلاف د عامل سره نه مختلف کيږي. او امر متعارف د مشروط پشان دې. په دې وجه اجاره صحيح ده.

**وجه القياس>** خودا استحساناً دی. د قياس په رو سره جائز نه دی. ځکه چې کور او دوکان کې مختلف کارونه کيدلې شی. نو معقود عليه مجهول شوه. وجه د استحسان داده.

وَلَهُ أَنْ يَعْمَلَ كُلَّ شَيْءٍ) او هغه هرکار کولې شی. (إِلَّا الْحِدَادَةَ وَالْقِصَارَةَ وَالطَّحْنَ) مگر هنگری (لوهاری)، دهوبی توب، او ميچن به نه کوی

**تشريح>** اوس مستاجر چې کوم کار غواړی کولې شی. (په دې شرط چې په دې سره عمارت او بنيادونو ته نقصان او نه رسيږي. لکه اودس يا غسل کول، خپلې کپړې وينځل، لرگی ماتول، سامان ايخودل وغيره) ځکه چې عقد مطلق دې. البته اهنگر (لوهار)، دهوبی د رينبمو کپړو، او غنمه ميچن لگونکې د خلقو غلې اوړه کولو والا به نه اوسوی.
**دليله>** ځکه چې دې کارونو سره عمارت کمزورې کيږي. نو عقد مذکور اگرچه مطلق دې. خو د دلالت په طور به ددې کارونو نه علاوه سره مقيد وی.

### د زمکې په کرايه د اخستلو حکم

(وَيَجُوزُ اسْتِئْجَارُ الْأَرَاضِي لِلزِّرَاعَةِ) او جائز دی زمکې په کرايه باندې اخستل د زمينداریٔ دپاره.

**تشريح> جواز استجار الارض للزراعة>** زمکې کرونديې لپاره اجاره باندې اخستل جائز دی.
**دليله>** ځکه چې زمکې سره په عامه توگه (عام طور) باندې هم دا فائده حاصلولې شی. چه په دې کې کرونده اوکړې شی. او دا فائده پخپله مقصود وی.

(وَلِلْمُسْتَأْجِرِ الشِّرْبُ وَالطَّرِيقُ، وَإِنْ لَمْ يَشْتَرِطْ) او مستاجر لپاره به وی. د اوبو برخه او لاره اگرچه ددې

شرط نې نه وی کړي.

**تشريح> جواز الشرب والطريق للمستاجر>** اوس به مستاجر ته د زمکې اوبه کولو اوبه، او دې ته د ورتللو لاره هم ملاویږی.اګرچه ده په اجاره کې ددې شرط نه وی کړي.

**دليله>** ځکه چې اجاره خو انتفاع لپاره منعقد کیږی.حالانکه د اوبو برخه او لارې نه بغیر نفع حاصلول ممکن نه دی.نودا دواړه شیان به په مطلق عقد کې داخل وی.

**خلاف حكم البيع في هذه المسئلة>** په خلاف د بيع، چې په دې سره ملك رقبه مقصود وی.فی الحال نفع اخستل مقصود نه وی.تردې چې د اسپې د بچې اود جبة زمکې بیع جائز ده.او اجاره جائز نه ده.نو په بیع کې به د حقوقو ذکر کولو نه بغیر د اوبو برخه او لاره داخل نه وی.

(وَلَايَصِحُّ الْعَقْدُ او عقد به صحیح نه وی.حَتّٰی یُسَمِّی مَا یَزْرَعُ فِیْهَا)تردې چې بیان کړی هغه چې د څه کرونده به کوی په دې ( زمکه ) کې .

**تشريح> عدم صحة العقد من غير بيان ما يزرع فيها>** دزمیندارئ په غرض د زمکې عقد اجاره جائزده.خودا جواز هغه وخت دې.کله چې هغه شئ بیان کړی.دکوم چې به دې په دې زمکه کې کرونده کوی.

**دليله>** ځکه چې د زمکې اجاره کله د زراعت لپاره وی.او کله د عمارت جوړولو، وُنو لګولو، خیمې خښولو وغیره لپاره وی.بیا د کوم شئ کرونده چې کولې شی.هغې کې کمې زیاتې کیږی.لکه غنم، اوربشې، جوار، اوریژې، وغیره.چه په دې کې بعض شیان زمکې لپاره نقصان ده وی.او بعض ضررناك نه وی.په دې وجه ددې تعین ضروری دې.چه روسته جګړه پیدا نشی.

(أَوْيَقُوْلَ عَلٰی أَنْ يَزْرَعَ فِيْهَا مَاشَاءَ)یاووایي چې په دې شرط چې کری به په دې کې چې څه غواړی.

**تشريح> صورة جواز العقد>** البته که هغه دا ونیلی وی.چه د کوم شئ غواړي.کرونده کوه.نو په دې صورت کې چې څه غواړی .زمینداری کولې شی.

**دليله>** ځکه چې هرکله مالك مستاجر ته اختیار ورکړو.نود هیرې په وجه چې کومه جګړه پیدا کیدې شوه.هغه لرې شوه.د امام مالك او امام شافعي رحمهما الله مذهب هم دادې. (وعن شريح أنه لايصح حتى يبين ما يزرع).

**د عمارت جوړولو یا وُنو لګولو لپاره د زمکې په کرایه باندې د اخستلو حکم.**

(وَيَجُوْزُ أَنْ يَسْتَأْجِرَ السَّاحَةَ لِيَبْنِيَ فِيْهَا جائز ده حویلي (میدانی) زمکه کرایه باندې اخستل، د عمارت جوړولو، أَوْيَغْرِسَ فِيْهَا نَخْلًا أَوْشَجَرًا)یا د کجورو وُنې یا میوه دارې وُنې لګولو دپاره،

**حل اللغة>** ① **ساحة:** چوك، حویلي (میدانی) زمکه ② **بناءً:** تعمیرکول، آبادول، ③ **يغرس** ( ض) **غرساً:** وُنې لګول. **نخل:** د کجورو وُنې،

**تشريح> جواز استيجار الساحة للبناء>** که د عمارت جوړولو یا وُنو لګولو لپاره زمکه په کرایه باندې واخلی.نو صحیح ده.

**دليله>** ځکه چې دا هم داسې منفعت دې.کوم چې په زمکه کې مقصود وی.

(فَإِذَاانْقَضَتْ مُدَّةُالْإِجَارَةِيا چې کله د اجارې موده تيره شي. لَزِمَهُ أَنْ يَقْلَعَ الْبِنَاءَوَالْغَرْسَ نو ضروري به وي مستاجر لپاره داچه وران کړي عمارت، او اوباسي ونې، وَيُسَلِّمَهَافَارِغَةً) او حواله کړي خالي زمکه ،

تشريح> د اجارې موده پوره کيدلو نه روسته به مستاجر خپل عمارت ورانه وي.ونې به اوباسي.او خالي زمکه به مالك ته حواله کوي.يعنى هغه به په دې مجبوره کولې شي.اود زمکې مالك به د نقصان ضامن هم نه وي.

دليله> د عمارت او ونو لپاره هيڅ انتهاء معلوم نه ده.نو په اجاره باقي ساتلو کي د زمکې د مالك ضرر دي.

(إِلَّاأَنْ يَخْتَارَصَاحِبُ الْأَرْضِ أَنْ يَغْرَمَ لَهُ قِيمَةَ ذَلِكَ مَقْلُوعًافِي مِلْكِهِ خودا چې اختيار کړي.د زمکې مالك د ولاړ فصل قيمت ورکول او مالك کيدل، (أَوْيَرْضَى بِتَرْكِهِ عَلَى حَالِهِ يا راضي شي ددې پخپل حال باندې په پريښودلو .فَيَكُونَ الْبِنَاءُلِهَذَاوَالْأَرْضُ لِهَذَا) نو عمارت به دده.او زمکه به دهغه وي.

تشريح>صورة الجواز> اوکه د زمکې مالك د وران عمارت، او اوښکلو شوو ونو قيمت ور کولو باندې راضي شي.نودا هم کيدې شي.نود قيمت ور کولو نه روسته به دې د عمارت او ونو مالك وي.اوکه مالك عمارت او ونې پخپله زمکه باندې پريږدي.نودا هم جائز ده.په دې صورت کي به زمکه د مالك وي.او عمارت او ونې به د مستاجر وي.

دليله> ځکه چې حق خو د زمکې دمالك دې. نو هغه ته اختيار دې.چه خپل حق حاصل نکړي.

## د سوريدلو او بوج راوړلو لپاره د خاروي په کرايه باندې د اخستلوحکم

(وَيَجُوزُاسْتِئْجَارُالدَّوَابِّ لِلرُّكُوبِ وَالْحَمْلِ) او جائز دي خاروي په کرايه باندې اخستل، د سوريدلو او بوج راوړلو دپاره،

حل اللغة>دواب: د دابة جمع ده، خاروی ، يركب ركابا: سوه رول، رکب (ض) ركوبا: سوريدل، لبس: اغوستل، عطب (س) عطبا: هلاکيدل، يتعداه تعديا: تجاوز کول، عقار: جائيداد.

تشريح>إستيجار الدواب للركوب> حيوان (خاروې) د سوريدلو او بار اوړلو لپاره اجاره باندې اخستل جائز دي.

دليله> ځکه چې دا معلوم او مقصودی منفعت دي.

.(فَإِنْ أَطْلَقَ الرُّكُوبَ نو که سوريدل ئې مطلق اوساتل. جَازَلَهُ أَنْ يُرْكِبَهَامَنْ شَاءَ) نو جائز دی دده لپاره دا چې سواره کړي چې څوك غواړي. (وَكَذَلِكَ إِذَااسْتَأْجَرَثَوْبًالِلُّبْسِ دغه شان که کپړه ئې اجرت باندې اغوستلو لپاره واخستله.وَأَطْلَقَ او معين ئې نه کړه.

تشريح> حكم الركوب عند الاطلاق> اوس که عقد مطلق وي.نو مستاجر چې څوك غواړي.سوروليې شي.

دليله> اطلاق باندې عمل کولو دپاره ځکه چې په عقد کښې مطلق رکوب ذکر شوې دې نو په دې کښې هر صورت راغلو.

(فَإِنْ قَالَ: له‌او که وي ونيل هغه (د خاروی مالك)، ته. عَلَى أَنْ يَرْكَبَهَا فُلَانٌ چې په دې شرط چې فلانی به سوريږي. أَوْيَلْبَسَ الثَّوْبَ فُلَانٌ يا به كپړه فلانی سړی اغوندی. فَأَرْكَبَهَا غَيْرَهُ يا ئې بل څوك سواره كړل. أَوْأَلْبَسَهُ غَيْرَهُ يا ئې كپړه بل چاته واغوستله. كَانَ ضَامِنًا) نو ضامن به وی. إن عَطِبَ الدابة كه هلاكه شوه سورلي، كپړه ضائع شوه. اوتلف ااشوب اوكه خرابې شوې جامې وَكَذَلِكَ كُلُّ مَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمُسْتَعْمِلِ او هم داسې دی هرهغه شئ كوم چې مختلف كيږي. د استعمالونكي په اختلاف سره.

تشريح> **حكم خلاف ما عينه في العقد**> كه يو كس د چا نه سورلۍ په كرايه واخستله چې په دې باندې به فلانی متعين كس سوروم او يا يې ترې جامې په كرايه واخستلې چې دا به فلانی معين كس اغوندی. د دې نه پس هغه د معين كس نه سوا بل څوك په هغې باندې سور كړل يا يې هغه جامه د معين كس نه سوا بل چاته واغوستله او سورلی هلاكه شو يا جامې اوشليدې نو په دې دواړو صورتونو كښې به مستاجر ضامن او تاوانی وی

**دليله**> څكه چې خلق متفاوت وی. په سوريدلو او اغوستلو كې. نو تعيين صحيح شواو مستاجر لپاره ددې نه تجاوز كول جائز نشو.

فَأَمَّا الْعَقَارُ وَمَا لَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمُسْتَعْمِلِ باقې شو جائيداد او هغه شئ كوم چې د استعمالونكي په اختلاف سره نه مختلف كيږي. إِذَا شَرَطَ سُكْنَى وَاحِدٍ نو كه په دې كې ئې د چا اوسيدل شرط كړو. فَلَهُ أَنْ يُسْكِنَ غَيْرَهُ نو دې بل څوك اوسولی شي

تشريح> **حكم ما لا يختلف باختلاف المستعل**> خو كه هغه پخپله سور شو. يا هغه بل څوك سواره كړل. نو ددې نه روسته بل څوك نشي سورولی.

**دليله**> څكه چې اصل اطلاق سره هم دا مراد متعين شو. او په سوريدلوكې چونكه د خلقو حالات متفاوت كيږي. نو گوياهغه په سوريدلو كې دا سړی صراحت سره بيان كړی وو. هم دا حكم د كپړې د اجارې دې.

**د بوج نوعيت او مقدار ياللو نه روسته د بل قسم بوج بار كولو حكم**

(وَإِنْ سَمَّى نَوْعًا وَقَدْرًا مَعْلُومًا يَحْمِلُهُ عَلَى الدَّابَّةِ كه بيان كړی نوع او معلوم مقدار كوم چې په خاروی باندې بار كوی. مِثْلَ أَنْ يَقُولَ خَمْسَةُ أَقْفِزَةٍ حِنْطَةٍ مثلاً وې ونيل. چه د غنمو پنځه قفيزه. فَلَهُ أَنْ يَحْمِلَ مَا هُوَ مِثْلُ الْحِنْطَةِ فِي الضَّرَرِ أَوْ أَقَلَّ نو هغه بار كولی شي. داسې شئ چې هغه د غنمو پشان وی په ضرر كې، يا ددې نه كم وی. كَالشَّعِيرِ وَالسِّمْسِمِ) لكه اوربشې او كونځلې.

تشريح> **جواز حمل ما يساوی في الوزن**> يو سړی يو حيوان (خاروی) په كرايه باندې واخستلو. او په دې كې چې كوم بوج بار كوی. د هغې نوع او مقدار ئې بيان كړله. مثلاً دا چې دوه منه غنم به بار كوی. نو هغه په دې باندې د غنمو پشان بل څه شئ مثلاً دوه منه اوربشې هم بار كولی شي. دغه شان كوم شئ چې ددې نه سپك وی. لكه كونځلې وغيره، هغه هم دوه منه بار كولی شي.

**دليله**> څكه چې موجب مستاجر ته د څومره بوج اوړلو اجازت كړی دې هغه هومره بوج چې پرې مستاجر بار كړی نو دا د اجازت لاندې داخل دی. څكه چې څه تفاوت او فرق په كښې نشته اوكه د

هغې نه کم بوج یې پرې بار کړی وی نو بیا خو د موجر هډو څه اعتراض نشی پاتې کیدې بلکه هغه به په دې زیات خوشحاله وی چې ما سر یې د څومره بوج اوړلو خبره کړې ده د هغې نه کم بوج پرې اوړی

(وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَحْمِلَ مَا هُوَ أَضَرُّ مِنَ الْحِنْطَةِ او ده ته دا اختیار نشته.چه بار کړی داسې شئ کوم چې د غنمو نه زیات ضررناك وی. كَالْمِلْحِ وَالْحَدِيدِ والرصاص لکه مالګه او اوسپنه، او تانبه

**تشريح**> **عدم جواز حمل يا يثقل**> خو کوم شئ چې د غنمو نه زیات نقصان ده وی.هغه نشی بار کولې.لکه اوسپنه او مالګه وغیره.

**دليله**> ځکه چې موجر په دې سره راضی نه دې.چې کومه خبره د هغه سره د بوج اوړلو شوې ده دهغې نه زیات بوج دهغه په سورلئ باندې بار کړې شی.

(وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا که حیوان (ځاروې) ددې لپاره په کرایه باندې واخستلو.لِيَحْمِلَ عَلَيْهَا قُطْنًا سَمَّاهُ چې په دې به مالوچ بار کوی.چه ددې وزن نې بیان کړو.فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَحْمِلَ مِثْلَ وَزْنِهِ حَدِيدًا) انو هغه ته دا اختیار نشته.چه ددې په وزن اوسپنه بار کړی.

**تشريح**>عدم جواز حمل الحديد مكان القطن> که مستاجر د موجر سره خبره دا کړی وی چې زه به د کرایه په دې سورلئ باندې مالوچ بار کوم نو د مستاجر دپاره جائز نه ده چې هغه د مالوچو په ځائې د مالوچو د وزن برابر په هغې باندې اوسپنه بار کړی

**دليله**> ځکه چې ډیر ځله اوسپنه زیاته ضررناکه وی.هغه داسې چې اوسپنه په یو ځائې باندې راجمع شوې وی او مالوچ په ټوله شاه باندې خواره وی بله دا چې مالوچو باندې د هغې د نرموالی د وجې شاه نه خوږیږی او په سپنه د هغې د سختوالی د وجې شاه خوږیږی نو که دا جائز نه ده چې د مالوچو په ځائې پرې اوسپنه بار کړی اوکه بار یې کړه او ځاروی ته څه نقصان اورسیدو مستاجر نه به تاوان اخستلې شی

(وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا لِيَرْكَبَهَا که حیوان (ځاروې) نې د سوریدلو لپاره په کرایه باندې نې واخستلو. فَأَرْدَفَ مَعَهُ رَجُلًا اود خان شاته نې بل څوك سواره کړل فَعَطِبَتْ او هغه هلاك شو. ضَمِنَ نِصْفَ قِيمَتِهَا انو ددې د نصف قیمت به ضامن وی.إِنْ كَانَتِ الدَّابَّةُ يُطِيقُهُمَا که چرته ځاروی د دې دواړو د اوړلو طاقت لرلو وَلَا يُعْتَبَرُ بِالثِّقَلِ) او د بوج اعتبار به نه کیږی.

**تشريح**> **ارکاب غيره معه**> د متن نه صورت د مسئلې واضح دې څه مشکل نه دې

**دلائله**> ① ځکه چې کله کله د سپك سوریدونکی نا پوهتیا حیوان (ځاروې) خرابه وی.او کله کله د دروند سړی د هوښیارتیا د وجې سوریدل په دې باندې آسان وی. ② اوبله د دې وجې هم چې سړې وزنی شئ نه دې.نو دده وزن پیژندل ناممکن دی. نود سوارلو شمیر معتبر شو.

(وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا لِيَحْمِلَ عَلَيْهَا مِقْدَارًا مِنَ الْحِنْطَةِ که په کرایه نې واخستلو د غنمو د یو مقدار بار کولو دپاره. فَحَمَلَ عَلَيْهَا أَكْثَرَ مِنْهُ بیا ددې نه زیات بار کړو. فَعَطِبَتْ او هغه هلاك شو. ضَمِنَ مَا زَادَ مِنَ الثِّقَلِ) انود زیاتی بوج په اندازه به ضامن وی

**تشريح**> **حمل ما زاد من الوزن**> صورت د مسئلې دا دې که موجر مستاجر ته په اته سوه روپئ کرایه باندې ځاروې ورکړو چې ته به په دې باندې مثلاً یو من غنم بار کوې او هغه پرې یو نیم من غنم بار

کړلو او خاروې هلاك شونو هغه مستاجر به د نیم من د زیاتوالی په مقدار تاوانی کولې شی کومې چې خلور سوه روپۍ دی

**دلیله﴾** خکه چې هغه په داسې زیاتی بوج سره هلاك شو.د کوم چې ده ته اجازت نه وو شوې یعنی نیم من وزن او په هغه بوج سره هم د کوم چې ده ته اجازت شوې دې چې یو من غنم دی نو دا هلاکت به په دوارو تقسیمولې شي او د زیاتی وزن د حصې مطابق به مستاجر تاوانی کولې شی چې په مذکوره صورت کښې خلور سوه روپۍ دی

## د کرایۍ خاروی د هلاکیدلو مسئله

(وَإِنْ كَبَحَ الدَّابَّةَ بِلِجَامِهَا که رائینبکلو حیوان (خاروې) ددې د واګو نه.أَوْضَرَبَهَا یا ئې دا اووهلو.فَعَطِبَتْ او هغه هلاك شو.ضَمِنَ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ(۱) نو ضامن به وی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز.

**تشریح﴾هلاک الدابة بالکبح والضرب﴾** که د مستاجر په وهلو یا په واګو رابنکلو سره سوارلۍ هلاکه شوه.نود امام صاحب رحمه الله د مسلك مطابق مستاجر باندې د کل قیمت تاوان راځی.

**دلیله﴾** دلیل دادې.چه د مالك د اړخه اجازت د سلامتیا شرط سره مقید دې.او ده د هغې خلاف کړی دی.خکه چې د داسې وهلو او واګو رابنکلو نه بغیر چلول ممکن وو.وهل او واګې رابنکل خو د تیز تللو لپاره وی.نو په دې کې اجازت د سلامتیا شرط سره مقید دې.

**المقیس علیه﴾** لکه خنګه چې په عامه لاره کې بوتلل جائز دی.په دې شرط چې سلامتیا سره وی.تردې که د چا نقصان اوکړی.نو ضامن به وی.

وَقَالَا:ابویوسف ومحمد صاحبین رحمهما الله فرمائی.لَايَضْمَنُ؛ چې ضامن به نه وی.

**تشریح﴾مذهب الصاحبین﴾** صاحبین او آئمه ثلاثه رحمهم الله فرمائی.که ده داسې اووهلو.یا ئې داسې واګې رابنکلې.کوم چې د دستور او عرف خلاف دی.نو تاوان به لازم وی.ګنی لازم به نه وی.

**دلیلهما﴾** خکه چې کوم کار متعارف وی.هغه د مطلق عقد لاندې داخل وی.نودا فعل دده په اجازت سره اوموندلې شو.نو ضامن به نه وی.

**المختارللفتوی﴾** په در مختار کې دی.چه فتوی د صاحبینو رحمهما الله په قول ده.او په غایة البیان کې د تتمه په حواله سره منقول دی.چه امام ابوحنیفه رحمه الله هم دې اړخ ته رجوع کړې وه.

## د اجیر اقسام

(وَالْأُجَرَاءُعَلَى ضَرْبَيْنِ :اجیر په دوه قسمه وی.أَجِيرٌمُشْتَرَكٌ،اجیر مشترك وَأَجِيرٌخَاصٌ.او اجیر خاص.فَالْمُشْتَرَكُ مَنْ لَايَسْتَحِقُّ الْأُجْرَةَ نو اجیر مشترك هغه دې.چه هغه د اجرت نه مستحق کیږی.حَتَّى يَعْمَلَ كَالصَّبَّاغِ وَالْقَصَّارِ)تردې چې کار اوکړی.لکه د کپړې رنګ کونکې او دهوبی ،

**تشریح﴾قسمي الاجیر﴾** ① اجیر په دوه قسمه وی.یو اجیر مشترك، او بل اجیر خاص.اجیر مشترك هغه دې.چه د عمل نه روسته د اجرت مستحق کیږی.که د ډیرو کسانو کار کوی.لکه درزی ، کپړه رنګ کونکې،او دهوبی وغیره.یا د یو کس کار کوی.د تعین د وخت نه بغیر،یا په تعین د وخت سره.خود عمل د تخصیص نه بغیر.دا مستاجر چونکه د عامو خلقو کار کوی.په دې وجه ده ته اجیر مشترك

---

[1]) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر (۵۲۶\۳) وردالمحتار(۲۷\۵) ومجمع الأنهر (۵۲۶\۳) والعناية (۲۹\۸)ونتائج الأفكار(۳۰\۸) نقلاً عن القول الراجح (۲۲۸\۲)

وائي.

② د اجيرخاص دوئم نوم اجير واحد دي.دا هغه كس ته وائي.چه هغه د يو معين وختـه پورې صرف د يو مستاجر كار كوي.دا خپل خان د عقد په موده كي پيش كولو سره د اجرت مستحق كيږي.كه عمل اوكړي.او كه اونكړي.د دواړو احكام روسته راروان دي.

**د اجير مشترك احكام**

| (وَالْمَتَاعُ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ إِنْ هَلَكَ او سامان امانت وي.دده سره، كه هلاك شي. لَمْ يَضْمَنْ شَيْئًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ ([1])نو ضامن به نه وي.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز |
|---|

**تشريح> المتاع امانة في يد الاجير المشترك>** اجير مشترك سره چي كوم مال او سامان وي.كه هغه دده د اختيار نه بغير هلاك شي.نود امام صاحب، په نيز به دې ضامن نه وي. دا د امام زفر او امام حسن مذهب هم دې

**دليله>** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه اجيرمشترك سره شئ امانت وو.او په امانت كي ضمان نه وي. (**يؤيده ما رواه الدار قطني لا ضمان على مؤتمن**) وجه داده.چه ضمان يا خو په قصد سره د هلاكيدلو په وجه واجبيږي.يا د عقد په وجه واجبيږي.او دلته په دې دواړو خبرو كي يوه هم نه ده موجود شوې.تعدي ( قصدا) خو ځكه نشته.چه اجير تـه د مستاجر په اجاره سره قبضه حاصل شوې وه.اود عقد په وجه ضمان ځكه نشي كيدې.چه عقد واردېدل عمل باندې دې.په مال عين باندې نه دې.نو مال عين مضمون بالعقد نشي كيدې.هم دا وجه ده.كه دا شئ په داسې سبب سره هلاك شي.چه هغې نه بچكيدل ممكن نه دې.نو اجير بالاتفاق نه ضامن كيږي.كه مذكوره مال دده سره ضمانت كي وو.نو دې به ضرور ضامن كيدلو.

| وقالا يَضْمَنُهُ |
|---|

**تشريح>مذهب الصاحبين>** د صاحبينو رحمهما الله او امام مالك رحمه الله په نيز او په يو قول كي د امام شافعي رحمه الله په نيز به ضامن وي.په هدايه كښې يې د دوى د مذهب مزيد وضاحت داسې كړې دې البته كه دا شئ په يو داسې سبب سره هلاك شي.چه ددې نه بچكيدل ممكن نه وي.لكه دده پخپل مرګ مركيدل.يا اور لګيدل، يا د قاتل دښمن چور كول او بربادول وغيره.

**دلائلهما>** ① دليل دادې.چه حضرت عمر او حضرت علي رضي الله عنهما دواړو به صائغ او صباغ ( يعنى زرګر،او كپړه رنګ كونكي) نه ضمان اخستلو.لكه چي حافظ بيهقي رحمه الله په طريق د امام شافعي رحمه الله د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت كړې دې. (**أنه كان يضمن الصباغ والصائغ وقال لا يصلح للناس إلا ذالك**).([2])

② دا د صاحبينو رحمهما الله عقلي دليل دې.چه د اجير په ذمه ساتنه كول واجب دي.ځكه چي هغه د ساتنه نه بغير كار نشي كولې.ګويا چي ساتنه هم معقود عليه دې.او عقد معاوضه د معقود عليه د سلامتيا تقاضه كوي.نو كله چي مال عين په داسې سبب سره ضائع شي.چه د هغې نه بچكيدل ممكن وي.لكه

---

[1] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٣\٢٦) ومجمع الأنهر(٣\٥٤٥) ورد المحتار(٥\٤٥) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٣٤)

[2]) أما رواية علي رضي الله عنه فاخرجه البيهقي في السنن الكبرى (٦\٢٠٢) رقم ١١٦٦٦)وأما رواية عمر رضي الله عنه فاخرجه البخاري في الإجارة باب ١٢)۔

غلا او غصب وغيره.نودا به د اجير د اړخه کمی او بې پرواهي وی.نو ضامن به وی.البته که په داسې سبب سره هلاك وی.چه د هغې نه بچکيدل ناممکن وی.مثلاً کړبه ( شپونکی ) سره وزه پخپل مرګ مړه شود.يا په عامه توګه (عام طور) باندې اور اولګيدلو.يا ډاکه پريوتله.نو په دې صورت کې به ضامن نه وی.ځکه چې اوس د اجير د اړخه هيڅ بې غوری ( او بې پرواهي ) نشته.

**الجواب عنه>** ددې جواب دا دې.چه د ساتنه واجبيدل تبعاً دی.قصداً نه دی.ځکه چې د عقد واردیدل د اجير مشترك په عمل باندې دی. ساتنه معقود عليه نه دې.نو ساتنه اصلی مقصود نه دې.بلکه هغه چونکه د عمل قائمولو وسيله ده.په دې وجه تبعاً مقصود ده.په دې وجه د ساتنه په مقابله کې هيڅ اجرت نه وی.په خلاف د هغه سړی چې هغه ته وديعت اجرت باندې ورکړې شوې وی.چه هغه باندې ساتنه قصداً واجب دې.تردې چې ددې په مقابله کې اجرت وی.

**خلاصه د بحث>** د اجير مشترك په ضامن کيدلو کې د صحابه کراموﷺ اختلاف دې.د بعضو په نيز ضامن کيږی.اود بعضو په نيز نه ضامن کيږی.بلکه داسې هم ده.چه د يو سړی نه مختلف روايات رانقل دی.لکه دحضرت علی ﷺ نه چې ځنګه د اجير مشترك ضامن کيدلو روايت دې.هم ددوی نه عدم ضمان هم رانقل دې.په دې وجه بعضو متاخرينو فقهاؤ دا فتوی ورکړې ده.چه اجير او مستاجر دواړه چې په کوم مقدار باندې غواړی.خپل مينځ کې دې صلح اوکړی.فقيه ابوالليث ﷺ ذکر کړی دی.چه فتوی د ابو حنيفه ﷺ په قول ده.تاج الشريعه، شيخ مرغينانی او قاضی خان ﷺ به هم په دې فتوی ورکوله.خو علامه زيلعی ﷺ وغيره فرمائيلی دی.چه نن سبا فتوی د صاحبينو ﷺ په قول ده.ځکه چې د خلقو حالات بدل شوی دی.او د مالونو ساتنه هم په دې سره کيږی.چه د اجير نه ضمان واخستلې شی.د ائمه ثلاثه ﷺ قول هم دادې.

**د اجير مشترك په عمل سره د هلاك شوی څيز د ضمان حکم**

(وَمَا تَلِفَ بِعَمَلِهِ،او کوم چې ضائع شی.د اجير په عمل سره.كَتَخْرِيقِ الثَّوْبِ مِنْ دَقِّهِ،لکه د کپړې شليدل ( د هوبی ) په رابرولو( يا وهلو) سره، وَزَلَقِ الْحَمَّالِ د قلی (بار اوړونکی ) خوئيدل،وَانْقِطَاعِ الْحَبْلِ الَّذِي يَشُدُّ بِهِ الْمُكَارِي الْحِمْلَ د هغه رسئ شليدل په کوم کې چې کرايه والا بوج تړی.وَغَرَقِ السَّفِينَةِ مِنْ مَدِّهَا مَضْمُونٌ). او د کشتئ ډوبيدل ، دده په راخکلو سره.ددې تولو څيزو به تاوان وی.

**حل الغة:** **تلف(س) تلفاً:** بربادیدل، ضائع کيدل. **تخريق:** شلول **دق:** رابرول، وهل. **زلق (س):** خوئيدل. **حمال:** قلی ، بوج اوچتونکې. **حبل:** رسئ. **يشد شداً:** تړل. **مكارى:** څاروی په کرايه باندې ورکونکې، **حمل:** بوج، **سفينة:** کشتئ. **مد:** راخکل.

**تشريح> حكم المتلف بعمل الاجير>** کوم شئ چې د اجير مشترك په عمل سره ضائع شی.هغه به ددې ضامن وی.ل که د دهوبی په رابرولو سره کپړه او شليږی.يا د مزدور په خوئيدلو ، يا په کومه رسئ چې بوج تړلې شوې وو.د هغې په شليدلو سره مال ضائع شی.يا د کشتی بان ( مانړګی ) په غلطه طريقه کشتئ راخکلو سره کشتئ ډوبه شی.او ‹مال غرق شی.نو په دې ټولو صورتونو کې به اجير مشترك ضامن وی.امام مالك، امام احمد ، او ابن ابی ليلی ﷺ هم ددې قائل دی.اوداً د حضرت عمر،حضرت عبيدالله بن عتبه ﷺ، اود قاضی شريح، حسن، او حکم ﷺ نه هم نقل دی. ([1])

[1] **مذهب الشافعي:** -د امام زفر او امام شافعی ﷺ په نيز به ضامن نه وی.دا د حضرت عطاء او طاؤس ﷺ

**دليله** دليل دادې چه اجازت کې هغه عمل داخليږي. ...م چې عقد کې داخل وی.او هغه عمل صالح دې.مفسد عمل نه دې.ځکه چې عين شئ کې دده د فعل اثر کوم چې په حقيقت کې معقود عليه دې.هغه د عمل صالح په ذريعه حاصليږي.مثلاً کپړ: کې د دهوبي يا رنګ يا د بوټو اثر به هغه وخت پيدا کيږي.کله چې کار په ټيک طريقه وی.او هم دا اثر په حقيقت کې معقود عليه دې.تردې که دا اثر د اجير نه د علاوه په فعل سره حاصل وی.مثلاً درزی کپړه په بل چا اوګنډله.يا رنګ کونکی کپړه په بل چا رنګ کړله.نو اجرت واجبيږي.( په دې شرط چې پخپله د کار کولو شرط نه وی لګولې شوی).معلومه شوه.چه خرابونکې کار په اجازت کې داخل نه دې.

(اِلَّا اَنَّهُ لَایَضۡمَنُ بِهٖ بَنِی اٰدَمَ خو هغه سړي به ضامن نه وی. فَمَنۡ غَرِقَ فِی السَّفِیۡنَةِ کوم چې کشتئ کې غرق شی. اَوۡسَقَطَ مِنَ الدَّابَّةِ يا د کرايئ سوارلئ نه راپريوځی.(او مړشی ) لَمۡ یَضۡمَنۡ نو نه به ضامن کيږي

**تشريح صورة استثنائية** دا د مخکنی قول(وماتلف بعمله...... مضمون عليه) نه استثناء ده.مطلب دادې.که د اجيرمشترك په فعل سره څه هلاك شی.نو هغه به ضامن وی.خو صرف د مال به ضامن وی.د انسان ضامن به نه وی.نو که کشتی بان ( مانړګی ) بې طريقې کشتئ راخکله.او په دې کې څوك غرق شو.يا د کرايئ سوارلئ نه راپريوتلو.او مړ شو.نو اجير باندې به دده د نفس تاوان نه وی.

**دليله** ځکه چې د نفس تاوان د عقد په وجه نه واجبيږي.بلکه د قتلولو يا زخمی کولو جرم سره واجبيږي.په دې وجه دا تاوان د قاتل عاقله ( مددګار خاندان) باندې راځی.او کوم تاوان چې د عقد په وجه واجب وی.هغه عاقله نه برداشت کوی.

**القول المرجوح** بعض حضرات فرمائی.دا د هغه کس په باره کې دی.څوك چې سوارلئ باندې پخپله سور شی.او د سوارلئ په شا باندې ښه مضبوط کينی.که ډير ورکوټې ماشوم وی.چه هغه پخپله نشی کيناستلې.نود هغه حکم د سامان پشان دې.خو صحيح داده.چه د لوئې او د وړوکی هيڅ فرق نشته.په هرصورت کې به اجير د انسان ضامن نه وی.ابن سماعه د امام ابويوسف رحمه الله نه هم داسې روايت کړې دې.

## د ډاکټر دعلاج په وجه د بيمار يا د څاروی د ضمان حکم

(وَاِذَافَصَدَالۡفَصَّادُ دزخمونو علاج کونکی ( ډاکټر) رګ کلاؤ کړو. اَوۡبَزَغَ الۡبَزَّاغُ يا د څارو معالج (ډاکټر) (څاروی ته) داغ اولګولو .وَلَمۡ یَتَجَاوَزِ الۡمَوۡضِعَ الۡمُعۡتَادَ او د خپل زخمی ( معتاد) ځائې نه زيات نشو.فَلَا ضَمَانَ عَلَیۡهِمَا فِیۡمَا عَطِبَ مِنۡ ذٰلِكَ نو په ده باندې تاوان نشته.د هغې کوم چې په دې سره هلاك شی. وَاِنۡ تَجَاوَزَهٗ ضَمِنَ اوکه تجاوز يې اوکړو نو تاوانی کيږي به

**تشريح حکم عطب الحيوان بعلاج المعالج** يو جراح ( د زخمونو علاج کونکی ) د يو کس رګ کلاؤ کړو.ياد څارو علاج کونکی د څاروی په رګ کې داغ اولګوله.او کوم ځائې چې داغ لګولې شی.د هغې نه زيات نشو.نو ددې په وجه چې کوم هلاکت وغيره راپيښ شی.د هغې به ضامن نه وی.

**دليله** د فصاد او بزاغ ( د زخم علاج کونکی او څارو ته د علاج لپاره د داغ لګونکی ) په ذکر شوی

---

نه هم نقل دی.

عمل سره د نه ضامن کيدلو وجه داده.چه زخم د زياتيدلو نه بچ کول دده د امکان ( او طاقت) نه بهر دي.خکه چې دا د طبيعتونوپه قوت او کمزورۍ باندې مبنی دی.بعض طبيعتونه په تکليف او سختۍ برداشت کولو کي قوی او مضبوط وی.او بعض کمزوری وی.نود صحيح کار قيد لګول ممکن نه دی.

**فائده>** دلته يوه عجيبه مسئله ده.او هغه دا که ختنه کونکی نائی حشفه کټ کړله.او مختون ( سنت کړې شوې) ښه شو.نو په نائی باندې د پوره نفس ديت واجبيږی.لکه څنګه چې په ژبې پرې کولو کې دی. او که هغه مړشو.نو نصف ديت به واجب وی.شمس الائمه سرخسی رحمه الله پخپل مبسوط کې د امام محمد رحمه الله د نوادر په حواله ددې دا وجه ذکر کړې ده.چه کله هغه ددې نه ښه شو.نو نائی باندې به د حشفه تاوان لازم وی.او حشفه يو داسې مقصود اندام دې.چه د بدن په اندامونو کې ددې هيڅ بدل نشته.نو ددې د عوض اندازه به نفس سره کولې شي.لکه څنګه چې ژبه کټ کولو کې کيږی.او کله چې هغه ددې نه مړ شو.نود نفس هلاکيدل په دوه فعلونو ( او حرکتونو) سره موجود شو.چه په دې کې يو کې دده اجازت دې.يعنی څرمن کټ کول.او دوئم فعل مضمون دې.يعنی حشفه پريکول. (فعليه نصف بدل النفس كذالك)(بنايه)

## د اجير خاص احکام

| |
|---|
| (وَالْأَجِيرُ الْخَاصُّ الَّذِي يَسْتَحِقُّ الْأُجْرَةَ او اجير خاص هغه دې.چه د اجرت مستحق کيږی. بِتَسْلِيمِ نَفْسِهِ فِي الْمُدَّةِ وَإِنْ لَمْ يَعْمَلْ خپل ځان ( د اجارې) په موده کې حاضرولو سره.اګر چې اوس ئې کار نه وی کړې. كَمَنْ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا شَهْرًا لِلْخِدْمَةِ أَوْ لِرَعْيِ الْغَنَمِ)لکه ( مثلاً) په مزدورۍ ئې واخستلو.يوکس د يومياشت خدمت دپاره.يا د چيلو څرولو دپاره. |

**تشريح>الاجير الخاص>** دوئم قسم اجير خاص دې.چه دې پخپله خپل ځان د عقد په موده کې پيش کولو سره د اجرت مستحق کيږی.که دده نه مستاجر کار اخستې وی.او که نه وی.لکه هغه سړې چې د يو مياشت پورې ئې د خدمت دپاره،يا د چيلو څرولو لپاره نوکر ساتلې وی.

**وجه التسمية وعلة الاجر**:اجير خاص ته اجير وحد هم وائی.ځکه چې دا د بل کس کار نشی کولې.ځکه چې په مقرره موده کې دننه دده پوره منافع هم ددې يو مستاجر مستحق شو.او پوره اجرت هم ددې منافعو په مقابله کې دې.په دې وجه ته د اجرت استحقاق وی.اګرچه کار مات کړې شی.په خلاف د اجير مشترك،که د مستاجر د قبضه کولو نه وړاندې کار مات کړې شو.نو هغه د اجرت نه مستحق کيږی.لکه د امام محمد رحمه الله نه نقل دی.که درزی د يو کس کپړه په يو درهم اجرت باندې اوګنډله.بيا د مالك قبضه کيدلو نه وړاندې يوکس ګنډل وران کړل.نو درزی به د اجرت مستحق نه وی.او په يو خاص نوکر ( اجيرخاص) باندې ئې اوګنډله.بيا مالك يا بل چا ګنډل خراب کړل.نو نوکر به د اجرت مستحق وی.

| |
|---|
| (وَلَا ضَمَانَ عَلَى الْأَجِيرِ الْخَاصِّ فِيمَا تَلِفَ فِي يَدِهِ او ضمان نه وی.اجير خاص باندې، دهغې کوم چې هلاك شی دده سره. وَلَا فِي مَا تَلِفَ مِنْ عَمَلِهِ)او نه د هغې کوم چې هلاك شی.دده په عمل سره. إِلَّا أَنْ يَتَعَدَّى فَيَضْمَنُ مګر دا چې دې تعدی اوکړی يعنی قصدا هغه څيز هلاك کړی نو په دې صورت کښې به اجير ضامن کيږی |

**تشريح>حکم الاجير الخاص>** د اجيرخاص حکم دادې.که شئ دده په قبضه کې هلاك شی.مثلاً دده نه غلا

شي.يا ورك شي.يا ني ځوك په زبردستئ واخلي.يا دده په عمل ( او حركت) سره ضائع شي.مثلاً بيلچه يا پهاوړا سځكوره ماته شوه.يا د دهوبي نه كپړه اوشليدله.يا غوښه په پخولو كي خرابه شوه.دوړئ اوسوزيدله.نو په دواړو صورتونو كي به هغه ضامن نه وي.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دي.[1]

**وجه عدم الضمان بالهلاک في قبضة الاجير الخاص** > كه د اجير خاص په قبضه كي مال عين هلاك شي.نود نه ضامن كيدلو وجه داده.چه مال دده په قبضه كي امانت دې.ځكه چې دده د مستاجر په اجازت سره په دې باندې قبضه كړې ده.او امين بلا تعدى نه ضامن كيږي.علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلي دي چه دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز خو ښكاره دې.تردې چې د دوى په نيز اجير مشترك نه ضامن كيږي.دغه شان د صاحبينو رحمهما الله په نيز هم دا حكم دې.ځكه چې د دوى په نيز اجير مشترك ضامن ګرځول يو قسم استحسان دې.چه د خلقو مالونه محفوظ شي.ځكه چې هغوى د مياشتو شيان اخلي.اود زيات اجرت حاصلولو په غرض سره كار كوى.او په ساتنه كي اكثر بې پرواهي كوى.په دې وجه استحساناً ضامن كړې شو.چه مالونه په ساتنه پاتې شي.په خلاف د اجيرخاص،چه هغه د بل چا كار نه قبلوى.نو په دې كي ساتنه او سلامتيا غالب ده.نو دده په حق كي به اصل قياس اختسلې شي.چه هغه ضامن نه دې.

**وجه عدم الضمان علي الجير الخاص بالهلاک بعمله** > او كوم شئ چې د اجيرخاص عمل ( او حركت سره هلاك شي.هغې كي د عدم ضمان وجه داده.چه كله منافع د مستاجر مملوك شوې.او مستاجر ده ته پخپل ملك كي د تصرف حكم وركړو.نو دده حكم وركول صحيح شو.اوس هغه د مستاجر قائم مقام شو.او دده فعل مستاجر ارخ ته منتقل شو.ګويا مستاجر دا كار پخپله كړې دې.نو مستاجر د اجير خاص نه تاوان نشي اخستلې.

**وجه الضمان في صورة التعدى** > البته كه اجير په قصد سره هغه ځيز هلاك كړي كوم چې ده ته په اجاره وركړې شوې وي نو په دې صورت كښې په ده باندې ضمان او تاوان شته ځكه چې تعدى د ده د طرفه شوې ده نو ضمان به پرې راځي.

| (الْإِجَارَةُ تُفْسِدُهَا الشُّرُوطُ كَمَا تُفْسِدُ الْبَيْعَ)شرطونه اجاره فاسده وي.لكه څنګه چې بيع فاسده وي. |
|---|

**تشريح** > **فساد الاجارة بالشروط الفاسدة** > اجاره چونكه په منزله د بيع ده.په دې وجه كومو شرطونو سره چې بيع فاسديږي.هغې سره اجاره هم فاسديږي.لكه شرط لګول، چې كور اوغورزيږي.بيا به هم كرايه نه ساقطيږي.يا د جرندې اوبه بندې شي.بيا به هم اجرت لازم وي.دغه شان هغه شئ په كوم نې چې اجاره كړې ده.يا د اجرت يا مودې يا د عمل مجهول كيدل وغيره.دې ټولو ځيزونو سره اجاره فاسديږي.او اجرت مثل به واجب وي.خود مسمى نه به زيات نشي وركولې.

**دليله** > ځكه چې اجاره په منزله د بيع ده.آيا نه ګورې چې دا هم اقاله او فسخ كولې شي.لكه څنګه چې په بيع كښې اقاله او فسخ كولې شي

---

[1] **مسلک الشافعي**:-او د امام شافعي رحمه الله په دې باره كي دوه قوله دي.يو دا چې د اجير مشترك پشان به اجيرخاص هم ضامن وي.ددوى منصوص قول هم دادې.كوم چې حليه كي ذكر دې.او بعضو شوافعو وئيلي دي.او په بل قول كي به ضامن نه وي.بيا عدم ضمان هغه وخته پورې دې.چه قصداً نې نه وي كړې.اوكه په قصد سره داسي كړې وي.نود مستودع پشان به بلا خلاف ضامن وي.

## د خدمت لپاره اخستې غلام په سفر کښې د بيولو (بوتللو) حکم

(وَمَنْ اسْتَأْجَرَعَبْدًالِلْخِدْمَةِاو چاچه اجاره باندې غلام واخستلو.چه دده نه خدمت واخلی.فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُسَافِرَبِهِ إِلَّاأَنْ يَشْتَرِطَ عليه ذَلِكَ فِى العقد)نو هغه په سفر کې نشی بوتللې. خودا چې هغه په ده باندې په عقد کښې د دې شرط اوکړی.

**تشريح> عدم جوازالسفربالعبد المستاجر للخدمة >** کوم غلام نې چې د خدمت لپاره نوکر ساتلې وی.هغه خپل خان سره سفرکي نشی بوتلې.

**دليله >** خکه چې د حضر( اقامت) په لحاظ سره سفر کي مشقت زيات وی.نو مطلق عقد به دې ته گډ نه وی.په دې وجه سفر د اجارهٔ فسخ کولو عذر گرخولې شوې دې.تردې که حضر کي نې خدمت لپاره اجاره باندې واخستلو.بيا سفر راپيښ شو.نو اجاره ختمولې شی.نو سفر کي د بيولو (بوتللو) شرط کول ضروری دې.لکه څنگه چې د کور په کرايه کې د اهنگر (لوهار) يا دهوبی ساتلو شرط کول ضروری دې.

## د کيجاوې او دوه سړو سوارولو لپاره د اوښ په کرايه د اخستلو حکم

(وَمَنْ اسْتَأْجَرَجَمَلًايو کس يو اوښ اجاره باندې واخستلو.لِيَحْمِلَ عَلَيْهِ مَحْمَلًاوَرَاكِبَيْنِ إِلَى مَكَّةَ چې په دې باندې يوه کيجاوه او دوه سوارلۍ کينوی.او مکې پورې لاړ شی.جَازَنودا جائز دی.وَلَهُ الْمَحْمَلُ الْمُعْتَادُ)او مستاجر ته به د عامې کيجاوې ايخودلو اختيار وی.

**تشريح> استيجار البعير للحمل >** يوکس يو اوښ مکې پورې د کيجاوې بار کولو اود دوه سړو سوارولو لپاره اجرت باندې واخستلو. نواستحساناً جائز دی. [1]

**دليله >** او وجه د استحسان داده.چه اصل مقصود خو سوارلۍ ده.او هغه معلوم ده.يعنی د خلقو بوج تقريباً برابر وی.پاتې شوه کيجاوه نو هغه تابع ده.او ددې په اوگدوالی او پلن والی وغيره کې جهالت دې.نو دا په عامو کيجاوو باندې محمول کولو سره لرې کيدې شی.نو جگړې ته به نوبت نه رسيږی.دغه شان که بستره او د اغوستلو پټو (څادر) وغيره نې نه وی خودلې.بيا هم اجاره جائز ده.اوکه اوښ والا دا شيان اوگوری.نو نوره هم بهتره ده.

(وَإِنْ شَاهَدَالْجَمَّالُ الْمحمل اوکه د اوښ والا کيجاوه اوکتله.فَهُوَأَجْوَدُ)نودا زياته بهتره ده.

**تشريح> استحباب الشهود >** اوکه د اوښ مالك بار اوليدلو چې دا بار او بوج به اوړی نو دا به ډير بهتره وی

**دليله >** دليل دا دې چې کله يې په خپلو سترگو باندې اوليده نو په دې سره جهالت پوره شو. د جگړې پيدا کيدو ويره به ختمه شی او د اوښ مالك به پرې زړ راضی شی.

(وَإِنْ اسْتَأْجَرَبَعِيرًالِيَحْمِلَ عَلَيْهِ مِقْدَارًامِنَ الزَّادِکه يو اوښ نې د لارې د خوراك څکاك د سامان يو مقدار لپاره اجاره باندې واخستلو.فَأَكَلَ مِنْهُ فِى الطَّرِيقِ بيا نې لاره کې ددې مقدار نه څه

---

[1] **مذهب الشافعي؛**- نودا د قياس په رو سره جائز نه دی.امام شافعی او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی.

خکه چې د اوگدوالی ، پلنوالی ، درُندوالی او سپکوالی هر اعتبار سره معقود عليه مجهول ده.او دا داسې جهالت دې.چه دا بعض وختونو کې جگړې پورې رسوی.خو

اوخوړل. جَازَلَهُ أَنْ يَرُدَّ عِوَضَ مَا أَكَلَ )نو خومره ئې چې خوړلی دی.هم په هغه اندازه زیاتول جائز دی.

**تشریح>حکم الاکل من الزاد>** زید د توښې ( د لارې د خوراك څكاك د څيزونو) يو معين مقدار اوچتولو لپاره يو اوښ اجرت باندې واخستلو.بيا ئې په لاره کې څه توښه اوخوړله.نو دومره توښه نوره زياتولې شي.

**دليله>** خکه چې هغه په پوره لاره کې د معين مقدار اوچتولو حقدار دی.امام شافعي رحمه الله او په يو قول کې امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دی.ددوی دوئم قول دادې.چه د عرف اعتبار به کولې شي.نو که ددې رواج وی.جائز به وی.کنې جائز به نه وی.امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلی دی.چه دتوښې نه علاوه بل څه کيلی يا وزنی شئ وی.نو هغې کې هم دا حکم دې.

**په شرط تعجيل او تعجيل بغيرشرط.او په استيفاء**

**د معقود عليه سره د اجرت د استحقاق حکم**

وَالْأُجْرَةُ لَا تَجِبُ بِالْعَقْدِ وَتُسْتَحَقُّ بِأَحَدِ ثَلَاثَةِ مَعَانٍ :بلکه مستحق کيږی.په دريو خبرو کې په يوې خبرې سره.إِمَّا بِشَرْطِ التَّعْجِيلِ،د پيشگئ ( فوراً ) ور کولو په شرط سره، أَوْبِالتَّعْجِيلِ مِنْ غَيْرِشَرْطٍ،يا د پيشگی ور کولو د ش زرط نه بغير، أَوْبِاسْتِيفَاءِالْمَعْقُودِعَلَيْهِ)يا د معقود عليه په حاصلولو سره.

**تشريح>استحاق الاجرة باحد ثلاثة معان>** زمونږ.او د امام مالك رحمه الله په نيز د نفس عقد په ذريعه د اجرت استحقاق نه کيږی.خکه چې حکم د عقد د منفعت د وجوب نه روسته ښکاره کيږی.او په اجاره کې د عقد کولو په وخت منفعت نه موجود کيږی. نو په نفس عقد سره د اجرت مستحق کيدلو هيڅ معنی نشته.په دې وجه به اجرت امر آخر سره مقيد وی.اودا په يو څو خبرو کي يوه ده.

**مسلك الاحناف** رحمهم الله ① مستاجر پخپله اجرت پيشگی ورکړی.نو اوس اجرت واجبيږی.مطلب دا چې مستأجر ئې واپس نشی اخستلې. ② د اجرت پيشگی ( ايډوانس) اخستلو شرط وی.په دې سره هم د اجرت مستحق کيږی.خکه چې نفس عقد سره د اجرت مستحق کيدلو هيڅ مطلب نشته.په دې وجه به اجرت امر

آخر سره مقيد کيږی.او هغه په يو څو خبرو کي يوه ده. ③ استيفاء د معقود عليه يعنی مستاجر پوره منفعت حاصل کړی.په دې صورت کي هم د اجرت استحقاق کيږی.خکه چې اجاره عقد معاوضه ده.او په دې دواړو کي چې کله برابری ثابت شی.نو اجرت به واجبيږی. ④ مستاجر په پوره منفعت حاصلولو باندې قادر شی.خکه چې په يو شئ باندې قبضه بعينه ددې شئ قائم مقام جوړيږی.نو گويا مستاجر پوره نفع حاصل کړله.بيا که د مستاجر نه دا شئ غصب کړې شو.نو اجرت به ساقطيږی.خکه چې مذکوره قبضه فوت شوه.[1]

---

[1] **مذهب الشافعي:**- دامام شافعي او امام محمد رحمهما الله په نيز صرف عقد سره د اجرت ملکيت ثابتيږی.خکه چې معدوم منافع حکماً بالفعل موجود منلی شوی دی.چه اجاره صحيح شی.په دې وجه وجه اجاره په اجرت مؤجله سره صحيح کيږی.که منافع معدومه موجود او نه منلې شی.نو تاخير سره اجرت ادا کولو په صورت کي به قرض د قرض په بدله کي شی.چه دا حرام دی.او هرکله چې دا حکماً بالفعل موجود شو.نود عقد په ذريعه د ملك ثبوت ضروری دې.خکه چې مقتضی موجود او مانع منتفی دې.نو ددې په مقابل چې کوم

**دليله>** دليل دادي.چه عقد اجاره په لړه لړه د منافع د حدوث موافق منعقد كيږي.او اجاره يو عقد معاوضه ده.چه دا د دواړو اړخه د برابرئ تقاضه كوي.نود منفعت په اړخ كي تاخير كيدلو سره د اجرت په اړخ كي تاخير كول هم ضروري دي.او هركله چي منفعت حاصل كړي شو.نو په اجرت كي به هم ملك حاصليږي.چه د دواړو اړخه برابري ثابت شي.كه د فوري ( پيشگي ) اجرت شرط ني لګولي وي.يا ني د شرط نه بغير حواله كړي وي.بيا به هم ملك حاصليږي.اګرچه اوس منافع نه وي حاصل كړي.ځكه چي مساوات د حق مستاجر كيدلو په وجه ثابت شوي وو.كوم چي ده پخپله باطل كړو.

| (وَمَنْ اسْتَأْجَرَدَارًا چي يو كور په كرايه واخستلو. فَلِلْمُؤَجِّرِأَنْ يُطَالِبَهُ بِأُجْرَةِ كُلِّ يَوْمٍ)نو موجر ته به هره ورځ د اجرت د مطالبي اختيار وي. |
|---|

**تشريح> جواز اجرة كل يوم في استيجار الدار>** كه په عقد اجاره كي د تعجيل يا تاخير قيد نه وي.نو موجر روزانه د كور او زمكي د كرايه مطالبه كولي شي.دغه شان د اوښ والا هر مرحله باندي د اجرت د مطالبي حقدار دي.

**دليله>** ځكه چي د هري ورځي اوسيدل او د هر منزل مسافه پوره كول مقصود كي داخل دي.او مستاجر دومره منفعت حاصل كړو.

| (إِلَّاأَنْ يُبَيِّنَ وَقْتَ الإِسْتِحْقَاقِ فِي الْعَقْدِ)خودا چي په عقد كي ئي د استحقاق وخت بيان كړي وي. |
|---|

**تشريح> صورة عدم جوازمطالبة الاجر>** البته كه مستاجر په عقد اجاره كي د استحقاق څه وخت بيان كړي وي.نو مطالبه به هم په دغه وخت باندي كولي شي.لكه څنګه چي قرضه كي د في الحال مطالبي اختيار وي.خو كه قرضخواه مهلت وركړي.نود مقرره وخت نه وړاندي د مطالبي اختيار نه وي.دغه شان دلته كي هم دي.

**د كرايئ د اوښ د هر مرحلي د كرايه د مطالبي حكم**

| (وَمَنْ اسْتَأْجَرَبَعِيرًاإِلَى مَكَّةَ چاچه په كرايه باندي اوښ واخستلو.مكي پوري. فَلِلْجَمَّالِ أَنْ يُطَالِبَهُ بِأُجْرَةِ كُلِّ مَرْحَلَةٍ)نو اوښ والا د هرمنزل كرايه طلب كولي شي. |
|---|

**تشريح> جواز مطالبة الاجرة عند كل مرحلة>** نفس مسئله آسانه ده البته دليل يې دا دي چي د هر يو منزل مسافت پوره كول مقصود دي نو ځكه تري اجير د هر منزل په اختتام سره د اجرت مطالبه كولي شي

| (وَلَيْسَ لِلْقَصَّارِوَالْخَيَّاطِ أَنْ يُطَالِبَ بِالأُجْرَةِ اود دهوبي او درزي لپاره د اجرت د مطالبي حق نه وي. حَتَّى يَفْرُغَ مِنَ الْعَمَلِ)تردي چي فارغ شي د كار نه. |
|---|

**تشريح> عدم جواز مطالبة الاجرة قبل الفراغ من العمل للقصار>** دهوبي او درزي به د اجرت مطالبه هغه وخت كوي.كله چي هغه د عمل نه فارغ شي. يعني دهوبي كپړه اووينځي.او درزي كپړه وركړي.دا نشي كيدي.چه مثلاً د كوټ يو لستوڼي اوګندي.او درزي د اجرت مطالبه اوكړي.ځكه چي كوټ كي خالي د لمني ګنډل ګټور نه دي.

| (إِلَّاأَنْ يَشْتَرِطَ التَّعْجِيلَ)خودا چي وړاندي ني شرط لګولي وي. |
|---|

---

عوض يعني اجرت دي. هغي كي به هم حكم ثابتيږي.په دي وجه د منفعت د استيفاء نه وړاندي د اجرت نه بري كول بالاجماع صحيح دي.

**تشریح> الجواز عند اشتراط التعجیل>** دغه شان که درزی یا دهوبی د مستاجر په کور کې کیناستلو.او کار نې اوکړو.بیا هم د فراغت نه وړاندې هغه د اجرت نه مستحق کیږی.
**دلیله>** د مذکوره دلیل په وجه.چه په بعض جزء کې عمل کیدل غیرمفید دی.د مستاجر په کور کې د کیناستلو او د کار کولو بیان ځکه دې.چه هرکله دده په کور کې کیناستلو.او کار نې اوکړو.نودا کار پیوسته مستاجر ته سپارلې کیدلو.نو احتمال وو.چه هرکله مستاجر ته کار اوسپارلې شو.نو اجیر ددې د اجرت مستحق شو.خو هغه د اجرت مطالبه ځکه نشی کولې.چه لا تر اوسه دده عمل د څه فائدې ور کولو نه دې.کله چې پوره نشی.
**تنبیه>** په نهایه او کفایه وغیره کې دی.چه مذکوره حکم ( د کار نه د فارغ کیدلو نه وړاندې به د اجرت نه مستحق کیږی ).د عامو روایاتو کتابونه مبسوط، ذخیره، مغنی ، فخرالاسلام، قاضی خان، او د تمرتاشی شرح، د جامع صغیر، او فوائد ظهیریه خلاف دی.لکه په مبسوط کې دی. ‹‹لواستاجرخیاطاً یخیط له فی بیت المستاجر قمیصاً و خاط بعضه فسرق الثوب فله الأجر بقدر ما خاط فإن کل جزء من العمل یصیر مسلماً إلی صاحب الثوب بالفراغ و لا یتوقف التسلیم فی ذالك الجزء علی حصول کمال المقصود›› ، کـه یـو کس درزی ددې کار لپاره په اجرت باندې اونیولو.چه هغه به د مستاجر په کور کې قمیص ګنډی.نو هغه لږ قمیص ګنډلې وو.چه کپړه غلا ( پټه) شوه.نو ده چې څومره قمیص ګنډلې وو.د هغې د اجرت به مستحق وی.ځکه چې د هر جزء نه په فراغت باندې کار د کپړې مالك ته اوسپارلې شو.او ددې جزء کار سپارل، په پوره مقصود حاصلیدلو باندې موقوف نه دی ، ،دغه شان په قاضی خان کې دی. ‹‹ولهذا لواستاجرخیاطاً لخیط له فی منزلة کلما عمل عملاً یستحق الأجرة بقدرة›› او د ذخیره په فصل ثانی کې دی. ‹‹وفی الإجارة التی تنعقد علی العمل ویبقی له أثر فی العین لا یجب علیه أیضاً الأجر إلا بعد إیفاء العمل کله إلا أن یکون العمل للخیاط و الصباغ فی بیت صاحب المال یکون الجواب فیه کالجواب فی الجمال علی قوله الآخر یجب علی المواجر إیفاء الأجر بقدر ما استوفی من المنفعه.... ››
خو په تجرید کې ددې مسئلې حکم داسې ذکر دې.لکه څنګه چې دلته په کتاب کې ذکر دې.نو ممکن دد.چه امام قدوری رحمه الله په دې حکم کښې د صاحب تجرید ابوالفضل کرمانی رحمه الله اتباع کړې وی.نن صباد فتوی زیات موافق هم داحکم دې.

**نان بائی د اجرت کله مستحق کیږی؟**

| وَمَنْ اسْتَأْجَرَ خَبَّازًا چا چې په اجرت باندې نان بائی واخستلو. لِيَخْبِزَ لَهُ فِي بَيْتِهِ قَفِيزَ دَقِيقٍ بِدِرْهَمٍ چې هغه دده لپاره دده په کور کې ډوډئ پخې کړی.د یو قفیز اوړو نه په یو درهم باندې، لَمْ يَسْتَحِقَّ الْأَجْرَ نو هغه به د اجرت نه مستحق کیږی. حَتَّى يُخْرِجَ الْخُبْزَ مِنْ التَّنُّورِ اتردې چې راوباسی ډوډئ د تنور نه. |
|---|

**حل اللغة> خباز**: نان بانی ، **خبز( ض) خبزاً**: ډوډئ پخول، **قفیز**: د( ناپ تول د) یوې پیمانې نوم دې، **دقیق**:اوړه،

**تشریح> عدم استحقاق الاجرة في مسئلة التخبیز>** ددې قول مقصد دا بیانول دی.چه د عمل نه فراغت د کوم امر په ذریعه کیږی.مسئله داده.چه یو سړی د روټو پخولو والا ددې لپاره اجیر کړو.چه هغه زما په کور کې کینی.او یو قفیز اوړه د یو درهم په عوض پاخه کړی.
**دلیله>** ځکه چې په خالی تنور کې ډوډئ لګولو سره د اجیر کار نه پوره کیږی.بلکه کله چې ډوډئ اولګوی.اود تنور نه نې راوباسی.بیا به کار پوره کیږی.او اوس به هغه د اجرت مستحق وی.دا هغه

وخت دی.کله چې دودئ صحيح سلامت د تنور نه راوباسي.او که هغه تنور کې اوسوزيدلې.يا د راوښکلو نه وړاندې د هغه د لاسه په اور کې پريوتلې.نو هغه لپاره به هيڅ اجرت نه وی.ځکه چې سپارلو نه وړاندې د هلاکيدلو په وجه دده عمل ضائع شو.مبسوط کې دی.چه د روټو پخولو والا به ددې مال هم ضامن وی.ځکه چې دا جرم دده کار نه شوې دې.

**بټياره د اجرت کله مستحق کيږی؟**

(وَمَنِ اسْتَأْجَرَ طَبَّاخًا لِيَطْبُخَ لَهُ طَعَامًا لِلْوَلِيمَةِ اوچا چې په اجرت باندې يو بټيارهٔ د وليمې پخولو لپاره واخستلو.فَالْغَرْفُ عَلَيْهِ)نو په لوخی کې اچول د هغه په ذمه دی.په عرف اعتبار کولو سره.

**طباخ:** پخونکې،باورچی ، **يطبخ (ف،ن) طبخا:** پخول، **طعام:** خوراك، **وليمة:** د واده روټۍ، **عرف:** په لوخو کې راويستل،

**تشريح>متي يستحق الطباخ الاجرة؟>** يو کس باورچی ددې لپاره په اجاره باندې واخستلو.چه هغه د وليمې خوراك پوخ کړی.نود کټوئ نه سالن( ترکاری ) او د ديگ نه پلاؤ وغيره راوښکل، پيالئ او تبالونه ډکول، د باورچی په ذمه واجب دی.

**دليله>** ځکه چې عرف هم په دې جاری دې.او کوم شئ چې معروف وی.هغه په منزله د مشروط وی.نو گويا باورچی سره دا شرط ټکولې شوې وو.چه هغه به پخوی.او په لوخو کې به نې راوباسي.البته که خوراك خاص وی.مثلاً يو خاص ديگ نې پخ کړې وی.نود راوښکلو ذمه داری به باورچی باندې نه وی.په ايضاح، محيط، او مغنی کې هم داسې دی.

(وَمَنِ اسْتَأْجَرَ رَجُلًا لِيَضْرِبَ لَهُ لَبِنًا او چا چې په اجرت باندې واخستلو يو سړې د خښتو جوړولو دپاره، اسْتَحَقَّ الْأُجْرَةَ نود اجرت مستحق به وی.إِذَا أَقَامَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ، کله چې دا اودروی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز.

**حل اللغة>**لبن: کچه خښتې، يشرجها تشريجاً: لاندې باندې يو بل د پاسه ايخودل،( پرئ کول)،طين: خټه،

**تشريح>** يو سړې د خښتو جوړولو والا د خښتو جوړولو لپاره په مزدوریٔ اونيولو.نود امام ابوحنيفه او د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز چې کله د خښتو جوړونکئ خښتې اوباسي.او ويدروی.نو هغه د اجرت مستحق کيږی.د اودرولو نه مراد دادې.چه په سوانچه سره د جوړولو نه روسته اوچولو لپاره اودروی.( مضمرات).

**دليله>** دليل دادې.چه د خښتو سوانچه کولو او اودرولو سره کار پوره شو.او لاندې باندې پرئ کول دا يو زياتی کار دې.لکه چې د سوانچه کولو د ځائې نه د کوره پورې منتقل کول، چې دا د اجير په ذمه نه دی.وجه داده.چه د يو بل د پاسه ايخودلو( او پرئ کولو) نه وړاندې ددې خښتو نه نفع اخستل ممکن ده.په دې طريقه چې کوم ځائې کې کور وغيره جوړيږی.هلته کې نې يوسی.په خلاف د اودرولو نه وړاندې،ځکه چې د اودرولو نه وړاندې دا د خوړې وړې لونډې خټې پشان ده.چه ددې نه نفع اخستل ناممکن ده.نو ددې اودرول ضروری دی.او په خلاف د روټۍ، چې دا د تنور نه راوښکلو نه وړاندې د نفع قابل نه ده.په دې وجه دودئ د تنور نه راوښکل د نان بائی په ذمه واجب دی.چه په دې باندې خښتې نشی قياس کولې.ځکه چې دا د يو بل د پاسه ايخودلو نه وړاندې هم د نفع اخستلو قابل دی.

وَقَالَ ابويوسف ومحمد:او صاحبين رحمهما الله فرمائی.لَا يَسْتَحِقُّهَا چې د اجرت به نه مستحق کيږی.حَتَّى

يُشْرَجُه)()اتردې چې ددې پرې اودروي.

**تشريح﴾مسلک الصاحبين﴿** د صاحبينو رحمهما الله په نيز په خبنتو اوخکونکي باندې لاندې باندې د يو بل د پاسه پرې کول هم ضروري دي.چه دا دده د کار تتمه ده.

**دليلهما﴿** ځکه چې ددې نه وراندې ددې د خرابيدلو خطره وي.نودا د تنور نه د ډوډئ اوبشکلو پشان شو.چه ددې نه بغير اجير د اجرت نه مستحق کيږي.ځکه دا خطره ده.چه ډوډئ په تنور کې اوسوزي.ددې نه علاوه عرف هم دادې.چه د خبنتو پرې کولو کار هم مزدور کوي.

**د جدا جدا ډيزائنونو په شرط کښې اجرت بيانولو سره.**

**پوشرط پوره کول او د اجرت حکم**

(وَإِذَا قَالَ لِلْخَيَّاطِ کله نې چې درزي ته اووئيل.إِنْ خِطْتَ هَذَا الثَّوْبَ فَارِسِيًّا که تا دا کپړه په فارسي طريقه باندې اوګنډله.فَبِدِرْهَمٍ نو يو درهم به وي.وَإِنْ خِطْتَهُ رُومِيًّا او که په رومي طريقه دې اوګنډله.فَبِدِرْهَمَيْنِ نو دوه درهمه به وي.جَازَ نودا جائز دي.وَأَيَّ الْعَمَلَيْنِ عَمِلَ اسْتَحَقَّ الْأُجْرَةَ)اوس چې په دې کې کوم کار اوکړي.هم د هغې د اجرت مستحق به وي.

**تشريح﴾استحقاق الاجرفي صورة الخيار في امرين﴿** په عمل کې ترديد سره اجرت کې ترديد صحيح دې.مثلاً مستاجر درزي ته اووائي.که ته قباء (کوټ) فارسي طريقه باندې اوګنډې.نو اجرت به يو درهم وي.او که په رومي طريقه باندې اوګنډې.نو اجرت به دوه درهمه وي.نو دا جائز ده.اوس ئې چې هغه په کومه طريقه باندې اوګنډي.هم د هغې د اجرت به مستحق وي.

**دليله﴿** په دې کې قياس بيع باندې دې.او د قياس علت ارتيا دفع کول دي.نو لکه څنګه چې په دوه يا دريو کپړوکې د يو بيع جائز ده.او په څلورو کې د يو بيع جائز نه ده.دغه شان به اجاره کې هم ددې نه زياتي به د ارتيا نه بغير جائز نه وي.صرف دومره خبره ده.چه بيع کې خيار شرط ضروري دې.لکه څنګه چې کتاب البيوع کې تير شو.او اجاره کې دا شرط نشته.وجه داده.چه اجاره کې اجرت د عقد په ذريعه نه واجبيږي.بلکه کله چې کار پوره شي.نو هغه وخت واجبيږي.او کله چې کار پوره شو.نو پخپله معلومه شوه.چه معقود عليه هم دادې.په خلاف د بيع، چې په دې کې د ثمن وجوب نفس عقد سره کيږي.نو په دې کې به معقود عليه مجهول وي.اودا جهالت به داسې وي.چه د خيار ثابتولو نه بغير به جګړه نه لرې کيږي.

**د نن او صبا په شرط، جدا جدا اجرت بيانولو سره**

**نن يا صبا کار ختميدل او د اجرت حکم**

وَلَوْ قَالَ:او که وې وئيل.إِنْ خِطْتَهُ الْيَوْمَ که نن دې اوګنډله.فَبِدِرْهَمٍ نو يو درهم به وي.وَإِنْ خِطْتَهُ غَدًا اوکه صبا دې اوګنډله.فَبِنِصْفِ دِرْهَمٍ نو نصف درهم به وي.فَإِنْ خَاطَهُ الْيَوْمَ نو که هم نن نې اوګنډله.فَلَهُ دِرْهَمٌ نو يو درهم به وي.وَإِنْ خَاطَهُ غَدًا او که صبا نې اوګنډله.فَلَهُ أَجْرُ مِثْلِهِ نو اجر مثل به

---

[1] القول الراجح هو قول الصاحبين كذا بدائع الصنائع (٤\٢٠٥) والزيلعي (٥\١١٠) والهندية (٤\٤٣١) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٢٥)

وی. عِندَ أبي حَنِيفَةَ ولَا يَتَجَاوَزُبِهِ نِصفُ دِرْهَمٍ عِندَ أبي حَنِيفَةَ(). د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به د نصف درهم نه نه زیاتیږی.

**تشریح**﴿ذکر شوي بیان خو د عمل تردید سره د اجرت وو.که د اجرت تردید د وخت تردید سره وی.نودا هم صحیح ده.لکه چې مستاجر داسې اووائی.که ته نې نن اوگنډې.نویودرهم به ملاویږی.اوکه صباله دې اوگنډله.نو نصف درهم به ملاویږی.اوس که هغه نن هم اوگنډی.نو یو درهم به ملاویږی.او که صباله نې اوگنډی نو ( هم به یو درهم ملاویږی ).

**مسلک ابي حنيفة**﴿ د امام صاحب رحمه الله په نیز به اجرمثل ملاویږی.اجر مسمی به نه ملاویږی.خو اجرمثل به د نصف درهم نه زیات نه ملاویږی.دا د ابوحنیفه رحمه الله نه یو روایت دې.چه ابو الحسن قدوری رحمه الله ذکر کړې دې.او امام کرخی رحمه الله هم دا اختیار کړې دې.او په جامع صغیر کي دی.چه د نصف درهم نه کم اود یو درهم نه به زیات نشي ورکولې.خو ړومبې روایت زیات صحیح دې.

**دلیله**﴿ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه د صبا ذکرکول حقیقت کي تعلیق لپاره دی.او د نن ورځ ذکرکول توقیت باندې نشي محمول کولې.گنی د وخت او عمل د اجتماع په وجه به عقد فاسدیږی.څکه که د عقد لحاظ اوکړې شی.نو هغه اجیر خاص جوړیږی.اوکه د کار لحاظ اوساتلې شی.نو هغه اجیرمشترك گرځیږی.حالانکه په دوی دواړو کي فرق دې.ددوی په لوازمو کي د فرق کیدلو په وجه.څکه چې عمل ذکرکول د اجرت د عدم وجوب موجب دې.ترکومه پورې چې هغه عمل اونکړی.او ذکر د وخت د اجرت دوجوب موجب دې.کله چې هغه موده کي پخپله خپل خان پیش کړی.او تنافی د لوازمو په تنافی د ملزوماتو باندې دلالت کوی. بهرحال وخت ذکر کولو سره موده مقصود نه ده.او هرکله چې دا خبره ده.نو دوه تسمئې په نن ورځ کي جمع نشوې. بلکه په صبا ورځ کي جمع شوې.نو ړومبې شرط به صحیح وی.او اجر مسمی به واجب وی.او شرط ثانی به فاسد وی.او اجرمثل به واجب وی.چه دا به د نصف درهم نه زیات نشی ورکولې.څکه چې د دویمې ورځې مقرره اجرت هم دا نصف درهم دې.

## د صاحبینو رحمهما الله مسلک

وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: الشَّرْطَانِ جَائِزَانِ صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه دواړه شرطونه جائز دی. وايهما عمل استحق الاجرة) او په دواړو کښې چې يې کوم يو اوکړو نو د اجرت مستحق کیږی

**تشریح**﴿د صاحبینو رحمهما الله په نیز دواړه شرطونه جائز دی.نو په کومه ورځ نې چې اوگنډی.هم د هغې مسمی اجرت به ملاویږی.یعنی که نن نې اوگنډی.نو یو درهم او که صبا له نې اوگنډی.نو نصف درهم به ملاویږی.

**دلیلهما**﴿ د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې.چه نن ورځ ذکر کول د جلتئ په غرض توقیت لپاره ده.(څکه چې دا حقیقت دې).اود صبا ذکرکول تعلیق لپاره دی.( یعنی د اضافت لپاره دې.څکه چې اجاره تعلیق نه قبلوی ).نو په هره ورځ کي دوه تسمئې نه جمع کیږی.او په دې وجه هم چې په جلتئ او روسته کولو کي هر یو داسې امر دې.چه دا په لحاظ د اغراض مقصود وی.نودا اختلاف دغرض نوعی اختلاف په درجه کې شو. یعنی گویا فارسی او رومی د دوه مختلفو گنډلو پشان دې.نو عقد به صحیح وی.

---

[1] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٢٥\٣) ومجمع الأنهر(٣\٥٥٠) وردالمحتار(٥\٤٥) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٣٥)

## د مختلف نوعیت کاروبار یا سفر په وجه کرایه کښې د فرق کولو حکم

(وَلَوْقَالَ: إِنْ سَكَنْتَ فِي هٰذَا الدُّكَّانِ عَطَّارًا) که وې ویل. که تا په دې دوکان کې عطار ډیره کړو. فَبِدِرْهَمٍ فِي الشَّهْرِ نو یو درهم ماهواری ده. وَإِنْ سَكَنْتَهُ حَدَّادًا او که اهنګر (لوهار) دې کینولو. فَبِدِرْهَمَيْنِ نو دوه درهمه ماهواری ده. جَازَ نودا جائز ده. وَأَيَّ الْأَمْرَيْنِ فَعَلَ اسْتَحَقَّ الْمُسَمّٰى فِيهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ. په دې کې چې کوم کوی. هم د هغې د اجر مسمی به مستحق وی. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز، وَقَالَا: صاحبین رحمهما الله فرمائي. الْإِجَارَةُ فَاسِدَةٌ، چې اجاره فاسد ده.

**تشریح ﴿مسلک ابي حنیفة﴾** د کور او عامل، په مسافه او بوج کې تردید کولو سره هم د اجرت تردید صحیح دې. مثلاً داسې اووایې: ① که په دې دوکان کې دې اهنګر (لوهار) اوساتلو. نودا کرایه به وی. او که عطار دې اوساستلو. نودا به وی. ② یا اصل حیوان (خاروې) که کوفه پورې بوځې. نودا کرایه به وی. او که اوسط پورې ئې بوځې. نودا کرایه به وی. ③ یا که په دې غنم بار کوې. نو اجرت به دا وی. او که اوریښې بار کوې. نو دا کرایه به وی. په دې تردیداتو کې چې کوم شئ موجود شی. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به هم د هغې اجرت واجب وی.

**دلیله ﴿** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. چه ده مستاجر ته دوه مختلف او صحیح عقدونو کې اختیار ورکړې دې. نو لکه څنګه چې انفرادی حالت کې عقد صحیح دې. دغه شان به مجموعی حالت کې هم صحیح وی. او مونږ مختلف عقدونه خکه کرځولی دی. چه د مستاجر پخپله اوسیدل، او اهنګر (لوهار) اوسول. دواړه مختلف دی. په دې وجه مختلف عقد کې اهنګر (لوهار) اوسول نه داخلیږی.

**مسلک الصاحبین ﴿** د صاحبینو رحمهما الله او د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز به د سره عقد جائز نه وی. لکه څنګه چې ددې مسئلې په نورو مثالونو کې ددې په نیز عدم جواز دې.

**دلیلهما ﴿** د صاحبینو رحمهما الله د قول وجه داده. چه په ذکر شوی صورتونو کې معقود علیه مجهول ده. او اجرت هم په دوه خیزونو کې یو دې. او هغه هم مجهول دې. او جهالت موجب د فساد وی. په خلاف د رومی یا فارسی ګندلو، چې په دې کې د اجارة فساد خکه نشته. چه اجرت به خو د کار کولو واجب وی. او دغه وخت به جهالت لرې کیږی. په خلاف د هغه مسئلو کوم چې ذکر شوی دی. چه ددې به جدا کولو او حواله کولو سره به اجرت واجبیږی. نو جهالت به باقی پاتې وی. د صاحبینو رحمهما الله په نیز دلته کې قاعده کلیه داده. (ان الأجر متی وجب بالتسليم من غير عمل ولا يدری عند التسليم أيهما يجب يفسد العقد).

## د کور د اجاره احکام

(وَمَنْ اسْتَأْجَرَ دَارًا كُلَّ شَهْرٍ بِدِرْهَمٍ) یو کس په کرایه باندې کور واخستلو. هره میاشت په یو درهم باندې. فَالْعَقْدُ صَحِيحٌ فِي شَهْرٍ وَاحِدٍ نو عقد صرف به یو میاشت کې صحیح وی. وَفَاسِدٌ فِي بَقِيَّةِ الشُّهُورِ، او په باقی میاشتو کې به فاسد وی. إِلَّا أَنْ يُسَمِّيَ جُمْلَةَ شُهُورٍ مَعْلُومَةٍ) البته که ټولې میاشتې معین اوښانی.

**تشریح ﴿صورة المسئلة﴾** یو کس یو کور د یو درهم ماهوار کرایه باندې واخستلو. نو اجاره به صرف یو میاشت کې صحیح وی. او په باقی میاشتو کې به فاسده وی. البته کې دې پوره میاشتې بیان کړی. مثلاً داسې اووائي. چه د لسو میاشتو لپاره هره میاشت د یو درهم په عوض اخلم. نو په ټولو کې به صحیح وی. خکه چې پوره موده معلومه شوه. د مودې په باره کې امام شافعی رحمه الله هم دا فرمائی. او شیخ

داسې نه ده چې د ثلث واله ته به د سدس والا دوچنده ملاویږي (۱)

**دليله>** د دې دليل د حضرت شعبي اثر دې دوی فرمائي «الشفعة على رؤوس الرجال وكذلك قال ابراهيم» (۲) يعنې شفعه د سرونو په اعتبار سره ده اودغه شان ابراهيم رحمة الله هم فرمائيلي دي

## د سامان، يا د کيلي يا وزني څيز په بدله کښې

## د کور اخستلو په صورت کښې به شفيع څه ادا کوي؟

| وَمَنِ اشْتَرَى دَارًا بِعَرَضٍ او چا چې يو کور واخستلو. د څه سامان په بدله کې ، أَخَذَهَا الشَّفِيعُ بِقِيمَتِهِ) نو شفيع به دا کور د هغې د قيمت په بدله کې اخلي |
|---|

**تشريح>** مشتري کور د څه شئ په بدله کې اخستې دې. که د ثمن په بدله کې دې. نو ددې تفصيل خو تير شو. اوکه د سامان په بدله کې دې. يعنې د سرو زرو او سپينو زرو نه علاوه د بل څه سامان په بدله کې دې. نو ددې سامان دوه صورتونه دي: ① دا سامان د ذوات القيم څخه دې. ② او که د ذوات الامثال څخه دې. په رومبي صورت کې به شفيع ددې سامان قيمت ورکوي. او دا کور به اخلي. او په دوئم صورت کې به ددې مثل ورکوي.

**دليله>** څکه چې شريعت شفيع دا حق ورکړې دې. چه هغه د مشتري د ملکيت د هغه د رضامندئ نه بغير مالك شي. خو هغه چې د کوم شئ په بدله کې ملکيت حاصل کړې دې. هم هغه شئ هغه ته ملاويدل پکار دي. نو ترکومه پورې چې کيدې شي. د مثل ور کولو پوره رعايت (او لحاظ) ساتل پکار دي. نوکه په مثل صوري ور کولو باندې قدرت وي. نو مثل صوري دې ورکړي. ګني مثل معنوي دې ورکړي. د مثل صوري مطلب مثل دې. يعنې په ذوات الامثال کې ، او د مثل معنوي مطلب قيمت دې. يعنې ذوات القيم کې ، که يوکس د چا سامان ضائع کړي. هلته هم دا حکم دې.

## د زمکې په مقابله کښې زمکه اخستل

| وَإِنِ اشْتَرَاهَا بِمَكِيلٍ أَوْمَوْزُونٍ أَخَذَهَا بِمِثْلِهِ |
|---|

**تشريح>** که چا مشفوعه کور په کيلي څيز يا په وزني څيز سره واخستل مثلاً په پټرولو سره چې دا کيلي څيز دې يا په اوسپنه سره چې دا وزني څيز دې نو شفيع به ددې مثل ورکړي او کور به واخلي .

**دليله>** دليل دا دې چې کيلي او زوني څيزونه د ذوات الامثال څخه دي او ددې مثل پيدا کيږي. نو ددې په مثل به ورکړي او کور به واخلي.

| (وَإِنْ بَاعَ عَقَارًا بِعَقَارٍ او که زمکه نې د زمکې په بدله کې خرڅه کړله. أَخَذَ الشَّفِيعُ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِقِيمَةِ الْآخَرِ) نو اخلي به شفيع په دې دواړو کې هر يو د دوئم د قيمت په بدله کې . |
|---|

**تشريح>** دلته دا بيان کوي چې عددي متقارب په ذوات الامثال کې شمار کړې شوې دې. که يوکس خپله زمکه خرڅه کړله. او د هغې په بدله کې ئې خپله زمکه ورکړله. او ددې دواړو زمکو شفيع شته. نو هغوی به څه قيمت ورکوي. او دا زمکه به اخلي؟ نو وې وئيل. چه د بائع د زمکې شفيع به ددې په بدله

---

(۱) امام شافعي رحمه الله فرمائي چې هريو ته به د هغه د حصې په عوض شفعه ملاويږي نو په مذکوره مثال کښې به صاحب د ثلث ته د صاحب سدس دوه چنده شفعه ملاويږي

(۲) مصنف عبدالرزاق (۸ | ۸۵)-

کي د مشتري د زمکې قيمت ورکوي.او د مشتري د زمکې شفيع به ددې په بدله کي د بائع د زمکې قيمت ورکوي.

**دليله>** ځکه چې زمکه د ذوات القيم څخه ده.په دې وجه به ددې قيمت ورکوي.او هر شفيع به دا اخلي.

**په زيات قيمت سره د خرڅېدو په وجه د شفعې پرېښودو اعتبار نشته**

| |
|---|
| وَإِذَا بَلَغَ الشَّفِيعَ أَنَّهَا بِيعَتْ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ فَسَلَّمَ الشفعة او کله چې شفيع ته دا خبر اورسيدو .چه کور په زر درهم کي خرڅ کړې شوې دې.نو هغه د شفعې نه بيزاری ښکاره کړله. ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهَا بِيعَتْ بِأَقَلَّ مِنْ ذَالِكَ أَوْ بِحِنْطَةٍ أَوْ شَعِيرٍ بيا هغه ته معلومه شوه.چه کورد دې نه په کم کي خرڅ شوې دې. قِيمَتُهَا أَلْفٌ أَوْ أَكْثَرُ فَتَسْلِيمُهُ بَاطِلٌ وَلَهُ الشُّفْعَةُ يا د غنمو په بدله،يا د اوربشو په بدله خرڅ شوې دې.چه ددې قيمت زر( درهم) يا ددې نه زيات دې .نو دده بيزاری باطل ده.او هغه لپاره شفعه شته. |

**حل اللغة>** ① **درهم**: روپۍ ② **اقل**:کم ③ **حنطة** :غنم ④ **شعير**:اوربشې ⑤ **تعليم**:سپارل

**تشريح>** شفيع ته چا خبر ورکړو.چه کور په زر درهم کي خرڅ شوې دې.حالانکه معامله داسې نه ده.بلکه په حقيقت کي بيع په پنځه سوه درهم کي شوې ده.او په رومبي خبر اوريدو سره شفيع ثمن زيات ګنړلې وو.نو بيزاری ئې اختيار کړې وه.نو دهغه شفعه به نه باطليږي.اوکه هغه ته ئې خبر ورکړو.چه کور په زر درهم کي خرڅ شوې دې.حالانکه هغه د غنمو يا اوربشو يا د بل څه مکيلي او موزوني يا عددی متقارب په بدله کي خرڅ شوې دې.خو ددې مکيلي او موزوني يا عددی متقارب قيمت زر درهم دې.او شفيع په رومبي خبر اوريدو سره د شفعې نه بيزاری اختيار کړې وه.( او د شفعې نه ئې انکار کړې وو).اوس معلومه شوه.چه معامله داسې ده.نو بيا هم ددې بيزاری باطل ده.او دده د شفعې حق پخپل حال قائم دې.

**دليله>** ځکه چې هغه رومبي صورت کي د ثمن د زياتوالي په وجه بيزاری ښکاره کړې ده.اوپه دوئم صورت کي د بيزارئ وجه دا کيدې شي.چه زر درهم ملاويدل مشکل دی.او غنم او اوربشې وغيره ورکول دده لپاره آسان دی.خاص کر د زميندارو خلقو لپاره روپۍ ورکول لږ مشکل دی.او غله ورکول آسان دی.

| |
|---|
| وَإِنْ بَانَ أَنَّهَا بِيعَتْ بِدَنَانِيرَ قِيمَتُهَا أَلْفٌ .چه کور د دنانيرو په بدله کي خرڅ کړې شوې دې.چه ددې قيمت زر ( درهم) دې. فَلَا شُفْعَةَ لَهُ[1] نو شفيع لپاره شفعه نشته. |

**حل اللغة>** ① **دنانير**:اشرفۍ ② **متحد**:يو ③ **الف**:زر

**تشريح>** که شفيع ته مخکي معلومه شوه.چه کور په زر درهم کي خرڅ شوې دې.نو هغه د شفعې نه بيزاری اختيار کړله.بيا روستو معلومه شوه.چه کور د دنانيرو په بدله کي خرڅ شوې دې.چه ددې قيمت زر درهم يا زيات دې.نو شفعه به نه ملاويږي.

**دليله>** ځکه چې د ثمنيت په حق کي جنس متحد دې.په دې وجه خو زکاة کي يو د بل سره ملاوولې شي.نو دغه شان به شفعه به نه وي

---

[1] ) القول الراجح هوهذا قول علماءنا الثلاثة رحمهم الله كذا في مجمع الأنهر (١٢٠/٤) ونصب (٢٦٠/٥) وردالمحتار (١٧٠/٥)نقلاً عن القول الراجح (٢٧٤/٢)_

## د مشتري شريف يا بدعمله كيدو په وجه د شفعې پريخودو يا نه پريخودو مسئله

وَإِذَاقِيلَ لَهُ إِنَّ الْمُشْتَرِيَ فُلَانٌ فَسَلَّمَ الشُّفْعَةَاو كله چې اوونيلى شو شفيع ته، چې مشترى فلانې دې.نو هغه د شفعې نه بيزارى اختيار كړله. ثُمَّ عَلِمَ أَنَّهُ غَيْرُهُبيا معلومه شوه.چه مشترى د هغه نه علاوه دې. فَلَهُ الشُّفْعَةُنو هغه له شفعه نشته.

**تشريح>** كه شفيع ته مخكې معلومه شوه.چه مشترى فلانې كس دې.چه دا ښه ( شريف) سړې دې.نو هغه خپل حق د شفعې پريخودو.بيا معلومه شوه.چه دا خو فلانى بدمعاش اخستې دې.چه هغه به هميشه ما پريشانه كوى.نو شفيع ته به شفعه ملاويږى.

**دليله>** ځكه چې په ګاونډى ګاونډى كې فرق وى.كيدې شى چې دې په اولنى ګاونډى راضى وو ځكه ده شفعه پريخوده خوچې كله ورته معلومه شوه چې كور هغه كس واخستل د كوم ګاونډيتوب چې دې نه خوښوى نو ځكه به دده شفعه دوباره ثابته وى

## وكيل بالشراء د شفيع مقابل دې

وَمَنِ اشْتَرَى دَارًا لِغَيْرِهِاوچا چې واخستلو يو كور د خپل ځان نه علاوه دپاره، فَهُوَالْخَصْمُ فِى الشُّفْعَةِ)نو هم دې به د شفيع خصم وى.

**تشريح>** اصول دا دې.چه په بيع كې وكيل ارخ ته حقوق د عقد راجع وى.نوكه يوكس د بل چا وكيل جوړ شو.او كور ئې واخستلو.او تر اوسه پورې ئې موكل ته حواله نكړو.نو شفيع وكيل سره خصومت كولې شى.او شفعه اخستې شى.

**دليله>** ځكه چې شفعه كې اخستل هم د عقد بيع يو حق دې.او حقوق وكيل ارخ ته راجع كيږى.

(إِلَّاأَنْ يُسَلِّمَهَا إِلَى الْمُوَكِّلِخو دا چې وكيل دا كور موكل ته اوسپارى.

البته كه وكيل موكل ته سپارلې دې.نو اوس به مخاصمت وكيل سره نه كيږى.

**دليله>** ځكه چې نه دهغه قبضه پاتې شوه.اونه ملكيت پاتې شو.ځكه چې وكيل او موكل ، د بائع او مشترى په درجه كې دى.نوكوم حكم چې هلته كې وو.هم هغه به په وكيل او موكل كې وى.

## شفيع سره مولبنتي يوګز ځائې نه خرڅولو سره د شفيع شفعه ساقطيږى

وَإِذَابَاعَ دَارًا إِلَّا مِقْدَارَذِرَاعٍاو كله ئې چې خرڅ كړو كور، خو ددې نه د يو ګز په مقدار(ئې خرڅ نكړو فِى طُولِ الْحَدِّ الَّذِى يَلِى الشَّفِيعَد هغه پولې ( او حد) په اوګدوالى كې كوم چې شفيع سره ملاو شوې دې. فَلَاشُفْعَةَ لَهُنو هغه لپاره به شفعه نه وى

**حل اللغة>** ① ذراع:ګز② مقدار:اندازه ③ الانقطاع: ختميدل

**تشريح>** بائع او مشترى چې كوم كور خرڅول غواړى.د هغې په ګاونډ كې ډير بدمعاش سړې آباد دې.كه هغه د شفعې دعوه اوكړله.نو ټولو ګاونډيانو ته به تكليف اورسوى.نو بائع له پكار دى.چه خپل واړه كور مشترى بانديې خرڅ كړى.خو د كوم ارخه چې دا كور د شفيع كور سره مولبنتى ( ملاو شوې) دې.د هغه ځائې نه دې د يو ګز په اندازه پوره پوله ( حد) پريږدى.يعنى دا دې نه خرڅوى.نو اوس به دا ( بدمعاش) ګاونډى په دې كور كې د شفعې مستحق نه وى.

**دليله>** ځكه چې څومره برخه خرڅه شوې ده.د هغه برخې (حصې) دده ملكيت سره اتصال نشته.او كله چې بائع باقى د مشترى په لاس خرڅوى.بيا به هم شفيع ته شفعه نه ملاويږى.ځكه چې شفيع صرف

ګاونډی دې.او مشتری شریك دې.او وړاندې تیر شوی دی.چه شریك په ګاونډی باندې مقدم وی.

**نیم کور د ثمن په بدله کښې اخستلو نه روسته**

**باقی برخه اخستلو سره د شفعې د سقوط صورت**

| وَإِذَابَاعَ مِنْهَا سَهْمًا بِثَمَنٍ ثُمَّ ابْتَاعَ بَقِيَّتَهَا اوکله ئې چې واخستله د کور یوه برخه د ثمن په بدله کې ،بیا ئې واخستله د کورباقی برخه فَالشُّفْعَةُ لِلْجَارِ فِي السَّهْمِ الْأَوَّلِ دُونَ الثَّانِي )نو ګاونډی لپاره په مخکنۍ برخه کې شفعه شته.په دویمه ( روستنۍ) برخه کې نشته. |
|---|

**حل اللغة** >① **السهم:** حصه

**تشریح**> مشتری د یوکور یوه برخه واخستله.بیا ئې په دوئم ځل باقی کور واخستلو.نو اوس شفیع صرف په مخکنۍ برخه کې د شفعې دعوه کولې شی.

خکه چې شفیع خو ددې دواړو ( حصو) ګاونډی دې.خو مشتری په دویمه برخه کې شریك دې.او شریك په ګاونډی باندې وړاندې وی.

**کور د ثمن په بدله کښې اخستلو نه روسته په**

**عوض کښې کپړو ورکولو سره دشفعې د سقوط**

| وَإِذَاابْتَاعَهَا بِثَمَنٍ او کله چې یې کور واخستلو د ثمن په بدله کې ،، ثُمَّ دَفَعَ إِلَيْهِ ثَوْبًاعِوَضًا عَنْهُ بیا ئې بائع ته د ثمن په بدله کې کپړه ورکړله. فَالشُّفْعَةُ بِالثَّمَنِ دُونَ الثَّوْبِ نو شفعه به د ثمن په بدله کې وی.د کپړې په بدله کې به نه وی. |
|---|

**تشریح**> مثلاً د کور قیمت درې زره درهم دی.او کور د شل زره درهمو په عوض خرڅ کړې شو.او بیا د شل زرو درهمو په بدله کې یو څو جوړه کپړې واخستلې شوې.چه ددې قیمت درې زره درهم دې.نو په دې سره شفعه ساقطیدې شی.خکه که شفیع شفعه کې کور اخستل غواړی.نو شل زره درهم ور کولو سره اخستلې شی.د کپړو په بدله کې ئې نشی اخستلې.

**دلیله**> خکه چې د کپړو د لین دین مسئله، دا د بائع او مشتری په مینځ کې جدا عقد دې.اصل عقد سره ددې هیڅ تعلق نشته.نو د کور ثمن شل زره درهم دی.درې زره درهم یا کپړې نه دی.نو په دومره ګران اخستلو باندې به زړه ورتیا نشی کولې.

**شفعه ساقطولو لپاره د حیلې کولو حکم**

| وَلَاتُكْرَهُ الْحِيلَةُ فِي إِسْقَاطِ الشُّفْعَةِ عِنْدَأَبِي يُوسُفَ رحمه الله (۱) او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز شفعه ساقطولو کې حیله مکروه نه ده. |
|---|

**حل اللغة** >① **اسقاط** :ساقطول

**تشریح**> د شفعې په ساقطولو کښې دامام ابویوسف په نیز حیله کول مکروه نه ده یعنی امام ابویوسف رحمه الله یې د کراهت نه بغیر جائز ګنړی.

**دلیله**> دامام ابویوسف رحمه الله دلیل دا دې که د شفیع حق ثابتیدو نه روسته دا لرې کولې شو.بیا به خو

[1]) القول الراجح هوهذا قول ابي يوسف رحمه الله كذا في الدرالمختار (۱۷۳/۵) ونتائج الأفكار(۱٤۷/۸) نقلاً عن القول الراجح (۲۷٦/۲)_

د شفیع ضرر شمار کیدو.او دلته اوسه پورې د شفیع حق د سره ثابت شوې نه وو.چه دهغې د ثابتیدو امکان ختم کړې شو.نو دا به ضرر او ظلم څنګه وی.

| وقال محمد تُكره رحمه الله او امام محمد رحمه الله فرمائی چې مکروه ده. |
|---|

د امام محمد رحمه الله اختلاف دې.امام محمد رحمه الله دې ته مکروه وائی.

**دلیله**> د شفعې ثبوت ددې لپاره شوې دې.چه د شفیع ضرر لرې کړې شی.او که مونږ حیله اختیار کړو.او دده حق ساقط کړو.نو ګویا مونږ د خلقو ضرر لرې نکړو.په دې وجه دا فعل مکروه دې.

**که مشتری په مشفوعه کور کښې څه تعمیر اوکړی نو شفیع لپاره څه حکم دې ؟**

| (وَإِذَا بَنَى الْمُشْتَرِي اوکله چې مشتری کور جوړ کړو أَوْغَرَسَ.یا نې ونې اولګولې. ثُمَّ قُضِيَ لِلشَّفِيعِ بِالشُّفْعَةِ بیا شفیع لپاره د شفعې فیصله اوکړې شوه. فَهُوَ بِالْخِيَارِ,إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِالثَّمَنِ نو شفیع اختیار سره دې.که غواړی.دا زمکه دې د ثمن په بدله کې واخلی. وَقِيمَةِ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ مقلوعین او آبادی او ونې ویستلې شوې دې د قیمت په بدله کې واخلی،وَإِنْ شَاءَ كَلَّفَ الْمُشْتَرِي بِقَلْعِهِ)اوکه غواړی.مشترې دې ددې د اوښکلو مکلف کړی. |
|---|

**حل اللغة**> ① **غرس:** بوټې اوکرله② **البناء:** آبادې ③ **القلع:** ویستل،ختمول

**تشریح**> مشتری کور واخستلو.په دې کې نې آبادی جوړه کړله.یا نې باغ اولګولو.بیا شفیع لپاره قاضی د شفعې فیصله ورکړله.نو په ظاهرالروایة کې اوس شفیع لپاره دوه حکمونه دی: ①که هغه غواړی.نو ددې زمکې ثمن او د آبادئ او ونو قیمت دې ورکړی.او دا دې واخلی.② اوکه غواړی.نو مشتری ته دې اووائی.چه خپله آبادی دې ورانه کړه.او ونې دې اوباسه.

**دلیله**> اصول دا دې.که په یو شئ کې د چا حق وی.او حقدار خوك مسلط ( مقرر) کړې نه وی.چه په دې کې څه تصرف اوکړی.او څوك ( پخپله) تصرف اوکړی.نو د هغه تصرف ماتولې شی.هرکله چې دا اصول مقرر دې.نو اوس اوګورئ.چه دا د شفیع حق دې.او شفیع مشتری ته حکم نه دې ورکړې.چه دلته کور جوړ کړی.او هغه جوړ کړو.نو ددې قاعدې مطابق به د هغې د ورانولو حکم ورکولې شی.دا د طرفینو مسلك دې

**مسلك ابي یوسف**> دا د امام ابویوسف رحمه الله قول نقل کړې شوی دې.چه مشتری ته به د اوښکلو تکلیف نشی ورکولې .بلکه شفیع ته به صرف دوه اختیاره ملاویږی:① د آبادئ او ونو قیمت ورکړی.او د زمکې ثمن ورکړی.او مشفوع (کور) واخلی.② .شفع پریږدی.

**د شفیع د اخستلو نه روستو څوك مستحق راوځی نو څه حکم دې ؟**

| وَإِنْ أَخَذَهَا الشَّفِيعُ فَبَنَى اوکه واخستله دا زمکه شفیع،بیا نې آبادی اوکړله. أَوْغَرَسَ یانې ونې اولګولې. ثُمَّ اسْتُحِقَّتْ بیا دا زمکه مستحق اوختله. رَجَعَ بِالثَّمَنِ نو شفیع به ثمن واپس اخلی. |
|---|

**تشریح**> مشفوعه زمکه شفیع واخستله.په دې کې نې کور جوړ کړو.یا نې باغ اولګولو.اوس یوکس ددې زمکې د استحقاق دعوه اوکړله.او قاضی د مستحق لپاره فیصله اوکړله.نو زمکه به د مستحق وی.او شفیع ته به ونیلې شی.چه خپله آبادی ورانه کړه.یا ونې اوباسه.او یونې سه.د آبادئ قیمت یا ددې د ورانولو نقصان به هغه ته نه ملاویږی.بلکه هغه ته به صرف ثمن ملاویږی.چه دا به د بائع نه د اخستلو په صورت کې بائع ادا کوی.او د مشتری نه د اخستلو په صورت کې به نې مشتری ادا کوی.او

شفیع ته به د آبادئ وغیره قیمت نه د مستحق د اړخه ملاویږي.او نه به د بائع د اړخه ملاویږي.
**دلیله**> دا ځکه چې هرکله د شفعې په بنیاد باندې شفیع زمکه واخستله او بیا بل کس دعوی اوکړه چې دغه زمکه د هغه ده او هغه خپله دعوی ثابته کړه نو معلومه شوه چې په اول کښې د شفعې په بنیاد ده ته دا زمکه ملاؤ شوې وې نو دې د شفعې مستحق نه وو.بغیر د حقه ده ته ملاؤ شوې دې نو اوس به دې د بائع یا مشتری نه د آبادئ اود ونو تاوان نه اخلي

## د شفیع د اخستلو نه روستو خوک مستحق راوځي نو څه حکم دې ؟

| وَاِنْ اَخَذَهَا الشَّفِيْعُ فَبَنٰى اوکه واخستله دا زمکه شفیع،بیا ئې آبادی اوکړله. اَوْغَرَسَ یائې ونې اولګولې. ثُمَّ اُسْتُحِقَّتْ بیا دا زمکه مستحق اوختله. رَجَعَ بِالثَّمَنِ نو شفیع به ثمن واپس اخلي. وَلَايَرْجِعُ بِقِيْمَةِ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ او رجوع به نه کوی (شفیع) د آبادئ او ونو د قیمت په سلسله کې ، |
|---|

**تشریح**> مشفوعه زمکه شفیع واخستله.په دې کې ئې کور جوړ کړو.یا ئې باغ اولګولو.اوس یو کس ددې زمکې د استحقاق دعوه اوکړله.او قاضی د مستحق لپاره فیصله اوکړله.نو زمکه به د مستحق وی.او شفیع ته به وئیلې شی.چه خپله آبادی ورانه کړه.یا ونې اوباسه.او یونې سه.د آبادئ قیمت یا ددې د ورانولو نقصان به هغه ته نه ملاویږي.بلکه هغه ته به صرف ثمن ملاویږي.چه دا به د بائع نه د اخستلو په صورت کې بائع ادا کوی.او د مشتری نه د اخستلو په صورت کې به ئې مشتری ادا کوی.او شفیع ته به د آبادئ وغیره قیمت نه د مستحق د اړخه ملاویږي.او نه به د بائع د اړخه ملاویږي.
**دلیله**> اوکه دا استحاق د بیعې په باب کښې راشی نو په هغې کښې به په بائع د ابادئ او د ونو کرلو تاوان راځی خو د شفعې په صورت کښې به نه راځی وجه د فرق دا دې چه د بائع او مشتری په مسئله کې بائع مشتری ته دهوکه ورکړې ده.او بائع مشتری په دې باندې تصرف کولو باندې مقرر کړې وو.په دې وجه به بائع اړخ ته رجوع کوی.خو د شفیع په مسئله کې شفیع ته مشتری هیڅ دهوکه نه ده ورکړې.او نه مشتری شفیع مقرر کړې دې.بلکه مشتری خو مجبوراً دا زمکه شفیع ته حواله کړې ده.په دې وجه رومبی صورت کې رجوع صحیح ده.او په دونم صورت کې صحیح نه ده.
**مسلک ابي یوسف**> دې مسئله کې امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه شفیع به خپل نقصان د بائع یا مشتری نه پوره کوی.یعنی د بائع نه داخستلو په صورت کې به نقصان د بائع نه وصولوی.او د مشتری نه د اخستلو په صورت کې به نقصان د مشتری نه وصولوی.
**دلیله**> ځکه چې شفیع په دوی دواړو کې د یو نه ملکیت حاصل کړې دې.نو شفیع او د چا نه چې شفیع اخستې ده.دوی دواړه به د بائع او مشتری په درجه کې راکوزولې شی.او مشتری به د مبیع د استحقاق په صورت کې بائع اړخ ته رجوع کوی.نو هم دغه شان به شفیع هم رجوع کوی.

## د کور ورانیدو،یا د آبادئ خرابیدو په صورت کښې شفیع لپاره څه حکم دې ؟

| وَاِذَاانْهَدَمَتِ الدَّارُ او هرکله چې کور وران شو. اَوِاحْتَرَقَتْ بِنَاؤُهَا یا ددې آبادی اوسوزیدله. اَوْجَفَّ شَجَرُ الْبُسْتَانِ بِغَيْرِعَمَلِ اَحَدٍ یا.د باغ ونې اوچې شوې. د چا د فعل نه بغیر، فَالشَّفِيْعُ بِالْخِيَارِ نو شفیع ته اختیار دې. اِنْ شَاءَ اَخَذَهَا بِجَمِيْعِ الثَّمَنِ) که غواړی.دا دې واخلي.په پوره ثمن سره، |
|---|

**حل اللغة**> ① **انهدمت**:اونړیدو② **الدار**:کور③ **احترق**:اوسوزیدو④ **جف**:اوچه شوه⑤ **شجر**: وونه⑥ **بستان**: باغ
**تشریح**> وراندې د دې بیان شوې دې چې وصف د موصوف تابع دې.او دا اصول مقرر دې. چې

تر کومه پوري وصف مقصود جوړ نشي.د وصف په مقابله کي به ثمن نه راځي.يعنی د وصف په زياتوالی سره به ثمن کي زياتوالي نه راځي.او د وصف په کموالی سره به ثمن کي کمي نه راځي.او په آبادئ کي اور لګيدو سره ددې سوزيدل، او د آبادئ غورزيدل، يا د باغ د ونو اوچيدل، دا د کور او باغ اوصاف دي.

**دليله>** ځکه چې دا د کور او باغ تابع دي.او په ديرش بيګه ( يعنی اتيا مرلې) زمکه کي د پنځلسو ډوبيدل ( او غرقيدل) يعنی په درياب کي ملاويدل، دا د وصف کمي نه دې.بلکه د اصل او ذات کمي دې.ځکه چې د زمکې په ذات کي کمي واقع شوي دې.بهرحال رومبي تابع دې.او په دوئم صورت کي پنځلس بيګه (څلويښت مرلې) زمکه د نورې پنځلس بيګه زمکي تابع نه ده.د رومبی د وصف کيدو دليل دا دې.که يوکس کور واخستلو.او د عمارت ئې په دې کي هيڅ ذکر اونکړو.بيا به هم عمارت په بيع کي داخل وي.دغه شان د زمکي اخستلو کي به ونې داخل وي.معلومه شوه چې دا اوصاف دي.

| (وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ)اوکه غواړي.پرې دې يږدي. |
|---|

**تشريح>** په مذکوره صورت کښې شفيع ته لکه څنګه د کور د اخستلو اختيار دې دغه شانورته د کور د نه اخستلو اود پريخودو اختيار هم شته

**دليله>** ځکه چې شفيع ته دا حق حاصل دې چې کله مال ورکوی اود خپل مال په بدله کښې د يو کور مالك کيږی نو اوس د ده خوښه ده که کور نه اخلی او پيسې نه ورکوی نو په ده بانذې څه جبر او زور نشته

## مشتری آبادی ورانه کړی نو شفيع لپاره څه حکم دی ؟

| وَإِنْ نَقَضَ الْمُشْتَرِي الْبِنَاءَاوکه مشتری آبادی ورانه کړله. قِيلَ لِلشَّفِيعِنو شفيع ته به ونيلې شی. إِنْ شِئْتَ فَخُذِ الْعَرْصَةَ بِحِصَّتِهَا،که ته غواړې.نو خالی خائې ( زمکه ) ددې د برخې (حصې) په بدله کي واخله. وَإِنْ شِئْتَ فَدَعْاوکه غواړې.نو پريږده. |
|---|

**حل اللغة>** ① **العرصة:** ميدان، خالی زمکه

**تشريح>** که مشتری پخپله خپل فعل سره عمارت مات کړو.نو شفيع ته به اوونيلی شی که غواړې نو صرف ميدان په خپل قيمت سره واخله او دکه غواړې نو کور پريږده د شفعې نه دستبردار شته

که مشتری عمارت مات کړو.نو شفيع ته اوس دوه اختياره دی① که غواړی.شفعه دې پريږدی.② اوکه اخستل غواړی.نو د عمارت نه علاوه ددې خائې او زمکې چې کوم قيمت جوړيږی.د هغې په بدله کي شفيع دا اخستلې شی.

**دليله>**او دا ځکه اوس عمارت مقصود شو.ځکه چې مشتری د عمارت ماتولو قصد کړې دې.نو اوس به د وصف په مقابله کي ثمن راځی.يعنی هرکله چې د ثمن څه برخه ساقط کړې شوه.نو اوس شفيع غواړی.چه دکور ملبه او متيرتيل واخلی.حالانکه هرکله چې دا د کور نه جدا کړې شو.نو ملبه اوس د جدا کيدو په وجه د تابع جوړيدو نه خارج شوه.نو د کور چه کومه ملبه ده.شفيع دا اخستل غواړی.نو نشی اخستلې.

| (وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَأْخُذَ النَّقْضَ )او شفيع ته دا حق نشته.چه ملبه واخلی. |
|---|

**تشريح>** او د کور ورانولو نه پس شفيع ته دا حق نشته چې هغه ملبه واخلی

**دليل** خکه چې هر کله د کور د عمارت څيزونه د زمکې نه جدا شو نو اوس دغه ملبه د زمکې تابع باندې شوه بلکه مقصود بالذات اوګرځيده

**په زمکه کښې شفيع لپاره د وونو او ميوو حکم**

| (وَمَنِ ابْتَاعَ أَرْضًا وَعَلَى نَخْلِهَا ثَمَرٌ او چا چې زمکه واخستله.او د هغې په ونو باندې ميوه ده. أَخَذَهَا الشَّفِيعُ بِثَمَرِهَا)نو شفيع به دا سره دهغې د ميوو اخلي. |
|---|

**حل اللغة** ① **نخل**:د قجورو ونه② **ثمر**:دقجورې ميوه ③ **ارض**:زمکه

**تشريح** مشتري يوه زمکه واخستله.چه هغې کې څه ونې دی.او په دې ونو کې ميوې هم لګيدلې دی.نو دا ميوې به شفيع اخلی يعنی ميوې به د شفيع وی. که په بيع کې د ميوو ذکر شوې وی.خکه چې د ذکر نه بغير ميوې په بيع کې نه داخليږی.

**دليله** اودا کومه مسئله چې ذکر شوې ده.دا د استحسان په بنا (بنياد) ده.ګنی د قياس تقاضه خو دا ده.چه شفيع ته ميوې ملاو نشی.خکه چې ميوې د ونو او زمکې تابع نه دی.او د نه تابع کيدو دليل دا دې.چه ميوې د ذکر نه بغير بيع کې نه داخليږی.نو ددې مثال داسې شو.لکه په کور کې ايخودې شوې سامان، لکه چې بوکس کور خرڅ کړو.او په دې کې فريج او د ګيس چولها وغيره ايخودې شوی دی.نو دا به په بيع کې داخل نه وی.

**د شفيع لپاره د فيصلې په صورت کښې به دده لپاره خيار رويت وی اوکه نه؟**

| وَإِنْ جَدَّهُ الْمُشْتَرِي سَقَطَ عَنِ الشَّفِيعِ حِصَّتُهُ که مشتری ميوه اوشوکوله نود شفيع نه به د هغې په حصه باندې ساقط شی. |
|---|

**تشريح**که زيد د عمرو نه يو باغ واخستل بل طرف ته بکر په زيد باندې شفع اوکړه چې دا باغ زما حق دې خکه چې ما سره نزدې دې.خو د بکر د شفعې کولو نه وړاندې زيد د باغ ميوه اوشکوله .نو اوس په دې صورت کښې بکر ته دا حق حاصل نه دې چې هغه د زيد نه د ميوې مطالبه اوکړی.بلکه د بکر د شفعې حق د ميوې نه ساقط شو.

| وَإِذَا قُضِيَ لِلشَّفِيعِ بِالدَّارِ اوکله چې شفيع لپاره د کور فيصله اوکړې شوه. وَلَمْ يَكُنْ رَآهَا حالانکه هغه دا کتلې نه وو. فَلَهُ خِيَارُ الرُّؤْيَةِ،نو شفيع لپاره خيار رؤيت شته. فَإِنْ وَجَدَ بِهَا عَيْبًا او که هغه په دې کور کې عيب اوموموی. فَلَهُ أَنْ يَرُدَّهَا بِهِ نو هغه لپاره په دې سره د هغې د واپس کولو حق شته. وَإِنْ كَانَ الْمُشْتَرِي شَرَطَ الْبَرَاءَةَ مِنْهُ)اګرچه مشتری د عيب نه د براءت شرط لګولې وی. |
|---|

**حل اللغة** ① **وجد**:مومی

**تشريح** که څوك دا سوال اوکړی چې خيار رويت ملاويدل پکار نه دی.کله چې مشتری دا کتلې وی.او اخستې ئې وی؟نو جواب دا دې چې د مشتری رؤيت به د شفيع رؤيت نه وی.خکه چې مشتری د شفيع نائب يا د هغه وکيل نه دې.نو مشتری به ( په کتلو سره ) د شفيع خيار نه باطلوی.

**دليله** لکه څنګه چې بيع کې خيار رؤيت اوخيار عيب ملاويږی.نو په شفعه کې به هم ملاويږی.خکه چې شفيع ګويا دا د مشتری نه اخلی.نو د اخستلو احکام به دلته کې جاری کيږی.که په اخستلو کې بائع د عيب نه د براءت شرط اولګوی.بيا هم خيار عيب نه ساقطيږی.دغه شان به دلته کې هم وی.

## په قرض سره د اخستلو په صورت کښې شفیع لپاره څه حکم دی؟

وَإِذَا ابْتَاعَ بِثَمَنٍ مُؤَجَّلٍ او کله نې چې خرڅ کړو، قرض ثمن سره، فَالشَّفِيعُ بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ أَخَذَهَا بِثَمَنٍ حَالٍّ نو شفیع ته اختیار شته.چه دا په نقد ثمن سره واخلي. وَإِنْ شَاءَ صَبَرَ او که غواړي.نو صبر دې اوکړي. حَتَّى يَنْقَضِيَ الْأَجَلُ تردې چې موده تیره شي. ثُمَّ يَأْخُذُهَا بيا دې شفیع دا واخلي

**تشریح﴾** بائع خپل کور مشتری باندې مثلاً په دوه زره روپۍ خرڅ کړو.او د ثمن ادا کول نې قرض مقرر کړل. شفیع د شفعې دعوه داخل کړله.

اوس سوال دا دې.چه شفیع به دا اخلي.په دوه زره روپۍ دې، خو ادا کول به اوس (في الحال) لازم وي.یا د ادا کولو هغه وخت متعین دې.کوم چې د بائع او مشتری په مینځ کې مقرر شوې دې؟نو جمهورو احنافویه نیز ده ته دواړه قسمه اختیار دې که في الحال ورکوی او که په نیته ورکوی.

**دلیله﴾** دلیل دې.چه اجل ( نیته وار او قرض کیدل) وصف نه دې.دا خو شرط سره ثابتیږي.او شرط د بائع او مشتری په مینځ کې دې.د شفیع او بائع، یا د شفیع او مشتری په مینځ کې نه دې.او بائع چې په قرض ور کولو باندې د مشتری نه راضي شو.ددې نه دا نه لازمیږي.چه شفیع ته هم په قرض ور کولو باندې راضي شو.ځکه چې د خلقو حالات مختلف دی.چه څوك اخلاقي وي.او څوك بد اخلاقه وي.څوك توانګر دې.او څوك غریب دې.د ړومبی نه وصولول آسان دی.او د دوئم نه مشکل دی.

## که شریکانو زمکه ویش کړله نو د شفعې حق به نه ملاویږي

(وَإِذَا اقْتَسَمَ الشُّرَكَاءُ الْعَقَارَ) او کله چې شریکانو زمکه ویش کړله فَلَا شُفْعَةَ لِجَارِهِمْ بِالْقِسْمَةِ.نو د ویش په وجه ددوی د ګاوندی لپاره شفعه نشته.

**تشریح﴾** شریکانو خپله زمکه ویش کړله.نو ښکاره ده.چه دا بیع نه ده.او مبادله مالي نه ده.بلکه خپلې برخې (حصې) تقسیمول او جدا جدا کول دی.چه دې ته افراز ونیلې شي.نوکه یو ګاوندی د تقسیمولو په وخت د شفعې دعوه اوکړي.نو هغه ته به شفعه نه ملاویږي.

**دلیله﴾** ځکه چې شرط د شفعې نه دې موجود شوې.( چې هغه شرط بیع دې).او په ویش کې د زمکې اوآسمان فرق دې.په بیع کې زبردستي جائز نه دې.بلکه خپل مینځ کې رضامندي شرط ده.او په ویش کې زبردستي جائز ده.یعني که په شریکانو کې یو کس د ویش مطالبه اوکړي.او دوئم شریك انکار اوکړي.نو په منکر باندې به زبردستي کولې شي.او هغه به په ویش باندې مجبوره کولې شي.

## د شفیع شفعه پرېښودو سره دوباره د شفعې حق نه ملاویږي

(وَإِذَا اشْتَرَى دَارًا) او کله چې مشتری یو کور واخستلو فَسَلَّمَ الشَّفِيعُ الشُّفْعَةَ .نو شفیع د شفعې نه بیزاری ( او جدائی) اختیار کړله. ثُمَّ رَدَّهَا الْمُشْتَرِي بِخِيَارِ رُؤْيَةٍ أَوْ شَرْطٍ أَوْ بِعَيْبٍ بِقَضَاءِ قَاضٍ بیا مشتری دا کور د خیار رؤیت یا خیار شرط یا د عیب په وجه د قاضی په فیصلې سره واپس کړو. فَلَا شُفْعَةَ لِلشَّفِيعِ)نو شفیع لپاره شفعه نشته.

**تشریح﴾** زید د بکر نه یو کور واخستلو.خالد ته حق د شفعې ملاویدو.خو هغه د شفعې اخستلو نه انکار اوکړو.نو اوس دهغه شفعه باطل شوې ده.اوس زید دا کور واپس کوی.یا د خیار رؤیت په وجه، یا د خیار شرط په وجه، یا دعیب په وجه، او کله نې چې د عیب په وجه واپس کړو.نو قاضي په فیصلې سره نې واپس کړې دې.بهرحال کله چې په دې دریو وارو صورتونوکې په یو صورت کې کور

مشتری ته واپس راغې.نو خالد بیا د شفعې دعوه اوکړله.یعنی د بکر نه، نوخالد انکار اوکړو.او اوس خالد د زید نه دا په شفعه کې اخستل غواړي.او دې واپسۍ ته د بیع درجه ورکوی.او شفعه طلب کوی.نو آیا خالد ته به شفعه ملاویږی؟

**دلیله** دلیل دا بیانوی چې دا بیع نه ده.بلکه د رومبی بیع مکمل فسخ کول دی.نو هرکله چې شرط مکمل فوت شو.نو د شفعې ملاویدو څه سوال دې.یعنی دلته مبیع اجنبی ته نه دې راغلې.بلکه بائع مخکې هم ددې مالك وو.او اوس هم ددې مالك دې.ګویا چې د بائع په ملك کې استمرار(تسلسل) دې.او د استمرار په صورت کې شفعه نه ملاویږی.او یو شئ پخپل مخکنی حالت باندې د واپس کولو په صورت کې شفعه نه ملاویږی.بلکه شفعه د عقد د انشاء په صورت کې ملاویږی .او د عقد انشاء دلته نشته.بیا هرکله چې مشتری په دې مذکوره صورتونو کې مبیع واپس کړو.نو هم دا حکم دې.که د قبضې نه نې مخکې واپس کړی.اوکه د قبضې نه روستو ( یو حکم دې).

| وان ردها بغیر قضاء قاض او که واپس یې کړو کور بغیر د قضا د قاضی نه او تقایلا او یا دواړو د بیعې اقاله اوکړه فللشفیع الشفعة نو د شفیع دپاره شفعه شته |
|---|

**تشریح** په ماقبل کښې چې د کور د واپسۍ کومه مسئله وه نو هغه د قاضی د فیصلې نه پس وو.اوکه د قاضی د فیصلې نه بغیر بائع د مشتری نه کور واپس واخستلو یا دواړو د بیعې اقاله اوکړه نو په دې صورت کښې به د شفیع حق شفعه نه ساقطیږی بلکه هغه به هم هغه شان د شفعې حقدار وی

**دلیله** ځکه چې دلته واپسی د قاضی په فیصله سره نه ده شوې بلکه بائع او مشتری په خپل مینځ کښې په رضا مندۍ سره کور واپس کړې یا اقاله د عقد کړې ده نو د دوی دا فیصله د بیعې فسخه ده خو دا صرف په دوی باندې اثر کونکې ده په شفیع باندې نه ده ځکه چې شفیع دریم فریق دې د دوی ولایت په هغه باندې نه ثابتیږی

# كِتَابُ الشِّرْكَةِ

**ترجمه و تشریح** (داکتاب) د شرکت (په بیان کې ) دې.

**تشریح** **ما قبل سره ربط** د دې نه وړاندې کتاب الشفعه وه په هغې کښې هم بعضې مسئلې د شرکت سره متعلق وی د دې وجې یې په شفعه پسې د کتاب الشرکة انعقاد اوکړو.

**ثبوته** ① اودشرکت ثبوت دقرآن اوحدیث نه ثابت دې الله تعالی فرمانی«فَهُمْ شُرَكَاءُ فِي الثُّلُثِ»

② .حضرت ابوهریره ﷺ فرمانی.چه نبی ﷺ فرمانیلی دی. چې الله تعالی فرمانیلی دی.کله چې دوې [دوه] شریکان دیوبل سره په شریکه معامله کوی.نوزه د دوی په مینځ کې دریم یم.خوچه کله په دوی کې یودبل سره خیانت اوکړی.نو زه تری بهر شم.ددې روایت ابوداود کړې دې.

| (الشِّرْكَةُ على ضَرْبين : شِرْكَةُ أَمْلَاكٍ، وَشِرْكَةُ عُقُودٍ. فَشِرْكَةُ الْأَمْلَاكِ: الْعَيْنُ يَرِثُهَا رَجُلَانِ أَوْ يَشْتَرِيَانِهَا |
|---|

**ترجمه و تشریح** فرمانی (ابو الحسن قدوری ﷫) شرکت په دوې [دوه] قسمه دې.شرکت املاك او شرکت عقود ،نوشرکت املاك (دا دې چه) مال وی. چې په میراث سره نې یوسی دوې [دوه] نفر (مثلاد زید نه یوکور پاتې شو.اودې مړ شو.اودده دوې [دوه] خامن وی.نودغه کور د میراث په

ذريعه ددې دوارو په مينځ كښې شريك شو) او يا ئې واخلي دا دواړه نفر (د يوبائع نه څه څيزمثلاً لس مرلې زمکه واخلي، نودا دواړه مشتريان په دغه مبيعه كې شريكان شول)

| فَلَا يَجُوزُ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَتَصَرَّفَ فِي نَصِيبِ الْآخَرِ إِلَّا بِإِذْنِهِ، وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ كَالْأَجْنَبِي) |
|---|

**ترجمه و تشريح>** نو جائز نه دی لپاره د يو د دوارو چې تصرف اوكړی په برخه د بل كې مګرپه اجازت دهغه سره اوهرواحد د دوارو نه په برخه د خپل انډيوال كښې پشان د پردی دې.

**امثاله>** ① لكه څنګه چې هبه كړې شی دوو كسانو ته يو شی (نود هبه په ذريعه دوی د دغه موهوبه مالكان شول) ②او يا مالكان شی دا دواړه نفر دهغه شی په غلبه راتلو سره (مثلاً دوې [دوه] نفر د حربيانو په مال باندې غالب شی.اوپه هغې باندې قبضه اوكړی.نودوی په دې مال كې شريكان شول)

**د شركت عقود ركن او شرط**

| (وَالضَّرْبُ الثَّانِي: شِرْكَةُ الْعُقُودِ، |
|---|

**ترجمه و تشريح>** او دوئم قسم (دشركت) شركت عقود دې.او ددې (شركت عقود) ركن ايجاب او قبول دې.

**مثاله>** اودا (ايجاب او قبول) دا دې.چه ووايي يوپه دوارو شريكانو كې زه تاشريكوم په فلانی او فلانی عقد كې اوهغه بل ووايي ما قبول كړې دې (دا شركت)

**دشركت په څلوروقسمونوكې شركت مفاوضه**

| هِيَ عَلَى أَرْبَعَةِ أَوْجُهٍ: مُفَاوَضَةٍ، وَعِنَانٍ، وَشِرْكَةِ الصَّنَائِعِ، وَشِرْكَةِ الْوُجُوهِ. فَأَمَّا شِرْكَةُ الْمُفَاوَضَةِ أَنْ يَشْتَرِكَ الرَّجُلَانِ فَيَتَسَاوَيَانِ فِي مَالِهِمَا وَتَصَرُّفِهِمَا وَدِينِهِمَا) |
|---|

**حل اللغة>** ① **يفوض**:سپاری ،حواله كوی ② **المساواة**:برابری

**ترجمه و تشريح>** بيا دا (شركت) په څلورقسمه دې.شركت مفاوضه،شركت عنان اوشركت صناع او شركت الوجوه، نو هر چې شركت مفاوضه دې.نوهغه دا دې.چه شريك شی دوې [دوه] نفر اوبرابر وی په مال او تصرف او دين خپل كې (يعنی د دوارو مال هم يوهومره وی.اودواړه ته تصرف هم يوشان حاصل وی. او دواړه د يو ملت او دين پيروكاروی)

**دليلها>** څكه چې دا (شركت مفاوضه) يوشركت عامه دې.په ټولو تجارتونوكې سپاری په كې هريوشريك په شريكانوكې عمل د شركت خپل انډيوالان ته مطلقاً (يعنی څه قيد په كې نه لګوی.چه فلانې شی به اخلی اوفلانی به نه اخلی اوفلانی سره به كاروبار كوی اوفلانی سره به نه كوې.اوپه دې شركت مفاوضه كې مساوات څكه ضروری دې)څكه چې دا (لفظ د مفاوضه ) د مساوات د قبيلې څنی دې

اواصلاح نه راخی د خلقو چې خلق واړه په يوه مرتبه كې وی.نوبيا خوبه هرسړې څان ته سرداروانی.اود بل خبره به نه منی.نودمعاشرې كارونه به نه چليږی) اونه پاتې كيږی سرداری چې وی سرداران جاهلان يعنی برابر(يعنی چې د يوقوم سرداران او مشران جاهلان وی.نوبه هغوی كې به جنګ جګړې او كشالې وی) نوضروری شوه برابری (په شركت مفاوضه كې ) په اول او په آخركې اودا (مساوات) به وی په مال كې او مراد ددې (مال نه چې مساوات په كې ضروری دې) نه هغه دې چې صحيح كيږی شركت په هغې كې (لكه روپې او اشرفې وی.يعنی دا شيان (څيزونه ) به ددوی په مينځ كې برابر وی)

اونشته اعتبار زيادت لره په هغه څه كې نه صحيح كيږی شركت په هغې كې (لكه سامان او قرضونه

شول.نوکه دیوکس په خلقو باندې قرضونه وي. اوهغه ته لا وصول کړی نه وي. نوعقد مفاوضه نه باطلیږي)

**دليل المساواة في التصرف** > اودغه شان (ضروری دې مساوات) په تصرف کې (چه په عقد مفاوضه کې به هریوکس ته یوشان اختیارحاصل وي.دا نه چې یوته به مکمل اختیار وي.چه څه خرڅوی اوڅه اخلي اوچا سره معامله اوچا سره نه کوی.اوبه بل باندې قیودات وي.چه ته به فلانې شی نه اخلې.اود فلانی سره به معامله نه کوې) ځکه که چیرته مالك شی یود شریکینو نه د یوتصرف اومالك نه وی بل (ددغه تصرف) نو فوت به شی برابری (په عقد مفاوضه کې اوبرابری خو شرط ده اوپه انتفاء د شرط سره انتفاء د مشروط راځی)

**دليل المساواة في الدين** > اودغه شان (ضروری ده برابری) په دین کې لکه چې مونږ به ئې بیان کړو انشاء الله تعالی (په بیان د اشتراط د برابرئ کې په دې ځیزونوکې ) اودا شرکت (مفاوضه) جائز ده زمونږ (داحنافو) په نیز د امله د استحسان نه

**دافرادو په اعتبارسره د شرکت مفاوضه صحت اوعدم صحت**

| (فَيَجُوزُ بَيْنَ الْحُرَّيْنِ الْمُسْلِمَيْنِ الْبَالِغَيْنِ الْعَاقِلَيْنِ |
|---|

**ترجمه و تشریح** > فرمائي (ابو الحسن قدوری رحمه الله) نوجائزده (مفاوضه) په مینځ د دوو آزادو کسانوکې چې دواړه مسلمانان وی دواړه بالغان وی دواړه عاقلان وی.

**دليله** > د دې دپاره چې په دواړو کښې په تحقيق سره مساوات او برابری راشی

| (وَلَا يَجُوزُ بَيْنَ الْحُرِّ وَالْمَمْلُوكِ وَلَا بَيْنَ الصَّبِيِّ وَالْبَالِغِ) |
|---|

**ترجمه و تشریح** > اوجائز نه ده (مفاوضه) په مینځ د آزاد او غلام کې اونه په مینځ د ماشوم او بالغ کې د لمله د نشتوالی د برابرئ نه (په مینځ ددې کسانوکې )

**دليله** > ځکه چې آزاد بالغ مالك وی د تصرف او کفاله اوغلام نه وی مالك د يوځيز په دې دواړوکې (که تصرف دې اوکه کفالت دې) مګرپه اجازت دمولی او ماشوم مالك نه دې د ذمه وارئ اخستلو اونه مالك دې د تصرف کولو مګرپه اجازت د ولی (نو معلومه شوه.چه د اصیل اومملوك او دغه شان دماشوم اوبالغ په مینځ کې مساوات نشته. او د مفاوضه لپاره مساوات شرط دې)

**دکافراومسلمان په مینځ کې دمفاوضه عدم صحت**

| (وَلَا بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْكَافِرِ)[1] |
|---|

**ترجمه و تشریح** > فرمائي (امام قدوری رحمه الله) اونه ده جائز(مفاوضه) په مینځ د مسلمان او کافرکې اودا (عدم جواز) قول دامام ابوحنیفه اومحمد رحمهما الله دې [2][3]

**دليلهما** > د طرفینو رحمهما الله لپاره دلیل دا دې.چه نشته برابری په تصرف کې ځکه چې ذمی که په راس المال

---

[1] ) القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في الخانية (٤٩٤\١) وردالمحتار( ٣٧٠\١٣) والهندية (٣٠٧\٢) نقلاً عن القول الراجح (٥١٣\١)-

[2] ) **مسلك ابي يوسف**:- اوفرمائي امام ابویوسف رحمه الله جائز ده برابری په مینځ ددې دواړو کې په وکالت او کفالت کې ( اوکه امام ابوحنیفه رحمه الله دا وائي.چه د کافراومسلمان په مینځ کې خو برابری نشته.

[3] ) القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في الخانية (٤٩٤\١) وردالمحتار( ٣٧٠\١٣) والهندية (٣٠٧\٢) نقلاً عن القول الراجح (٥١٣\١)-

باندې شراب یاخنزیران واخلي.نودا صحیح ده.اوکه واخلي دا (شراب او خنزیران) مسلمان نو نه صحیح کیږي

## په وکالت او کفالت سره دمفاوضه دانعقاد صحت

(وَتَنْعَقِدُ عَلَى الْوَكَالَةِ وَالْكَفَالَةِ)

**ترجمه و تشریح>** فرماني(ابو الحسن قدوري رحمه الله) اومنعقد کیږي (عقدمفاوضه) په نوم دوکالت او کفالت سره

**دلیل جواز الشرکة في الوکالة>** (ځکه چې په شریکینو کې هرواحد دبل نه وکیل اودهغه ذمه واروي) هرچه وکالت دې (یعني هرچه منعقد کیدل د مفاوضة په وکالت سره دي) نود امله د حاصلیدو د مقصود کوم چې شرکت دې په مال کې (ځکه چې دبل چا په مال کې تصرف جائزنه دې مګرپه ولایت او په وکالت سره اوولایت خو نشته نووکالت ثابت شو.نوهریوشریك دخپل اندیوالان دارخه وکیل شو) لکه چې مونږ بیان کړي دي (په دې قول سره لیکون مایستفاد بالتصرف مشترکا بینهما)

**دلیل جواز الشرکة في الوکالة>** اوهرچه کفالت دې(یعني صحت د مفاوضه په نوم د کفالت سره دې) د امله د تحقق د مساوات نه (کوم چې د مفاوضه معنی ده) په هغه څه کې چې وی د مقتضیاتو د تجارت نه اوهغه (متقضات) متوجه کیدل د مطالبه دي دې دواړو شریکانو ته (یعني په عقد مفاوضه کې دهرشریك نه مطالبه کولې شي.مثلاً چې یوشریك د زید نه څه شي قرض اخستې وي.نوزید دبل شریك نه مطالبه کولې شي.نوهرشریك دبل لپاره په هغه مال کې کفیل شو.کوم چې د تجارت په وجه په ده لازم شوې وي. لنډیز دا چې په مفاوضه کې د وکالت او کفالت معنی پرته ده.ځکه چې هرشریك دبل لپاره وکیل اوکفیل دې. نو ددې امله عقد مفاوضه په لفظ د وکالت او کفالت دواړو باندې منعقد کیږي)

(وَمَا يَشْتَرِيهِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَكُونُ عَلَى الشَّرِكَةِ إِلَّا طَعَامَ أَهْلِهِ وَكِسْوَتَهُمْ)

**حل اللغة>** ① **الکسوة**:لباس،د اغوستې څیزونه ② **الادام**:ترکاري

**ترجمه و تشریح>** فرماني(ابو الحسن قدوري رحمه الله) اوهغه چې اخلي ئې هریوکس د دوی (شریکینو) څخه نو وی به شرکت (یعني ددغه څیزاخستل به په شریکه وي) مګرخوراك د اهل دده(شریك) اوجامې د هغوی (یعني که دا شیان (څیزونه ) یوشریك واخلي. نودا به په شریکه کې نه حسابیږي.اوداستثنائي څیزونو نه سوا د نور هر قسم څیزاخستل به په شریکه کې حسابیږي)

**دلیله>** ځکه چې مقتضی د عقد (مفاوضه) برابري ده اوهریوکس ددواړو شریکینو نه قائم مقام دخپل اندیوالان دې په تصرف کې (چه بیع شراء وغیره دي) اودې اخستل دیوکس د شریکینو نه پشان د اخستلو د دواړو (یعني چې یوکس اخستل اوکړي.نودا داسې ده لکه چې دواړو واخستل) مګر(دیو اخستل د دواړو اخستل نه دي) په هغه څه کې چې استثناء ئې اوشوه په کتاب (قدوري) کې (طعام اوکسوت د اهل دي)

**دلیل الاستثناء>** اودا (مستثنی منه) استحسان دې.ځکه چې ددې (څیزونو) استثناء شوې ده د شرکت مفاوضه نه (یعني ددې څیزونو اخستل په شرکت مفاوضه کې داخل نه دي) د امله د ارتیا نه، (ځکه چې څوك چې عقد مفاوضه کوي.نودده شریکوال ته دا پته وي.چه دخپل بال بچ لپاره د خوراك څکاك انتظام کول ده لپاره ضروري دي.اودا معلومه وي.چه په شریکینو کې یوهم په عقد مفاوضه کې دا قصد نه وي کړې.چه په دې عقد سره به زما اوزما د بال بچ نفقه هم زما په شریك وي) ځکه چې روزانه

پېښېدونکې حاجت (خوراك څکاك ته) معلوم دې واقع کېدل د دې. (اودې شيان (څيزونه ) ته د هريوکس ارتيا هم مختلف وی.څوك يوشان جامې خوښوی او څوك بل شان.څوك يوشان خوراك خوښوی اوڅوك بل شان)

## دمفاوضينو په قرض کې اشتراك

(وَمَا يَلْزَمُ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنَ الدُّيُونِ بَدَلًا عَمَّا يَصِحُّ فِيهِ الِاشْتِرَاكُ فَالْآخَرُ ضَامِنٌ لَهُ)

**ترجمه و تشريح>** فرمانی(ابو الحسن قدوری ﷫) اوهغه چې لازم شی په هر يوکس د مفاوضينو باندې قرضونه په بدل کې دهغه څه چې صحيح کيږی په هغې کې اشتراك (يعنې په مفاوضينوکې که يوکس دچا نه څه څيز قرض واخستلو.اودا قرض عقدنې په داسې څيزکې اوکړلو.چه د عقد مفاوضت د اصولومطابق وی) نوبل (مفاوض) به ذمه وار وی دهغې (قرض)

**دليله>** د امله د مساوات (کوم چې دعقد مفاوضه دمقتضياتوځنې دې.په مينځ د مفاوضينوکې ،يعنې هريوپه مفاوضينو کې مديون دې.دا نه چې چا قرض اخستې دې. هغه مديون دې.اوبل مفاوض خلاص دې.ځکه چې کاروبارد دواړو شريك دې.نوچه کوم قرض راخی.هغه به هم په دواړو وی)

**مثاله>** اومن جمله دهغه څه نه چې صحيح کيږی په کې اشتراك هغه اخستل، (يعنې که يومفاوض څه څيزواخستلو.نوپه دغه اخستلوکښې دواړه شريك دی) خرڅول (که يومفاوض څه څيزخرڅ کړلو.نودا داسې شوه چې بل مفاوض هم خرڅ کړې دې) اواستجاره (يعنې چې په کرايه باندې يوڅيز واخلی.نودهغه څيزمالك په مفاوضينوکې دهريونه دکرايه مطالبه کولې شی.دغه شان که يوڅيزئې چاته په کرايه ورکړلو.نوهرواحد په مفاوضينوکښې دهغه کس نه دکرايه مطالبه کولې شی.چاته چې ئې په کرايه ورکړې وی)

**مثال القسم الثاني>** اومن جمله د دوئم قسم نه (چه مفاوضه په کې نه صحيح کيږی) جنايت دې (که په مفاوضينو کې يوکس بل لره چا په خطاء سره قتل کړلو.نوکفاره به صرف په قاتل مفاوض باندې وی.په بل به نه وی) اونکاح شوه (نوکه په مفاوضينوکې يوکس ديوې ښځې سره نکاح اوکړله.نومهربه صرف په ناکح مفاوض باندې وی.په بل به نه وی) اوخلع (که په مفاوضينوکې يوه ښځه وی.اوهغه دخپل خاوند سره خلع اوکړی.نوبدل خلع به صرف په هغې باندې وی.په بل مفاوض به نه وی) اوصلح دقتل عمد او نفقه نه (که په مفاوضينوکې ديو کس يودريم کس په قصد سره قتل کړلو.،اويا ئې دمقتول اولياؤ سره په ديت باندې صلح اوکړله.يا د يومفاوض نه ښځه دموركره مروره ناسته وی.اودې دخپلې سخرګنې سره صلح اوکړی.چه زه به ورته په هره مياشت کښې مثلاً پنځه زره روپۍ ورکوم.نودا د قتل عمد دصلح بدل اودنفقه دصلح بدل به صرف په دغه صالح مفاوض باندې وی)

## په کوم مال سره شرکت مفاوضه باطليږی

(فَإِنْ وَرِثَ أَحَدُهُمَا مَا لَا يَصِحُّ فِيهِ الشَّرِكَةُ أَوْ وُهِبَ لَهُ وَوَصَلَ إِلَى يَدِهِ بَطَلَتِ الْمُفَاوَضَةُ وَصَارَتْ عِنَانًا)

**ترجمه و تشريح>** فرمانی(ابو الحسن قدوری ﷫) که چيرته په ميراث کې يوړلو يودشريکينو نه مال چې صحيح کيږی په هغې کې شرکت (لکه دراهم ،اشرفۍ شوې) اويا هبه کړې شو ده ته (داسې څيزچه صحيح کيږی په هغې کې شرکت) او يا راغلو لاس دده ته (په بله څه ذريعه د ملکيت باندې يوڅيز چې په هغې کې شرکت صحيح کيدلو) نوباطله شوه مفاوضه او اوګرځيدلو شرکت عنان

**دليله>** د امله د ختميدو د برابری نه په هغه څه کې چې صلاحيت لری چې شی راس المال ځکه چې دا (مساوات) شرط دې په دې (عقد مفاوضه) کې په (حالت د) ابتداء کې اوپه (حالت د) بقاء کې اودا

(شرکت مفاوضه عنان گرخي) خکه چې دغه بل (شريك) شريك نه دې ده (وارث موهوب له) سره په هغه څه کي چې رسيدلی دی ده (وارث اوموهوب له) ته د املـه د نشتوالي د سبب (دملکيت) نه (چې وراثت او هبه ده) په حق دده (شريك) کي (يعنی په کوم سبب باندې چې وارث اوموهوب له د ميراث اوموهوبه څيزمالك شوې دې.دغه سبب د شريك په حق کي موجود نه دې.يعنی هغه ته په وراثت يا په هبه سره څه نه دی حاصل شوې)

### په سامان کي د شرکت مفاوضه په صحت کي اختلاف

(وَلَا تَنْعَقِدُ الشَّرِكَةُ إِلَّا بِالدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيْرِ وَالْفُلُوْسِ النَّافِقَةِ)

**حل اللغة** ① **الفلوس**: رائجې سيکې ② **العروض**: سامان

**ترجمه و تشريح** دا فصل دې (په بيان دهغه څه کي چې په شرکت مفاوضه کي راس المال جوړ کړې شي) اونه منعقد کيږی (شرکت مفاوضه) مگرپه روپو، اشرفواو رائجوسيکو کي، [1]

**دلائله** ① دليل دا دې.چه دا (شرکت في العروض) مفضی دې گټې دهغه شی ته چې ضامن نه دې (مفاوِض) دهغې خکه چې شان دا دې.کله چې خرڅ کړی هريوکس د شريکينو نه راس المال خپل (مثلاً زيد يومن غنم وو.اودعمروهم يومن غنم وو) اوزياتی شو په يويل باندې قيمت نوهغه چې مستحق کيږی ئې يوپه شريکينو کي د زيادت په مال د صاحب خپل کي د داسې څيزد گټې چې مالك ئې نه دې (دغه شريك يعنی په اصل کي خود يومن غنمو قيمت اتلس سوه روپۍ وې.خو زيد خپل غنم په دويشت سوه روپۍ خرڅ کړل. او عمروپه دوې [دوه] زره.نواوس د زيد د راس المال گټه څلور سوه روپۍ شوې اودعمرو دوې [دوه] سوه.چه مجموعه ئې شپږ سوه روپۍ شوې.نوکه په شپږو سوو کي درې سوه روپۍ عمروته ورکړې شی.په دې کي سل روپۍ ده ته دخپل انډيوالان دغنمو گټه ملاؤ شوه. او (مستحق شو د داسې څيزد گټې) چې ضامن نه دې (دهغې څيز، يعنی كه دغه غنم دخرڅولونه وړاندې هلاك شوی وو.نوپه دې عمرو باندې دهغې تاوان نه وو.اودا جائزنه ده.چه يوسړې دې گټه خوری اودتاوان نه دې خلاص وی)

② (بل دليل په دې باندې چې په عروضو کي شرکت مفاوضه نه صحيح کيږی.دا دې.چه) اوخکه چې اول تصرف په عروضو کي خرڅول دی. (يعنی چې يوکس سره سامان وی.نودې په دغه سامان باندې څه اخستلې نشی.بلکه اول به دغه سامان خرڅوی.اوچه پيسې ورته راشی.بيا به په هغه پيسو باندې بل څيزاخلی) او(اول تصرف) په نقودوکي (چه دراهم اواشرفۍ دی) اخستل دی. (چه سړی سره روپۍ وی.نودغه روپۍ دې خرڅولې نشی.بلکه په دې به بل څيزاخلی)

**جواز الشركة بالفلوس النافقة** اوهرچه رائجې سيکې دی(نوپه دې باندې عقدمفاوضه صحيح کيږی) خکه چې دا (سيکې) چليږی (په بازارونوکي) پشان د چليدو د اثمانو (چه دراهم او اشرفۍ دی) نوملحق کړې شوې (سيکې) په دې(اثمانو) پورې،

(وَلَا يَجُوْزُ فِيْمَا سِوَى ذٰلِكَ إِلَّا أَنْ يَتَعَامَلَ النَّاسُ بِهِ كَالتِّبْرِ) وَالنُّقْرَةُ فَتَصِحُّ الشَّرِكَةُ بِهِمَا،

**حل اللغة** ① **التبر**: د سرو زرو ټوټې ② **النقرة**: د سپينو زرو ټوټې

**ترجمه و تشريح** فرمائي(ابو الحسن قدوری رحمه الله) اوجانزنه دې شرکت (مفاوضه) په هغه څه چې سوا

---

[1] **مذهب مالک**: - فرمائي امام مالك رحمه الله صحيح کيږی (شرکت مفاوضه) په سامان کي اوتولی (لکه پی شی) او وزني (لکه غوښه شوه) څيزونو کي ، هم خوپه دې شرط چې وی (دغه سامان) ديوجنس نه

وی ددې (مذکورو څیزونو) نه،البته دا چې کاروبارکوی خلق سرو زرو او سپینو زرو په ټکړو باندې نوصحیح کیږی شرکت (مفاوضه) په دې دواړو (چه کانړی اوویلې شوې تانبه ده)
**دلیله**›اودا (ټکړې په متعین کولوباندې نه متعین کیږی) ددې امله چې معلومه شوې ده چې دا (سره اوسپین زر) پیدا شوی دی ثمن په اصل خلقت کې ، (یعنی دا دواړه فطرتی طورثمن دی.که سکې ترې جوړې شوی وی او که نه وی) مګردا ده.چه اولنې روایت (چه دا په تعین سره متعین کیږی) زیات صحیح دې.ځکه چې دا (سره اوسپین زر) اګرچه پیدا شوی دی لپاره دتجارت په اصل خلقت کې خو ثمنیت (په دې کې ) خاص دې په هغه قسم پورې (یعنی سره اوسپین زراګرچه خلقی طورثمن دی.خوددې ثمنیت هله ښکاره کیږی.چه سکې ترې جوړې شی.اوکه سکې ترې نه وی جوړې شوی.نوبیا دا ثمن نه دی) ځکه چې په دغه وخت کې (چه سکې ترې نه وی جوړې شوې) نښی لګولې په بل څیزکې په ظاهره، (یعنی عام طوربه خلقوکې دا رواج دې.چه د سپینوزرودراهم اود سرو زرو دنانیرد ثمن په طور استعمالوی . نو د اولنی روایت په بناء چې نقره کې د راس المال جوړیدو صلاحیت نشته،چه ترځو ترې سکې نه وی جوړې شوې)
خودومره ده که جاری وی تعامل د خلقو په استعمال ددې دواړو(ټکړې د سرو او سپینوزرو) په استعمال باندې ثمن (یعنی که په خلقوکې ویلې شوې سرو او سپینو زرو په ټکړو باندې کاروبارجاری وی. نوبیا دا ویلی شوی سره او سپین زرهم ثمن ګرځی) نوګرځی تعامل (د خلقو) پشان د سکې (یعنی لکه څنګه چې د سرو او سپینو نه سکې جوړې شی.نوهغه ثمن ګرځی.نودغه شان که په خلقوکې د ویلی شوی سرو اوسپینو زروپه ټکړوباندې د کاروبارکولورواج وی.نودا رواج دې ته دثمنیت درجه ورکوی.نوپه دې صورت کې ) ګرځی (نقره) ثمن او صلاحیت لری چې شی راس المال (په شرکت مفاوضه کې )

**په سامان کې د شرکت مفاوضه دجوازحیله**

| وَإِنْ أَرَادَ الشَّرِكَةَ بِالْعُرُوضِ بَاعَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفَ مَالِهِ بِنِصْفِ مَالِ الْآخَرِ، ثُمَّ عَقَدَ الشَّرِكَةَ |
|---|

**ترجمه و تشریح**› فرمائی(صاحب دقدوری رحمه الله) اوکله چې اراده اوکړی دشرکت په سامان کې نوخرڅ به کړی هریوکس دواړو(شریکینو) ځنې نیم مال خپل په نیم مال د بل سره اوبیا به عقد شرکت اوکړی اودا (دکوم صورت بیان چې ابو الحسن قدوری رحمه الله اوکړلو) شرکت ملك دې (شرکت مفاوضه نه ده)
**دلیله**› دلیل هغه دې کوم چې مونږ وړاندې بیان کړو چه سامان صلاحیت نه لری چې شی راس المال دشرکت (مفاوضه) اومطلب ددې (مسئلې چې هریوکس به په خپل نیم مال باندې دبل نیم مال واخلی. اوبیا به شریك شی) کله چې وی قیمت د سامان د دواړو برابراوکه چیرته وی په مینځ د دواړو (دمالونوپه قیمت کې ) فرق (چه د یومال ارزان وی.اودبل ګران وی) نوخرڅ به کړی صاحب د کم قیمته سامان په اندازه دهغه مقدار چې ثابت شی په هغې باندې شرکت (یوشان )
**ضروری تشریح**› صورت دمسئلې به داسې وی. دیو شریك دسامان قیمت څلور سوه دې.اودبل دسامان قیمت صرف سل روپئ دې. نو د سل روپو خاوند به دخپل سامان څلورحصې چې قیمت ئې اتیا روپئ جوړیږی. هغه به د څلور سوه روپو مالیت واله په پنځمه برخه باندې خرڅ کړی.هغه هم اتیا روپئ جوړیږی.ځکه چې د څلوروسوو پنځمه برخه اتیا دی.نوپه دې طریقه به دسلو روپو دخاوندد خپل مال څلورحصې کومې چې د څلورو سوو روپود خاوند دپنځمې برخې سره برابر دی.په دې کې به دواړه شریك شی. او د څلورو سوو روپومالیت خاوندته به څلورحصې سالمې پاتې شی.اوګټه چې کومه

کیږي. هغه به هم په دې حساب وي.مثلا که سل روپئ ئې اوګټلې.نواتیا روپئ خود خلوروسوومالیت واله خانله مستقلې شوې.اوپه شلو روپو کې ورسره دسلوروپومالیت واله کس شریك شو.

**دشرکت عنان تعریف**

(وَأَمَّا شَرِكَةُ الْعِنَانِ فَتَنْعَقِدُ عَلَى الْوَكَالَةِ دُونَ الْكَفَالَةِ،)

**ترجمه و تشریح>** فرمائي(صاحب دقدوري رحمه الله) اوهرچه شرکت عنان دې.نومنعقد کیږي په وکالت باندې نه په کفالت باندې(یعنی په شرکت عنان کې که یوشریك بل ته اووائي.چه ته زما د اړخه وکیل ئې.اوزه ستا داړخه وکیل یم.نودا صحیح کیږي.که دا اووائي.چه ته به زما ذمه وارئې.اوزه به ستا ذمه واریم.نودا نه صحیح کیږي) اودا (شرکت عنان) دا دې.چه شریك شي دوې [دوه] نفر په یو قسم د جامویا دخوراك په شي کې .اویا شریك شي په عامو سوداګانو کې (څه تخصیص په کې نشته.که خرڅه وي)اودوي ذکر اونه کې (اونکړي)دکفالت (چه یوکس به دبل د معاملې ذمه وار وي)

**دلیله>** اومنعقد کیدل ددې (شرکت عنان) په وکالت سره (یعنی چې هریوکس دبل نه وکیل جوړ شي.نوپه دې باندې شرکت عنان صحیح کیږي) د امله د حاصلیدو د مقصود (د شراکت، یعنی دشرکت مقصود دا وي.چه هسې خودبل په مال کې تصرف جائزنه دې.خود وکالت په ذریعه باندې جائز ګرځي) لکه څنګه چې مونږ بیان اوکړلو ددې (په اول دکتاب کې په دې قول سره چې ،،وشرطه أن یکون التصرف المعقود علیه عقد الشرکة قابلاً للوکالة لیکون مایستفاد بالتصرف مشترکاً بینهما فیتحقق محکمه المطلوب)

**دلیل عدم انعقاد الشرکة العنان بالوکالة>** اونه منعقد کیږي (شرکت عنان) په کفاله سره (یوشریك بل ته اووائي.زه ستا ذمه واریم) څکه چې لفظ (دعنان) راوتلې دې د ډډې کولو نه ونیلی شي (دعربوپه محاوره کې ) عن له یعني اعراض ئې ترې اوکړلو.اودا (اعراض) خبرنه ورکوي دکفاله نه (یعنی دعنان معنی اعراض ده.چه یوکس دبل نه ډډه اواعراض اوکړي.اودکفاله معنی ذمه واری قبلول دي.چه یو کس دبل ذمه وارجوړ شي.نود دواړوپه معنی کښې تضاد دې.څکه شرکت عنان په لفظ دکفاله سره نه صحیح کیږي) اوحکم دتصرف کولو(په مال دیوبل کې ) نه ثابتیږي.په خلاف دمقتضی د لفظ (څکه چې دکفاله دلفظ تقاضا خوذمه واری قبلول دي.اودا معنی شرکت عنان نه قبلوي.څکه چې په هغې کې دیوبل ذمه واری قبلول نه وي)

**په شرکت عنان کې مال اومنافعود برابرئ حکم**

(وَيَصِحُّ التَّفَاضُلُ فِي الْمَالِ)

**حل اللغة>** ① **التفاضل**:زیاتیوالې

**ترجمه و تشریح>** اوصحیح کیږي زیادت په مال کې (په شرکت عنان کې ،چه دیوراس المال زیات وي اود بل کم وي)

**دلیله>** د امله دحاجت نه دې (شرکت عنان) ته (څکه بعضې کاروبارداسې وي.چه په یواخې نه کیږي.نوسړې خان سره بل کس شریك کړي.خوبیا داسې نفر هم کم پیدا کیږي.چه د دواړو سره سرمایه اوراس المال یوشان وي.بلکه یوکس به دکمې سرمایه مالك وي.اوبل به د زیاتې.نوکه دیوکس راس المال زیات وي.دا جائزدې.څکه) نه دې دتقاضا دلفظ (دعنان) څنې برابری (په راس المال کې ،یعنی دعنان لفظ دا تقاضا نه کوي.چه راس المال دې د دواړو شریکانوبرابر وي.لکه څنګه چې د مفاوضه لفظ دا تقاضا کوله.چه دمفاوضینوراس المال دې برابروي)

(وَيَصِحُّ أَنْ يَتَسَاوَيَا فِي الْمَالِ وَيَتَفَاضَلَا فِي الرِّبْحِ)

**ترجمه و تشريح﴾** اوصحيح كيږي (شركت عنان) چې دواړه شريكان برابر وي په راس المال كې اوزيات وي ديوبل نه په ګټه كې ، (مثلاً د دواړو شريكانوراس المال دوې [دوه] دوې [دوه] زره روپۍ وي.اوګټه يوته يو، برخه ملاويږي اوبل ته دوې [دوه] حصې) ([1])

**دلائله﴾** ① دليل قول دنبي ﷺ دي. الرِّبْحُ عَلَى مَا شَرَطَا،وَالْوَضِيعَةُ عَلَى قَدْرِ الْمَالَيْنِ} ([2])"چه ګټه به په هغه اندازه وي. چې مقرر ئې كړې دوې [دوه] شريكان،اونقصان به په اندازه د دواړومالونو وي.اونبي ﷺ تفصيل نه دي كړې. (په مينځ د برابرئ اوتفاضل كنبي.بلكه مطلقاً ئې فرمائيلې دي.چه ګټه څنګه مقرر كړي.هم هغه شان به وي) اوبله دا چې ګټه لكه څنګه مستحقه ګرځي په مال سره (چه سړي ته ګټه خكه ملاويږي.چه دده مال وي) نودغه شان مستحقه ګرځي په عمل سره (يعنى يوسړي ته ګټه خكه ملاويږي.چه دده د اړخه عمل وي.اګرچه مال دده نه وي) لكه څنګه چې په مضاربت كې وي. (ګټه دواړو ته ملاويږي.كه مالك دمال وي اوكه مضارب وي. حالانكه دمضارب د اړخه صرف عمل وي.مال خود رب المال وي)

② (اوددې امله هم په ګټه كې تفاضل جانزدی.چه) كله وي يودشريكينو نه زيات هوښيار او يا تجربه كاربه كاردتجارت كې ) اوزيات وي په كاركولوكې (مال ويستې شى) اوقوى وي. (نوكارزيات كوي.اودغه صفات دده په ملګرى كې نه وي) نونه راضي كيږي (موصوف په دغه صفتونو) په برابرى باندې (په ګټه كې ،بلكه دې د زياتې ګټې مطالبه كوى) نوپيښ شو حاجت تفاضل ته (چه يوته دې زياته ګټه وركړې شى.خكه كه زياته ګټه ورته نه وركوى.نوهغه شركت نه كوى.اوبه ده كې دومره استعداد نه وى.چه دې په خپل مال په خپله ګټه اوكړى)

### په څينې مال كې دشركت عنان جواز

(وَيَجُوزُ أَنْ يَعْقِدَهَا كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِبَعْضِ مَالِهِ دُونَ بَعْضٍ)لِأَنَّ الْمُسَاوَاةَ فِي الْمَالِ لَيْسَتْ بِشَرْطٍ فِيهِ إِذِ اللَّفْظُ لَا يَقْتَضِيهِ

**ترجمه و تشريح﴾** فرمائي (ابو الحسن قدوري ﷫) اوجانزدی چې اوكړى دا (شركت عنان) هرواحد دشريكينو نه په بعضې مال خپل نه بعضې (يعنى په شريكينوكې كه يوكس خپل واړه مال نه بلكه بعضې مال په شركت عنان كې خرچ كړي.نودا جانزدى)

**دليله﴾** خكه چې مساوات په مال كې نه دي شرط په دې(شركت عنان) كې ،خكه چې لفظ دعنان تقاضا نه كوى ددې (مساوات)

(وَلَا يَصِحُّ إِلَّا بِمَا بَيَّنَّا)أَنَّ الْمُفَاوَضَةَ تَصِحُّ بِهِ

**ترجمه و تشريح﴾** اونه صحيح كيږي (شركت عنان) مګربه هغه څه چې مونږ بيان كړلو(يعنى چې په دراهمو دنانيرو او رانجو سيكو باندې صحيح كيږي، اومفاوضه صحيح كيږي په دې (دراهم اودنانيرو) باندې.

---

[1]) **مذهب الشافعي**:- اوفرمائي امام زفراوشافعي ﷭ جانز نه دي چه راس المال دې برابر وي.اوبه ګټه كې دې كمې زياتې وي)

[2]) قال الزيلعي ﷫ قلت غريب جداً ويوجد في بعض كتب الأصحاب من قول علي ﷛ (نصب:۳\۴۷۶)۔

**دليله>** دهغه امله نه کومه چې مونږ ذکرکړې ده (چه په دې کې ګټه د هغه څه ده چې مضمون نه دې)

(وَيَجُوزُ أَنْ يَشْتَرِكَا وَمِنْ جِهَةِ أَحَدِهِمَا دَنَانِيرُ وَمِنَ الْآخَرِ دَرَاهِمُ)

**حل اللغة>** ① **بيض**: سپين ② **سود**: تور ③ **الخلط**: ګډون

**ترجمه و تشريح>** اوجائزدی چې شريك شی دوې [دوه] نفر اووی د يوداړخه اشرفئ اودبل داړخه روپئ اودغه شان (جائزدې شرکت عنان) چې وی د يود اړخه سپينې روپئ اودبل داړخه تورې روپئ ، ([1])

### هم د مشتري نه به دقيمت مطالبه کولای شي

(وَمَا اشْتَرَاهُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا لِلشَّرِكَةِ طُولِبَ بِثَمَنِهِ دُونَ الْآخَرِ)

**ترجمه و تشريح >** فرمائي (ابو الحسن قدوری رحمه الله) اوهغه څيزچه واخلي هريوکس د دوی (شريکينو نه نومطالبه به کولای شی دقيمت دهغې (مشتراة هم دهغه نه) نه دبل (شريك) نه (چه مشتری نه وی)

**دليله>** دهغه امله چې مونږ بيان کړه چې دا (شرکت عنان) متضمن دې وکالـه لـره نـه کفالـه لـره، (نومشتری چې کوم شی واخستلو .په دې کې دې دخپلې برخې په خپله اخستونکې دې.اودشريك په برخه کې دهغه نائب دې. اوذمه وارنه دې. بلکه ذمه واری دهريوپه خپل خان باندې ده)او وکيل هم دې اصل دې په حقوقوکې ، (يعنی هم وکيل مطالبه کوی دهغه چا نه چې په چا باندې حق وی. موکل مطالبه نه کوی)

### په اخستې شوي څيزکې دشريك نه دهغه خپله برخه اخستل

(ثُمَّ يَرْجِعُ عَلَى شَرِيكِهِ بِحِصَّتِهِ مِنْهُ)

**ترجمه و تشريح >** فرمائي(ابو الحسن قدوری رحمه الله) بيا به رجوع کوی په خپل شريك باندې په برخې خپلې دهغې (ثمن) نه مطلب ددې (عبارت) دا دې.چه کله ورکړې دی (بائع ته) دخپل مال نه ،

**دليله>** خکه چې دې(مشتری) وکيل دې د اړخ دهغه (شريك) نـه په برخـه دهغـه (شريك) کـې ، نوهرکله چې ده(مشتری) ورکړې نقدې پيسې (بائع تـه) دخپـل مـال نـه نورجوع بـه کـوی پـه هغـه (خپـل شريك) باندې(مثلاً په سل روپئ ئې يو شی واخستلو .او خپلې سل روپئ ئې ورکړې.نوپنځوس روپئ به دخپل شريك نه واخلی)

### داخستلونه وړاندې دټول يا ديوشريك دمال هلاکت

(وَإِذَا هَلَكَ مَالُ الشَّرِكَةِ أَوْ أَحَدُ الْمَالَيْنِ قَبْلَ أَنْ يَشْتَرِيَا شَيْئًا بَطَلَتِ الشَّرِكَةُ)

**ترجمه و تشريح >** فرمائي(ابو الحسن قدوری رحمه الله) اوکله چې هلاك شی مال دشرکت (ټول) اويا يود دومالونونه (يعنی ديوشريك مال هلاك شی) وړاندې د دې نه چې دوی اخستې وې په هغې باندې څه څيز، نوباطل شو شراکت

---

[1] ، **مذهب الشافعي**:- اوفرمائي امام زفر او شافعي رحمهما الله چې جائزنه دی (هرصورت د صورتينو نه) اودا اختلاف بناء دې په شرط کولودخلط اوعدم خلط باندې (يعنی دا چې په شرکت کې خلط دمالونود شريکينو شرط دې اوکه نه دې) خکه چې په نيز ددوی دواړو(امام زفراوشافعي رحمهما الله) دا (خلط) شرط دې. (که مالونه نه وی خلط شوې.شرکت نه صحيح کيږی) اونه متحقق کيږی دا (خلط دمالونو) په مختلف الجنس څيزونوکې (لکه دراهم اودنانيرشوپه دې کې ګډون اوخلط نشی راتلی)

**دليله** ځکه چې معقود عليه (په کوم څيزباندې چې شرکت کيږي) په عقددشراکت کې مال دې. (اوچه معقود عليه فوت شي.نوعقد باقي پاتې نشي) ځکه چې مال متعين کيږي په دې(شرکت) کې په متعين کولوسره، (اګرچه نه متعين کيږي په ټولو معاوضاتوکې .يعنې په عـام طـوردراهم اودنانيرنـه متعين کيږي. خوپه شرکت کې متعين کيږي.مثلاً چې دوې [دوه] شريکان په متعينودراهمـو اودنانيروکې دشرکت عقد اوکړي.نوهم په دغه دراهمو اودنانيروکې به شرکت صحيح کيږي.اوددوی په تعين سره په دراهمو اودنانيروکې تعين راځي.نو لنډيز دا شوه.که دغه متعين دراهم هلاك شي.نوشرکت باطل شو) لکه څنګه چې متعين کيږي مال په هبه اوپه وصيت کې (يعنې کوم دراهم چې ئې يوکس ته هبه کړې وي.نوموهوب له هم دهغه دراهمو مستحق دې.دغه شان په وصيت کې چې ئې دکومو متعينو دراهمو وصيت دچا لپاره اوکړلو.نوهم هغه دراهم به موصی له ته ملاويږي.نوکه دغه متعين هبه شوې دراهم يا وصيت شوې دراهم کـه هـلاك شي.نوموهوب لـه اوموصی لـه د هغې پـه عـوض کې د نـورو دراهمـو داستحقاق مطالبه نشي کولې)

### ديوشريك مال اخستل اودبل مال هلاکيدل

(وَإِنْ اشْتَرَى أَحَدُهُمَا بِمَالِهِ وَهَلَكَ مَالُ الْآخَرِ بعدالشِّرَاءِ فَالْمُشْتَرَى بَيْنَهُمَا عَلَى مَا شَرَطَا)

**ترجمه و تشريح** اوکـه واخستلويوپه شريکينوکې په مـال خپـل بانـدې (يوڅيز)اوهـلاك شومال دبل (شريك) وراندې داخستلو نه نواخستې شوې څيزبه وی په مينځ ددوی دواړوکې په هغه برخه چې شرط کړې وی دوی دواړو(دا اخستې شوی څيزبه ددوی په مينځ کې مشترك وی)

**دليله** ځکه چې ملك (په مشتراة) باندې په کوم وخت کې چې واقع کيدلو نو واقع شـوې دې مشترك په مينځ د دې دواړوکې د امله دقيام دشراکت نه په وخت داخستلوکې نونه بدليږي حکم (دشراکت) په هلاکت دمال دبل روستـه ددې (شراکت نه په وخت د اخستلوکې .مثلاً زيداوبکردوې [دوه] دوې [دوه] زره روپۍ يوځـائې کـړلې.اوعقدشرکت ئې اوکړلـو.ددې شرکت نـه روستـه زيدپـه خپلودوو زرو روپـو کمپيوټر واخستلو.اودبکردوې [دوه] زره روپۍ چا غلا کړې.نودغه کمپيوټربه دواړوپه مينځ کې په شريکه وی.ځکه چې دا دعقدشرکت نـه روسته اخستې شـوې دې.نود دواړوملك پرې مشترکه طور راغلو.اودبکردوې [دوه] زره روپۍ چې غلا شوې.هغه هم دشريکې نه غلا شوی دی صرف دهغه نه دی غلا شوې)

### ديوشريك دبل نه خپله برخه قيمت اخستل

(وَيَرْجِعُ عَلَى شَرِيكِهِ بِحِصَّتِهِ مِنْ ثَمَنِهِ)

**ترجمه و تشريح** فرمائي(ابو الحسن قدوری رحمه الله) اورجوع به کوی (دغه مشتری) په شريك خپـل بانـدې په برخه دخپلو روپو (مثلاً که په سل روپۍ ئې دغه څيزاخستې وی.نوپنځوس به دخپـل شـريك نـه اخلی)

**دليله** ځکه چې ده (مشتری شريك) اخستې دې نصف دده څيز(کوم چې ئې واخستلو) په وکالت دهغه (شريك خپل.چه دهغې په اخستلوکې دخپل شريکوال وکيل شو) او نقدقيمت ئې ورکړلو دمال خپـل نـه (اووکيل چې کله دموکل لپاره خپلې پيسې اولګوی.هغه به دموکل نـه اخلی) اويقيناً مونږ ددې بيان کړې دې (په تيرو شوومسائلوکې )

### دشرکت لپاره دمالونواختلاط شرط نه دې

قَالَ (وَتَجُوزُ الشَّرِكَةُ وَإِنْ لَمْ يَخْلِطَا الْمَالَ)

**حل اللغة** ① **الربح**:ګټه ② **تعين**:معين کول

**ترجمه و تشریح** ﴿فرمائي(ابوالحسن قدوري )اوجائزدي شرکت اگرچه یوځائي کړې ئې نه وي مال [1])

**دلائله** ﴿ ① دلیل دا دې.چه شرکت په ګټه کې منسوب دې عقد(شرکت) ته نه مال ته (اوهرهغه څیزنسبت کولای شي هغې ته نوهغه اصل وي) ځکه چې عقدته شرکت وئیلې شي. (مال ته نشي وئیلې) نوضروري دې وجود د معنی ددې اسم (دشرکت) په دې (عقد) کې ، (نوهرکله چې اصل چې عقد دې هغه موجود وي.نوثابتیږي به حکم په فرع کې چې ګټه ده) نونه شو خلط (دمالونو) شرط (په صحت د شرکت کې )

② (دوئم دلیل داحنافو دا دې.اودا د اولنی دلیل لپاره یو قسم شرح ده) اوبله دا چې دراهم او دنانیر نه متعین کیږي (یعنی کله چې په دې باندې یوڅیزواخستې شي.نوداستحقاق په حق کې نه متعین کیږي) نونه حاصلیږي ګټه په راس المال باندې بلکه حاصلیږي په تصرف سره (چه شریکین په مال کې تصرف کوي.نوددغه تصرف په وجه دوی ته ګټه ملاویږي) اوبله دا چې دې (مشتري شریك) په نیم (اخستې شوې څیز) کې اصیل دې. (یعنی دڅیز نیمه برخه ئې دخپل ځان لپاره اخستې ده) اوپه نیمه برخه کې (د خپل شریك دارخه ) وکیل دې.اوهرکله چې ثابت شو شرکت په تصرف کې بغیرد خلط (دمالونو) نه نو ثابتیږي به (شرکت) په هغه شي کې چې حاصل شوې وي.په دې (تصرف) سره اوهغه ګټه ده.بغیر ددې (خلط) نه (یعنی هرکله چې په راس المال کې دشرکت نه بغیرپه ګټه کې شرکت راځي. نو دغه شان چې راس المال موجود وي.خوخلط شوې نه وي.هم به په ګټه کښې شرکت وي)

(وَلَاتصح الشَّرِكَةُ إِذَاشُرِطَ لِأَحَدِهِمَا دَرَاهِمُ مُسَمَّاةٌ مِنْ الرِّبْحِ)

**حل اللغة** ﴿ ① **مسماة**:نامد ارشوې

**ترجمه و تشریح** ﴿ فرمائي(ابو الحسن قدوري ﷫) اوجائزنه دې شرکت کله چې شرط کړې شي دیود شریکینو لپاره روپۍ معلومې د ګټې نه (مثلاً چې دا اووائی.کومه ګټه چې اوشي.په هغې کې به سل روپۍ د زید وي)

**دلیله** ﴿ ځکه چې دا داسې شرط دې.چه واجبوي ختمول د شرکت،ځکه چې کیدې شي چې دا (ګټه) اونشي مګرپه اندازه دمقررشوې ګټې د یود شریکینو لپاره (یعنی کیدې شي.چه ټوله ګټه سل روپۍ اوشي.نودغه سل روپۍ به زید واخلي.اوبل شریك ته به ئې هیڅ هم پاتې نشي.اودا خبره د عقدشرکت د مقتضی نه منافي ده. ځکه چې دشرکت تقاضا دا ده.چه په ګټه کې به شریکین شریك وي.اوچه په ګټه کې شریك نشو.نوشرکت رانغلو) اونظیر ددې (مسئلې موجود دې) په مزارعت کې ، (مثلاً چې دوې [دوه] نفر په پټی کې په شریکه یو څیزاوکری.اودا شرط اولګوی.چه کوم فصل اوشي.نوپه هغې کې به د سرنه سل منهٔ د زید وي.نوپه مزارعت کې دا شرکت ناجائزدې.ځکه چې کیدې شي.په دغه پټی کې واړه فصل سل منهٔ راوخیژی. نو یوته به برخه ملاوشي.اوبل به محرومه پاتې شي.اودا خبره د شرکت د مقضتیانو نه خلاف ده.نولکه څنګه چې په باب د مزارعت کې داسې شرط لګول ناجائزدی.دغه شان به په باب د شرکت عنان کې هم ناجائز وي)

**په شرکت مفاوضه اوعنان کې به بضاعت سره مال ورکول**

(وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْ الْمُتَفَاوِضَيْنِ وَشَرِيكَيِ الْعِنَانِ أَنْ يُبْضِعَ الْمَالَ )

**حل اللغة** ﴿ ① **یبضع**:خرچ کوی ② **معتاد**:د عادت او رواج مطابق

[1]) **مذهب الشافعي**:- اوفرمائي امام زفراوشافعي ﷮ جائزنه دې شرکت (بغیردیوځائې کولودمالونونه)

**ترجمه و تشريح** فرمائی (ابو الحسن قدوری ﷫) اوجائزدی لپاره دهریوکس د متفاوضین او دشریکینو دشرکت عنان چې به بضاعت سره ورکړی مال (چاته،یعني چې چاته اووائی.دا مال راخله.ته پرې کاروبار کوه.خوچه کومه گټه کیږی.هغه به زما وی.ستا به په گټه کي برخه نه وی)

**دلائله** ① خکه چې دا (بضاعت) رائج شی دی په عقد شرکت کي

②اوبله دا چې جائزدی دده (شریك) لپاره چې په اجرت سره ورکړی څوك لپاره دعمل (یعنی د شریك لپاره دا جائزدی.چه دگټې لپاره په یوکس باندې په اجرت اومزدوریٔ کاراوکړی.اودشریکې د پیسو نه مزدوری ورکړی) اوحاصلول دگټې بغیرد بدلې (اومزدوریٔ) نه کم دي د دي (اجرت ورکولو) نه ،نومالك به وی ددې (ابضاع په طریق اولی سره یعنی هرکله چې شریك ته ددې اختیارشته.چه په شریك کاروبارکي دگټې کولو لپاره بل کس په اجرت اونیسی.اوهغه ته پیسې ورکړی.نوددې خوبه خامخا مالك وی.چه یوکس ته دگټې کولو لپاره دشریکې پیسې ورکړی.اوهغه ترې مزدوری اوحصه هم نه اخلی.خکه چې دا خوسراسر فائده ده)

| (وَيَدْفَعُهُ مُضَارَبَةً)، |
|---|

**ترجمه و تشريح** فرمائی(ابو الحسن قدوری ﷫) اوورکوی دې (یودشریکینونه مال شرکت) په مضاربت سره (بل ته)

**دلیله** خکه چې دا (مضاربت) کم دې (په مرتبه کي ) د شرکت نه نومتضمن به وی (شرکت) دې (مضاربت) لره (یعنی دشرکت عقد دمضاربت نه په درجه کي پورته دې.خکه چې په دې کي د شریکینومال اوعمل وی.اوپه مضاربت کي صرف د رب المال سرمایه وی.اودمضارب عمل وی.نوپه عقدشرکت کي دا صلاحیت شته.چه ددې په ضمن کي شریك بل چا سره مضاربت اوکړی)

**الرواية النادرة** اودامام ابوحنیفه﷫ نه روایت دې چې شان دا دې.نه دې جائزده (شریك) لپاره دا (مضاربت) خکه چې دا (مضاربت) یو شان شرکت دې (نوپه مرتبه کي دعقدشرکت نه کم نشو.اوچه دهغې نه کم نشو.نوعقدشرکت مضاربت لره متضمن نه ده) او زیات صحیح قول اول دې (چه شریك مضاربت کولې شی) اودا (روایت د جواز) روایت د اصل (مبسوط) دې.

**دلیل رواية الاصل** خکه چې شرکت مقصود نه دې بلکه مقصود حاصلول د گټې دې. (چه گټه اوشی.اوچونکه شرکت دگټې کولو لپاره ذریعه ده.نوخکه خلق شرکت کوی)

**نظیره** لکه څنګه چې (جائزدی دشریك لپاره دا چه) اونیسی یوکس په مزدوریٔ سره (اودهغه په کاروبارکي کارواخلی) بلکه په طریقه اولی سره به جائز وی(د شریك لپاره مضاربت کول) خکه چې دا (مضاربت) گټه ده بغیرد تاوان نه په ذمه د رب المال کي (یعنی مضارب د رب المال نه دخپل عمل څه مزدوری خو نه اخلی بلکه هغه خود رب المال په مال کي کاروبارکوی.اودهغې نه خپله هم گټه خوری.اورب المال ته هم ورکوی.اوچه څوك په مزدوریٔ سره اونیسی.نوهغه ته خو دشرکت د مال نه اجرت ورکوی نوهرکله چې استیجارجائز شو نومضاربت خوبه په طریق اولی سره جائز وی)په خلاف د شرکت خکه چې دې (شریك ) مالك نه دې ددې (شرکت یعنی چې دوې ادوه نفر په یوکاروبارکي شریك شی. نو یوشریك بل کس سره په دغه مال کي شرکت نشی کولې) خکه چې یوڅیزخپل تابع نشی گرځولې دخپل خان پشان شی (یعنی چې دوې ادوه شیان (څیزونه ) په مرتبه کي یوشان وی.نوپه هغې کي یوڅیزبل لره دخپل خان تابع نشی گرځولې .اودلته کي هم یوشرکت بل شرکت خپل تابع نشی گرځولې.یعنی یو شرکت بل شرکت لره نشی متضمن کیدې)

(وَيُوَكِّلُ مَنْ يَتَصَرَّفُ فِيهِ) ويرهن ويسترهن ويستأجرالاجنبي عليه ويبيع بالنقد والنسيئة

**ترجمه و تشريح** > فرماني (ابو الحسن قدوری ﷫) او (يوشريك) وكيل جوړولي شي هغه څوك چي تصرف كوي په دې (مال دشركت) كې اودا چې په ګانړه وركړي يا په ګانړه واخلي او په دې باندې اجنبي كس په كرايه واخلي او په نقد او په قرض يې خرڅ كړي

**دليله** > ځكه چې وكيل مقرركول په اخستلو اوخرڅولو كي مقتضيات د تجارت دی. (چه تجارت وی.نوسرې واړه كارونه په خپله نشي كولې بلكه په كارونوكي به ديوكار لپاره يوكس خپل وكيل مقرركړي.اودبل كار لپاره به بل كس خپل وكيل مقرركړي) اوشركت منعقد شوې دې لپاره د تجارت

**استثناء مسئلة الوكالة بالشراء** > په خلاف د وكيل نيولونه صرف داخستلو لپاره ځكه چې دې مالك نه دې چې وكيل مقرر كړي بل كس (يعنی كه يوكس نې صرف د اخستلو لپاره وكيل مقرر كړی وی.اودنورو تصرفاتواجازت ورته نه وی شوې.نودا وكيل بالشراء بل څوك د كاروبار لپاره وكيل نشي مقرر كولې) ځكه چې دا يوه خاصه معامله او عقد دې.طلب كوی (موكل) دده (وكيل) نه حاصلول دمعين څيز نوتابع به نشي ګرځولې (په دې خاص عقد د وكالت بالشراء كې) پښان ددې (عقد ،يعنی چې يوكس صرف د يو شي داخستلو لپاره وكيل مقرركړې شي. نو دغه وكيل بل څوك ددغه شي داخستلو لپاره وكيل نشي مقرر كولې.ځكه د اولني كس سره عقدوكالت شوې دې.نودا عقد وكالت صلاحيت نه لري.چه بل چا سره دوكالت عقد اوكړي.ځكه يوڅيزدخپل ځان نه پورته اوبرابرڅيزلره نشي متضمن كيدې.كه متضمن كيږي.نودخپل ځان نه د كم شي لره متضمن وی)

## دیوشریك دبل شریك په مال د قبضې حیثیت

(وَيَدُهُ فِي الْمَالِ يَدُ أَمَانَةٍ)

**ترجمه و تشريح** > فرماني (ابو الحسن قدوری ﷫) اوقبضه دده (شريك) په مال (دشريك) كې قبضه دامانت ده (يعنی د شريك مال ده سره بطورامانت دې)

**دليله** > ځكه چې دده (شريك) قبض كړې دې مال په اجازت د مالك (چه شريك دې) نه (نې دې اخستې) په طريقه د بدل (لكه څنګه چې په بيع كې وی.مشتری د بائع نه يوڅيز واخلي. خودهغې په بدل كې ثمن وركړي بلكه ده خو ترې ددې لپاره اخستې دې.چه په دې به په شريكه كاروباركوو.اوګته به نې په خپل مينځ كې تقيسموی) اونه (نې دې اخستې) په طريقه په وثيقه (لكه څنګه چې په رهن كې مرتهن د راهن نه مال واخلي.خوددې لپاره چې د مرتهن ورسره قرض وی.هغه قرض ترې په آسانتيا سره وصول كړې شي.بلكه دلته خود شركت لپاره ترې ده مال اخستې دې)نواوګرځيدلو(دا مال د شركت) پشان دامانت.

## دشرکت صنائع تعریف

(وَأَمَّا شَرِكَةُ الصَّنَائِعِ) فَالْخَيَّاطِينَ وَالصَّبَّاغِينَ يَشْتَرِكَانِ عَلَى أَنْ يَتَقَبَّلَا الْأَعْمَالَ وَيَكُونَ الْكَسْبُ بَيْنَهُمَا فَيَجُوزُ ذَلِكَ)

**حل اللغة** > ① **الخياطين**:جمع د خياط د درزی ② **الصباغين**:جمع د صباغ،رنګساز

**ترجمه و تشریح** > فرمائي(صاحب دقدوري رحمه الله) اوهرچه شرکت دصنائع دي. نو چې دوی [دوه] درزیان وي یا دوې [دوه] رنګسازیان وي.چه شریك شي په دي باندې چې اخلي کارونه اووی به ګټه په مینځ د دواړوکي په شریکه وي.نوجائزدې دا شرکت (۱)

**دلیله** > دلیل دا دې.چه مقصود ددې (شرکت صنائع) نه ګټه ده اودا (ګټه) ممکن ده په وکیل جوړولوسره (چه هریوکس دبل لپاره کاراخستلوکي وکیل شي) څکه چې دې هرکله وکیل شي په نصف کي اواصیل په نصف کي نوثابت شو شرکت په مال ګټلی شوی کي اونشي شرط کولې په دې (شرکت صنائع) کي اتحاد د عمل (بلکه که یوکس پاېکالي جوړوي.اوبل کس قمیص جوړوي.نوهم شرکت جائزدي)

## دیود اخستی کارپه بل باندې لزوم

| (وَمَا يَتَقَبَّلُهُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنَ الْعَمَلِ يَلْزَمُهُ وَيَلْزَمُ شَرِيكَهُ) فَإِنْ عَمِلَ أَحَدُهُمَا دُونَ الْآخَرِ فَالْكَسْبُ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ |
|---|

**حل اللغة** > ① **الدافع**:ورکونکې

**ترجمه و تشریح** > فرمائي(ابو الحسن قدوري رحمه الله) اوهغه چې واني خلي هرواحد د شریکینونه دڅه کارنه (مثلاً یوکس ورته د جامو جوړولو لپاره کپړه ورکړله)نولازمیږي په ده (اخستونکي باندې کول ددغه کار) اوپه شریك دده (اخستونکي) باندې نو که عمل اوکړو یو کس په دواړو کښې او بل اونکړو نو کسب به د دواړو په مینځ کښې نیم نیم وي

**ثمرته** > تردې چې هرواحد دواړو(شرکینو) څنې مطالبه کولای شي دده نه دکار(یعني دا ضروري نه ده.چه چاته ئې کپړه ورکړې وي.هم دهغه نه دجامومطالبه اوکړي.بلکه که د بل انډیوالان نه ئې اوکړي.نوهم کولې شي) اومطالبه اوکړي د مزدورئ (یعني په شریکینوکي چې هریوکس د مستاجرنه د مزدورئ مطالبه اوکړي.نوکولې شي)

**هذا حکم الاستحسان** > اودا (لزوم د عمل په هرواحد د شریکینو څنې) ښکاره دې په شرکت مفاوضه کي ، (څکه چې په دې کي هرشریك دبل د اړخه په نصف عمل کي وکیل وي.اوپه نصف کي اصیل وي) اوپه سوا ددې (شرکت مفاوضه) کي (چه شرکت عنان دې جواز د دې لزوم دعمل) استحسان دې.

**دلیله** > اووجه داستحسان دا ده.چه مقتضی د ضمان دې. (یعني ضمان په هرواحد د شریکینو باندې راځي.داسې نه ده چې کوم شریك د عقد سره مباشروی.صرف په هغه باندې ضمان اوتاوان راځي) ولې ته نه ګورې هغه چې واني اخلي هریوکس د دې دواړو شریکینوڅنې نه څه کار،نومضمون دې په بل باندې (یعني که کاریوشریك واخلي.خومطالبه د جامې د واپسئ دهریونه کولې شي)

**وحکم القیاس** > **ترجمه و تشریح** > اوقیاس خلاف دې ددې نه (چه عقددې یواوکړي.اولزوم د عقد دمقتضیاتو دې په بل راځي) څکه چې شرکت (په شرکت عنان وغیره کي ) واقع شوې دې مطلق (دذکردکفاله نه یعني په شرکت عنان وغیره کي دا ذکربه وي.چه هرواحد بل ته اووائي.ته زما د عمل ذمه وارئې.اوزه ستا دعمل.اوکفاله د شرکت عنان د مقتضیاتوڅنې هم نه ده.چه ذکردې نه وي.اوبیا دې په کي هم کفاله مراده وي) اوکفاله . مقتضیاتودشرکت مفاوضه ده. (یعني شرکت مفاوضه داسې عقددې.که دعقدپه وخت کي دا تصریح هم اونکړي.چه ته به زما دعمل کفیل ئې اوزه به ستا نوبیا هم

(۱) **مذهب الشافعي**:- اوفرمائي امام زفراوشافعي رحمهما الله چې جائز نه دې (شرکت صنائع)

په دوی کي هرواحد دبل دعمل کفیل اوذمه وار دي.ځکه چي دمفاوضه تقاضا دا ده.چه هرشریك دي دبل د عمل ذمه واروی. نوځکه ني اوونیل.چه دیودعمل د مقتضیاتو لزوم چي په بل راځي.دا په شرکت مفاوضه کي قیاس دي.او په شرکت عنان کي استحسان دي)

**دشرکت وجوه تعریف**

(وَأَمَّا شِرْكَةُ الْوُجُوهِ فَالرَّجُلَانِ يَشْتَرِكَانِ وَلَا مَالَ لَهُمَا عَلَى أَنْ يَشْتَرِيَا بِوُجُوهِهِمَا وَيَبِيعَا فَتَصِحُّ الشَّرِكَةُ عَلَى هَذَا)

**حل اللغة** ① **وجاهة**:مقام،شهرت

**ترجمه و تشریح** فرماني(ابو الحسن قدوری رحمه الله) اوهرچه شرکت وجوه دي. (نوصورت ددي په دا وی.چه) دوي [دوه] نفر شریك شي اونه وی راس المال ددوی لپاره (اوشریك شي) په دي شرط چي دوی به اخستل کوی په خپل مخ مروت باندي اوخرڅول به کوی نوصحیح کیږی دا شرکت اوددي امله (چه دوی په خپل مخ مروت باندي اخستل اوخرڅول کوی)

**وجه التسمیة** نومول شو دا شرکت په دي (شرکت الوجوه) باندي (یعنی وجوه جمع دوجه ده. اووجه مخ ته وائي) ځکه چي اخستل نه کوی په قرضو باندي مګرهغه څوك چي وی دهغه مخ مروت په خلقوکي (نو خلق پري اعتماد کوی.او پوره شي ورته ورکوی)

**هرواحددبل نه وکیل دي**

(وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا وَكِيلُ الْآخَرِ فِيمَا يَشْتَرِيهِ)

**ترجمه و تشریح** فرماني(ابو الحسن قدوری رحمه الله) اوهریوکس ددي دوارو (شریکینو)څني وکیل دبل دي په هغه څه کي چي ني اخلي.

**دلیله** ځکه چي تصرف په بل باندي جائزنه دي مګرپه وکالت اویا په ولایت سره، (یعنی چي سړي دبل لپاره یوڅیزواخلي.یا ني خرڅ کړي.نوهله جائزوی.چه دا متصرف دهغه وکیل وی.اویا ني ولي وی) اونشته ولایت (په دي شرکت وجوه کي دیوشریك په بل باندي) نومتعین شو وکالت ( لپاره د جواز د تصرف)

**په مشتراة اوګټه کي دبرابرئ جواز**

(فَإِنْ شَرَطَا أَنْ يَكُونَ الْمُشْتَرَى بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ فَالرِّبْحُ كَذَلِكَ، وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَتَفَاضَلَا فِيهِ، وَإِنْ شَرَطَا أَنْ يَكُونَ الْمُشْتَرَى بَيْنَهُمَا أَثْلَاثًا فَالرِّبْحُ كَذَلِكَ)،

**ترجمه و تشریح** که شرط کړلو(په شرکت وجوه کي دوارو شریکانو) چي اخستي شوي شی به په مینځ ددوی کي نیم په نیمه وی.نو ګټه به هم دغه شان وی(نیم په نیمه) وی.(نوجائزدي دا شرط) اوجائزنه دي چي زیات وی یوپه بل باندي په دي (ګټه) کي ،اوکه دواړه شرط اولګوی چي وی به اخستي شوي څیزپه مینځ د دوی کي درې برخي (یوه برخه به دیوشریك وی اودوي [دوه] برخي به دبل شریك وی) نوګټه به هم دغه شان وی(د یوي برخي واله ګټه به یوه برخه وی.اود دووحصو والا ګټه به دوي [دوه] برخي وی)

**دلیله** دا (د لزوم د برابرئ په ګټه کي ) ځکه چي ګټه استحقاق ددي نه راځي.مګرپه مال سره اویا په عمل سره اویا په ضمان کي (اووضاحت ددي دا دي) نو(په مضاربت کي ) رب المال مستحق ګرځي ددي (ګټي) په مال سره (ځکه چي دده مال په کي لګیدلي وی) اومضارب مستحق ګرځي ددي (ګټي)

په عمل سره (یعنی مضارب د رب المال په مال کي تجارت کوي.اوددغه تجارت په وجه دي د ګټي مستحق ګرځي) اواستاذ هغه چي ښائي هنر خپل شاګرد ته په نیمه باندي (دا استاذ دګټي مستحق ګرځي) په ضمان سره (یعني په شرکت الوجوه کي که یوکس یودرزي ته کپړه راوړه.چه ددي نه جامي جوړي کړه.اودغه درزي دغه کپړه خپل شاګرد ته ورکړي.چه ددي نه جامي جوړي کړه.اوګټه به نیمه وي.نوبه دي صورت کي چي دا استاذ د نیمي ګټي مستحق ګرځي.په دي وجه چي دي ددغه جامو جوړولو ذمه وار دي.که دغه کپړه ضائع شي.نواستاذ باندي به تاوان راځي.نوهرکله چي پري تاوان راځي.نوګټه به هم اخلي. ځکه چي غنم په مقابله دغرم کي وي)

**عدم الجواز فیما سواه** > **ترجمه و تشریح** > اومستحق نه ګرځي یوکس (دګټي) په هغه چي سوا وي ددي (دري ځیزونو نه چي مال ،عمل اوضمان دي) ولي ته نه ګوري ځوك چي ووایي بل ته ته تصرف کوه په مال خپل کي په دي شرط چي ګټه دهغي به زما لپاره وي.نودا جائزنه ده.د امله د نشتوالي ددي ځیزونوپه دي عقدکي یعني کوم کس چي د ګټي شرط لګوي.نونه خوددغه ګټي په تجارت کي دده مال شته.اونه دي کارکوي.اونه دي ضامن دي. نو ځنګه به دي د ګټي مستحق جوړ شي)

**په اصطیاد اواحتطاب کي دشرکت صنائع عدم جواز**

| (وَلَا تَجُوزُ الشَّرِكَةُ فِي الِاحْتِطَابِ وَالاحتشاشِ وَالِاصْطِيَادِ، وَمَا اصْطَادَهُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَوِ احْتَطَبَهُ فَهُوَ لَهُ دُونَ صَاحِبِهِ)، |
|---|

**حل اللغة** > ① **الاحتطاب**:لرګي جمع کول ② **الاصطیاد**:ښکار کول

**ترجمه و تشریح** > اوجائزنه دي شرکت په لرګوجمع کولوکي اوپه واښو جمع کولو کښي اوپه ښکارکولوکي اوهغه چي ښکاراوکړي دهغي هریوکس ددي شریکینو ځني یا ئي لرګي جمع کړلو نودغه (ښکاراولرګي) دده (ښکارکونکي اولرګي جمع کونکي) لپاره دي نه لپاره د انډیوالان دده

**دلیله** > ځکه چي شرکت متضمن دي معنی د وکالت لره (چه هرشریك دبل لپاره وکیل وي) اووکیل مقرر کول په مباح مال کي باطل دي،ځکه چي امرد موکل په دي (حاصلولودمباح ځیز) صحیح نه دي او وکیل مالك وي ددي (حاصلولودمباح ځیز) بغیردحکم دده(موکل) نه نو صلاحیت نه لري یوکس چي شی نائب دهغه (خپل ملګري) نه (لنډیز دا چي شرکت متضمن دي معنی د وکالت لره،اوپه دي ځیزونوکي وکالت ځکه نه صحیح کیږي.چه هرواحد ددي مالك دي.چه یو مباح ځیزدځان لپاره حاصل کړي.اګرچه چا ورته حکم نه وي کړي.نوهرکله چي دي په خپله ددغه مباح شي د حاصلولو مالك دي.نوشرکت ته ارتیا څه پاتي شو.ځکه چي شرکت خوسري ددي لپاره کوي.چه ګټه راته آسانه شي)

**دخچراودمشك دخاوندانوپه اوبوکي دشرکت حکم**

| وَإِذَا اشْتَرَكَا وَلِأَحَدِهِمَا بَغْلٌ وَلِلْآخَرِ رَاوِيَةٌ يَسْتَقِي عَلَيْهِمَا الْمَاءَ وَالْكَسْبُ بَيْنَهُمَا لَمْ تَصِحَّ الشَّرِكَةُ، وَالْكَسْبُ كُلُّهُ لِلَّذِي اسْتَقَى الْمَاءَ، وَعَلَيْهِ أَجْرُ مِثْلِ الْبَغْلِ، |
|---|

**حل اللغة** > ① **البغل**:قچر

**ترجمه و تشریح** > فرماني(ابو الحسن قدوري رحمه الله) اوکله چي دوي [دوه] نفر شریك شي.اودیودشریکینو لپاره خچروي اودبل لپاره مشك وي.چه راوباسي په هغي باندي اوبه،اوګټه به په مینځ د دواړوکي وي(یعني چي دوي [دوه] نفر په خپل مینځ کي دا فیصله اوکړي.چه په دي مشك کي به اوبه جمع کوو.اوپه خچربه ئي بازارته اوړو.اوچه کومي پیسي ملاویږي.هغه به د دواړو په مینځ کي

په شريکه وي) نونه صحيح کيږي شرکت (په ګټه کي) اوګټه تولـه دهغـه چا لپاره ده چې اوبه ئې راوبستې دي.اوپه ده (مستسقي) باندې کرايه دمثل د قچر

**وجه فساد الشركة** > اوهرچه فساد دشرکت دي.د امله د منعقدکيدو ددې (شرکت) په محفوظ کولود مباح څيزاوهغه (مباح څيز) اوبه دي. (اوورانديې په تفصيل سره تيرشو.چه په مباح څيزکې شرکت نه صحيح کيږي)

**وجه وجوب الاجر** > اوهرچه وجوب د مزدورئ دې (دقچردمالك لپاره که مستسقي دمشك خاوند وي.اود مشك د خاوند لپاره که مستسقي د قچرمالك وي.نومزدوري پرې ځکه واجبيږي) چې مباح څيزکله چې اوګرځي ملك لپاره د محفوظ کونکي اوهغـه (محفوظ کـونکي پـه دې مقـام کـې) مستسقي دي.اويقينا ده (مستسقي) واخستې منافع د ملك دغيراوهغه (ملك دغير) قچردې (که مستسقي مالك د مشك وي) اويا مشك دې(که مستسقي مالك د قچروي) په عقدفاسد سره(ځکه چې په مباح څيزکې د شرکت عقد فاسد وي) نولازميږي په ده (مستسقي) باندې مزدوري دهغې (قچريا مشك)

### په شرکت فاسده کې دګټې د وېش معيار

(وَكُلُّ شَرِكَةٍ فَاسِدَةٍ فَالرِّبْحُ فِيهِمَا عَلَى قَدْرِ الْمَالِ، وَيَبْطُلُ شَرْطُ التَّفَاضُلِ)

**ترجمه و تشريح** > اودا يوه قاعده ده.چه) هرشرکت چې فاسد وي.نوګټه به په هغې(شرکت فاسده) کې په اندازه د مال وي. (چه دچا څومره مال وي.نودهغې په مناسبت سره به هغه ګټه اخلي) اوباطل بـه وي شرط د زيادت (يعنى که په شريکينوکې ديو لپاره د زياتې ګټې شرط کيخودې شوې وي.نودغه د تفاضل شرط به باطل وي.بلکه هريوته به دهغه دمال په تناسب سره ګټه ملاويږي)

**دليله** > ځکه چې ګټه په دې (شرکت فاسده) کې تابع وي د مال نواندازه کولې به شي (ګټه) پـه انـدازه د مال سره (نوچه څومره مال وي.دهغې په تناسب سره به ګټه وي)

**نظيره** > لکه څنګه چې ګټه تابع وي د تخم پـه مزارعت کې (يعنى پـه پټـى کـې چـې کـوم تخم کرلې شى نومثلا چې د يوکس يوسيرتخم وي.اودبل کس دوې [دوه] سيره تخم وي.نوکوم پيداوارچه اوشي. په هغې کې به د دوې [دوه] سيرهٔ تخم مالك لپاره دوې [دوه] برخې وي.اوديوسيرتخم مالك لپاره به يوه برخـه وي) اوزيـادت (دګټې) استحقاق راتلـودهغې (زيـادت) پـه مقررکولوسـره (چـه د عقدپـه اول کې دتفاضـل شرط اولګولې شي) اوفاسد شوعقد(دشرکت) نوباقي پاتې شو استحقاق (دګټې) پـه انـدازه د راس المال باندې (يعنى که دشرکت دعقدپه وخت کې دا شرط اولګولې شي.چه يوشريك تـه بـه زياتـه ګټه ملاويږي.نودا جائزده.خوچونکه دلته عقدفاسد شو.نوکه په اول کې دتفاضل شرط هم لګولې شوې وي.نوهغه باطل شو ځکه چې عقدفاسد شو.نواوس به ګټه د شرکت دعـام قـانون مطابق تقسيمولې شي.يعنى چې دچا څومره مال وي.دهغې په اندازه به هغه ته ګټه ملاويږي)

### د شرکت په مرګ يا په ارتداد سره د شرکت بطلان

(وَإِذَا مَاتَ أَحَدُ الشَّرِيكَيْنِ أَوِ ارْتَدَّ وَلَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ بَطَلَتِ الشَّرِكَةُ)

**ترجمه و تشريح** > اوکله چې مرشي يودشريکينو څخه اويا مرتد شي اولاړشي دارالحرب ته نوباطل شو شرکت **دليله** > ځکه چې دا (شرکت) متضمن دې وکالت لره اوضروري دې دا (وکالت) ددې لپاره چې ثابت شي شرکت لکه څنګه چې وړاندې تيرشو. (يعنى ګټه هله کيږي.چه شرکت راشي.اوشرکت هله راځي.چه يوکس دبل په مال کې تصرف اوکړي.اودبل په مال کې تصرف کول نـه دې جائزمګرپـه وکالت اوپه ولايت سره،اودلته دشريکينوپه مينځ کې خوولايت نشته.نومتعين شووکالت) او وکالت باطليږي

په مرګ سره او دغه شان چې لاړشي سرې دارالحرب ته په حالت دارتداد کې (یعنی مرتد شی) ځکه چې دا (ارتداد) پشان د مرګ دې (یعنی ارتداد حکمی مرګ دې.هم دا وجه ده.چه کله سړې مرتد شی.نودده میراث دده په مسلمانانو وارثانوباندې تقسیمولې شی.حالانکه دې ژوندې وی.ځکه چې ارتداد دحکم په اعتبارسره مرګ دې. نو لکه څنګه چې د حقیقی مرګ نه روسته میراث تقسیمولې شی.دغه شان د ارتدادنه روسته چې دا حکمی مرګ دې.هم میراث تقسیمولې شی)

**د شریك دمال نه د زکاة ورکولوعدم جواز**

| وَلَيْسَ لِوَاحِدٍ مِنَ الشَّرِيكَيْنِ أَنْ يُؤَدِّيَ زَكَاةَ مَالِ الْآخَرِ إِلَّا بِإِذْنِهِ، |
|---|

**ترجمه و تشریح** ﴿ اونه دی جائز لپاره دیود شریکینوچه ادا کړی زکاة دمال دبل (شریك)

**دلیله** ﴿ ځکه چې دا (ورکول د زکاة دشریك خپل) نه دې دجنس دتجارت څنی (یعنی دتجارت د مقتضیاتونه دا نه دی.چه دمال شرکت زکاة دې هم ورکوی.بلکه دا دهریوکس ذاتی مسئله ده.دشرکت سره ئې څه تعلق نشته)

| فَإِنْ أَذِنَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا لِصَاحِبِهِ أَنْ يُؤَدِّيَ زَكَاتَهُ. فَإِنْ أَدَّى كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فَالثَّانِي ضَامِنٌ عَلِمَ بِأَدَاءِ الْأَوَّلِ أَوْلَمْ يَعْلَمْ، عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ.[1] |
|---|

**ترجمه او تشریح** ﴿ که چیرته اجازت کړې ووهریوکس ددواړو نه خپل شریکوال ته چې ادا کوی زکاة د مال دده (آمر) نوادا کړوهریو د دواړو شریکینو نه (یعنی یوکس خپل زکاة په خپله هم ادا کړو.اودهغه وکیل هم ادا وکیل چې شریك دې.هغه هم ادا کړو) نو دوئم (چه ماموردې) ادا کونکې ذمه وار دې که هغه ته د اول (آمر) دادا کولو علم وی اوکه نه،په نیزدامام ابوحنیفه رحمه الله

| وَقَالَا: اِنْ لَمْ يَعْلَمْ لَمْ يَضْمَنْ |
|---|

**ترجمه و تشریح** ﴿ اوصاحبین رحمهما الله وائی..که د اول (آمر) د ادا کولو علم ورته نه وی.اوادا ئې کړی.نو په دوئم (مامور) به ذمه واری نه راځی (اوکه پته ورته وی.چه زما شریکوال دخپل مال زکاة ادا کړې دې.اوبیا هم دې دهغه دمال زکاة ورکړی.نوپه دې صورت کې ضامن دې)

**صورة الاداء معا** ﴿ اودا (وجوب د ضمان په بل شریك باندې) په هغه صورت کې چې ورکړې ئې وی زکاة په تعاقب سره (یعنی یوکس اول زکاة ورکړې وی اوبل شریك دهغه نه روسته ورکړې وی) هرچه هغه صورت چې ادا کړی (هریوکس زکاة) په یوځائې (وراندې روسته په کې نه وی) نوضامن دې هریوکس د شریکینونه د برخې دخپل شریکوال (یعنی دده په ځائې چې دده اندیوالان زکاة ورکړې وی.نودې به ورته دخپل مال دحصې زکاة ورکوی)

# كِتَابُ الْمُضَارِبَةِ

**ترجمه** ﴿ ( دا) کتاب د مضاربت ( په بیان کې ) دې.

**تشریح** ﴿ چونکه مضاربت یو قسم شرکت دې د دې وجې صاحب د قدوریؒ د کتاب الشرکة نه روسته مضاربت احکام بیانوی.

**معني المضاربة لغة وشرعا** ﴿ مضاربت په لغت کې د ، ،ضرب فی الارض، ، نه مفاعله ده.معنی ئې ده.په

[1]) القول الراجح هوهذا قول الإمام رحمه الله كذا في التنوير(۳۸۵\۱۳) وشرح الوقاية (۳۴۹\۱۲) وكنز (ص،۲۰۴) وشرح عقود (ص،۸۳) نقلاً عن القول الراجح (۵۱۸\۱۱)-

زمکه ګرځیدل،او ګشت کول.دي عقد ته مضاربت ځکه وائي.چه مضارب د نفع حاصلولو لپاره په اکثره زمکه ګرځي ،او پخپل سعی او کوشش سره د نفع مستحق کیږي.اهل حجاز دې ته مقارضه او قراض هم وائي.ځکه چې د قرض معنی قطع ( پریکول) ده.او صاحب مال خپل څه مال کټ کوي.او مضارب ته ئې ورکوي.

**د مضاربت تعریف**

| |
|---|
| الْمُضَارَبَةُ عَقْدٌ مضاربت داسې عقد دی. عَلَى الشَّرِكَةِ بِمَالٍ مِنْ أَحَدِ الْجَانِبَيْنِ ) چې دا د يو اړخه مال سره شرکت باندې واقع کیږي. (وَعَمَلٍ مِنَ الْآخَرِ)> او نفع د يو اړخه مال اود دوئم اړخه کار کیدلو سره مستحق کیږي. |

**تشریح**> په اصطلاح د شرع کې مضاربت هغه عقد ته وائي.په کوم چې د يو د اړخه مال وي.اود دوئم د اړخه عمل وي.او په نفع کې دواړه شريك وي.د چا د اړخه چې مال وي.هغه ته رب المال اود چا د اړخه چې عمل وي.هغه ته مضارب وائي.او کوم مال چې ورکړې شي.هغې ته مال مضاربت وائي.د ذکر شوی صورت نه بغير مضاربت نه کیږي.تردې که د پوره نفع شرط د رب المال لپاره وي.نو مضارب به مستبضع وي.( بضاعت کونکي) يعنی عقد مضاربت به نه پاتې کیږي.بلکه عقد بضاعت به وي.او مضارب به د رب المال په حق کې محسن شمارلې کیږي.اوکه کل نفع مضارب لپاره شرط وي.نو دا به مست قرض وي.ګويا ده د رب المال نه مال د قرض په طور اخستې دې.

| |
|---|
| (وَلَا تَصِحُّ المضاربة إِلَّا بِالْمَالِ الَّذِي بينا ان الشركة تَصِحُّ بِهِ)اومضاربت نه صحیح کیږي.خو په هغه مال سره په کوم چې مونږ بيان کړل چې په کوم سره چې شرکت صحیح کیږي. |

**تشریح**> مضاربت دهغه مال نه صحیح کیږي.په کوم سره چې شرکت صحیح کیږي.اودا د شیخینو ﷫ په نيز دا دې. چه راس المال دراهمو او دنانير وي.

**د مضاربت شرطونه**

| |
|---|
| (وَمِنْ شَرْطِهَا د مضاربت د شرطونو نه دا هم دي.أَنْ يَكُونَ الرِّبْحُ بَيْنَهُمَا مُشَاعًا چې نفع په دې دواړو کې مشترك وي.لَا يَسْتَحِقُّ أَحَدُهُمَا منه دَرَاهِمَ مُسَمَّاةً) چې په دوی کې هيڅ څوك د نفع متعين دراهمو نه مستحق نه وي. |

**تشریح**> د مضاربت د صحت لپاره د دواړو په مينځ کې د نفع عام او شائع کيدل.مثلاً نيم په نيمه يا دريمه برخه کيدل شرط دی.مطلب دادې.چه په دوی کې يوکس لپاره په نفع کې د معلومو دراهمو استحقاق پکار نه دې.

**دلیله**> ځکه چې په داسې شرط سره ددوی په مينځ کې شرکت ختميږي. حالانکه د شرکت کيدل ضروري دی.

**د مضاربت بعض نور شرطونه**

| |
|---|
| وَلَابُدَّ أَنْ يَكُونَ الْمَالُ مُسَلَّمًا إِلَى الْمُضَارِبِ او ضروري ده.چه مال مضارب ته اوسپارلې شي.وَلَا يَدَ لِرَبِّ الْمَالِ فِيهِ) چې په دې کې د مالك قبضه نه وي. |

**تشریح**> د مضاربت د صحت لپاره دا هم ضروري ده.چه مضارب ته راس المال پوره طور باندې اوسپارلې شي.اود رب المال په دې کې هيڅ قسمه قبضه د تصرف نه وي.

**دليله** خكه چې مال د مضارب په قبضه كې امانت وى.نو لكه څنګه چې مال د وديعت مودع ته حواله كول ضرورى دى.دغه شان مضارب ته راس المال سپارل ضرورى دى.

## د مضاربت بعضې نور شرطونه

(فَإِذَا صَحَّتِ الْمُضَارَبَةُ مُطْلَقَةً كله چې مضاربت مطلق اوساتلې شي. جَازَ لِلْمُضَارِبِ أَنْ يَبِيعَ وَيَشْتَرِيَ نو جائزدى ، مضارب لپاره اخستل او خرڅول، وَيُسَافِرَ سفر كول، وَيُبْضِعَ بضاعت باندې وركول، وَيُوَكِّلَ او وكيل كول،

**تشريح** ددې ځائې نه د هغه امورو بيان دې.كوم چې مضارب لپاره جائز يا ناجائز دى.نوكه عقد مضاربت يو مكان يا زمان ( يو ځائې يا يو مودې) پورې او يو خاص تصرف سره مقيد نه وى.بلكه مطلق وى.نو مضارب لپاره هغه واړه امور جائز دى.كوم چې د تاجرانو ( او سوداګرو) رواج ( او عادت) وى.لكه لاس په لاس، يا په قرض اخستل خرڅول ( د آئمه ثلاثه په نيز بې اجازته قرض نشى خرڅولې)، سفر كول، د بضاعت په طريقه مال وركول، وكيل كول،

**دليله** .خكه چې دا واړه امور د سوداګرو په نيز عام عادت دې.اود تاجرانو په سلسله كې ددې ضرورت واقع كيږى.اود مضاربت مقصد هم دادې.چه نفع حاصل شى.اودا تجارت نه بغير نه كيږى.نو مذكوره عقد به د تجارت ټولو اقسامو ته شامل وى.

## د مضارب لپاره بل كس ته مضاربت باندې د مال وركولو حكم

وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَدْفَعَ الْمَالَ مُضَارَبَةً اونه دى جائز د ده دپاره چې وركړى چاته مال په مضاربت سره إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ رَبُّ الْمَالِ فِي ذَالِكَ مګر دا چې اجازت وركړى.هغه ته مالك، په دې كښې أَوْيَقُولَ لَهُ اعْمَلْ بِرَأْيِكَ)يا اووائى.چه د خپلې رائې مطابق كار كوه.

**تشريح** مضارب ته دا اختيار نشته.چه بل كس ته مضاربت باندې مال وركړى. مګردا چې د رب المال د اړخه ددې صريحى اجازت وى.يا دې پخپلې رائې سره د كار كولو اختيار مند وى.

**دليله** وجه داده.چه دواړه مضاربتونه قوت كې برابر دى.او شئ خپل مثل ته متضمن نه وى.نو د رومبى مضاربت په ضمن كې به دوئم مضاربت نه راځى.

سوال يو مستعير، مستعار شئ بل كس ته عاريت باندې،مستاجر بل كس ته اجاره باندې وركولې شى.او عبد مكاتب خپل غلام مكاتب كولې شى.او عبد ماذون خپل غلام ته اجازت وركولې شى.حالانكه دا واړه په قوت كې د يو بل مثل دى ؟

جواب دلته خبره هغه تصرف كې ده.كوم چې د نيابت په طور وى.او ذكرشوى تصرفات د ماليت په حكم سره دى.د نيابت په حكم سره نه دى.خكه چې مستعير د منفعت مالك، او مكاتب د قبضې په لحاظ سره آزاد شو.په خلاف د مضارب، چې هغه د نيابت په طريقه عمل كوى.خكه چې مضاربت كې د وكالت معنى وى.او وكيل چې د كوم كار لپاره وى.هغې كې دوئم كس نشى وكيل كولې.دغه شان مضارب بل كس نشى مضارب كولې.په خلاف د وديعت ايخودلو،يا د بضاعت وركولو،چه دا جائز دى.خكه چې دوى كې هر يو د مضاربت نه كم دې.نو هغه به دې ته ګډ وى.

(وَإِنْ خَصَّ لَهُ رَبُّ الْمَالِ التَّصَرُّفَ فِي بَلَدٍ بِعَيْنِهِ كه تخصيص اوكړو.مالك د تصرف،په يو خاص ښار أَوْفِي سِلْعَةٍ بِعَيْنِهَا يا متعين اسبابو كې .لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَجَاوَزَ عَنْ ذَلِكَ)نو مضارب ته ددې نه تجاوز كول جائز نه دى د د هغې څخه

**تشریح** که رب المال د تجارت لپاره یو خاص ښار یا یو خاص اسباب ( سامان) متعین کړو.نو مضارب لپاره ددې خلاف کول جائز نه دي.

**دلیله** ځکه چې مضارب کوم چې مال کي د تصرف کولو مالك کیږي.هغه د رب المال په سپارلو سره کیږي.او رب المال سپارل دې ذکر شوي امورو سره خاص کړي دي.چه دا د فائدې نه خالي نه دي.ځکه چې تجارت په اختلاف د ځایونو او سامانونو سره مختلف وي.په دې وجه مضارب ته ددې سپارلو خلاف کول جائز نه وي.

**د معین وخت تیریدلو نه روسته د مضاربت حکم**

(وَكَذٰلِكَ إِنْ وَقَّتَ الْمُضَارَبَةَ ومدة بِعَيْنِهَا جازدغه شان که مضاربت لپاره ئې محدود وخت متعین کړو.او موده معینه نو دا جائز ده وَبَطَلَ الْعَقْدُ بِمُضِيِّهَا)نو د مودې په تیریدلو سره به عقد باطلیږي.

**تشریح** د ترجمې نه مطلب ښکاره دي

**دلائله** ① ځکه چې دا توکیل دې‌نو کوم ( مودې) سره ئې چې مؤقت کړې دي.هم هغې پورې به وي.او توقیت مفید هم دي.

② اوځکه چې دا د یوې زمانې قید دي.نود نوع اود مقام د قید پشان به وي.

**مضارب لپاره د رب المال د قریبي رشته دار نه د اخستلو حکم**

(وَلَيْسَ لِلْمُضَارِبِ أَنْ يَشْتَرِيَ اب رب المــال ولا ابنـه ولامَنْ يُعْتَقُ عَلَيْـهاو مضارب ته دا اختیار نشته.چه واخلي پلار د رب المال او نه ځوئې د هغه او نه هغه څوك چې آزادیږي په هغه

**تشریح** که یو غلام د رب المال ذی رحم محرم وي.یا ده قسم خوړلې وي.که زه فلانې غلام واخلم.نو هغه آزاد دي.نو مضارب لپاره داسې غلام اخستل جائز نه دي.

**دلیله** ځکه چې د مضاربت عقد د نفع حاصلولو لپاره دي.او نفع حاصلولو هغه وخت کیدې شي.کله چې بار بار تصرف وي.اود ذکر شوي غلام په اخستلو کي دا خبره متصور نه ده.ځکه چې دا رب المال باندې آزادیږي.

**توضیحه** یعنی په دې وجه چې د ذکرشوي اخستلو په صورت کي تصرف ناممکن دي.مضاربت کي د داسې شئ اخستل نه داخلیږي.کوم چې قبضه سره ملکیت کي رانشي.لکه د شرابو اخستل چې دا د مسلمان په ملکیت کي نه راځي.دغه شان د مردار په عوض دخه شئ اخستل،چه دا بیع باطل ده.تردې چې کوم شئ د مردار په عوض اخستې دي.هغه قبضې سره هم ملکیت کي نه راځي.په خلاف د بیع فاسد،چه دا د مضاربت لاندې داخلیږي.ځکه چې کوم شئ ئې د بیع فاسد په طور اخستې دي.دا د قبضې نه روسته خرڅولې شي.نو نفع حاصلول کوم چې اصل مقصد دي.هغه به حاصله شي.

فَـإِنِ اشْتَرَاهُمْ که مضارب دوی واخستل كَـانَ مُشْتَرِيًا لِنَفْسِهِ‌نو خپل ځان لپاره به اخستونکې وي.دُوْنَ الْمُضَارَبَةِ‌مضاربت لپاره به نه وي.

**تشریح** که غلام هم دغه شان غلام واخستلو.کوم چې رب المال باندې آزادیږي.نودا اخستل به مضاربت باندې نه وي.بلکه دې به خپل ځان لپاره اخستونکې وي.

**دلیله** ځکه کوم اخستل چې داسې وي.چه مشتري باندې د هغې نافذ کول ممکن وي.نو هغه مشتري باندې نافذ کیږي.لکه مثلاً وکیل بالشراء که د مؤکل د حکم خلاف اوکړي.نو اخستل به هم په دې باندې نافذ وي.

## د نفع په صورت کښې د رب المال د قريبي رشته دار اخستلو حکم

(وَإِنْ كَانَ فِي الْمَالِ رِبْحٌ که په مال کې نفع وی. فليس لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ مَنْ يَعْتِقُ عَلَيْهِ)نو مضارب لپاره داسې سړې جائز نه دې. کوم چې ده باندې آزادېږي.

**تشريح>** که په مال کې نفع وی. نو مضارب له داسې غلام اخستل هم جائز نه دی. کوم چې د مضارب د ا رخه آزاد شی. لکه مثلاً هغه غلام کوم چې د مضارب ذی رحم محرم وی.

**دليله>** خکه چې دې کې دمضارب برخه آزادېږي. اود صاحب مال برخه به یا فاسدېږي. ( د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز) یا به هغه هم آزاده وی. ( د صاحبينو رحمهما الله په نيز). په دې باندې معمولی شان تشريح سره داسې پوهه شه. چه هرکله مال مضاربت کې نفع شريکه ده. نو په دې کې د مضارب هم برخه ده. او هرکله چې ده خپل پلار یا زوې وغيره ذو رحم محرم واخستلو. نو هغه به دده د ا رخه آزاد وی. خو په دومره اندازه څومره چې ده کې د مضارب برخه ده. اوس د صاحبينو رحمهما الله په نيز به باقی هم ازاده وی. خکه چې ددوی په نيز اعتاق کې تجزی نه کيږي. يعنی عتق کې ټکړې نه جوړيږي. اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، چونکه عتق قابل تجزی دې. په دې وجه به مالک ته اختيار وی. چه غواړی آزاد دې کړی. اوکه غواړی. غلام باندې دې مزدوری کوی. اوکه غواړی. مضارب نه دې تاوان واخلی. ( که هغه توانګر وی ). بهرحال غلام ددې قابل پاتې نشو. چه خرځ کړې شی. نود مالک برخه ضائع شوه. اودا د مضارب د اخستلو په وجه اوشو. نو دده اخستل به جائز نه وی.

(وَإِنْ اشْتَرَاهُمْ او که ده داسې خلق واخستل. ضَمِنَ مَالَ الْمُضَارَبَةِ)نود مال مضاربت به ضامن وی.

**تشريح>** صاحب د قدوری فرمائی که مضارب دغه کسان واخستل کوم چې د رب المال په ملکيت کښې نه راځی بلکه آزادېږي نو په دې صورت کښې به مضاربت تاوان په مضارب باندې وی

**دليله>** خکه چې دې د غلام خپل خان لپاره اخستونکې شو. نود مضاربت د مال ور کولو به ضامن وی.

(وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِي الْمَالِ رِبْحٌ اوکه په مال کې نفع نه وی. جَازَ أَنْ يَشْتَرِيَهُمْ نو ددوی اخستل جائز دی.

**تشريح>** مذکوره حکم هغه وخت دې. کله چې په مال د مضاربت کې نفع ښکاره نه وی. نو مذکوره غلام مضاربت لپاره اخستل صحيح دی. د نفع ښکاره کيدلو نه مراد دادی. چه د غلام قيمت راس المال نه زيات وی.

**دليله>** خکه چې هرکله د غلام قيمت د راس المال برابر یا ددې نه کم وی نو په دې غلام کې به د مضارب ملکيت ښکاره نه وی. بلکه غلام به راس المال سره بوخت وی. نو که راس المال په پيسل کې زر درهم وی. بيا لس زره شی. ددې نه روسته مضارب هغه غلام واخلی. کوم چې ده باندې آزادېږي. او دده قيمت زر یا ددې نه کم وی. نو هغه به په ده باندې نه آزادېږي.

(فَإِنْ زَادَتْ قِيمَتُهُمْ بَعْدَ الشِّرَاءِ بيا که ددوی قيمت د اخستلو نه روسته زيات شی. عَتَقَ نَصِيبُهُ مِنْهُمْ)نو دهغې برخه به آزاده شی دهغوی نه.

**تشريح>** يعنی کوم وخت چې مضارب قرابتدار غلام اخستې وو. هغه وخت دده قيمت د راس المال برابر وو. خو روسته دده قيمت زيات شو. نو د مضاربت د برخې (حصې) په اندازه غلام آزاد وی.

**دليله>** خکه چې دې د خپل قرابت دار مالک شو.

(وَلَمْ يَضْمَنْ لِرَبِّ الْمَالِ شَيْئًا)او دې به د رب المال لپاره دهيڅ شئ ضامن نه وی.

**تشریح>** خو مضارب باندې به د رب المال د برخې (حصې) ضمان نه وی.

**دلیله>** ځکه چې د ملکیت په وخت غلام د مضارب په حرکت سره نه دې آزاد شوی.بلکه د مضارب د اختیار نه بغیر د قیمت زیاتیدلو په وجه آزاد شوی دی.نو غلام به د رب المال د برخې (حصې) په قیمت کې سعایت کوی. (لأنه احتسبت ماليته عنده)

**صورته>** ددې مسئلې صورت دادې.چه مثلاً د یوې ښځې میړه په تیره شوې زمانه کې د زید وینځې سره نکاح کړې وه.چه د هغې نه یو هلك پیدا شو.او هغه د خپلې مور پشان د زید غلام وو.بیا دې سړی مذکوره ازادې ښځې سره نکاح اوکړله.او دغه ښځې د زید نه د خپل میړه خونې واخستلو. او هغه دده مالکه شوه.ددې نه روسته د ښځې انتقال اوشو.او هغې خپل میړه او یو رور پریښولو .نو ترکه به دواړو کې نیم په نیمه مشترك وی.نود هلك نیمه برخه د رور په ملکیت کې او نیمه د میړه په ملکیت کې راغلله.خو هلکه چونکه د میړه خونې دې.په دې وجه هغه په ملکیت کې راتلو سره فوراً پخپل پلار باندې آزاد شو.اوس به پلار د خپلې ښځې د رور لپاره د هیڅ شئ ضامن نه وی.ځکه چې آزادول دده اختیاری فعل نه دې.بلکه میراث کوم چې خدائی حکم دې.د هغې په وجه ملکیت ثابت شو.او په ملکیت ثابتیدلو سره به دې حکماً آزاد وی.نو پلار په دې دواړو خبرو کې بې قصوره دې.

| (وَيَسْعَى الْمُعْتَقُ لِرَبِّ الْمَالِ فِي قِيمَةِ نَصِيبِهِ مِنْهُ)او غلام به رب المال لپاره دده برخې (حصې) په اندازه قیمت کې سعایه ( مزدوری ) کوی. |
|---|

**تشریح>** غلام به د رب المال د حصې په قیمت کښې سعی کوی.او بیا به غلام پوره آزاد شی.مثلاًمضارب په پنځه زره روپئ ئې غلام اخستې وو.او د هغې قیمت شپږ زرده روپئ شو.نو په زرو روپو کښې به پنځه سوه نفع د رب المال شی.او پنځه سوه نفع به د مضارب شی.نو اوس د مضارب چې کومه حصه ده.هغه به آزده شی.نو د غلام په قیمت کښې چې شپږ زره روپئ دی.په دې کې به د پنځه سوو حصه آزاده شی.باقی د پنځه نیم زرو روپو حصه به د رب المال وی.نو غلام به پنځه نیم زره روپئ اوګټی او رب المال ته به یې ورکړی.او بیا به هغه پوره آزاد شی.

**دلیله>** او غلام به سعی ځکه کوی.چې د رب المال مالیت د ده سره بند شو.دآزادئ په وجه نو لازماً به غلام د رب المال مالیت هغه ته پوره کوی.

## د رب المال د اجازت نه بغیر دمضارب په مضاربت باندې د مال ورکولو حکم

| وَإِذَا دَفَعَ الْمُضَارِبُ الْمَالَ مُضَارَبَةً عَلَى غَيْرِهِ کله چې مضارب چاته په مضاربت باندې څه مال ورکړی. وَلَمْ يَأْذَنْ لَهُ رَبُّ الْمَالِ فِي ذَلِكَ حالانکه ده ته رب المال ددې اجازت نه وو ورکړې. لَمْ يَضْمَنْ بِالدَّفْعِ نو صرف په ور کولو سره به ضامن نه وی. وَلَا بِتَصَرُّفِ الْمُضَارِبِ الثَّانِي اونه د مضارب ثانی په تصرف کولو سره، حَتَّى يَرْبَحَ تردې چې نفع حاصل کړی. فَإِذَا رَبِحَ نو هرکله چې ده نفع حاصله کړله. ضَمِنَ المضارب الْأَوَّلُ المال لِرَبِّ الْمَالِ )نو اول مضارب به د رب المال لپاره د مال ضامن وی. |
|---|

**تشریح>** مضارب د رب المال د اجازت نه بغیر بل یو کس ته مضاربت باندې مال ورکړو.نو مضارب اول باندې به صرف په مال ورکولو سره ضمان نه لازمیږی.بلکه هله به په ده باندې ضمان راځی چې مضارب اول په کښې عمل هم اوکړی او ګټه هم اوکړی که ګټه ئې نه وی کړې نو بیا پرې هم ضمان نه لازمیږی.او

چې کته اوکړی نو بيا پرې ضمان لازميږی.امام حسن دامام ابوحنيفه نه دا روايت کړې دې. (1)

**دليله>** امام صاحب رحمه الله (په دليل کې) فرمائی.چه د عمل نه وړاندې مال ورکول ايداع ده.اود عمل نه روستبه ايضاح ده.او مضارب لپاره په دواړه طريقه د ورکولو حق دې.نو نه به ايداع سره ضامن کيږی.او نه په ايضاح سره.نو هرکله چې مضارب ثانی ته نفع حاصل شی.هغه وخت به ضامن وی.ځکه چې اوس په مال کې د مضارب ثانی شرکت ثابت شو.

**مسلک الصاحبين:-** اوصاحبين فرمائی چې په مذکوره صورت کښې که مضارب ثانی ته نفع حاصله شی اوکه حاصل نشی.ظاهرالرواية هم دادې. (قيل وبه يفتی).(2)

**دليلهما>** د مضارب ورکول په حقيقت کې ايداع ده.مضاربت لپاره به دا هغه وخت وی.کله چې د مضارب ثانی د اړخه عمل اوموندې شی.

**د نيمې نفع د مضارب په دريمه برخه باندې**

**بل کس د مضاربت لپاره ورکولو حکم**

| |
|---|
| (وَاِذَادَفَعَ اليه مُضَارَبَةً بِالنِّصْفِ مالك مال د نصف نفع په مضاربت باندې ورکړو. فَأَذِنَ لَهُ أَنْ يَدْفَعَهَا مضاربةنو بل کس ته ئې په مضاربت باندې د ورکولو اجازت ورکړو. فَدَفَعَهَا بِالثُّلُثِ جَازَنو هغه بل چاته په دريمه برخه د نفع په مضاربت باندې مال ورکړو.نودا جائز ده. فَإِنْ كَانَ رَبُّ الْمَالِ قَالَ |
| لَهُنوکه مالك مضارب اول ته دا ونيلی وی. عَلَى أَنَّ مَا رَزَقَ اللّٰهُ فَهُوَ بَيْنَنَا نِصْفَانِ چې کومه نفع الله جل جلاله درکوی.هغه به مونږ دواړو کې په نيمه وی. فَلِرَبِّ الْمَالِ نِصْفُ الرِبحِنو مالك لپاره به نيمه نفع وی. وَلِلْمُضَارِبِ الثَّانِي ثُلُثُ الرِبحِاو دوئم مضارب لپاره به دريمه برخه نفع وی. وَلِلْاَوَّلِ السُّدُسُ)او مضارب اول لپاره به شپږمه برخه وی. |

**تشريح>** مضارب د رب المال په اجازت دوئم سړی ته په مضاربت بالثلث باندې مال ورکړو.حالانکه رب المال مضارب اول سره دا فيصله کړې وه.چه کومه نفع الله ج درکړی.هغه به زمونږ په مينځ کې نيم په نيمه وی.نو رب المال ته به ددې شرط په وجه د کل نفع نصف ملاويږی.او مضارب ثانی ته به يو ثلث (دريمه) ملاويږی.ځکه چې مضارب اول دده لپاره د کل نفع يو ثلث مقرر کړې وو.اوس باقی پاتې شو.يو سدس (شپږمه)،نودا به مضارب اول ته ملاويږی.مثلاً مضارب ثانی ته شپږ درهمه نفع اوشوه.نو درې درهمه به رب المال ته ملاويږی.او دوه به مضارب ثانی ته.او يو به مضارب اول ته ملاويږی.

**دليله>** ځکه چې دوئم مضارب ته مضاربت باندې مال ورکول صحيح شو.دمالك د طرفه،د هغه د اجازت په وجه،او مالك خپل ځان لپاره د کل نفع د نصف شرط لګولې دې.نو اول لپاره صرف نيمه پاتې شوه.نو دده تصرف به صرف هم دده برخې (حصې) اړخ ته ګرځولې شی.اوده په دې برخه کې د کل نفع د دريمې په اندازه دوئم مضارب لپاره شرط کړې دې.،نو دده لپاره دکل دريمه شوه.نود شپږمې برخې (حصې) نه سوا هيڅ باقی پاتی نشو.

---

(1) د امام زفر رحمه الله په نيز صرف په مال ورکولو سره ضمان نه لازميږی.که مضارب ثانی عمل اوکړی.او که اونکړی.دا يو روايت د امام ابويوسف رحمه الله نه هم دې.او آئمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی.

(2) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في ردالمحتار(٥٤٣\٤) وملتقى الأبحر(٤٥٣\٣) وبدائع الصنائع (١٤٥\٦) وخلاصة الفتاوى (١٨٩\٤) ومجمع الأنهر(٤٥٣\٣) نقلا عن القول الراجح (٢١٠\٢)

(وَإِنْ كَانَ قَالَ عَلَى أَنَّ مَا رَزَقَكَ اللّٰهُاو مالك دا ونيلي وي.چه كومه نفع تاته الله تعالى دركړي فَهُوَبَيْنَنَا نِصْفَانِهغه به مونږ دواړو كي نيم په نيمه وي. فَلِلْمُضَارِبِ الثَّانِي الثُّلُثُنو مضارب اول لپاره به د كل نفع دريمه وي.وَمَا بَقِيَ بَيْنَ رَبِّ الْمَالِ وَالْمُضَارِبِ الْأَوَّلِ نِصْفَانِ)او باقي به د مالك او مضارب اول په مينځ كي نيم په نيمه وي.

**تشريح>** اوكه مالك مضارب اول ته په خطاب كي داسې اوونيل.چه(ما رزقك الله فهو بيننا نصفان) چې كومه نفع الله تعالى تاته درنصيب كړي.هغه زمونږ په نيز نيم په نيمه ده.يا ئې داسې اوونيل.چه(ما ربحت لي هذا من شئ ما كسبت فيه من كسب، ما رزقت من شئ ما صار لك فيه من ربح، فهو بيننا نصفان) او باقي مسئله پخپل حال وي.نو مضارب ثاني ته به يو ثلث ملاويږي.او باقي دوه ثلثه به د مضارب اول او رب المال په مينځ كي نيم په نيمه تقسيميږي.نو په دې صورت كي به درې واړو ته دوه دوه درهمه ملاويږي.

**دليله>** ځكه چې دلته رب المال د ځان لپاره د نفع ددې مقدار نيم مقرر كړې دې.كوم چې مضارب اول ته حاصل شي.او هغه دلته كي دوه ثلثه دې.نو رب المال ته به ددې نصف يعني يو ثلث ملاويږي.په خلاف د رومبۍ مسئلې، چې هغې كي رب المال خان لپاره دكل نفع نصف مقرر كړې وو.او په دوئم صورت كي چې كوم څه نفع مضارب اول ته نصيب شوه.د هغې نيم شرط دې.نو په دواړو صورتونو كي چې كوم فرق دې.هغه هم دادې.

(فَإِنْ قَالَ عَلَى أَنَّ مَا رَزَقَ اللّٰهُ تَعَالَىٰاوكه رب المال دا ونيلي وي.چه كوم څه الله دركړي.فَلِي نِصْفُهُد هغې نيم زما دې. فَدَفَعَ الْمَالَ إِلَى آخَرَ مُضَارَبَةً بِالنِّصْفِ نواول ( مضارب) دوئم ته په مضاربت سرد په نيمه نفع مال وركړو فَلِلثَّانِي النِّصْفُنونيمه به د دوئم مضارب لپاره وي. وَلِرَبِّ الْمَالِ النِّصْفُ او د رب المال لپاره به نيمه نفع وي وَلَا شَيْءَ لِلْمُضَارِبِ الْأَوَّلِ)او مضارب اول لپاره به هيڅ نه وي.

**تشريح>** اوكه رب المال مضارب اول ته اوونيل.چه كوم څه الله ﷻ دركړي.د هغې نصف زما دې.يا ئې دا اوونيل.چه كوم څه زيادت اوشي.هغه زما او ستا په مينځ كي نيم په نيمه دې.او باقي مسئله پخپل حال وي.نو نيمه نفع به د رب المال وي.او نيمه به د مضارب ثاني وي.او مضارب اول ته به هيڅ نه ملاويږي.

**دليله>** ځكه چې ده خپله نصف نفع مضارب ثاني ته وركړله.او مالك على الاطلاق زياتيدلو كي نصف خپل ځان لپاره شرط كړې دې.نود مضارب اول، مضارب ثاني لپاره د نصف شرط كول به د اول ( مضارب) پوه برخې (حصې) ارخ ته راجع كيږي.نو دوئم مضارب لپاره به د نيمې نفعې د شرط په بناء، نيمه نفع وي.او مضارب اول به مفت كي اوځي.

(فَإِنْ شَرَطَ لِلْمُضَارِبِ الثَّانِي ثُلُثَيِ الرِّبْحِاوكه د مضارب ثاني لپاره ئې ( په دريو كي ) د دوه برخو نفع مقرر كړله. فَلِرَبِّ الْمَالِ نِصْفُ الرِّبْحِنو نيمه نفع به د مالك وي. وَلِلْمُضَارِبِ الثَّانِي نِصْفُ الرِّبْحِاو نيمه به د مضارب ثاني دپاره وي. وَيَضْمَنُ الْمُضَارِبُ الْأَوَّلُ لِلثَّانِي مِقْدَارَ سُدُسِ الرِّبْحِ مِنْ مَالِهِ)او رومبې مضارب به دوئم ته د نفع شپږمه برخه د خپل ما نه وركوي.

**تشريح>** اوكه مضارب اول مضارب ثاني لپاره د نفع د دوه ثلث ( په دريو كي د دوه حصو) شرط

اوکړو.نو نیمه نفع به د رب المال وی.او نیمه به د مضارب ثانی وی.اوس به مضارب اول، مضارب ثانی ته د نفع یو سدس د خپل اړخه ورکوی.ځکه چې ده د دوئم مضارب لپاره داسې شئ شرط کړې دې.چه د هغې مستحق رب المال دې.نو د رب المال په حق کې به دده شرط نه نافذ کیږی.

**دلائله**> ① ځکه چې دې کې د رب المال حق تلفی لازمیږی.خو چونکه ده (په دریو کې) د دوه برخو نفع نوم اخستې دې.اودا تسمیه (نوم اخستل) پخپله صحیح دی.ځکه چې مسمی مقدار په داسې عقد کې معلوم شوې دې.د کوم چې دې مالك دې.او حال داچه مضارب اول د مضارب ثانی لپاره ددې خبرې ضمانت اخستې دې.چه هغه به ده ته ددې شرط موافق نفع ورسپاری.نو ددې ضمانت پوره کول به هم په ده لازم وی.

② او په دې وجه هم چې مضارب اول، مضارب ثانی ته د یوعقد په ضمن کې دهوکه ورکړې ده.کوم چې د استحقاق سبب وی.نو مضارب ثانی به دده نه د نفع شپږمه برخه نوره اخلی.

**د معزولئ او د وېش بيان اود مضاربت لپاره د وکالت حکم**

| (وَإِذَامَاتَ رَبُّ الْمَالِ أَوِالْمُضَارِبُ کله چې مضارب یا رب المال کې د یو کس انتقال اوشی. بَطَلَتِ الْمُضَارَبَةُ)نو مضاربت باطلیږی. |
|---|

**تشریح**> اوکه رب المال یا مضارب مړشی.نو مضاربت باطلیږی.ځکه چې د مضارب دعمل نه روسته مضاربت د توکیل په حکم کې وی.لکه څنګه چې په پیل د باب کې ذکر شو .وکالت د مؤکل یا وکیل په مرګ سره باطلیږی.او مضاربت هم د وکالت پشان دې.نو مضاربت به هم باطلیږی.او وجه په اصل کې داده.چه مضارب په مال کې تصرف کوی.نود رب المال په اجازت سره ئې کوی.لکه څنګه چې دوکیل تصرف د مؤکل په اجازت سره کیږی.او هرکله چې د رب المال انتقال اوشو.نو دده اجازت هم ختم شو.نود غیر په مال کې به د هغه د اجازت نه بغیر تصرف جائز نه وی.دغه شان د مضارب په مرګ سره هم مضاربت باطلیږی.

**دلیله**> ځکه چې مضاربت په منزله د توکیل دې.اود وکیل مړکیدل وکالت هم باطلوی.او وکالت د وکیل وارثانو طرف ته نه منتقل کیږی.نوهم دغه شان به مضاربت هم نه منتقل کیږی.

**ملحوظه**> د شیخ اتقانی او علامه عینی رحمهما الله وغیره په نیز د مضاربت توکیل کیدل،د اصل کلی په طریقه نه دی.بلکه په یو څو مسئلو کې د مضاربت او توکیل دواړو حکم مختلف دې.

① رومبئ مسئله داده.کومه چې شیخ الاسلام علاء الدین اسبیجابی رحمه الله په شرح کافی کې د ،،باب شراء المضارب وبیعه،، لاندې ذکر کړې ده.چه مضارب یو غلام واخستلو.او بیا د عیب په وجه ئې دا واپس کول اوغوښتل.نو خرڅونکی دده نه د قسم مطالبه اوکړله.چه دې په دې عیب باندې راضی شوې نه وو.او بله دا چې دکوم وخت نه مضارب دا اخستې دې.د هغه وخت نه تر اوسه پورې ئې دا غلام د خرڅولو لپاره نه دې پیش کړې.او مضارب د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نو غلام به مضاربت باندې باقی پاتې وی.ځکه چې زیات نه زیات هم داده.چه دا معامله ابتدائی وی.اوکه ده دا په ابتداء کې اخستې وو.نو صحیح کیدله.هم دغه شان دعیب په وجه د غلام واپس کولو په صورت کې به هم صحیح وی.دغه شان که ده د عیب اقرار اوکړو.بیا به هم د مضاربت په معامله غلام په ده لازم وی.په خلاف د وکیل، چې دې د شراء مالك نه دې.نو دده اقرار به صحیح نه وی.

② دویمه مسئله داده.کومه چې په شرح کافی کې د ،،باب المضارب یدفع المال مضاربة،، لاندې ذکر ده.چه یوسړی مضارب ته د مضاربت بالنصف په طور زر درهم ورکړل.او وې ویل. (إعمل فیه برأیك)،،

يعنى په دې كې پخپله مرضئ تجارت كوه، ،مضارب دغه مال بل كس ته د مضاربت بالثلث په طور وركړو.هغه كار اوكړو.او نفع ئې حاصل كړله.نو دوئم مضارب لپاره به دريمه برخه نفع وى.او مضارب اول لپاره به شپږمه برخه اود رب المال لپاره به نصف نفع وى.اوس كه مضارب ثانى هم دا مال يو دريم كس ته په مضاربت باندې وركړى. حالانكه مضارب ثانى ته دا ونيلى شوى وو.چه (اعمل فيه برأيك)نو وكيل ثانى بل څوك وكيل نشى جوړولې.څكه چې د وكيل اول ته ولايت د توكيل په اجازت سره ملاؤ شوې دې.او اجازت خاص طور باندې هم دده په حق كې دې.نودا اجازت به د غيرپه حق كې نه ثابتيږى.په خلاف د مضارب، چې ده ته دا ولايت د عقد شركت په وجه حاصل شوې دې.څكه چې ده ته د (اعمل فيه برأيك) ونيلو په وجه على الاطلاق د تجارت اجازت اوشو.نود تجارت د ټولو اقسامو مالك شو. (وهذا نوع تجارة فملك التفويض إلى غيره)

③ دريمه مسئله داده.چه هركله وكيل ته د څه اخستلو نه وړاندې ثمن وركړې شو.او هغه د اخستلو نه روسته دده سره هلاك شو.نو وكيل به د خپل موکل نه دوباره ثمن اخلى.اوس كه دا هم هلاك شى.نو بيا به د موکل نه نه اخلى.په خلاف د مضارب چې دې په رب المال باندې بار بار رجوع كوى.تردې چې ثمن بائع ته اورسيږى.وجه داده.چه وكيل خپل ځان لپاره تصرف كوى.په دې وجه ذمه دارى هم په ده عائد (لازم) كيږى.خو ده چونكه ثمن د موکل په حكم سره ادا كړى دى.په دې وجه دې رجوع كولې شى.او هركله ده يو ځل رجوع اوكړله.نو كوم څه چې په ده باندې موکل لپاره واجب وو.هغه ئې واخستل.اود موکل ذمه برى شود.نو ددې نه روسته رجوع نشى كولې.په خلاف د مضارب، چې دې مال خپل ځان لپاره نه اخلى. بلكه مضاربت لپاره ئې اخلى.

④ څلورمه مسئله داده.چه مضارب په مال مضاربت سره څه سامان واخستلو.او رب المال دې د مضاربت نه معزول كړو.نو دده معزول كول به ګټور نه وى.اګرچه مضارب ته ددې علم اوشى.په خلاف د وكيل،چه كه ده ته د معزولئ علم اوشى.نو دې معزول كيږى.وجه داده.چه په ذكرشوى حالت كې حق د مضاربت دې اسبابو سره تړلې شوې دې.چه نفع حاصل شى.چه ددې حقدار مضارب هم دې. اود وكيل هيڅ حق ددې سره متعلق نه دې.

⑤ پنځمه مسئله داده.كه رب المال مرتد شى.او دارالحرب ته لاړ شى.ددې نه روسته مسلمان شو.او واپس راغئ.نو دې پخپل حال مضارب پاتې وى.په خلاف د وكالت، چې هغه د مرتد كيدلو نه نه پاتې كيږى.لكه چې عنقريب (نيزدې) راروان دى.

## د رب المال د مرتد كيدلو حكم

(وَإِذَا ارْتَدَّ رَبُّ الْمَالِ عَنِ الْإِسْلَامِ)اوكه رب المال د اسلام نه واوړيدلو.العياذ بالله (وَلَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ)او په دارالحرب كې ملاؤ شو. بَطَلَتِ الْمُضَارَبَةُ)بيا هم مضاربت باطل شو.

**تشريح>** كه رب المال، معاذالله، مرتد شى.او دارالحرب ته لاړشى.(او قاضى د هغه د دارالحرب كې د ملاويدلو حكم اوكړى ).بيا به هم مضاربت باطل وى.

**دليله>** څكه چې ددې په وجه دده املاك زائل كيږى.او وارثانو طرف ته منتقل كيږى.او دده هرقسمه وينځې او مدبر غلام آزاديږى.نودا دده د مرګ په مرتبه كې شو.

## د مضارب د معزول کيدلو صورتونه

(وَإِنْ عَزَلَ رَبُّ الْمَالِ الْمُضَارِبَ که رب المال مضارب معزول کړو. وَلَمْ يَعْلَمْ بِعَزْلِهِ او هغه د خپل خان معزول کولو خبر اونشو. حَتَّى اشْتَرَى وَبَاعَ تردې چې هغه اخستل او خرڅول اوکړل. فَتَصَرُّفُهُ جَائِزٌ) نود هغه تصرف جائز دی.

**تشريح**> د مضارب د معزول کيدلو دوه صورتونه دی. ① رب المال مضارب معزول کړو. خومضارب ته د خپل خان معزول کيدلو خبر نه وی. هغه اخستل او خرڅول اوکړی. ② رب المال مضارب معزول کړو. په داسې حال کې چې راس المال نقدی ( دراهم يا دنانير) وی.

**مسئله**> که رب المال مضارب معزول کړو. او مضارب ته د خپل خان معزول کيدلو خبر اونشو. تردې چې هغه اخستل او خرڅول اوکړل. نو د هغه تصرف جائز دې.

**دليله**> خکه چې هغه د رب المال د اړخه وکيل دې. او وکيل قصداً معزول کول دده په علم باندې موقوف وی. نو مضارب به هم د علم کيدلو نه بغير نه معزول کيږی. خکه چې دا عزل قصدی دې. چه دا په علم باندې موقوف وی. چه ددې دليل شرعی اوامر او نواهی دی. د عزل قصدی قيد ددې لپاره دی. که يو سړی د غلام اخستلو لپاره وکيل کړو. بيا موکل هغه غلام پخپله خرڅ کړو. نو وکيل معزول کيږی. که هغه ته علم وی. اوکه نه وی.

(وَإِنْ عَلِمَ بِعَزْلِهِ اوکه هغه ته د خپل خان معزول کيدل معلوم وی. وَالْمَالُ عُرُوضٌ فِي يَدِهِ په داسې حال کې چې مال اسباب دې. د ده په لاس کښې فَلَهُ أَنْ يَبِيعَهَا نو هغه خرڅولې شی. وَلَا يَمْنَعُهُ الْعَزْلُ مِنْ ذَلِكَ) معزول کيدل به ددې نه مانع نه وی.

**تشريح**> کله چې رب المال مضارب قصداً معزول کړو. او مضارب ته خبر اوشو. نو اوس د دوه حالو نه خالی نه ده. ① يا به خو دده سره مال مضاربت اسباب وی. ② يا به نې خرڅ کړې وی. او واړه به نقد شوې وی. نوکه اسباب وی. نو مضارب ته اختيار دې. چه اسباب خرڅ کړی. دده معزول کيدل به د اکثرو اهل علمو په نيز د بيع نه مانع نه وی.

**دليله**> خکه چې نفع کې دده حق ثابت شوې دې. چه دا به په ويش سره ښکاره کيږی. او ويش په جدا کولو باندې مبنی دی. يعنی په دې چې کل مال به هغه وخت نقد وی. کله چې اسباب خرڅ کړې شی. نو ددې دخرڅولو اود مال نقد کولو اختيار دې. ( نو په دې مسئله کې د مضاربت حکم د وکيل خلاف دې). بيا کله چې د رب المال د مضارب معزول کول، دده د خرڅولو نه مانع نشو. نو مضارب نقد يا قرض چې څنګه غواړی. خرڅولې شی. تردې که رب المال د قرض خرڅولو نه منع کړو. نو دده منع کول به هيڅ ګټور نه وی.

(ثُمَّ لَا يَجُوزُ بيا ددې په قيمت سره څه شئ اخستل جائز نه دی. أَنْ يَشْتَرِيَ بِثَمَنِهَا شَيْئًا آخَرَ) چې د دې په پيسو باندې بل څيز واخلی.

**تشريح**> هركله چې اسباب خرڅ کړی. او مال ( قيمت) نقد شو. نو اوس د اسبابو په قيمت بل څه شئ اخستل جائز نه دی.

**دليله**> خکه چې د اسبابو خرڅولو اړتيا د راس المال د معرفت لپاره وو. په دې وجه معزول کيدلو اثر اونکړو. اود نقد کيدلو نه روسته دا اړتيا ختم شو. نواوس به معزول کيدل خپل اثر کوی. او روسته به اخستل جائز نه وی.

## د بوج اوړلو د څاروی دکفالت حکم

وَمَنِ اسْتَأْجَرَ دَابَّةً لِلْحَمْلِ اوکه یوکس د بار اوړلو لپاره حیوان (څاروې) په کرایه باندې واخستلو فَإِنْ كَانَتْ بِعَيْنِهَا که حیوان (څاروې) معین وی لَمْ تَصِحَّ الْكَفَالَةُ بِالْحَمْلِ نود بار اوړلو کفالت صحیح نه دې

**حل اللغة** ① **الدابة**-څاروې-② **الحمل**-بار-

**تشریح** صورت د مسئلې دادې.که یوکس یو معین حیوان (څاروې) د بار اوړلو لپاره په کرایه باندې اونیولو.اویو سړې د مستاجر لپاره هم په دې معین څاروی باندې د بار اوړلو کفیل شو.نود بوج اوړلو دا کفاله به جائز نه وی.

**دلیله** دلیل دادې.چه دې په معین څاروی باندې د بوج اوړلو نه عاجز دې.اوکفیل چې د کوم کار کولو نه عاجز وی.د هغې کفاله جائز نه وی.په دې وجه په معین څاروی باندې د بار اوړلو کفاله به هم جائز نه وی.اوکه حیوان (څاروې) غیرمعین وی.نود باراوړلو کفاله جائز ده.ځکه چې په دې کفاله سره واجب د بوج اوړل دی.اوکفیل خپل ذاتی څاروی باندې په بار اوړلو او رسولو باندې قدرت لری.ځکه به داکفاله صحیح وی.

وَإِنْ كَانَتْ بِغَيْرِ عَيْنِهَا اوکه حیوان (څاروې) غیر معین وی جَازَتِ الْكَفَالَةُ نو کفاله جائز ده

**تشریح** اوکه حیوان (څاروې) غیرمعین وی.نود باراوړلو کفاله جائز ده.

**دلیله** ځکه چې په دې کفاله سره واجب د بوج اوړل دی.اوکفیل خپل ذاتی څاروی باندې په بار اوړلو او رسولو باندې قدرت لری.ځکه به داکفاله صحیح وی.

## د مکفول له په مجلس کښې د کفالت قبلولو شرط

وَلَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ اوکفاله نه صحیح کیږی إِلَّا بِقَبُولِ الْمَكْفُولِ لَهُ فِي مَجْلِسِ العقد[1] خو په مجلس د عقد کې د مکفول له په قبلولو سره

**مذهب الصاحبين** صورت د مسئلې دادې.که کفاله بالمال وی.اوکه کفاله بالنفس وی.په دواړوکې د طرفینو رحمهما الله په نیز د کفالې صحیح کیدلو شرط دادې.چه مکفول له په مجلس د کفاله کې داقبول هم کړی.که مکفول له په مجلس د کفاله کې کفاله قبول نکړله.نوکفاله به صحیح نه وی.هم دا یو قول د امام شافعي رحمه الله دې

**دلیلهما** د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې.چه په عقدکفاله کې د تملیك معنی موجود ده.په دې طریقه چې د عقدکفاله په ذریعه کفیل، مکفول له پخپل ځان باندې د مطالبې مالك جوړوی.اوپه کوم شئ کې چې د تملیك معنی وی.هغه په مالك جوړونکی او مالك جوړیدونکی دواړو سره قائم وی.نو عقدکفاله به کفیل او مکفول له دواړو سره قائم وی.نوهرکله چې عقدکفاله کفیل او مکفول له دواړو سره قائم ده.نو په عقدکفاله کې به د کفیل ایجاب اود مکفول له قبول دواړه ضروری وی.حالانکه په ذکرشوی صورت کې صرف د کفیل ایجاب موجود دې.نودا به په ماوراء د مجلس باندې موقوف نه وی.ځکه چې د طرفینو په نیزشطرعقد یعنی د عقد یوجزء په ماوراء د مجلس باندې موقوف نه وی.البته دومره خبره

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول الطرفين كذا في الدر المختار(٤\٢٩٩) وردالمحتار(٤\٢٩٩) وجامع الوجيز (٦\٦) والبحر (٦\٢٣١) نقلاً عن القول الراجح (٢\٩٤)۔

ضرور ده.که د کفیل ایجاب کوم فضولی د مکفول له د اړخه په مجلس کې قبول کړو.بیا مکفول له د خبر په رسیدلو باندې اجازت ورکړو.نودا بالاتفاق جائز دی.اوکه په مجلس کې هیڅ یو فضولی هم قبول نکړو.نود مکفول له اجازت به هیڅ کټور نه وی.حاصل دادې.چه د طرفینو رحمهما الله په نیز د کفاله صحیح کیدلو لپاره د کفیل د ایجاب نه روسته هم په دې مجلس کې قبلول شرط دی.که مکفول له قبول کړي.اوکه دده د اړخه نې څوك فضولی قبول کړي.اوکه فضولی قبول کړو.نو مکفول له ته په خبر رسیدلو باندې به دده په اجازت باندې موقوف وی.

**مذهب ابي يوسف رحمه الله** ﴿ د حضرت امام ابویوسف رحمه الله نه دوه روایتونه دی.

**الرواية الاولى** ﴿ یو روایت دادې.که مکفول له په مجلس د کفاله کې موجود نه وی. نود کفاله جواز به دده په اجازت باندې موقوف وی.یعنی مکفول له ته چې په کوم مجلس کې د کفالې خبر اورسیدلو.که دہ هم په دې مجلس کې اجازت ورکړو.نو کفاله به جائز وی.اوکه اجازت نې ورنکړو.نو کفاله به جائز نه وی.امام مالك او امام أحمد رحمهما الله هم ددې قائل دی.اوهم دا یو قول د امام شافعي رحمه الله دې.

**دليلها** ﴿ د امام ابویوسف رحمه الله د رومبی روایت دلیل دادې.چه عقد د ایجاب او قبول د مجموعې نوم دې.نو په عقدکفاله کې به هم د کفیل د ایجاب نه روسته د مکفول له قبلول ضروری وی.چونکه د امام ابویوسف رحمه الله په نیز شطرعقد یعنی قبول په ماوراء د مجلس باندې موقوف کیدې شی.لکه څنګه چې د فضولی فی النکاح په بیان کې په کتاب النکاح کې تیرشوی دی .په دې وجه د مکفول له قبلول او اجازت ورکول به هم په ماوراء د مجلس باندې موقوف وی.یعنی مکفول له که د عقدکفاله په مجلس کې موجود نه وی.نو په کوم مجلس کې چې ده ته خبر اورسی.په هغې به موقوف وی.نوکه ده په دغه مجلس کې اجازت ورکړو.نو کفاله به درست وی.اوکه اجازت نې ورنکړو.نو کفاله به ټیك نه وی.

**الرواية الثانية** ﴿ دوئم روایت دادې.چه دکفاله صحیح کیدلو لپاره د مکفول له قبلول او دده اجازت ورکول شرط نه دی.یعنی کفاله به یواځې د کفیل په قول سره منعقد کیږی.د مکفول له قبلول شرط نه دی.

**دليلها** ﴿ د امام ابویوسف رحمه الله د دوئم روایت دلیل دادې.چه عقدکفاله د کفیل خپل ځان باندې د مطالبې د لازمولو د تصرف نوم دې.اوهر هغه تصرف کوم چې پخپل ځان باندې لازم کړې شی.په دې کې لازمونکې مستقل او خودمختاره وی.په دې کې د بل چا اړتیا نه وی.لکه څنګه چې اقرار کونکې د شئ مقربه په اقرار کولو کې مستقل وی.د مقرله د قبلولو هیڅ اړتیا نه وی.اولکه څنګه چې نذرکونکې د شئ منذور خپل ځان باندې لازمولوکې مستقل وی.دچا د قبلولو اړتیا نه وی.دغه شان به کفیل هم خپل ځان باندې مطالبه لازمولوکې مستقل او خودمختار وی.په دې کې به د مکفول له د قبلولو هیڅ اړتیا نه وی.

**د رومبئ مسئلې نه مستثنی مسئله**

| |
|---|
| اِلَّا فِي مَسْأَلَةٍ وَاحِدَةٍ مصنف رحمه الله فرمائی.سواء د یوې مسئلې نه وَهِيَ أَنْ يَقُوْلَ الْمَرِيْضُ لِوَارِثِهٖ (او هغه داده.چه مریض خپل وارث ته ووایي تَكَفَّلْ عَنِّيْ بِمَا عَلَيَّ مِنَ الدَّيْنِ چې ته زما د اړخه ددې قرض کفیل شه کوم چې په ما باندې دہ فَتَكَفَّلَ بِهٖ مَعَ غَيْبَةِ الْغُرَمَاءِ نوهغه د قرضخواهانو د غیرموجودګۍ باوجود دده کفیل شو جَازَ نو جائز دی. |

**حل اللغة** ﴿ ① **الدين**:قرض-② **الغرماء**-قرضخواهان-③ **غيبة**-غیرموجودګی-④ **المريض**-رنځور

**تشریح** وراندې تېر شوی دی.چه د طرفینو رحمهما الله په نیز د مکفول لـه د قبلولو نه بغیر کفاله نه صحیح کیږي.خو یوه مسئله داسې ده.چه په دې کي د کفاله د صحت لپاره د طرفینو رحمهما الله په نیز هم د مکفول له په مجلس کي دننه قبلول شرط نـه دی.اوهغـه مسئله داسـې ده.چـه بیمـار قرضـدار خپـل وارث تـه اوونیل.چه ته زما د اړخه د هغـه قرض کفیل شـه.کومـه چې پـه مـا واجب ده.نو وارث دده د اړخـه ددې قرض کفیل شو.حالانکه قرضخواه موجود نه دې.نودا کفاله استحساناً جائز ده.

**دلیله** وجه د استحسان دوه دی. ① یوه داچه د بیمار مدیون قول (تکفّل عنی بما علی من الدین) د وصیت په معنی کي دې.یعنی د (تکفّل عنّی) مطلب دې. (اقضوا دیونی) زما دیون اداکړئ.اوکله چې وارثانو (تکفلنا بها) اوونیل.نو ددې مطلب دادې.چه دوی اوونیل.چه مونږ به ستا ټولـه قرضـه اداکـوو.نوهرکله چې دا کفاله د وصیت په معنی کي ده.نود قرضخواهانو به په مجلس کي دننه قبلول هم شرط نه وی.ځکه چې د وصیت صحیح کیدلو لپاره ددې خلقو قبلول شرط نه دې.د چا لپاره چې وصیت شوې وی.اوچونکه دا کفاله د وصیت په معنی کي ده.په دې وجه کوم خلق چې مکفـول لـه دی.کـه ددوی نومونـه نـې نـه وی اخستې.او دوی مجهول وی.نوبیا هم دا کفاله درست ده.حالانکه وړاندې تیرشوی دی. چې د مکفول له مجهول کیدل کفاله فاسدوی.اودا وصیت چونکه د کفاله په معنی کي دې.په دې وجه مشائخ وائی.چه دا کفاله به هغه وخت صحیح وی.کله چې د مرګ پـه وخت د ذکرشوی بیمـار سره ترکـه د مـال موجود وی.چه وصی یعنی وارث دده دا وصیت نافذ کړی.اوکه دده سره مـال نـه وی.نـو دده د وارثـانو نـه بـه دده قرضه نـشی وصولولي.حالانکه د کفاله لپاره دا شرط نه دې.چه د مکفول عنـه سره مـال موجود وی.نو ثابته شوه.چه دا کفاله په حقیقت کي کفاله نه ده.بلکه د وصیت پـه معنـی کـي ده.اوهرکلـه چـې کفالـه د وصیت په معنی کي ده.نو په مجلس کـي دننـه د مکفول لـه قبلول بـه شرط نـه وی.ځکـه چـې د وصیت صحیح کیدلو لپاره د موصی لهم قبلول شرط نه وی.

②د استحسان دویمه وجه داده.چه پـه دې مسئله کـي مریض، د مکفول لهـم د یـو اړتیـا پـه وجـه قـائم مقام دې.اوهغه اړتیا د مریض ذمه د قرض نه فارغ کیدل دی.اوپـه دې قـائم مقـام کیـدلو کـي د مکفـول لهم نفع هم ده.په دې طریقه چې ددوی قرضه به وصول شی.نودا داسې شوه.لکـه کـه مکفول لهـم پخپلـه حاضروو.اود مریض وارث مثلاً دده خوی ته نې وئیلی وو.چه ته د خپل مورث یعنی د خپل پلار د اړخه زما د اړخه کفیل شه.نودا کفالت به صحیح وو.نوهرکله چې مریض د مکفول لهم قائم مقام شو.اودا ئې اوونیل.نو بیا به هم کفاله صحیح وی.

## د دوه قرضدارو د یوبل کفیل جوړیدل اود رجوع کولو حکم

> وَإِذَاكَانَ الدَّيْنُ عَلَى اثْنَيْنِ که قرضـه پـه دوه کسـانو بانـدې وی وَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَاكَفِيلٌ ضَامِنٌ عَنِ الْآخَرِ او په دې دواړوکي هریوکس دخپل اندیوالان د اړخه کفیل ضامن دې فَمَاأَدَّىٰ أَحَدُهُمَا نو په دې دواړوکي چې کوم یوکس څه اداکړل لَمْ يَرْجِعْ عَلَىٰ شَرِيكِهِ هغـه د خپـل شریك نـه واپس نـشی اخستې حَتَّىٰ يَزِيدَ مَايُؤَدِّيهِ عَلَى النِّصْفِ تردې چې څه اداکوی.که د نصف نه زیات شی. فَيَرْجِعُ بِالزِّيَادَةِ نودې به زیاتی واپس اخلی.

**تشریح** صورت د مسئلې دادې.که قرضه پـه دوه کسـانو وی.مـثلاً دوه سړو مشترك طور بانـدې د زر درهمو په عوض یو غلام واخستلو.یا مشترك طور باندې دواړو سړو یو زر درهـم قـرض واخستل.او پـه دې دواړو کي هر یوکس د خپل شریك د اړخه کفیل شو.نو په دې دواړوکي که یو څه رقم اداکړو.نوده

نه به د خپل شريك د واپس ا خستلو اختيار نه وي.خو كه اداكړي شوي رقم د نصف نه زيات وي.نودې زياتى مقدار دحپا , شريك نه واپس اخستلي شي.مثلاً يوشريك بائع ته يا قرضخواه ته شپږ سوه درهم ادا كړل نودې د خپل شريك نه سل درهم واپس اخستلې شي.

**دليله** دليل دادې.چه په دواړو شريكانوكي هر يو په نصف درهمو يعنى پنځه سوه درهموكي اصيل دې.او په نصف يعنى نورو پنځه سوه كي كفيل دې.يعنى په شريكينوكي هريو باندې پنځه سوه ګرهم د كفالت په حق سره واجب دى.اوكوم دراهم چې په حق د اصالت سره واجب دى.اوكوم چې په حق د كفالت سره واجب دى. ددې په مينځ كې په حقيقت كي هيڅ معارضه نشته.خكه چې كوم دراهم په حق د اصالت سره واجب دى.هغه اقوى دى.او كوم چې په حق د كفالت سره واجب دى.هغه :دې په مقابله كي اضعف دى خكه چې كوم په حق د اصالت سره واجب دى.هغه قرض دى.اوكوم چې په حق د كفالت سره واجب دى.د هغې صرف مطالبه واجب ده.په كفيل باندې دين نه واجبيږى.اودا خبره منلې شوې ده.چه د دين د مطالبې په مقابله كي دين اقوى وى.او مطالبه د دين، د دين تابع وى.خكه چې مطالبه د دين، د دين نه بغير ممكن نه ده.نو كفاله يعنى د دين مطالبه تابع شوه.او اصالت يعنى دين متبوع شو.او متبوع به په نسبت د تابع اقوى وى.په دې وجه كوم دراهم چې په حق د اصالت سره واجب دى.يعنى قرض دى هغه اقوى دى.اوكوم چې په حق دكفالت سره واجب دى.يعنى صرف مطالبه د دين ده.هغه اضعف دې.او په اضعف كي په حقيقت كي هيڅ معارضه نه وى.خكه چې د معارضه لپاره دواړو اړخ ته په قوت او ضعف كي برابريدل ضرورى دى.نو ثابته شوه.چه د,,ما عليه بحق الاصالة،،اود,,ما عليه بحق الكفالة،،په مينځ كښې هيڅ معارضه نشته.اوهركله چې د,,ما عليه بحق الاصالة،،اود,,ما عليه بحق الكفالة،،په مينځ كښې هيڅ معارضه نشته.نو په شريكانوكي چې كوم يوكس نصف يعنى پنځه سوه درهمو پورې چې كوم درهم اداكوى.هغه به اقوى يعنى,,ماعليه بحق الاصالة،، اړخ ته ګرځولي شي.اودا به وئيلي شى چه ده هغه دراهم اداكړې دى.كوم چې په ده باندې قرض دى.اوهركله چې ده خپله قرضه اداكړې ده.نوده ته د خپل شريكوال نه د واپس اخستلو اختيار نه وى.حاصل دا شو.چه په اداكولو كي به ,,ما عليه بحق الاصالة،، يعنى قرض ته په,,ما عليه بحق الكفالة،،باندې ترجيح حاصل وى. او پنځه سوه پورې به د قرض اداكول شمارلې كيږى د ,,ماعليه بحق الكفالة،، ادانيكى به نشى شمارلې.اود پنځه سوه نه په زياتوكي من كل وجه هيڅ معارضه نشته.خكه چې د پنځه سوه نه په زياتى په ده باندې بحق اصالة واجب نه دى.بلكه د پنځه سوه نه زياتى بحق كفالت واجب دى.اوهركله چې د پنځه سوه نه زياتى بحق كفالت واجب دى.نود پنځه سوه نه د زياتو د كوم مقدار چې اراده كوى.هغه به بحق كفالت شمارلې كيږى.يعنى دا به وئيلې شى.چه ده د كفيل كيدلو په وجه دا زياتى مقدار د خپل شريك د اړخه اداكړې دې.او كفيل چې هركله د مكفول عنه د اړخه مال اداكړى.نو كفيل ته د مكفول عنه نه د واپس اخستلو اختيار وى.په دې شرط چې د مكفول عنه په حكم سره كفيل شوې وى.په دې وجه په دې مسئله كي اداكونكى شريك ته دا اختيار وى.چه دې د پنځه سوه نه زياتى د خپل دوئم شريكوال نه واپس واخلى.

### د يوكس دوه كفيلان جوړيدل اودا دواړه د يوبل كفيل كيدل او د رجوع كولو حكم

| وَإِذَاكَفَلَ اثْنَانِ عَنْ رَجُلٍ بِأَلفٍ عَلَى أَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَفِيلٌ عَنْ صَاحِبِهِ اوكه دوه سرى د يو سرى د اړخه د زرو روپو كفيلان شو.په دې شرط باندې چې په دې دواړوكي هريو د خپل انډيوال د اړخه كفيل دې فَمَا أَدَّى أَحَدُهُمَا نوكوم چې په دې دواړوكي يوكس ادا كړى رَجَعَ بِنِصْفِهِ عَلَى شَرِيكِهِ |
|---|

د هغې نصف د خپل انډیوالان نه واپس اخستلې شی قَلِیلًا کَانَ أَوْکَثِیرًا که دا لږ وی.اوکه ډیر وی.

**تشریح>** صورت د مسئلې دادې.چه دوه سړی د یو کس د اړخه په دې شرط زرو روپو کفیلان شو.چه په دې دواړو کې به هریو د بل د اړخه هم کفیل وی.نو په دواړه کفیلانوکې چې یوکس څه اداکړی وی.هغه ته د خپل انډیوال نه د نصف واپس اخستلو اجازت دې.که ادا کړې شوې رقم لږ وی. اوکه زیات وی.مثلاً حامد او خالد د شاهد دارخه د زرو درهمو په دې شرط باندې کفیلان شو.چه حامد به د خالد د اړخه او خالد به دحامد د اړخه هم کفیل وی.نوکه حامد مکفول له ته د شاهد د اړخه زر روپئ اداکړل.نو حامد ته به د خپل انډیوال یعنی خالد نهددې نصف یعنی پنځه سوه روپئ واپس اخستلو اختیار حاصل وی.

**توضیح المسئلة>** علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی چه د صحیح قول مطابق ددې مسئلې مراد دادې.چه په دواړه کفیلانوکې هریو اصیل یعنی د مکفول عنه د اړخه هم د پوره مال کفیل دې.اود خپل انډیوال د اړخه هم د پوره مال کفیل دې.او مطالبه متعدد ده.په دې طریقه چې دواړه کفیلانوکې هریو ددې مطالبې التزام کړې دې.کوم چې د مکفول له د اړخه په مکفول عنه یعنی مدیون باندې وو.او د دوئم د هغه مطالبې التزام ئې کړې دې.کوم چې د کفالې په وجه کفیل باندې وو.نو په دواړه کفیلانوکې هر یو باندې دوه دوه کفالې جمع کیږی. ① کفاله عن الاصیل ② کفاله عن الکفیل.....او موجب د کفالې چونکه د مطالبې التزام دې.او په کفیل باندې هم مکفول له لپاره مطالبه کیږی.په دې وجه د کفیل د اړخه کفیل کیدل،هم دغه شان صحیح دی.لکه څنګه چې د اصیل ( مدیون) د اړخه کفیل کیدل صحیح دی.اولکه څنګه چې محتال علیه کوم شئ خپل ځان باندې لازم کړې وو.د هغې په بل باندې حواله کول صحیح دی.دغه شان د کفیل دارخه کفیل کیدل هم صحیح دی.

بهرحال هرکله چې دا معلومه شوه.چه په دواړه کفیلانوکې هریو د اصیل یعنی د مدیون د اړخه هم د پوره مال کفیل دې.اود خپل انډیوال یعنی د دوئم کفیل د اړخه هم د پوره مال کفیل دې.نو په دې دواړو کفیلانوکې چې یوکفیل څه ادا کوی.دا به په مشترك طور باندې د دواړو د اړخه ادا کیږی.مثلاً یو کفیل مکفول له ته دوه سوه درهم اداکړل.نودا دوه سوه درهم به د دواړه کفیلانو د اړخه ادا وی.یعنی دا به وئیلې شی.چه دې کفیل سل درهم د کفاله عن الاصیل په وجه ادا کړی دی.او سل درهم ئې د کفاله عن الکفیل په وجه اداکړی دی.

**دلیله>** او دلیل دادې.چه دلته کې واړه په تولـه کفاله ده.یعنی د کفاله عن الاصیل په وجه چې کوم واجب دی.هغه هم بحق کفاله واجب دی.اود کفاله عنه الکفیل په وجه چې کوم واجب دی.هغه هم بحق کفاله واجب دی.

## د مال کتابت د کفالت حکم

وَلَاتَجُوزُالْكَفَالَةُ بِمَالِ الْكِتَابَةِاود مال کتابت کفاله جائز نه ده. سَوَاءٌحُرٌتَكَفَّلَ بِهِ أَوْعَبْدٌ که دده کفالت آزاد اوکړی.او که غلام،

**تشریح>** صورت د مسئلې دادې.چه د مولا لپاره د مکاتب د اړخه د مال کتابت کفیل کیدل جائز نه دی.که کفیل آزاد وی.اوکه غلام وی.ابو الحسن قدوری رحمه الله مال کتابت اووئیل.او بدل کتابت ئې اونه وئیل.ځکه چې د مال کتابت لفظ بدل کتابت ته ګډ دې.او هرهغه دین ته ګډ دې.کوم چې د مولا په مکاتب باندې وی. لنډیز داچه د مکاتب د اړخه د مولا لپاره نه د بدل کتابت کفیل کیدل جائز دی.اونه

د هغه دين كفيل كيدل جائز دى.كوم چې د مولا په مكاتب باندې وى.د بدل كتابت كفاله خوځكه ناجائز ده.چه بدل كتابت داسې دين دې.كوم چې غيرمستقر او غيرثابت وى.

**دلائله** ﴿١﴾ او غيرثابت ځكه دې.چه بدل كتابت د منافى يعنى د رقيت باوجود ثابت شوى دې.يعنى غلام كيدل او په ده باندې د مولا قرضه كيدل دواړوكي منافات دې.په دې طريقه چې په مكاتب كه د بدل كتابت يو درهم باقى وى.نو بيا به هم دې غلام وى.او مولا چونكه خپل غلام باندې د مال نه مستحق كيږى.لكه ځنګه چې په مخكښې مسئله كي تيرشوى دى.په دې وجه د قياس تقاضا داده.چه په مكاتب باندې د بدل كتابت واجبول صحيح نه وى.خود الله تعالى د قول ﴿فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا﴾ په وجه قياس ترك كړې شوې دې.اود منافى يعنى د رقيت باوجود په مكاتب باندې بدل كتابت ثابت شوې دې.اوكوم شئ چې منافى سره ثابت وى.هغه غيرمستقر وى.يعنى من وجه ثابت وى.او من وجه ثابت نه وى.نو ثابته شوه.چه بدل كتابت غيرمستقر دې.يعنى من وجه ثابت دې.او من وجه ثابت نه دې.اوهركله چې بدل كتابت غيرمستقر دې.نود كفاله صحيح كيدلو په حق كي به ددې دين كيدل نه بكاره كيږى.ځكه چې كفاله د دين مستقر صحيح كيږى.د دين غيرمستقر كفاله نه صحيح كيږى.

﴿٢﴾ د بدل كتابت د غير مستقر كيدلو دوئم دليل دادې.كه مكاتب خپل ځان د بدل كتابت ادا كولو نه عاجز كړى.نو بدل كتابت به ساقطيږى.حالانكه دين مستقر يا خو په ادا كولو سره ساقطيږى.اويا د دائن په برى كولو سره ساقطيږى.او دلته كي په دواړه خبروكي يوه خبره هم نه موندلې كيږى.نو بدل كتابت به دين غير مستقر وى.بهرحال په ذكرشوى دواړه دليلونو سره د بدل كتابت غيرمستقر كيدل ثابت شوى دى.اود دين غيرمستقر كفاله نه جائز كيږى.لهذا د بدل كتابت كفاله به هم جائز نه وى.

**د مړي د قرضخواهانو لپاره د كفيل جوړيدلو حكم**

| |
|---|
| وَإِذَا مَاتَ الرَّجُلُ اوكه يو سړي مړ شو وَعَلَيْهِ دُيُونٌ حالانكه په ده باندې قرض دى وَلَمْ يَتْرُكْ شَيْئًا او ده هيڅ مال نه دې پريښودې فَتَكَفَّلَ رَجُلٌ عَنْهُ لِلْغُرَمَاءِ بيا د مړي د اړخه يو سړې د قرضخواهانو لپاره كفيل شو لَمْ تَصِحَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ [1] نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا كفاله صحيح نه ده. |

**حل اللغة** ﴿١﴾ **الرجل**-سړې-﴿٢﴾**الترک**-پريخودل-﴿٣﴾**الغرماء**-جمع د غريم،قرضخواه-

**مذهب ابى حنيفة رحمه الله** صورت د مسئلې دادې.چه يوسړې چې په ده باندې د خلقو قرضه ده.مفلس ( فقير) مړشو.يعنى ده په تركه كي هيڅ مال پرې نخودلو.او نه دده د اړخه وراندې نه څوك كفيل موجود دې.بيا ددې مړى د اړخه يوكس كفيل شو.هغه سړې كه د مړى وارث وى.اوكه اجنبى وى.نو په داسې صورت كي د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز كفاله صحيح نه ده.

**دليله** د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چې د دين او قرض كفيل كيدلو شرط دادې.چه قرضه د اصيل (مكفول عنه) په ذمه ثابت او قائم وى.حالانكه دلته يعنى د مفلس مړى په ذمه دين ثابت نه دې.بلكه ساقط دې.اود مړى د ذمه نه دين ځكه ساقط دې.چه دين په حقيقت كي مال نه وى.بلكه فعل ادا يعنى د قرض اخستلو،اود مال مالك كولو،اود سپارلو د فعل نوم دين دې.او دين چونكه د فعل ادا نوم دې.په دې وجه دين وجوب سره متصف كيږى.لكه چې وئيلې شى. (دين واجب) لكه چې ( الصلاة

---

[1] ) القول الراجح هو هذا لقول الإمام رحمه الله كما ظهر من داب المصنف رحمه الله وايضاً من صنع صاحب الملتقى كذا في القول الراجح (٢\٩٦)-

واجبه) ونیلي شي.څکه چې واجبیدل یا مستحب کیدل د فعل صفت وي.د اعیان صفت نه وي.او وجوب د افعالو صفت څکه وي.چه وجوب ددې فعل خاص کولو نوم دی.کومه چې ددې خبرې تقاضا کوي چه فاعل به په ده باندې د خلل واقع کولو په صورت کې د ګناه او مذمت مستحق وي.او دا خبره په افعالو کې متصور کیږي.خو په اعیانو کې نه متصورکیږي.څکه چې اعیان د بنده ګانو د قدرت لاندې نه داخلیږي.نود بنده ګانو د اړخه ددې په حاصلولو کې خلل واقع کول هم نه متصور کیږي.او په ذکرشوې مسئله کې د فعل ادا اود مال مالك کولو د فعل نه علاوه هیڅ فعل داسې نشته.چه وجوب سره موصوف کړې شي.نو ثابته شوه.چه دین د مال نوم نه دې بلکه د فعل ادا یعنی د مال مالك کولو اود سپارلو نوم دین دې.نوهرکله چې ثابته شوه.چه دین په حقیقت کې د فعل نوم دې.نودا فعل به د قدرت محتاج وي.څکه چې د قدرت نه بغیر د فعل وجوب، تکلیف عاجز او تکلیف مالا یطاق دې.حالانکه د عاجز مکلف کول، او انسان د داسې څیزونو مکلف کول، کوم چې دده په قدرت او توان کې نه وي محال دی بهرحال فعل ادا د قدرت محتاج دې.او دلته کې قدرت موجود نه دې.څکه چې مفلس مړې نه خو پخپله په فعل ادا باندې قادر دې.اونه خپل خلیفه او نائب سره قادر دې.بذات خود نه قادرکیدل خو ښکاره دی.او خلیفه او نائب سره نه قادرکیدل څکه دی.چه ده څه داسې کفیل نه دې جوړکړې کوم چې دده د اړخه اداکړي.

او پاتې شو وارث،نو ده ته د مفلس مورث د مرګ په وخت، د دین ادا کولو دشریعت د اړخه هیڅ امر نه کیږي.نوهرکله چې مدیون یعنی مفلس مړې نه پخپله فعل اداباندې قادر دې.اونه د خپل نائب یعنی کفیل سره قادر دې.اونه خپل وارث سره قادر دې.نودې د فعل ادا نه بالکل عاجز شوې دې.او هرکله چې مدیون یعنی مفلس مړې د فعل ادا نه عاجز دې.نود نتیجې په طور د قرضخواه دده نه دین وصولول هم فوت شو.اوکله چې د قرضخواه خپل دین وصولول فوت شو.نو ضرورةً د دنیاوي احکامو په اعتبار سره د مړي د ذمې نه دین ساقطیږي.او هرکله چې د دنیاوي احکامو په حق کې دمفلس مړي نه دین ساقط شو.نو دده کفالة به هم درست نه وي.څکه چې د دین نه بغیر کفاله نه صحیح کیږي.نو ثابته شوه.چه د مفلس مړي د اړخه کفاله نه صحیح کیږي.

**وَعِنْدَهُمَا: تَصِحُّ** او صاحبین رحمهما الله فرماني.چه صحیح ده

**مذهب الصاحبين** اود صاحبینو رحمهما الله په نیز صحیح ده.د امام مالك، امام شافعي او امام احمد رحمهم الله هم دا قول دې.

**دلیلهما** دلیل دادې.چه دا سړې دداسې دین صحیح کفیل شوې دې.کوم دین چې د مکفول عنه یعنی د مړي په ذمه کې ثابت دې.اود داسې دین صحیح کفاله کومه چې د مکفول عنه په ذمه ثابت وي.بالاتفاق صحیح وي.نودا کفاله به هم صحیح وي.د مړي په ذمه چې کوم دین دې.هغه صحیح څکه دې چې مسئله په دین صحیح کې فرض شوې ده.او ثابت او قائم څکه ده.چه د مړي په ژوند کې د قرضخواهانو د حق په وجه مړي باندې دین واجب شوې وو.او کوم دین چې واجب وي دا هغه وخت پورې نه ساقطیږي.ترکوم وخته پورې چې درې خبروکې یوه خبره اونه موندلې شي. ① یاخو صاحب حق یعنی قرضخواه، قرضدارې بري کړي. ② یا من علیه الحق یعنی قرضدار قرض اداکړي.③ یاد کوم سبب په وجه چې دین واجب شوې وو.هغه سبب فسخ شي اود قرضدارې دمرګ په وجه درې واړه خبروکې هیڅ خبره نه ده موندلې شوې.څکه چې مسئله په دې صورت کې فرض کړې شوې ده.چه نه خو قرضخواه قرضدار د قرض نه بري کړې وي اونه قرضدارې قرضه اداکړې وي.اونه د قرض د وجوب سبب فسخ شوې وي.نو هرکله چې د قرض ساقطونکي ذکرشوې درې واړه خبروکې هیڅ یوه خبره اونه

مونږ ته شوه. نود مړي د ذمې نه به قرض نه ساقطيږي.او هرکله چې د مړي د ذمې نه قرضه ساقط نشوه.نو معلومه شوه.چه د مړي په ذمه قرضه ثابت او قائم ده.اود قرض ساقطونکي ذکرشوی درې واړه خبروکي چونکه هيڅ يوه خبره نه ده موجود شوې.په دې وجه د آخرت په احکاموکي د مړي په ذمه قرض پاتې کيږي.نو دنياوی اعتبار سره به هم د مړي په ذمه قرضه پاتې وی. د مړي په ذمه د دنياوی احکامو په حق کې د قرض په ثبوت باندې يو دليل دادې.که يوسړی د مړي قرضه تبرعاً اداکړله.نودا اداکول صحيح دی.نوکه مديون مفلس د مرګ په وجه د قرض نه بری کيدلو.او دده په ذمه قرض نه پاتې کيدلو.نود قرضخواه لپاره به تبرعاً د قرضه اداکونکي نه د قرض مال اخستل حلال او صحيح نه وو.

**الجواب>** د مفلس مړي د اړخه تبرعاً دين اداکول صحيح کيدل،ددې خبرې دليل نه دې.چه د مفلس مړي په ذمه دين ثابت نه دې.څکه چې تبرع ( احسان) کول په دې موقوف نه وی.چه د مکفول عنه په حق کي دين موجود وی.بلکه په دې موقوف وی.چه پخپله د تبرع کونکي يعني د کفيل په حق کې دين موجود وی.که خالد اووئيل.چه د حامد په شاهد باندې زر روپۍ قرض دی.او زه ددې کفيل يم.اومکفول عنه يعني شاهد انکار اوکړو.نودا کفاله به درست وی.او په کفيل يعني په خالد به زر روپۍ ادا کول واجب وی.حالانکه دلته کې دين بالکل موجود نه دې.نو معلومه شوه.چه د تبرع کولو لپاره د مکفول عنه په ذمه دين ثابتيدل ضروری نه دی.اوهرکله چې د تبرع کولو لپاره د مکفول عنه په ذمه دين ثابتيدل ضروری نه دی.نود مفلس مړي د اړخه تبرعاً دين ادا کولو صحيح کيدل به ددې خبرې دليل نه وی.چه د مفلس مړي په ذمه دين ثابت دې.اود صاحبينو رحمهما الله د دوئم مستدل (وكذا يبقى إذا كان به كفيل او مال) جواب دادې.چه قدرت د فعل اداشرط دې.که مکفول عنه بذات خود قادر وی.اوکه د خپل نائب او خليفه په ذريعه قادر وی.نوکه د مړي د مخکې نه کفيل موجود وی.يا د مړي متروکه مال موجود وی.نو مړې يعني مکفول عنه اګرچه پخپله په ادا د فعل باندې قادر نه دې.خود خپل خليفه يعني کفيل يا د مال متروکه په ذريعه په فعل ادا باندې قادر دې.په دې طريقه که د مخکې نه کفيل موجود وی.نو دين به دکفيل نه وصولولې شی.اوکه کفيل موجود نه وی.بلکه مال متروکه موجود وی.نود ترکه دمال نه به دين وصولولې شی.نوهرکله چې په دې دواړو صورتونوکي قدرت اوموندې شو.نوپه مفلس مړي باندې به په دې دواړو صورتونوکي دين ( فعل ادا) ثابت وی.او په کوم صورت کي چې نه د وراندې نه د مړي کفيل وی.اونه دده سره مال موجود وی.نو په دې صورت کي به مړې نه بذات خود قادر وی.اونه به د خپل خليفه په ذريعه قادر وی.اوهرکله چې مړي ته به هيڅ طريقه قدرت حاصل نشو.نو دده په ذمه به دين ثابت نه وی.بلکه دين به ساقط وی.اود دين ساقط کفاله نه صحيح کيږي.په دې وجه په دې صورت کې به کفاله درست نه وی.

# كِتَابُ الْحَوَالَةِ

**ترجمه>** ( دا) کتاب د حواله ( په بيان کي ) دې.

**تشريح>** لکه څنګه چې په کفاله کې کفيل خپل خان باندې هغه شئ لازموی.کوم چې په اصيل باندې واجب وو.دغه شان په حواله کې محتال عليه باندې هغه شئ لازمولې شی.کوم چې په محيل باندې واجبيږي.اود دواړو مقصد توثق او اعتماد دې.يعني د کفاله مقصد مکفول له ته اطمينان ورکول دی.او په حواله کې محتال له ته اطمينان ورکولې شی. هم

ددې مناسبت په وجه ئې کتاب الحواله په کتاب الکفاله پسې روستو ذکر کړلو

**وجه تقديم الكفالة>** اوحواله چونکه د اصيل براءت ته متضمن ده.په دې وجه دا په منزله د مرکب ده.اوکفاله چونکه براءت د اصيل ته متضمن نه وي.په دې وجه دا په منزله د مفرد دې.او مفرد چونکه په مرکب باندې مقدم وي.په دې وجه کفاله مقدم او حواله مؤخر کړې شوې ده.

**معني الحوالة>** حواله د زوال او نقل په معنی باندې دلالت کوي.هم ددې نه تحويل دې.يعنی يو شئ د يو محل نه بل محل ارخ ته منتقل کول.

**تعريف الحوالة شرعاً>** په اصطلاح د شريعت کې حواله وائی.د مديون د ذمه نه د ملتزم ذمې ارخ ته مطالبه منتقل کول.بيا بعض مشائخ وائی.چه دحواله په پوره کيدلو سره چې لکه څنګه محيل د مطالبې نه بری کيږي. دغه شان د قرض نه هم بری کيږي.او بعض وائی.چه صرف د مطالبې نه بری کيږي.د قرض نه نه بری کيږي.په حواله کې څلور لفظونه وئيلې شی. ① محيل، مديون ② محتال له، دائن قرضخواه ③ محتال عليه، هغه کس چې حواله ئې قبول کړې ده.④ محتال به، هغه مال کوم چې قبول کړې شوې دې. يعنی نفس دين.....

**قسمي الحوالة>** د حواله دوه قسمونه دی.يو قسم حواله مطلقه ده دا دې ته وائی چې په دې کې هيڅ قيد نه وي. بيا دحواله مطلقه دوه قسمونه دی.

① ميعادی ② غيرميعادی يعنی فی الحال.

او دوئم قسم حواله مقيده ده دا دې ته وائی چې محيل يعنی مديون خپل مديون ارخ ته مطالبه منتقل کړي.مثلاً د خالد په حامد باندې يو زر روپۍ دی.اود حامد په شاهد باندې پنځلس سوه روپۍ دی.نو حامد شاهد ته اووئيل.چه ته زما په قرضه کې زر روپۍ خالد ته ورکړه.نودې ته حواله مقيده وئيلې شی.

## د حواله شرعي حيثيت

| الحوالة جَائِزَةٌ بِالدُّيُونِ ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.اود قرضو حواله جائز ده. |
|---|

**حل اللغة>** ①**الديون**-جمع دين،قرض-

**تشريح>** شيخ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه د قرضونو حواله جائز ده.اوپه جواز باندې نقلی او عقلی دواړه قسمه دليلونه موجود دی.

**دلائله>** ①نقلی دليل د ابوهريره رضی الله عنه حديث دې.د صحيحينو الفاظ دادی. (**مطل الغنی ظلم واذا اتبع احدکم علی ملیء فليتبع**)[1] يعنی د مالدار ټال مټول کول ظلم دې.او کله چې په تاسو کې څوک توانګر پسې اولګولې شی.نو اتباع دې اوکړي.يعنی محتال له دې حواله قبول کړي.

② عقلی دليل دادې.چه محتال عليه پخپل ځان باندې داسې شئ لازم کړې دې. چې ددې په سپارلو باندې قادر دې.او داسې شئ لازمول چې ددې په سپارلو باندې قادر وي.صحيح ده.په دې وجه د کفاله پشان حواله به هم صحيح وي.

**وجه التخصيص بالديون>** پاتې شوه داخبره چې حواله ديون سره ولې خاص کړې شوې ده؟ نو ددې جواب دادې.چه د حواله معنی نقل او تحويل دې.او تحويل په ديون کې ممکن دې.خو په اعيان کې ممکن نه دې.ځکه چې دين غيرمعين وي.نودا محتال عليه هم اداکولې شی.او عين چونکه متعين وي.په دې وجه دا هم هغه اداکولې شی.چه دچا سره موجود وي.نو ثابته شوه.چه حواله د ديونو جائز ده.اود اعيانو

(۱) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه اخرجه احمد في المسند(۲/۴۶۳) وابن أبي شيبة في مصنفه والطبراني في معجمه الوسط_

حواله جائز نه ده.صاحب د کفایه رحمه الله هم دا خبره پخپل علمی اندازکي داسې بیان کړي ده.چه حواله کوم چې په نقل باندې دلالت کوي.ددې نه مراد نقل شرعي دې.او دین وصف شرعي دې.نو نقل شرعي به په هغه شئ کې موثر وی.کوم چې شرعاً ثابت وی.نو دین کوم چې وصف شرعي دې.او شرعاً ثابت دې.دا به د نقل شرعي نه منتقل کیږي.او پاتې شو عین،نودا چونکه حسي دې.په دې وجه به د نقل شرعي نه نه منتقل کیږي.بلکه نقل حسي ارخ ته به محتاج وی.ددې نه هم ثابته شوه.چه حواله په دین کې جائز ده.خو په اعیانو کې حواله جائز نه ده.

## د حواله لپاره د رضامندئ شرطیت

| وَتَصِحُّ الْحَوَالَةُ بِرِضَا الْمُحِيلِ وَالْمُحْتَالِ وَالْمُحْتَالِ عَلَيْهِ فرمائي.اوحواله د محیل، محتال له،اود محتال علیه په رضامندئ سره صحیح کیږي. |
|---|

**تشریح>** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائي.چه د حواله د صحت لپاره د محیل، محتال، اود محتال علیه رضا مندی شرط ده.د محتال له رضامندی شرط کیدلو کې د هیڅ چا اختلاف نشته.

**دلیل رضاء المحتال له>** او ددې دلیل دادې.چه قرضه د محتال له حق دې.او قرضه د حواله په ذریعه منتقل کیږي هم.خود خلقو په ذموکې تفاوت دې.ځکه چې بعض خلق په قرض ادا کولو کې ډیرکره (ایمانداره) وی.او بعض دهوکه بازه (او بې ایمانه) قسم خلق تال متول کوی.نوکه د محتال له رضامندی شرط نه وی.نو ډیر خله محتال له په ضرر کې اخته کیږي.په دې طریقه چې محتال له داسې کس مقرر کړې وی.چه ډیر انتهائی نادیدکه ( دهوکه باز) او بدمزاج وی.نو په داسې صورت کې چونکه د محتال له لپاره خپل قرض وصولول سخت مشکل وی.په دې وجه د حواله د صحت لپاره د محتال له رضامندی شرط ګرځولې شوې ده.

**دلیل رضاء المحتال علیه>** او پاتې شو محتال علیه،نو که د محیل په محتال علیه باندې قرضه نه وی.نود محتال علیه رضامندی بالاجماع شرط ده.اوکه د محیل په محتال علیه باندې قرضه وی.نو زمونږ په نیز په دې صورت کې هم د محتال علیه رضامندی شرط ده.

دلیل دادې. چې حواله د محیل د ارخه محتال علیه باندې قرضه لازمول دی.او لزوم د التزام نه بغیر نه کیږي.ګنی هر سړې چې د بل په ذمه څه غواړي.لازموی به.په دې وجه محتال علیه باندې قرضه لازمولو لپاره ضروری ده.چه دې پخپله خپل ځان باندې لازم کړي.اوهرکله چې محتال علیه پخپله خپل ځان باندې قرضه لازم کړله.نود محتال علیه رضامندی اوموندلې شوه.نو معلومه شوه.چه په محتال علیه باندې قرضه لازمولو لپاره دده رضامندې هم شرط ده.

**دلیل رضاء المحیل>** او پاتې شو محیل، نو امام قدوری رحمه الله فرمائي.چه د حواله صحیح کیدلو لپاره د محیل رضامندی هم شرط ده.لکه څنګه چې په متن کې په دې قول سره ذکرشوې ده (وتصح الحوالة برضا المحیل)

د امام ابوالحسن قدوری رحمه الله د دې روایت دلیل دادې.چه بنه ( او دینداره) خلق دا نه خوښوی.چه ددوی بوج په بل چا وی.بلکه ډیر خله شرم محسوسوی.په دې وجه محیل یعنی د قرضدار رضامندی هم ضروری ده. ② دوئم دلیل دادې. چې امام ابوالحسن قدوری رحمه الله د محیل رضامندی هغه وخت شرط ګرځولې دې.کله چې دمحیل په محتال علیه باندې قرضه وی.او دغه وخت د محیل رضامندی ځکه ضروری ده.چه په دې صورت کې محتال علیه نه د محیل مطالبه ساقطیږي.اوهرکله چې په دې صورت کې د محیل مطالبه ساقطیږي.نو ددې حواله صحیح کیدلو لپاره به د محیل رضامندی شرط

وي.حاصل داچه د حواله ابتداء کله د محيل نه کيږي.اوکله د محتال عليه نه.اول احاله ده.او ثاني احتيال دي.او احاله فعل اختياري دي.چه بغير د ارادې او رضامندئ نه ممکن نه ده.هم دا د ابوالحسن قدوري رحمه الله د روايت دليل دې.او احتيال د محيل د ارادې نه بغيرصرف د محتال عليه په اراده سره مکمل کيږي.هم دا د زيادات د روايت دليل دې.

## د حواله پوره کيدلو سره د محيل بري کيدل

| وَإِذَا تَمَّتِ الْحَوَالَةُ بَرِئَ الْمُحِيلُ مِنَ الدَّيْنِ اوکله چې حواله پوره شوه.نو محيل د پورونو نه بري کيږي. |
|---|

**حل اللغة**> ① **تمت**-پوره شوه-② **برئ**-خلاص شو-

**تشريح**> صورت د مسئلې دادې.چه د محتال له او محتال عليه قبلولو سره هرکله حواله پوره شوه.نو محيل به د قرض نه بري کيږي.

**دليله**> دليل دادې.چه په لغت کې حواله د منتقل کولو په معنى کې راځي. اوهم ددې نه حوالة العراس، د ونې منتقل کولوپه معنى کې راځي.نود حواله په ذريعه قرض منتقل کول ضروري شو. او هرکله چې قرضه د محيل د ذمې نه منتقل شوه.نود محيل په ذمه کې به باقي نه پاتې کيږي.او هرکله چې د محيل په ذمه کې قرضه پاتې نشوه.نو محيل بري شو.

**مذهب زفر رحمه الله**> امام زفر رحمه الله فرمائي.چه محيل به نه بري کيږي.

**دليله**> د دوی دليل په کفاله باندې قياس دې.او وجه د قياس دا ده.چه په حواله او کفاله دواړوکې هريو عقد توثق (اعتماد) دې.يعنى د مضبوطوالي لپاره د کفاله پشان حواله هم کولې شي.نو لکه څنګه چې په کفاله کې اصيل يعنى مکفول عنه نه بري کيږي.دغه ډول په حواله کې هم اصيل يعنى محيل نه بري کيږي.

**الجواب عنه**> پاتې شوه کفاله.نو ددې لغوي معنى د ضم (ملاوول) راځي.نو په کفاله کې ،،الذمة الى الذمة،، معتبر ده.اودا اصول ثابت شوي دي.چه احکام شرعيه د خپلې لغوي معنى موافق وي.نود حواله لغوي معنى په اعتبار سره محيل د قرض او مطالبې نه بري کيږي.اود کفاله د لغوي معنى په اعتبار سره مکفول عنه باندې قرضه او مطالبه باقي کيږي.

## توی يعنى د تلف کيدلو بعض صورتونه

| وَالتَّوَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ بِأَحَدِ الْأَمْرَيْنِ اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هلاکيدل د دوه خبرو نه يوه ده. إِمَّا أَنْ يَجْحَدَ الْحَوَالَةَ وَيَحْلِفَ او هغه داچه يا محتال عليه د حواله انکار اوکړي.او قسم اوخوري. وَلَا بَيِّنَةَ لَهُ عَلَيْهِ أَوْ يَمُوتَ مُفْلِسًا اود محتال عليه خلاف محيل او محتال له سره بينه نه وي.يا محتال عليه فقير مړشي |
|---|

**حل اللغة**> ① **يجحد**-انکار کوي-② **يحلف**-قسم خوري-③ **يموت**-مړ کيږي-

**تشريح**> ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په دوه خبروکې د يوې خبرې په ذريعه توا متحقق کيږي.

① محتال عليه د حواله انکار اوکړي.او قسم اوخوري.اود محتال عليه خلاف نه محيل سره بينه موجود وي.او نه محتال له سره بينه موجود وي.

② يا محتال عليه مفلس شي.او مړشي.يعنى نه ده څه مال پرينښودې وي.اونه ئې په چا باندې خپله قرضه پرينښودې وي.اونه ئې خپل ځان باندې د محتال عليه لپاره کفيل پرينښودې وي.

**دليله>** دليل دادې چه په دواړه صورتونوکې محتال له د خپل حق وصولولو نه عاجز دې.په ړومبی صورت کې ځکه چې محتال له د محتال عليه نه په مطالبه کولو باندې قادر پاتې نشو.او په دوئم صورت کې داسې ذمه باقي نشوه.چه ددې سره د محتال له حق متعلق وی.بهرحال په حقيقت کې توی (هلاکيدل) هم دادې.

| وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ او هلاکيدل په حقيقت کې هم دا دی.او صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه دا دوه عمله دی. وَوَجْهٌ ثَالِثٌ وَهُوَ أَنْ يَحْكُمَ الْحَاكِمُ بِإِفْلَاسِهِ حَالَ حَيَاتِهِ او يوه دريمه وجه ده.او هغه داده.چه د محتال عليه په ژوند کې حاکم دده د فقيرئ حکم ورکړی. |
|---|

**حل اللغة>** ① **إفلاس**-غريب کيدل-② **حياة**-ژوند

**مذهب الصاحبين>** چه محتال له د خپل حق د حاصولونه عاجز شي نو د صاحبينو په نيز د دې دريم صورت دا هم دې چې حاکم د محتال عليه ژوند کې دده د افلاس (غربت) حکم ورکړی.يعنی دا اعلان اوکړی.چه فلانئ سړې مفلس ثابت شو.اوس به په ده باندې د هيڅ چا مطالبه مسموع نه وی.نو په دې صورت کې چونکه محتال له د خپل حق وصولولو نه عاجز دې.په دې وجه به په دې صورت کې هم توی متحقق کيږی.

**بناء الاختلاف>** خودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د قاضی په حکم ور کولو سره افلاس نه متحقق کيږی. او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د قاضی په حکم ور کولو سره دې مفلس متحقق کيږی.[1]

**دليله>** د امام صاحب رحمه الله دليل دادې.چه مال تلونکې راتلونکې شئ دې.يو سړې سحر مالداره وی.او ماښام ته غريب کيږی.اوکله ددې برعکس کيږی.نو حاکم چې د چا د غربت حکم کړې دې.ديره ممکن ده.چه په خپل ژوند کې توانګر شي.

**د محتال عليه د قول قبلولو صورتونه**

| وَإِذَا طَالَبَ الْمُحْتَالُ عَلَيْهِ الْمُحِيلَ بِمِثْلِ مَالِ الْحَوَالَةِ اوکه محتال عليه د محيل نه د مال حواله دمثل مطالبه اوکړله. فَقَالَ الْمُحِيلُ أَحَلْتَ بِدَيْنٍ لِي عَلَيْكَ نو محيل اووئيل.چه ماد خپلې هغه قرض په عوض کومه چې په تا باندې وه.حواله کړې وه. لَمْ يُقْبَلْ قَوْلُهُ نود محيل قول به قبول نه وی.خو په حجت سره(به قبول وی). وَكَانَ عَلَيْهِ مِثْلُ الدَّيْنِ او په محيل به د قرض مثل واجب وی. |
|---|

**تشريح>** صورت د مسئلې دادې.چه محتال عليه د محيل د ارخه د قرض ادا کولو نه روسته د محيل نه د قرض په مقدار د مال مطالبه اوکړله.نو محيل اووئيل.چه زما په تا کوم قرض وو.ما ددې په عوض حواله کړې وه.يعنی ما دا وئيلی وو.چه زما په تا کوم قرض دې.د هغې نه زما هغه قرضه اداکړه.کومه چې د محتال له په ما باندې ده.نو په دې صورت کې که محيل بينه پيش کړل.نود محتال عليه حق رجوع به باطل شي.اوکه محيل بينه پيش نکړې شو.نود محتال عليه قول به مع اليمين معتبر وی.او په محيل به دومره مقدار واجب وی.څومره مقدار قرضه چې محتال عليه اداکړې ده.

**دليله>** دليل دادې.چه د محيل نه د قرض واپس اخستلو سبب دادې.چه محتال عليه د محيل د ارخه دده په حکم سره قرضه اداکړی.او دلته کې دا سبب موجود دې.نو هرکله چې سبب د رجوع موجود

[1] ) القول الراجح هو هذا قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٦\٣٥٢) وردالمحتار(٤\٣٢٦) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٠٤)-

دي.نو محتال عليه ته به محيل ارخ ته د رجوع اختيار حاصل وي.البته دومره خبره ده.چه محيل په محتال عليه باندې د خپلې قرض دعوه کوي.او محتال عليه ددې منکر دې.او مدعى سره د بينه نه موجود کيدلو په صورت کې چونکه د منکرقول معتبر وي.خکه به دلته کې هم د منکر يعنى د محتال عليه قول معتبر وي.خوکه دا اوونيلى شي.چه د محتال عليه حواله قبلول، د محتال عليه دده د قرض اقرار کول دى.کومه چې د محيل په محتال عليه باندې واجب ده؟ نو ددې جواب دادې.چه حواله چونکه کله د قرض نه بغير هم کيږي.په دې وجه د حواله په قبلولو سره د قرض اقرار کول نه لازميږي.

**په حواله شوي مال کښې د محيل او محتال له اختلاف**

| وَإِذَا طَالَبَ الْمُحِيلُ الْمُحْتَالَ بِمَا أَحَالَهُ بِهِ اوکه محيل د محتال له نه د هغه مال مطالبه اوکړله.کوم چې ده ته حواله کړې وو. فَقَالَ إِنَّمَا أَحَلْتُكَ لِتَقْبِضَهُ لِي نومحيل اوونيل.چه ما تاته خکه حواله کړې وو.چه ته نې زما لپاره قبول کړې. وَقَالَ الْمُحْتَالُ بَلْ أَحَلْتَنِي بِدَيْنٍ لِي عَلَيْكَ او محتال له اوونيل.نا بلکه تا ما ته هغه قرض حواله کړې وو.کوم چې زما په تا باندې وو. فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُحِيلِ مَعَ يَمِينِهِ نود محيل قول به قبول نه وي.سره د قسم د هغه نه |
|---|

**تشريح>** صورت د مسئلې دادې.چه هرکله محتال عليه، محتال له ته قرضه اداکړله.نو محيل د محتال له نه ددې قرض مطالبه اوکړله.او وې ونيل.چه ما ددې قرض وصولول په دې وجه ستا په حواله کړې وو.چه ته دا قرضه زما لپاره وصول کړې.او قبضه ئې کړې.او محتال له اوونيل.چه داسې نه ده.بلکه زما چې کومه قرضه په تا باندې وه.د هغې وصولول دې زما په حواله کړي وو.نو په دې صورت کې به د محيل قول مع اليمين معتبر وي.مثلاً خالد د شاهد نه قرضه وصولول د حامد حواله کړل.نو خالد محيل، شاهد محتال عليه او حامد محتال له شو.نو خالد د حامد نه مطالبه اوکړله.چه د کوم مال وصولول ما ستا په حواله کړي وو.هغه مال ماته اوسپاره.خکه چې ما خکه حواله کړې وو.چه ته نې زما لپاره قبضه کړې.او حامد اوونيل.چه داسې نه ده.بلکه تا هغه قرضه زما په حواله کړې وه.کومه چې زما په تا باندې وه.نود خالد يعنى د محيل قول به مع اليمين معتبر وي.

**دليله>** دليل دادې.چه محتال له په محيل باندې د قرض مدعى دې.او محيل ددې نه منکر دې.اوهرکله چې مدعى سره بينه موجود نه وي.نود منکر قول معتبر وي.په دې وجه په دې مسئله کې به د منکر يعنى د محيل قول مع اليمين معتبر وي.

**د سفاتج تعريف**

| وَيُكْرَهُ السَّفَاتِجُ فرماني.او سفاتج ( هندى) مکروه ده. وَهُوَ قَرْضٌ اسْتَفَادَ بِهِ الْمُقْرِضُ أَمْنَ خَطَرِ الطَّرِيقِ او سفتجه داسې قرضه ده.د کوم په ذريعه چې قرضه ورکونکې د لارې خطره لرې کوي. |
|---|

**حل اللغة>** ① **استفاد**–حاصل شوې وي-② **سقوط**–ساقط کيدل-③ **خطر**–ويره-④ **الطريق**–لار

**تشريح>** د سفاتج واحد ،، سُفتَجه،، د سين ضمه اود تاء فتحه ده.دا لفظ د فارسې نه معرب دې.ددې اصل سُفته دې.د محکم شئ لپاره ونيلې شى.دې ته هندى ونيلې شى.د سُفتجه صورت دادې.چه حامدخالد ته په دې شرط باندې مال قرض ورکړو.چه خالد دده لپاره يو تحرير فلانى ښار ته اوليکى.مثلاً حامد خالد ته په ديوبند کې مال په دې شرط باندې قرض ورکړو.چه خالد د حامد لپاره يو تحرير بمبئ ته اوليکى.کوم خانې کې چې د خالد کاروبار دې.چه حامد تحرير اوښائى.اوهم دومره قدرې مال په بمبئ کې وصول کړى.بهرحال سُفتجه مکروه ده.خکه چې قرضه ورکونکى قرضه

ورکړله.اود لارې خطره ئې لرې کړله.یعنی د دپیښور نه کراچۍ ته په رقم اوړلوکې چې کوم خطرات وو.د هنډی په صورت کې هغه خطرات لرې شو.

**دلیله>** او ددې خطراتو لرې کیدل هم د قرض ورکونکی لپاره یوه نفع ده.اوداسې قرضه چې په هغې کې د قرضه ورکونکی لپاره نفع وی.نا جائز ده.ځکه چې رسول الله ﷺ د داسې قرض نه منع فرمائیلې ده.کومه چې په نفع باندې مشتمل وی. (۱) نو معلومه شوه.چه سُفتجه ( هنډی) کم ازکم مکروه ده.

# کِتَابُ الصُّلحِ

**ترجمه>** ( دا) کتاب د صلح ( په بیان کې ) دې.

**تشریح>** **الربط بین الکتابین>** په کفالت او حواله کښې بعضې وخت د اختلاف په صورت کښې د صلحې ضرورت پیښیږی.د دې وجې د کتاب الحواله نه پس ئې کتاب الصلح راوړل.

**معنی الصلح لغة وشرعاً>** صلح په لغت کې د مصالحت د مصدر اسم دې.کوم چې د صلاح ( چې د فساد ضد دې) یعنی د استقامتِ حال نه مشتق دې.نو لغوی معنی ددې ذاتی حسن باندې دلالت کوی.په شریعت کې صلح هغه عقد ته وائی.کوم چې رافع د نزاع او قاطع د خصومت وی.یعنی کوم عقد چې جګړه ختمه کړی.هغې ته صلح وائی.په څه چې صلح واقع وی.هغې ته مصالح علیه او چا سره چې صلح وی.هغه ته مصلح عنه او څوک چې صلح کوی.هغه ته مصالح وائی.مثلاً زید په خالد باندې د یو کور دعوه اوکړله.خالد اونیل.چه ما نه سل درهم واخله.اود کور دعوه پریږده.نو سل درهم مصالح علیه دی.او کور مصالح عنه دې.او خالد مصالح دې.

### د صلح اقسام او شرعی حیثیت

(الصُّلْحُ عَلٰى ثَلَاثَةِ أَضْرُبٍ:صلح په درې قسمه ده.صُلْحٌ مَعَ إِقْرَارٍ صلح اقرار سره، وَصُلْحٌ مَعَ سُكُوتٍ صلح خاموشئ سره، وَهُوَ أَنْ لَا يُقِرَّ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ او هغه داده.چه مدعی علیه نه اقرار اوکړی.وَلَا يُنْكِرَ او نه انکار اوکړی.وَصُلْحٌ مَعَ إِنْكَارٍ او صلح مع انکار،

**تشریح>** لکه څنګه چې پورته معلومه شوه.چه صلح خپل مینځ کې هغه عقد ته وائی. د کوم په ذریعه چې د دوه مختلفینو په مینځ کې اصلاح واقع کیدو اړخ ته رسائی اوشی.ددې مختلف انواع دی.

① یو نوع هغه صلح ده.کومه چې د مسلمانانو اود اهل حرب په مینځ کې واقع شی.قال الله تعالی ﴿وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ﴾ ،،اوکه دوی مائل شی صلح اړخ ته نو ته هم مائل شه دې اړخ ته او اعتماد کوه په الله باندې،،

② دونم نوع هغه صلح ده.کومه چې د اهل عدل او اهل بغی په مینځ کې واقع وی.قال الله تعالی ﴿وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا﴾ اوکه په مسلمانانو کې دوه ډلې خپل مینځ کې په جنګ شی.نو په دوی کې روغه( صلح) اوکړئ،،

③ دریمه نوع هغه صلح ده.کوم چې د مخالفت ( او ناچاقئ) د یرې په وخت د زوجینو( ښځه خاوند) په مینځ کې واقع شی.قال الله تعالی ﴿وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا﴾ ،،اوکه څوک ښځه یریږی.د خپل میړه د جنګ کولونه، یا د زړه اوختلو نه،نو هیڅ ګناه نشته په

(۱) من حدیث علی رضی الله عنه اخرجه عبدالحق فی احکامه وابوالجهم فی ،،جزئه المعروف ،،وابن عدی فی الکامل (۲۶۸/۱)۔

دوارو .چه اوکړی خپل مینځ کې صلح، او صلح بنه غوره شئ دې، ،

③ څلورمه نوع هغه صلح ده.کومه چې د اموالو په سلسله کې د اختلاف کونکو په مینځ کې واقع شي.په دې باب کې هم ددې نوع بیان دې.ددې نوع درې قسمونه دی.

① **صلح مع الاقرار**> صلح مع الاقرار داده.چه مدعی د مدعی علیه د دعوې اقرار اوکړی.دده سره په څه اندازه مال باندې صلح اوکړی.چه هغه خپله دعوه پریږدی.دا صلح په مرتبه د شراء په اقل وی.

② **صلح مع الانکار**> صلح مع الانکار داده.چه مدعی علیه د دعوه نه منکر وی.او په صلح کولو باندې راضی وی.ګویا چې په ده باندې د انکار په وجه قسم عائد شو.نو هغه د قسم په بدله کې دا مال ورکړو.او صلح ئې اوکړله.

③ **صلح مع السکوت**> د صلح مع السکوت تفسیر پخپله صاحب کتاب ذکر کړې دې.چه مدعی علیه نه اقرار اوکړی.اونه انکار اوکړی.صاحب د عنایه رحمه الله فرمائی.چه د صلح په ذکر شوی انواع ثلاثه کې منحصر کیدل ضروری دی.ځکه چې خصم به د دعوه په وخت یا سکوت اختیاروی.یا به څه جواب ورکوی.او جواب د دوه حالونو نه خالی نه دې.یا به نفیاً وی.او یا به اثباتاً وی.

| وَكُلُّ ذَٰلِكَ جَائِزٌ)او دا درې واړه جائز دی. |
|---|

**تشریح**> زمونږ په نیز د صلح ذکر شوی درې واړه قسمونه د قرآن او حدیث په رڼا کې جائز دی.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی.

**دلیله**> د نبی کریم ﷺ ارشاد دې.چې «كُلُّ صُلْحٍ جَائِزٌ فِيمَا بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا صُلْحًا أَحَلَّ حَرَامًا أَوْ حَرَّمَ حَلَالًا»[1]چې د مسلمانانو په مینځ کې هره صلح جائز ده. سوا دهغه صلح نه، کوم چې حرام حلال کړی.یا حلال حرام کړی.

## د صلح د اقسام ثلاثه تفصیلی احکام

| (فَإِنْ وَقَعَ الصُّلْحُ عَنْ إِقْرَارٍ)که واقع شی صلح په اقرار سره .اُعْتُبِرَ فِيهِ مَا يُعْتَبَرُ فِي الْبِيَاعَاتِ)نو په دې کې به دهغه څیزونو اعتبار کولې شی.د کومو چې د خرخولو په څیزونو کې کیږی.إِنْ وَقَعَ عَنْ مَالٍ بِمَالٍ)که صلح د مال نه د مال په بدله کې واقع شی. |
|---|

**تشریح**> که صلح په مال سره د مال په مقابله کې د مدعی علیه په اقرار سره واقع وی. نودا صلح به د بیع په حکم کې وی.

**دلیله**> ځکه چې دې کې معنی دبیع یعنی د متعاقدینو په حق کې مبادلة المال بالمال موجود ده.نو په دې کې به د بیع احکام جاری کیږی.

① مثلاً د عقار په صورت کې شفع واجبیدل.د عیب په وجه واپس کول.د خیار شرط او خیار رؤیت حاصلیدل.په جهالت بدل سره د عقد صلح باطلیدل.د تسلیم په بدل باندې قادرکیدل وغیره.نو که صلح د یو کور په بل کور سره اوشوه.نو په دواړو کورونو کې به حق شفعه حاصل وی.

② اوکه بدل صلح مثلاً غلام وی.او په ده کې څه عیب اوموندې شی.نو دده واپس کول به جائز وی. اوکه د صلح په وخت ئې مصالح علیه اونه لیدلو.نو د کتلو نه روسته ئې واپس کولې شی.

1) من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه اخرجه ابودود فی الأضیة باب ۱۲ قم ۲٤۹۳).

③ دغه شان که په صلح کي يو کس خپل ځان لپاره دري ورځو پوري خيار شرط اخستل اوغواړي.نو هغه به ددې حقدار وی.

## د مال نه د منافعو په عوض د صلح حکم

(وَإِنْ وَقَعَ عَنْ مَالٍ بِمَنَافِعَ اوکه د مال نه د منافعو په بدله کي واقع شی. فَيُعْتَبَرُ بِالْإِجَارَاتِ)نو په اجاراتو سره به اعتبار کولي شي.

**تشريح**> اوکه صلح مع اقرار د مال د اړخه د منافعو په بدله کي واقع شی.نو ددې اعتبار به په اجاره سره کولي شی.

**دليله**> ځکه چې دې کي د اجاره معنی يعنی د منافعو تمليك د مال په بدله کي موجود دې.او په دې کي هيڅ شك هم نشته.چه عقودو کي صرف د معانيو اعتبار کيږی.لکه چې هبه په شرط د عوض بيع وی.او کفاله په شرط د اصيل د براءت حواله وی.او حواله په شرط د مطالبې د اصيل کفاله وی.نو هرهغه منفعت چې ددې استحقاق په عقد اجاره سره کيږی.د هغې استحقاق په عقد صلح سره هم کيږی.،،و ما لا فلا،،

نو که زيد عمرو باندې د څه شئ دعوه اوکړله.او عمرو ددې اقرار اوکړو.بيا عمرو زيد سره يو کاله پورې د اوسيدلو،يا سوارلئ باندې د سوريدلو،يا د خپلي کيږې داغوستلو،يا د خپل غلام نه د خدمت حاصلولو،يا پخپله زمکه کي په فصل کرلو باندې صلح اوکړله.نو ددې حکم د اجارې پشان دې. چه لکه څنګه اجاره کي د نفع حاصلولو موده مقررول شرط دی.

## د صلح مع انکار اود صلح مع سکوت بيان

(وَالصُّلْحُ عَنِ السُّكُوتِ او صلح مع سکوت، وَالْإِنْكَارِ فِي حَقِّ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ لِافْتِدَاءِ الْيَمِينِ وَقَطْعِ الْخُصُومَةِ او صلح مع انکار د مدعی عليه په حق کي د قسم فديه ورکولو،او د جګړې ختمولو په طور وی.وَفِي حَقِّ الْمُدَّعِي لِمَعْنَى الْمُعَاوَضَةِ)او د مدعی په حق کي د معاوضه په مرتبه کي وی.

**تشريح**> که صلح د مدعی عليه په سکوت، يا دده په انکار سره وی.نودا به د مدعی په حق کي معاوضه او د مدعی عليه په حق کي به د نزاع قطع کولو اود قسم فديه ور کولو په مرتبه کي وی.د مدعی په حق کي معاوضه ځکه ده.چه دې پخپل خيال کي د خپل حق عوض اخلی.او د مدعی عليه په حق کي د قسم فديه کيدل ځکه دی.که صلح نه واقع کيدله.نو مدعی عليه باندې به قسم لازميدلو.او جګړه به ختميدله.نود مدعی عليه په انکار سره دا خبره ښکاره شوه.چه دې د صلح په طور کوم څه ورکوی.هغه د جګړې ختمولو په غرض سره ورکوی.ممکن ده.چه څوك دا اعتراض اوکړی.چه هرکله عقد يو منفعت سره متصف شو.نو بيا به دا دوئم صفت سره څنګه متصف کيږی.

(وَإِذَا صَالَحَ عَنْ دَارٍ کله چې ئې په کور سره صلح اوکړله. لَمْ يَجِبْ فِيهَا الشُّفْعَةُ)نو په دې کي په شفع نه واجبيږی.

**تشريح**> د مسئلي وضاحت دادې.چه يوسړی په بل باندې د کور دعوه اوکړله.او مدعی عليه ددې انکار اوکړو.يا هغه خاموش پاتې شو.بيا ده څه (شئ يا مال) ورکړو.اود کور په معامله کي ئې صلح اوکړله.نو په دې کورکي به شفع واجب نه وی.

**دليله**> ځکه چې مدعی عليه دا د خپل اصلی حق په وجه باندې اخلی.دا نه چې هغه نه ئې (د بيع په ذريعه) اخلی.البته مدعی ضرور دا پخپل اعتقاد کي معاوضه ګڼړی.خود مدعی دا اعتقاد مدعی

عليه باندې لازم نه دي. (لأن المرء إنما يؤخذ بما في زعمه ولا يلزمه زعم غيره)
اوکه مدعی د مال دعوه اوکړله.او مدعی علیه یو کور ورکړو.او صلح ئې اوکړله.نو په دې کې به شفعه واجب وی.ځکه چې مدعی دا د خپل مال عوض ګڼړي.او اخلي يې.نو دده په حق کې معاوضه شوه.نو شفعه به واجب وی.اګرچه مدعی علیه دا دروغ ګڼړي.آیا نه ګورې که څوك سړي دا اووائی. چه ما دا کور فلانی نه اخستې دې.او فلانې منکر دې.نو شفیع دا په شفعه کې اخستې شی.دغه شان که دا دعوه ئې اوکړله.چه ده خپل کور د فلانی په لاس خرڅ کړي دې.او هغه انکار اوکړی.بیا هم شفیع شفعه کې اخستلې شی. ، ،لأن زعمه حجة في حق نفسه ، ،

| وَإِذَا صَالَحَ عَلٰى دَارٍ او كله چې په كور باندې صلح اوكړى وَجَبَتْ فِيْهَا الشُّفْعَةُ نو په دې كښې شفع واجبيږي. |
|---|

**تشريح>** دمسئلې وضاحت دا دې چې مدعی دعوی اوکړه چې په تا باندې زما یو لاکهه روپۍ دی مدعی علیه چپ پاتې شو یا ئې انکار اوکړو اوبیا ئې د یو لاکهه روپو په ځائې کور ورکړو او صلح ئې اوکړه نو په دې کور کښې به شفعه واجب وی.
**دليله>** ځکه چې مدعی د یولاکهه روپو په عوض کښې په کور باندې قبضه خپل حق ګڼړی نودا داسې شوه لکه چې مدعی په یولاکهه روپۍ باندې دا کور واخستل او د بیع په صورت کښې شفعه واجبيږی.نودغه شان به دلته هم واجبيږی.

### د صلح مع اقرار نه روسته د مستحق راوتلوحکم

| (وَإِذَا كَانَ الصُّلْحُ عَنْ إِقْرَارٍ كله چې صلح مع اقرار وى. فَاسْتُحِقَّ بَعْضُ الْمُصَالِحِ عَنْهُ او څه مصالح عنه د بل چا ثابت وى. رَجَعَ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ بِحِصَّةِ ذٰلِكَ مِنَ الْعِوَضِ) نو مدعی علیه به ددې په اندازه بدلې نه واپس اخلې. |
|---|

**تشريح>** كه مدعی علیه د مدعی د دعوی اقرار اوکړو.او صلح ئې اوکړله .بیا مصالح عنه یعنی د کوم شئ د اړخه ئې چې صلح کړې وه.په هغې کې څه برخه یوکس خپل استحقاق ثابت کړو.او مدعی علیه نه ئې واخستلو.نو مدعی علیه به ددې برخې (حصې) په مقدار خپل عوض واپس اخلی.
**دليله>** ځکه چې صلح مع اقرار په حقیقت کې د بیع پشان معاوضه مطلقه ده.اود معاوضه حکم هم دادې.چه د استحقاق په وخت رجوع په قدر د مستحق وی.ددې مثال دادې.چه زید د یوکور دعوه اوکړله.کوم چې د عمرو په قبضه کې دې.او عمرو د اقرار نه روسته زید سره په سل درهمه باندې صلح اوکړله.بیا نصف کور د بل چا راوُ وتلو.نو عمرو به زید نه پنځوس درهمه واپس اخلی.

| (وَإِنْ وَقَعَ الصُّلْحُ عَنْ سُكُوتٍ أَوْ اِنْكَارٍ او كه صلح مع سكوت يا مع انكار واقع شى. فَاسْتُحِقَّ الْمُتَنَازَعُ فِيْهِ بيا د متنازع فيه حقدار پيدا شى. رَجَعَ الْمُدَّعِي بِالْخُصُوْمَةِ وَرَدَّ الْعِوَضَ) نو مدعى به حقدار ته جګړې او عوض واپس كوى. |
|---|

**تشريح>** اوکه صلح مع سکوت یا مع انکار وی.بیا متنازع فیه د بل چا راوُ وتلو.مثلاً دعمر په قبضه کې یو کور دې.زید د هغې دعوه اوکړله.چه دا زما دې.عمرو ددې انکار اوکړو.یا خاموش پاتې شو.بیا هغه سل درهمه ورکړل.او صلح ئې اوکرله.ددې نه روسته دا کور د بل چا راوُ وتلو.نو زید چې د عمرو نه کوم سل درهم اخستی وو.هغه به هغه ته واپس کوی.اومستحق سره به خصومت کوی.
**دليله>** ځکه چې عمرو زید ته سل درهمه ځکه ورکړی وو.چه جګړه ختمه شی.او دده سره مصالح عنه

بلا خصومت باقی پاتې شی.او هرکله چې دا د بل چا مملوك راوُ وتلو.نو دده مقصد حاصل نشو.اودا هم بنکاره شوه.چه عمرو سره د زید خصومت په ناجائزه وو.نو هغه به سل درهمه واپس اخلی.او زید به مستحق سره جګړه کوی.ځکه چې هغه اوس د مدعی علیه قائم مقام دی.

| وَإِنْ اسْتَحَقَّ بَعْضَ ذٰلِكَ او که د بعض برخې (حصې) حقدار راوُخی. رَدَّ حِصَّتَهُ وَرَجَعَ بِالْخُصُوْمَةِ فِيْهِ نو ددې په اندازه به هغې کي جګړې واپس کوی. |
|---|

تشریح> اوکه د متنازع فیه څه برخه مستحق راوُ وتله.نو د صلح په عوض کي به هم د هغې په اندازه واپس کوی.او هم په دغه اندازه کي به مدعی مستحق سره خصومت کوی.

دلیله> ځکه چې په دومره برخه کي د مدعی علیه مقصد حاصل نشو.

د تعین نه بغیر کور کښې د خپل حق دعوه کول

| (وَإِنْ ادَّعٰى حَقًّا فِي دَارٍ يوکس په يو کور کي دعوه اوکړله. وَلَمْ يُبَيِّنْهُ او ددې تعين نې اونکړو. فَصُوْلِحَ مِنْ ذٰلِكَ عَلٰى شَيْءٍ نو ده سره په څه څيز صلح اوکړې شوه. ثُمَّ اسْتَحَقَّ بَعْضَ الدَّارِ بيا (يوکس) د بعض کور حقدار راوُ وتلو. لَمْ يَرُدَّ شَيْئًا مِنَ الْعِوَضِ نو مدعی به په عوض کي هيڅ هم نه واپس کوی. |
|---|

تشریح> مدعی په یوکور کي د خپل حق دعوه اوکړله.او دا نې بيان نکړو.بيا نې دعوې نه صلح اوکړله.ددې نه روسته د کور په څه برخه کي استحقاق راوُ وتلو.نو مدعی به بدل صلح کي هيڅ نه واپس کوی.

دلیله> ځکه چې هرکله ده په کور کي څه ځائې متعين نکړو.نو کيدې شی.چه دده دعوه د کور په باقی برخه کي وی.په خلاف ددې کله چې استحقاق په پوره کور کي ثابت وی.چه مدعی به پوره عوض واپس کوی.ځکه چې دې صورت کي به بدل صلح دڅه شئ په مقابله کي نه وی.نو مدعی عليه به خپل پوره عوض واپس اخلی.

د اموالو د دعوې په بدل کښې د صلح حکم

| (وَالصُّلْحُ جَائِزٌ مِنْ دَعْوَى الْأَمْوَالِ)او صلح جائز ده.د اموالو د دعوې نه. |
|---|

تشریح> د صلح د مقدماتو، شرائطو، او انواعو نه روسته هغه شيان بيانوی.د کوم د ارخه چې صلح جائز ده.اود کوم د ارخه چې صلح جائز نه ده.که مدعی د مال دعوه اوکړی.نود مال د دعوه د ارخه صلح کول جائز دی.

دلیله> ځکه چې دا صلح د بيع په معنی کي ده. (علی ما مرفی اول کتاب الصلح) نود کوم شئ بيع چې جائز ده.د هغې د ارخه صلح هم جائز ده.

| (وَالْمَنَافِعِ)اود منافعو د دعوې نه. |
|---|

تشریح> د منفعت د دعوه دارخه هم صلح کولې شی.مثلاً زيد د عوی اوکړله.چه فلانی سړی زما لپاره په دې کور کي د يوکاله پورې د اوسيدلو وصيت کړې دې.وارثانو هغه ته څه مال ورکړو.او صلح نې اوکړله.نو صلح جائز ده.

دلیله> ځکه چې د عقد اجاره په ذريعه منافع مملوك کيږی.نود صلح په ذريعه هم مملوك کيږی.

| وَجِنَايَةِ الْعَمْدِ وَالْخَطَاءِ)او صحيح ده.د جنايت عمد او جنايت خطاء دعوې نه. |
|---|

له د ارخه د واهب د هبۀ عوض ورکړی.بیا هم حق درجوع ساقطیږی.

(أَوْيَزِيدَزِيَادَةًمُتَّصِلَةً)یا موهوب کي څه زیاتوالي متصل شوي وی

**تشریح>** **المانع الثاني>** په ذکرشوي مجموع کي د حرف ،دال، ، نه په نفس موهوب څیزکي زیاتوالی ارخ ته اشاره ده.که په عین موهوب کي څه داسې زیاتوالي متصل شو.چه هغې سره ددې قیمت زیات شو.مثلاً موهوب زمکه وه.موهوب له په دې کي عمارت جوړکړو.یا ئې وُنې اولګولې.یا موهوب له دې ته خوراك څکاك ( یعنی څره ، ،یوریا ، ډیران وغیره او اوبه..) ورکړې.او ښه ئې تیاره ( طاقتوره) کړله.نو په دې صورت کي واهب رجوع نشی کولې.

**دلیله>** څکه که هغه د زیاتوالی نه بغیر رجوع کول اوغواړی.نودا ممکن نه ده.څکه چې تیاروالي ( او طاقت) لرې کول دده د وس خبره نه ده.اوکه سره د زیاتوالی رجوع کول غواړی.نودا هم نشی کیدی.څکه چې زیاتوالي په عقد هبه کي داخل نه دې.

(أَوْيَمُوتَ أَحَدُالْمُتَعَاقِدَيْنِ )یا متعاقدینو کي یوکس مړشی.

**تشریح>** **المانع الثالث>** په ذکرشوي مجموعه کي د حرف میم نه د احد المتعاقدین یعنی د واهب یا د موهوب له مرګ ارخ ته اشاره ده.چه د مرګ په صورت کي هم رجوع جائز نه ده.

**دلیله>** څکه که موهوب له مړشو.نو ملك دده وارثانو ارخ ته منتقل شو.نو لکه څنګه چې دده په ژوند کي د ملك منتقل کیدلو نه روسته رجوع جائز نه ده.دغه شان به د مرګ نه روسته هم د ملك د انتقال په صورت کي رجوع جائز نه وی.

(أَوْتَخْرُجُ الْهِبَةُمِنْ مِلْكِ الْمَوْهُوبِ لَهُ)یا هبه د موهوب له د ملك نه اوځی.

**تشریح>** **المانع الرابع>** په مجموع کي دحرف ،خاء، ، نه مراد ، موهوب د موهوب له د ملك نه خارجول دی.مثلاً موهوب له دا خرڅ کړی.یا ئې بل چاته هبه کړی.نو واهب رجوع نشی کولې.

**دلیله>** څکه چې داسې کول د واهب په مسلط کولو سره شوی دی.نو واهب دا نشی ماتولې. او د ملك جدید سبب پیدا کیدلو سره ملك هم جدید کیږی.مثلاً موهوب له چې کله موهوب خرڅ کړو.نود بیع په وجه مشتری ته ملك جدید حاصل شو.نو واهب هغه نشی ماتولې.

## ذی رحم محرم ته د هبه کولو نه روسته د رجوع حکم

(وَإِنْ وَهَبَ هِبَةً لِذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ)اوکه خپل ذی رحم محرم ته ئې ( څه څیز) هبه کړو.(فَلَارُجُوعَ فِيهَا)نو په دې کي رجوع نشی کولې.

**تشریح>** **المانع الخامس:** په ذکرشوي مجموعه کي د حرف ،قاف، ، نه مراد قرابت محرمیت دې.یعنی داسې قرابت( رشته داری ) چې په دې سره نکاح حرامیږی.نو که خپل یو ذی رحم محرم ته ئې څه شئ هبه کړو.نو په دې کي رجوع نشی کولې.ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی.

**دلائله>** ① د حضرت سمره بند جندب رضی الله عنه نه مرفوعاً دې.إِذَاكَانَتِ الْهِبَةُ لِذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ.لَمْ يَرْجِعْ فِيهَا

(¹)چې کله هبه د ذی رحم محرم لپاره وی نو په دې کې رجوع نشی کولې

②او په دې وجه هم (رجوع نشی کولې) چې د هبهٔ نه مقصود صله رحمی وه.چه دا حاصله شوه.اود کوم عقد مقصد چې حاصل شی.د هغې فسخ جائز نه وی.

| (وَكَذٰلِكَ مَاوَهَبَ اَحَدُالزَّوْجَيْنِ لِلْاٰخَرِ)اودغه شان هغه (هبه) ده.کوم چې زوجینو (ښځه او خاوند) کې یوکس بل ته هبه کړې وی. |
|---|

**المانع السادس**:په ذکرشوې مجموعه کې د حرف ،،زاء،،نه مراد د هبهٔ په وخت د واهب او موهوب له په مینځ کې د زوجیت علاقه کیدل دی.که یوکس یوې اجنبیه (پردئ) ښځې ته څه شئ هبه کړو.بیا هم هغې سره نکاح اوکړله.نو رجوع کولې شی.ځکه چې د هبهٔ په وخت زوجیت (نکاح) نه وو.اوکه ښځې ته نې څه شئ هبه کړو.بیا نې هغه جدا (بائنه) کړله.نو رجوع نشی کولې.

**دلیله**﴿ ځکه چې ددې هبهٔ مقصد صله رحمی وه.او دا خبره هبهٔ کولو سره حاصله شوې ده.آئمه ثلاثه ﷺ هم ددې قائل دی.

په ذکرشوې مجموعه کې د حرف ،،هاء،، نه مراد د موهوب څیز، یا ددې د عامو منافعو هلاکیدل دی.چه د هلاکیدلو په صورت کې هم واهب رجوع نشی کولې.اود موهوب د هلاکت په سلسله کې به د موهوب له قول معتبر وی.یعنی که دوی دا دعوه اوکړی.چه هغه ضائع شو.نو د هغه تصدیق به کولې شی.او په موهوب له یا واهب کې د یو کس په مرګ سره هم رجوع ساقطیږی.

**د موهوب له د اړخه د بل څه عوض ورکولو مسئله**

| (وَاِذَاقَالَ الْمَوْهُوبُ لَهُ لِلْوَاهِبِ كله چې موهوب له واهب ته اوونیل.خُذْهٰذَاعِوَضًاعَنْ هِبَتِكَ چې دا خپلې هبهٔ عوض واخله،اَوْبَدَلًاعَنْهَااَوْفِي مُقَابَلَتِهَايا د هغې بدله، یا د هغې په مقابله کې ،فَقَبَضَهُ الْوَاهِبُاو واهب په دې باندې قبضه اوکړله.سَقَطَ الرُّجُوْعُ)نو حق د رجوع ساقط شو. |
|---|

**تشریح**﴿ موهوب له واهب ته د هغه د هبهٔ عوض ورکولو کې داسې لفظ ذکرکړو. چې د هغې نه واهب په دې پوهه شی.چه دا دده د هبهٔ عوض دې.مثلاً موهوب له هغه ته اوونیل. (خذهذاعوضاعن هبتك) یا نې اوونیل. (جزاءهبتك) یا نې اوونیل. (بدل هبتك) یانې اوونیل. (خذهذاعوضاًفي مقابلة هبتك) او واهب په دې باندې قبضه اوکړله.نو حق د رجوع به ساقطیږی.که دا عوض کم وی.اوکه زیات وی.د هبهٔ جنس څنې وی.او که خلاف جنس څنې وی.

**دلیله**﴿ د رجوع د حق ساقطیدلو وجه داده.چه د واهب مقصد کوم چې عوض حاصلول وو.هغه حاصل شو

| (وَاِنْ عَوَّضَهُ اَجْنَبِيٌّ عَنِ الْمَوْهُوبِ لَهُ مُتَبَرِّعًااوکه ددې عوض یو اجنبی د موهوب له د اړخه د سلوك (او احسان) په طور ورکړو.فَقَبَضَ الْوَاهِبُ الْعِوَضَاو واهب عوض واخستلو.سقط الرُّجُوْعُ)نو حق د رجوع ساقط شو. |
|---|

**تشریح**﴿. عوض لپاره دا ضروری نه ده.چه خامخا نې موهوب له ورکړی. بلکه که دده د اړخه یو اجنبی

---

۱) من حدیث سمرة بن جندب رضي الله عنه اخرجه الحاکم فی المستدرك (۲\۵۲) والدارقطنی فی سننه (۳\٤٤) والبیهقی فی السنن الکبری (٦\۳۰۰) رقم ۱۲۰۲٦)۔

کس واهب ته دده د هبة عوض ورکړو.بیا به هم د رجوع حق ساقطیږي.

**دلیل**> ځکه چې عوض ورکول د تملیك عین لپاره نه دی.بلکه د رجوع حق ساقطولو لپاره دی.نودا به د اجنبی د اړخه هم صحیح کیږي.

**نظائره**> لکه د خلع او د صلح عوض د اجنبی د اړخه هم صحیح کیږي.مثلاً یو اجنبی د ښځې میړه ته اوونیل.چه ته ده ته په دې شرط باندې خلع ورکړه.چه زر درهم د خلع عوض په ما باندې دي.نو دا جائز دی.دغه شان یو اجنبی د مقتول ولی ته اوونیل.چه ته قاتل ته قصاص معاف کړه.په دې شرط چې مال صلح یا دیت ما باندې دي.نودا هم جائز دی.ددې تحقیق دادې.چه د هبة عوض ور کولو کې د موهوب له فائده دا وی.چه په دې سره د واهب حق رجوع ساقطیږي.اودا سقوط حق هیڅ شئ نه دې.نود اجنبی د اړخه به د عوض اداکول صحیح وی.لکه څنګه چې ښځې ته د بدل خلع په ذریعه د میړه د ملك ساقطیدلو فائده کیږي.اود اجنبی بدل خلع جائز ده.

(وَإِذَا اسْتُحِقَّ نِصْفُ الْهِبَةِ کله چې څوك حقدار راوخي.د نصف هبة، رَجَعَ بِنِصْفِ الْعِوَضِ)نونصف به واپس اخلی.

**تشریح**> که د عوض ور کولو نه روسته نصف موهوب د بل چا راؤوتلو.نو موهوب له خپل نیم عوض واهب نه واپس اخستلې شی.

**دلیل**> ځکه چې د نصف عوض په مقابله کې چې کومه هبه وه.هغه موهوب له لپاره صحیح سلامت پاتې نشوه.

(وَإِنْ اسْتُحِقَّ نِصْفُ الْعِوَضِ او که حقدار راوخي. د نصف عوض، لَمْ يَرْجِعْ فِي الْهِبَةِ بِشَيْءٍ نود هبة نه به هیڅ څیز واپس نه اخلی. إِلَّا أَنْ يَرُدَّ مَا بَقِيَ مِنَ الْعِوَضِ خودا چې هغه باقی عوض واپس کړی. ثُمَّ يَرْجِعُ فِي كُلِّ الْهِبَةِ)بیا واپس خپله هبه واخلی.

**تشریح**> کوم عوض چې واهب ته ملاؤ شوې دې په هغې کښې د یو دریمګړی کس د نصف عوض حق ثابت شو.او واهب مستحق ته نصف عوض ورکړو.نو په دې صورت کښې واهب ته دا اختیار نشته چې په خپل هبة کړی مال کښې حصه واپس کړی.بلکه کوم نصف عوض چې ده سره باقی دې نو هغه به موهوب له ته واپس کړی او خپله ټوله هبه واپس اخستې شی اویا په هغه نصف عوض باندې دې صبر اوکړی .مثلاً واهب د موهوب له نه د هبه په بدله کښې یو پکې واخستل چې د هغې قیمت اووه سوه روپئ وو .روسته د دې عوض یعنی د نیم پکې حقدار راؤوتل نو واهب ته دا حق نشته چې نیمه هبه واپس واخلی البته د دې ګنجائش شته چې باقی نیم پکې کوم چې د واهب سره دې چې هغه موهوب له طرف ته واپس کړی او پوره هبه واخلی

**دلیله**> په شروع کښې که موهوب له نیم پکې هم د هبه په بدله کښې ورکړې وو.نو بیا به هم د هبه بدله وه اوس په مینځ :ښې نیم پکې پاتې شو.نو بیا هم دا د هبې بدله ده د دې وجې نیم پکې واپس نشی اخستې خوهرکله چې هغه د پوره عوض په فکر کښې هبه اخستې ده او پوره عوض هغه سره پاتې نشو.نو د دې وجې اختیار ورکړې شو.چې د حقدار راؤوتلو نه پس چې کومه حصه باقی پاتې ده هغه هم موهوب له ته واپس کړی نو اوس هبه بغیر عوضه پاتې شوه.نو اوس پوره هبه واپس اخستې شی.

## د قاضی دحکم یا خپل منځ کښې رضامندئ نه بغیر د رجوع حکم

(وَلَا يَصِحُّ الرُّجُوعُ فِي الْهِبَةِ إِلَّا بِتَرَاضِيهِمَا او هبه ته رجوع کول صحیح نه ده.مګر د دواړو په رضامندئ

سره، أَوْ بِحُكْمِ الْحَاكِمِ) یا د قاضي په فیصله کولو سره،

**تشریح>** د رجوع د جواز نه روسته د رجوع صحت بیانوی. دا وړاندې معلومه شوه. چې واهب لپاره پخپله هبه کې رجوع کول جائز دی. که هغه رجوع اوکړی. نو د هغه رجوع به صحیح وی. خو صحت د رجوع به هغه وخت وی. کله چې رجوع کول د قاضی د فیصلې په ذریعه وی. یا د واهب او موهوب له پخپله مینځ کې رضامندئ سره وی. مطلب دادې. چه د واهب په رجوع کولو سره به هیڅ فائده نه حاصلیږی. ترکومه پورې چې موهوب له په دې سره راضی نشی. یا بیا واهب د حاکم په عدالت کې ددې معاملې رفع دفع اوکړی. (یعنی مقدمه اوچلوی). چه حاکم موهوب له ته د هبه واپس کولو حکم اوکړی. تردې که واهب د قاضی د قضاء نه بغیر یا پخپل مینځ کې د رضامندئ نه بغیر هبه واپس کړله. نو هغه به غاصب ګڼلې شی.

**دلائله>** ① اوله وجه هبه ته د رجوع جواز مختلف فیه دې. چه ددې تشریح تاج الشریعة وغیره شارحینو داسې کړې دې. چه زمونږ په نیز واهب لپاره د رجوع اختیار دې. په خلاف د امام شافعی رحمه الله وغیره چې ددوی په نیز دلته ددې اختیار نشته. (وإذا کان کذالك فکان ضعیفاً)

② دویمه وجه داده. چه د رجوع اصلیت ثابتیدلو کې ضعف دې. په دې معنی چې ددې ثبوت خلاف قیاس دې. ځکه چې دا په ملك غیر کې تصرف دې. ځکه چې موهوب له د قبضې په ذریعه د هبه مالك شوې دې. په لحاظ د رقبه هم او په لحاظ د تصرف هم.

③ دریمه وجه داده. چه زمونږ په نیز رجوع کول اګرچه جائز ده. خود مقصود حاصلولو نه روسته جائز نه ده. اود واهب په مقصد حاصلولو او نه حاصلولو کې خفاء ده. ځکه که هبه سره دده مقصد ثواب یا اظهار د بخشش وو. نو هغه حاصل شو. په دې لحاظ سره رجوع نشی کولې. اوکه دده مقصد عوض حاصلول وی. نو دا حاصل نشو. نو د رجوع کولو حق پاتې شو.

نو په دې ذکر شوو دریو وجو په لحاظ ضروری ده. چه دوه خبرو کې په یوه خبره باندې فیصله اوشی. یعنی یا خو واهب او موهوب له دواړه خپلو کې راضی وی. یا قاضی د واپس کولو حکم اوکړی. ددې نه بغیر به رجوع کول صحیح نه وی. تردې که هبه یو غلام وی. چه په ده واهب رجوع اوکړله. او موهوب له د قاضی د حکم نه وړاندې هغه آزاد کړو. نو دده آزادول به نافذ کولې شی. اوکه موهوب له د واهب د رجوع دکاوه اود هبه طلب کولو نه روسته دده (یعنی د غلام) د ورکولو نه انکار اوکړو. نو هغه به ضامن نه وی. ځکه چې دې کې د موهوب له ملکیت قائم دې. دغه شان که د قاضی د حکم کولو نه پس، واهب ته د ورکولو نه وړاندې موهوب شئ ضائع شو. بیا به هم موهوب له ضامن نه وی. کله ئې چې دده د ورکولو نه انکار نه وی کړې. ځکه چې رومبئ قبضه دده ضمانتی نه وه. نو په ضمانت کیدلو سره به نه بدلیږی. ځکه چې موجوده قبضه هم هغه رومبئ قبضه راروانه ده. خو که د قاضی د فیصلې نه روسته واهب دا طلب کړی. او موهوب له دا منع کړی. نو بیا به ضامن وی. ځکه چې اوس دده د اړخه تعدی اوموندې شوه.

## په هلاك شوي هبه کښې د حقدار راوتلو مسئله

(وَإِذَا تَلِفَتِ الْعَيْنُ الْمَوْهُوبَةُ ثُمَّ اسْتَحَقَّهَا مُسْتَحِقٌّ کله چې هلاك شی. هبه کړې شوې شئ بیا ددې څوك حقدار راوځی. فَضَمِنَ الْمَوْهُوبُ لَهُ او هغه د موهوب له نه ضمان واخلی. لَمْ يَرْجِعْ عَلَى الْوَاهِبِ بِشَيْءٍ) نو موهوب له د واهب نه هیڅ واپس نشی اخستلې.

**تشریح** که مال موهوبه هلاك شي.او څوك سرې خپل استحقاق ثابت كړي.او د موهوب له نه تاوان واخلي.نو موهوب له د خپل واهب نه هيڅ څه واپس نشي اخستلې.

**دلیله** ځكه چې هبه د يو احسان معامله ده.نو په دې كې دا استحقاق نشي كيدلې.چه كوم شئ وركړې شوې دې.هغه موهوب له ته سلامت پاتې شي.بيا هغه په هبه قبلولو كې واهب لپاره عامل هم نه دې.تردې چې واهب د هغې ضامن شي.بلكه هغه خو خپل ځان لپاره عمل كونكې دې.

**د عوض په شرط د هبه كولو مسئله**

| وَإِذَا وَهَبَ بِشَرْطِ الْعِوَضِ كه د عوض په شرط ئې هبه ئې كړو.اُعْتُبِرَ التَّقَابُضُ فِي الْعِوَضَيْنِ جميعـًا نو ضروري به وي.هم په دې مجلس كې دواړو عوضونو باندې قبضه كول،وَإِذَا تَقَابَضَا صَحَّ الْعَقْدُ او كله چه دواړه قبض اوكړي نو عقد صحيح شو وَكَانَ فِيْ حُكْمِ الْبَيْعِ او دا به د بيع په حكم كي شي يَرُدُّ بِالْعَيْبِ وَخِيَارُ الرُّؤْيَةِ وَيَجِبُ فِيْهَا الشُّفْعَةُ.چه واپس كولې ئې شي د عيب او خيار رؤيت په صورت كښې او په دې كښې شفعه واجب ده. |
|---|

**تشریح** هبه په شرط د عوض زمونږ د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز د عقد د ابتداء په اعتبار سره وي.او د انتهاء په اعتبار سره بيع وي.نو د هبه كيدلو په لحاظ سره به عوضين باندې قبضه كول شرط وي.او كه موهوب محتمل القسمة شئ وي.او مشاع وي.نو عوض به باطل وي.او د بيع كيدلو په لحاظ به هبه د خيار رؤيت او خيار عيب په بناء باندې واپس كولې شي.او په دې كې به د شفعة كونكى لپاره حق شفعه هم ثابت وي.[1]

**دلیله** دليل دادې.چه په دې كې دواړه جهتونه دي.د لفظ په اعتبار سره هبه ده. او د معنى په اعتبار سره بيع ده.نو حتى الامكان به دواړو جهتونو باندې عمل كولې شي.او دلته دا ممكن هم ده.ځكه چې د هبة د احكامو څنې دا خبره ده.چه د ملكيت حصول د قبضه كيدلو پورې موخر وي.اودا خبره كله كله په بيع فاسد كې هم موندلې شي.لكه چې عوض وركولو سره هبه هم لازميږي.نو مونږ په هبه په شرط د عوض كې دواړو جهتونو باندې عمل كولو سره په ابتداء كې د هبة حكم اوساتلو.او هم په دې مجلس كې خپل مينځ كې د قبضه كيدلو نه روسته انتهاء كې دا بيع اوګرځوله.

**عمري جائز او رقبي ناجائز ده**

| (وَالْعُمْرَى جَائِزَةٌ او عمري جائز ده.لِلْمُعَمَّرِ لَهُ حَالَ حَيَاتِهِ د معمرله لپاره دده د واړه عمر دپاره،وَلِوَرَثَتِهِ مِنْ بَعْدِ مَوْتِهِ)او دده د وارثانو دپاره.دده دمرګ نه پس. |
|---|

**تشریح** عمري د اعمار اسم دې. (يقال اعمرته الدار عمرى جعلتها لك عمرك أو حياتك أو ماعشت أو حييت أو بقيت) ما دا كور د واړه عمر د اوسيدلو لپاره دركړو.

**دلیله** د جواز وجه د نبى كريم ﷺ ارشاد دې.،، العمرى جائزة،، (شيخين عن ابى هريرة رضی الله عنه)

**صورة** د عمري درې صورتونه دي. ① اودا چې داسې اووائي. (عمرتك هذه الدار فإذا مت فهى لورثتك أو لعقبك)،، مادا كور تا ته د واړه عمر لپاره دركړو.كله چې ته مړشې.نودا ستا د وارثانو اود روسته خلقو

---

[1] د امام زفر او امام شافعي په نيز د ابتداء او انتهاء دواړو اعتبار سره بيع ده.نو د هغوى په نيز په مجلس كښې د قبض كولو ضرورت نشته.

لپاره دي،،دا عمرى خو بلا خلاف صحيح ده.
اودا د تخفي پشان دي.په دي صورت کي به د موهوب له د وفات نه روسته دا کور دده د وارثانو وى.اوکه وارث نه وى.نو په بيت المال کي به داخلولې شى. عمرى کونکى ته به دوباره نه ملاويږى.

**دليل جواز صورة الاولي** ﴿ عن ابى سلمه عن جابر ﷺ أنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول من أعمر رجلاً عمرى له و لعقبه فقد قطع قوله حقه فيها وهى لمن أعمر ولعقبه)،،حضرت جابر ﷺ فرمائى.چه ما د نبى کريم ﷺ نه واوريدل.چه فرمائيل يې:چه کوم سړي عمرى اوکړى.د يو کس دپاره،اود هغه د روسته خلقو دپاره،نو هغه خپل حق ختم کړو.اوس به هغه د معمرله اود هغه د وارثانو لپاره وى ،،

③ دونم داچه مطلق داسې اووائى. (جعلتهالك عمرك هذالك عمرى) دده نه علاوه هيڅ اونه وائى. دا هم صحيح ده.او ددې حکم هم د اول پشان دي.يعنى جائز دي.

**دليل صورة الثانية** ﴿ عن ابن جريج عن أبي الزبير عن جابر ﷺ قال أعمرت إمرأة بالمدينة حائطاً لها إبناً لها ثم توفى توفيت بعده وترك ولداً وله إخوة بنون للعمرة فقال ولد المعمرة رجع الحائط إلينا وقال بنو المعمر بل كان لإبنيا حياته موته فاختصموا إلى طارق مولى عثمان فدعا جابراً ﷺ فشهد على رسول الله ﷺ بالعمرى لصاحبها فقضى بذالك طارق) ،،حضرت جابر ﷺ فرمائى.چه په مدينه کي يوې ښځې خپل خوى ته يو باغ عمرى ورکړو.بيا دغه زوې مړ شو.د هغه نه روسته ښځه مړه شوه.او هغې اولاد پريښودلو .او رور،نو د ښځې اولاد اووئيل.چه باغ بيا زمونږ طرف ته راغئ:اود معمر خامنو اووئيل.چه باغ زمونږ د پلار وو.د هغه په ژوند او مرګ کي .بيا هغوى ددې مقدمه پيش کړله.طارق ته.کوم چې د حضرت عثمان ﷺ مولى وو.هغوى حضرت جابر ﷺ راوغوښتلو.او هغوى ګواهى ورکړله.د نبى کريم ﷺ په فرمان باندې.چه عمرى د هغه چا ده.چا ته چې ورکړې شى.نو طارق هم په دې باندې فيصله ورکړله،،[٢] د احنافو او دامام شافعى د يو قول مطابق کوم چې اصح دي دا صورت هم جائز دي.

④ دريم داچه داسې اووائى. (جعلتهالك عمرك فإذا مت عادت إلى أوإلى ورثتى إن كنت مت)،،داکور ما تا ته د واړه عمر لپاره درکړو.کله چې ته مړشې.نو کور زما دي.يا زما د وارثانو دي،،

**الاختلاف في حکم الصورة الثالثة** ﴿ ددې په صحت کي اختلاف دي.د بعضو په نيز دا باطل ده.او اصح دادې.چه دا عقد هم صحيح دي.او ددې حکم هم د اول پشان دي.

**دليل حکم الصورة الثالثة** ﴿ عن ابى الزبير عن جابر ﷺ،،أنه قال قال رسول الله ﷺ أمكسوا عليكم أموالكم ولا تفسدوها فإنه من أعمر عمرى فهى للذى أعمرلها حياً و ميتاً ولعقبه)،،حضرت جابر ﷺ فرمائى.چه نبى کريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دي.چه د خپلو مالونو حفاظت کوئ.او ضائع کوئ ئې مه.ځکه چې کوم سړي عمرى ورکړى.هغه به هم د هغه لپاره وى.چا ته چې ورکړې شى.که ژوندې وى.او که مړ وى.اود هغه د وارثانو به وى ،،

## رقبى باطل ده اوکه نه؟ اقوال فقهاء

(وَالرُّقْبَى بَاطِلَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ ﷺ(). او رقبى باطل ده.د طرفينو ﷺ په نيز وَقَالَ أَبُويُوسُفَ:

---

[١] القول الراجح هو قول الطرفين ﷺ كذا في نتائج الأفكار(٧\٥١٦) وملتقى الأبحر(٣\٥٠٨) ومجمع الأنهر (٣\٥٠٨) والدرالمنتقى (٤\٥٠٨) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٢٢).

جَائِزَةٌ)او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه جائز ده.

**تشریح** رقبی داده.چه مالك داسې اووائي.،،داری لك رقبی ،،ددې حکم دادې.چه د طرفینو رحمهما الله حسن بن زیاد اود امام مالك رحمه الله په نیز باطل ده.

**دلیلهما** ① نبی کریم «أَجَازَ الْعُمْرَىٰ وَرَدَّ الرُّقْبَىٰ»[1] عمری جائز گرځولې ده. او رقبی ئې رد کړې ده.

② دا لفظ د مراقبه نه مشتق دې.چه ددې معنی ،، انتظارکول،، دی.گویا په دوی کې هر یو د بل د مرگ انتظار کونکی دی.نو په دې کې د تملیك تعلیق بالخطر ( یعنی متردد او مشکوك) دې.چه دا جائز نه ده.نو تعلیق به باطل وی.

**مذهب ابي يوسف** اود امام ابویوسف، سفیان ثوری ، اسحاق،او د امام شافعی ، په نیز جائز ده.

**دليله** «قال رسول الله ﷺ العمری جائزة لأهلها و الرقبی جائزة لأهلها» رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چې د خپل اهل دپاره عمری جائز ده او د دغه شان د خپل اهل دپاره رقبی جائز ده.

**فائده** صاحب د اعلاء السنن لیکلی دی.چه ذکرشوی تیرشوی نصوص په دې باره کې صریحی دی.چه د عمری پشان رقبه هم جائز ده.لکه څنگه چې امام ابویوسف او جمهور رحمهم الله هم ددې قائل دی.پاتې شو امام ابوحنیفه رحمه الله ، نو ابن حزم رحمه الله خو د سره دده اختلاف نه دې ذکر کړې.بلکه ددوی قول نې هم د جمهورو پشان جواز گرځولې دې.خود امام ابوحنیفه رحمه الله نه دا روایت صحیح دې.چه رقبی باطل ده.اوس که دده مطلب دادې.چه هبه خو علی الاطلاق صحیح او نافذ ده.او واهب ارخ ته د رجوع شرط یا د موهوب له د مرگ نه روسته دده وارثانو ارخ ته د رجوع شرط باطل دې.بیا خو هیڅ کلام نشته.او که دده مطلب دادې.چه رقبی باطل ده.او هبه صحیح نه ده.نو ددې محمل دادې.چه په دې کې د موهوب له ملکیت د واهب په مرگ باندې معلق وی.په دې صورت کې حکم د بطلان کوم چې د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دې.اوحکم د جواز کوم چې په تیر شوی روایاتو کې ذکر دې.په دې کې هیڅ تعارض نه پاتې کیږی.څکه چې روایاتو کې کوم حکم د جواز ذکر دې.دا هغه وخت دې.کله چې د موهوب له ملکیت منجز( یعنی متعین او جدا) وی.خو په دې کې د موهوب له د مرگ نه روسته واهب ارخ ته د واپس کولو شرط وی.او په قول د ابوحنیفه رحمه الله کې د بطلان حکم هغه وخت دې.کله چې د موهوب له ملکیت ددې نه وراندې د واهب په مرگ باندې معلق وی.نو هیڅ تعارض نشته.بیا خبره داده.چه د رقبی په تفسیر کې اختلاف دې.لکه چې امام ابوداؤد په سنن کې د حضرت مجاهد رحمه الله نه ددې تفسیر داسې نقل کړې دې. (الرقبی أن يقول الإنسان هو للآخر مني و منك) دغه شان حافظ طبرانی رحمه الله په معجم اوسط کې د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت کړې دې. (الرقبی أن تقول الإنسان هي للآخر مني و منك) ( ددې په سند کې یو راوی مختلف فیه دې.چه ده ته ابن معین ثقه ونیلی دی ،،کمافی مجمع الزوائد،،) ښکاره ده.چه په دې معنی کې رقبی باطل ده.څکه چې دې کې د ملکیت تعلیق په خطر( متردد او مشکوك) دې.

---

[1] قال الزيلعي رحمه الله قلت غريب ومذهب احمد رحمه الله كقول ابي يوسف رحمه الله في جواز الرقبى قياساً على العمرى واستدل لهما ابن الجوزى رحمه الله في التحقيق بأحاديث منها ما اخرج النسائي (أي في العمرى رقم ٣٤٩٣) وابن ماجه عن عطاء عن حبيب ...عن بن عمر رضي الله عنهما موقوفاً لاعمرى ولا رقبى في اعمر شيا او ارقبه فهو له في حياته ومماته، نصب الراية (٣١١\٤)_

وَمَنْ وَهَبَ جَارِيَةً إِلَّا حَمْلَهَا او چا چې يوه وينځه هبه کړه خو د هغې حمل ئې هبه نکړو صَحَّتِ الْهِبَةُ نو هبه صحيح ده وَبَطَلَ الْإِسْتِثْنَاءُ او استثناء باطله ده.

**تشريح**﴾ په بيع فاسده کښې دا مسئله تيره شوې وه که د يو څيز بيع اوکړي او د هغې د حمل استثناء اوکړي نوجائز نه ده .اودغه شان د هبې مسئله هم ده که د جاريه هبه اوکړي او د هغې د حمل استثناء اوکړي.خودومره فرق دې چې هلته بيع فاسده وه اودلته د هبې په باب کښې هبه صحيح ده او استثناء باطله ده.نو جاريه به د هغې د حمل سره موهوبه وي.

(وَالصَّدَقَةُ كَالْهِبَةِ او صدقه پشان د هبه ده. لَا تَصِحُّ إِلَّا بِالْقَبْضِ)؛ چې نه صحيح کيږي.مګر په قبضه سره.

**تشريح**﴾ صدقه د هبه پشان ده.چه د قبضې نه بغير نه صحيح کيږي.

**دليله**﴾ ځکه چې د هبه پشان صدقه هم يو تبرع او احسان دې.

(وَلَا تَجُوزُ فِي مُشَاعٍ يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ)نو جائز به نه وي.په قابل ويش مشترك شئ کې

**تشريح**﴾ مشترك شئ چې د ويش قابل نه وي.د هغې صدقه به جائز نه وي.

**دليله**﴾ دليل هم هغه دې.کوم چې د هبه په بيان کې تير شو.چه صدقه کونی د صدقې قصد کړې دې.د تقسيمولو التزام ئې نه دې کړې.اوس که د مشترك شئ صدقه جائز اوګرځولې شي.نو چا ته ئې چې صدقه کړې دې.هغه به شريك وي.اوشريك چې کله تقسيمول اوغواړي.نو منظورول به لازم وي.نو په ده باندې داسې خبره لازمه شوه.د کومې چې ده التزام نه دې کړې.

وَكَذَا إِذَا تَصَدَّقَ عَلَى فَقِيرَيْنِ بِشَيْءٍ جَازَ کله چې په دوو فقيرانو باندې د يو څيز صدقه اوکړي نو جائز ده

**تشريح**﴾ که يو کس په دوو فقيرانو باندې يو څيز صدقه کړو.نو دا صدقه جائز ده اوهرکله چې صدقه جائز شوه نو دواړه فقيران به ئې په خپل مينځ کښې تقسيم کړي.اوخپله خپله حصه به واخلي.

**دليله**﴾ په ذکرشوی صورت کښې صدقه ځکه جائز ده چه په صدقه کښې اول تمليك د الله تعالى وي.او الله تعالى يو اخې دې.نوپه صدقه کښې شرکت رانغلو.دا مسئله د صاحبينو په نيز خو جائز ده ځکه چې د هغوی په نيز يو څيز دوو کسانو ته هبه کول هم جائز دی.خو دامام ابوحنيفه په نيز هم جائز ده.

(وَلَا يصح الرجُوعُ فِي الصَّدَقَةِ بعد القبض)او نه صحيح کيږي رجوع په صدقه کښې پس د قبض کولو نه

**تشريح**﴾ په صدقه کې رجوع نشی کولې.ځکه چې صدقه کولو سره ثواب حاصلول مقصود وي.اوهغه حاصل شو.نودا د هغه هبه پشان شوه.د کوم عوض چې ورکړې شوې وي.

**سوال**﴾ ثواب حاصليدل به خو په آخرت کې کيږي.بيا و قد حصل وئيل څنګه صحيح شو؟

**جواب**﴾د حصول نه مراد د ثواب حاصلولو وعده ده.او د ثواب د وعدې حاصلول قطعی دی. (لأن الله تعالى لايخلف الميعاد)

(وَمَنْ نَذَرَ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِمَالِهِ چا چه نذر کړو.خپل مال د صدقه کولو، لَزِمَهُ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِجِنْسِ مَا تَجِبُ

فِيهِ الزَّكَاةُ نو صدقه دې کړي.د هغه جنس نه په کوم کې چې زکاة واجبيږي.

**تشريح>** يوسړی د خپل مال صدقه کولو نذر اوکړو.يعني داسې ئې اووئيل. (لله على أن أتصدق مالي) نوبه ده به دهغه جنس مال صدقه کول لازم وي.په کوم کې چې زکاة واجبيږي.يعني نقديت، د تجارت سامان، سائمه څاروی ، غله او عشري او ميوې، ددې نه علاوه د هيڅ مال صدقه لازم نه ده.

وَمَنْ نَذَرَأَنْ يَتَصَدَّقَ بِمِلْكِهِ او چاچه نذر کړو.د خپل ملکيت صدقه کولو ، لَزِمَهُ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِالْجَمِيعِ) نو لازم به وي.په ده چې واړه مال صدقه کړي.

**تشريح>** اوکه دا نذر ئې اوکړو.چه زما ملك صدقه دې.نو په ده به د کل مال صدقه کول لازم وي.د زکاة د مال خصوصيت به نه وي.

**دليله>** څکه چې دمال په نسبت ملك عام دې.څکه چې سړې کله کله دغير مال هم مالك کيږي.لکه نکاح، قصاص، شراب، نو بيا ددې په عموم باندې عمل کول ضروري دی.

(وَيُقَالُ لَهُ او ده ته به ونيلې شي. أَمْسِكْ مِنْهُ مِقْدَارَمَا تُنْفِقُهُ عَلَى نَفْسِكَ وَعِيَالِكَ إِلَى أَنْ تَكْتَسِبَ، چې ته خان سره اوساته دومره، څومره چې ته خرچ کړې پخپل ذات، او پخپلو بچو باندې د مال گټلو پورې، فَإِذَا اكْتَسَبَ مَالًا نو هرکله چې دې مال اوگټي.(مزدوري اوکړي). يَتَصَدَّقُ بِمِثْلِ مَا أَمْسَكَ نو صدقه دې کړي. هغومره، څومره چې ده ساتلي وو. لِنَفْسِكَ خپل ځان دپاره

**تشريح>** هرکله چې د ذکر شوی حکم مطابق په ده باندې پوره مال صدقه کول لازم شو.نو اوس به خالي لاس خپل ژوند څنګه تيره وي ؟ هم دا به کيږي.چه د چا نه به قرض اخلي.خو ممکن ده چې قرض ملاؤ نشي.او که ملاؤ شي.نو کيدې شي.چه دا هغه ادانکړې شي.او په قرض کې مړ شي.په دې صورت به په ده باندې سخته گناه وي.صاحب د کفايهؒ فرمائي.چه د کوم وخته پورې دې مزدوري کوي.او مال حاصلوي.هغه وخته پورې دې دومره مال اوساتي.چه پخپل ذات او پخپل اهل وعيال باندې ئې خرچ کړي.بيا کله چې مال حاصل شي.نو هغومره دې صدقه کړي.څومره چې د خرچې لپاره باقي ساتلي وو.

**فائده>** د ځان سره د ساتلو مقدار امام محمدؒ نه په مبسوط کې ذکر کړې دې.نه جامع صغير کې ،البته مشائخو ونيلي دی.که دا سړې زميندار ( دهقان) وي.نو د کال په اندازه دې مال اوساتي.څکه چې زميندار لپاره قوت هر کال نوې کيږي.اوکه دا سړې تاجر( او سوداگر) وي.نود يو مياشت خوراك دې اوساتي.اوکه دې پيشه ور او کاريگر وي.نو صرف د يوې ورځې خوراك دې اوساتي. (لأنه يتجدد له قوت كل يوم) (سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ۞ وَسَلٰمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ ۞ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۞

# كِتَابُ الْوَقْفِ

**ترجمه>** (دا) کتاب (د) وقف (په بيان کښې) دې.

**الوقف لغة>** فرمائيلي دی(صاحب د هدايهؒ) وقف په لغت کښې بنديدل دی.ته وائې ما وقف کړې دې څاروې اوزه وقف کوم دا (څاروي) دواړه په يوه معنی دی.

لَايَزُولُ مِلْكُ الْوَاقِفِ عَنِ الْوَقْفِ عند ابي حنيفة إِلَّا أَنْ يَحْكُمَ بِهِ الْحَاكِمُ أَوْيُعَلِّقَهُ بِمَوْتِهِ فَيَقُولَ إِذَا مِتُّ فَقَدْ وَقَفْتُ دَارِي عَلَى كَذَا.

**حل اللغة** ﴿ ① **يعلق**:معلق کوی ② **مجرد**:صرف

**ترجمه و تشریح** ﴿فرمائیلی دی امام ابوحنیفه رحمه الله نه زائله کیږی ملك د واقف د وقف څیزنه مګردا چه حکم اوکړی په دې (وقف) باندې حاکم اویا معلق ئې کړی په مرګ خپل پورې (واقف) چه اووائی کله چه زه مړ شم نوما وقف کړې دې کورخپل د فلانی کاردپاره

وَقَالَ أَبُويُوسُفَ (يَزُولُ مِلْكُهُ بِمُجَرَّدِ الْقَوْلِ.

**ترجمه و تشریح** ﴿اوفرمائی امام ابویوسف رحمه الله زائله کیږی ملك دده (واقف د وقف څیزنه) صرف په وینا دده (چه داسې اووائی.ماخپل دا څیزوقف کړې دې)

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا يَزُولُ حَتَّى يَجْعَلَ لِلْوَقْفِ وَلِيًّا وَيُسَلِّمَهُ إِلَيْهِ)

**ترجمه و تشریح** ﴿اوفرمائی امام محمد رحمه الله نه زائله کیږی(ملك دواقف دوقف نه) تردې چه اوګرخوی دوقف څیزدپاره متولی اوحواله ئې کړی هغه (متولی) ته

**صحة قضاء الحاكم** ﴿صاحب د هدایه فرمائیلی دی چې(صاحب دقدوریٰ) په کتاب (قدوری) کښې چه نه زائله کیږی ملك دواقف (دوقف نه) مګردا چه حکم اوکړی په دې (وقف) باندې حاکم (دقاضی د حکم صورت به دا وی. چه زید یوڅیزوقف کړلو.اویوکس ئې پرې متولی مقررکړلو.اوددې وقف نه پس بیا د متولی نه ذ وقف د واپسۍ مطالبه کوی.نوهغه د ورکولونه انکاراوکړی.اوجګړه قاضی ته لاړه شی. اوقاضی د وقف فیصله اوکړی) اویا ئې معلق کړې په مرګ خپل پورې (یعنی واقف داسې اووائی. چه دا څیزدې زما د مرګ نه پس وقف وی) اودا (خبره) په حکم د حاکم کښې صحیح ده. (یعنی وقف هله صحیح کیږی.چه حاکم د وقف حکم اوکړی) ځکه چه دا (حکم دحاکم) فیصله ده په یوه مجتهد فیه مسئله کښې(ځکه چه د امامانوپه کښې اختلاف دې)

**القول الصحيح في مسئلة التعليق بالموت** ﴿هرچه په باره ده تعلیق کښې (چه وقف معلق کړی) په مرګ پورې، (نود ددہ دمرګ نه پس د وقف نه دده ملك زائله کیږی) نوصحیح قول دا دې.چه نه زائله کیږی مګردا چه صدقه به کولې شی په منافعو ددغه (وقف) همیشه دپاره (یعنی دامام ابوحنیفه رحمه الله نه چه نقل دی.چه یوسړې وقف په خپل مرګ پورې معلق کړی.نوچه کله دې مرشی.دغه څیزدده د ملکیت نه اووتلو.نوپه دې روایت کښې مشانخو اختلاف کړې دې.چا فرمائیلی دی.چه دا قول صحیح دې.اوچا فرمائیلی دی.نوچه دا قول صحیح نه دې. بلکه صحیح قول دا دې.چه په مرګ سره هم د واقف ملکیت د وقف نه نه زائله کیږی.البته دا ده چه ددغه وقف منافع به همیشه دپاره صدقه کولې شی) نواوګرخیدلو (دا وقف) پشان د وصیت د منافو همیشه دپاره (یعنی چه یوکس دا وصیت اوکړی.چه زما د مرګ نه پس به زما د فلانی کورکرایه همیشه دپاره زیدچه یواجنبی سړې وی.هغه اخلی) نولازمیږی (یعنی ځنګه چه د چا دپاره دخپل څیزد منافعو وصیت صحیح کیږی .دغه شان دمرګ نه پس چه د وقف کوم منافع وی.دهغې وقف هم صحیح کیږی)

**المراد من الحاكم** ﴿اومراد د حاکم نه (کوم چه صاحب دقدوریٰ په متن کښې ذکرکړې دې) مولی (په تشدید د لام سره) دې (یعنی هغه کس چه بادشاه ورته د قضاء کارپه حواله کړې وی) اوهرچه محکم (په تشدید د کاف سره) دې. (یعنی هغه کس چه په یوه خاصه واقعه کښې ورته بادشاه د فریقینوپه رضا سره د فیصلې کولو اختیار ورکړې وی) نوپه دې محکم کښې اختلاف دمشانخودې(یعنی د بعضې مشانخو په نیزدده په فیصله باندې حکم نه لازمیږی.اود بعضې مشانخوپه نیزدده حکم نافذ دې.اود نفوذ قول زیات صحیح دې.دغه شان په خلاصه کتاب کښې دی)

## وقف ځيزدچا په ملكيت كښې داخليږي ؟

| وَإِذَا صَحَّ الْوَقْفُ عَلَى اخْتِلَافِهِمْ خَرَجَ مِنْ مِلْكِ الْوَاقِفِ وَلَمْ يَدْخُلْ فِي مِلْكِ الْمَوْقُوفِ عَلَيْهِ |
|---|

**ترجمه و تشريح** >اوكله چه صحيح شو وقف بناء په اختلاف ددوی (يعني دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزنه صحيح كيږي د اصل د روايت په بناء اودصاحبينو رحمهما الله په نيزصحيح كيږي) نو اوځي (وقف) د ملكيت د واقف نه اونه داخليږي په ملك دموقوف عليه (چه په چا باندې وقف شوې وی)

**دلائله**> ① ځكه چه دا (وقف) كه چيرته داخل شي په ملك د موقوف عليه كښې نو موقوف به نه وی (دغه وقف ځيز) په ملك دده (موقوف عليه بلكه د ده دپاره به جائز وی چه دغه ځيز دخپل ملكيت نه د خرڅولوهبه كولووغيره تصرفاتو سره اوباسي.نومثلاً كه موقوف عليه دغه وقف ځيز په چا باندې خرڅ كړي.نوهغه به موقوف نه وی) بلكه نافذبه وی خرڅول دده (موقوف عليه) پشان د ټولو مملوك ځيزونو دده (موقوف عليه يعني لكه څنګه چه دې خپل نور مملوك ځيزونه خرڅولی شي.دغه شان به وقف ځيزهم خرڅولې شي،خو موقوف عليه په وقف كښې دا تصرفات نشي كولې.نومعلومه شوه.چه وقف دده په ملكيت كښې نه دې داخل)

② اوبله دا چه دې (موقوف عليه) كه چيرته مالك شي ددې (وقف) نو نه منتقل كيږي دده (موقوف عليه نه بل چاته) په شرط د مالك اول (ځكه چه اولنی مالك دا شرط كړې وو.چه ددې منافع به فقراء او مستحقينو ته ملاويږي.اوهركله چه موقوف عليه دغه وقف ځيز خرڅ كړلو.نوبيا مشتری دهغه ځيز مالك شو.دفقراؤ په هغې كښې څه حق پاتې نشو) پشان دټول مملوك ځيزونو دده (موقوف عليه،يعني كله چه د اول مالك شرط ته اوكتلې شي.چه هغه دا ونيلی وو.چه ددې ځيزمنافع ما فقراؤ دپاره مخصوص كړی او وقف كړی دي.نوموقوف عليه دوقف شوی ځيز داسې مالك نه جوړيږي.لكه څنګه چه د نورو ځيزونو مالك وی .ځكه چه په نورو ځيزونوكښې دې هرقسمه تصرف كولې شي.خوهركله چه په وقف كښې د خرڅول هبه كولو وغيره تصرف نشی كولې.نومعلومه شوه.چه وقف د موقوف عليه په ملكيت كښې نه داخليږي)

## دمشاع زمكې په وقف كولوكښې اختلاف

| (وَوَقْفُ الْمُشَاعِ جَائِزٌ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ)(¹) |
|---|

**ترجمه و تشريح** >فرمائي (صاحب د قدوري رحمه الله) او وقف د مشاع (يعني هغه زمكې چه تقسيم نې نه وی شوې.بلكه دبل چا د زمكې سره خلط وی) جائز دې په نيزدامام ابويوسف رحمه الله

**دليله**> ځكه چه تقسيم د تمام د قبض څنې دې. (يعني په يوځيزباندې هله مكيت راځي.چه په هغې باندې قبضه راشي.اوپه مشاع كښې قبضه هله راځي .چه تقسيم اوشي) اوقبضه په نيزدده (امام ابويوسف رحمه الله) نه دې شرط نودغه شان به تتمه ددې (قبض چه تقسيم دې) هم نه وی شرط (يعني دامام ابويوسف رحمه الله په نيزيه يوځيزباندې د ملكيت راتلو دپاره قبضه شرط نه ده.بلكه كه قبضه پرې نه وی شوې.اود متعاقدينو په مينځ كښې په قول سره ايجاب اوقبول اوشي .نودمشتری ملكيت ثابت شو.اوهركله چه قبض شرط نه دې.نوكوم چه په هغې باندې قبضه پوره كيږي.چه په يومشاع ځيزكښې تقسيم دې.نوتقسيم هم شرط نشو. اوچه تقسيم شرط نه شو.نو واقف كښې يومشاع زمكه وقف كړی.دغه وقف به صحيح كيږي)

---

¹ (القول الراجح هوهذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في مجمع الأنهر(١ ٧٤٣)،والخانية (٣ ٠٣١٤)،والهندية (٢ ٣٦٥١)، وشرح عقود (ص،٨٩)،نقلاً عن القول الراجح (١ ٥٢٣١)-

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا يَجُوزُ

**حل اللغة**> ① **الشيوع**: ناقابل تقسيم

**ترجمه و تشريح**> اوفرمائي امام محمد رحمه الله جائزنه دي (وقف دمشاع څيز)

**دليله**> ځکه چه اصل (په ملکيت کښې چه په يوڅيزباندې ملکيت راځي) قبض دې په نيزدده (امام محمد رحمه الله) باندې شرط دې (يعني که مشتري يوڅيز واخستلو.خو په هغې باندې ئې قبضه نه وي کړې.نودده ملکيت ثابت نه دې) نودغه شان به شرط وي هغه څيز چه تتمه ددې (قبض) ده (چه تقسيم دې.اوپه مشاع کښې تقسيم لانه وي شوې.نولکه څنګه چه دهغې خرڅول صحيح نه دی.دغه شان دهغې وقف هم صحيح نه دې)

**صورة عدم شرطية القبض**> اودا (جواز د وقف) په هغه څيز کښې دې چه احتمال لري د تقسيم (لکه داسې زمکه وي.چه تقسيم کيدې شي.اوکله تقسيم شي.نود هرې يوې حصې نه فائده اخستې شي) اوهرچه هغه څيزچه احتمال نه لري د تقسيم نو جائز دې (په هغې کښې وقف) سره د شيوع نه په نيزدامام محمد رحمه الله هم (يعني امام ابويوسف رحمه الله خوپه هغه زمکه کښې دوقف د جواز قائل دې. چه مشاع وي.که تقسيم شوې وي اوکه نه وي.اوکه تقسيم کيدې شي اوکه نشي.اوامام محمد د هغه څيزد وقف قائل نه دې.چه تقسيم شوې نه وي.خواحتمال د تقسيم لري. اوکه دتقسيم احتمال نه لري. (مثلاً يو مشينري وي.چه هغه نشي تقسيم کيدې.ځکه چه تقسيموی ئې اوځه پرزې يواخلی.اوځه بل نو د دواړو د کارنه اوځي.نوپه داسې څيزکښې دامام محمد رحمه الله په نيزهم وقف جائزدي)

## د وقف تمام کيدل

وَلَا يَتِمُّ الْوَقْفُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ حَتَّى يَجْعَلَ آخِرَهُ بِجِهَةٍ لَا تَنْقَطِعُ أَبَدًا.

**ترجمه و تشريح**> فرمائي (صاحب دقدوري رحمه الله) اونه پوره کيږي وقف په نيزدامام ابوحنيفه اومحمد رحمهما الله تردې چه مقررکړي په آخردهغې (وقف) کښې داسې يومصرف چه نه ختميږي هميشه دپاره (اوهغه داسې مصرف نه وي.چه يوځل په کښې خرچ کړې شي.اوبيا په هغې کښې د خرچ کولوموقع نه وي.بلکه چه همشيه دپاره مصرف وي.مثلاً چه دا اووائي.دا مال دې د ديني مدارسو د طالبانوپه تعليم باندې خرچ کړې شي. نو هر کله چه دغه مال په ديني علم کښې اولګي.نودا داسې سلسله ده.چه کله هم نه ختميږي. بلکه د دوی شاګردان به پيدا شي.اوبيا به د هغوی شاګردان پيدا شي.اودغه شان به دا سلسله د علم خوريدو روانه وي.او واقف ته به ثواب رسي)

**دليلهما**> دطرفينو رحمهما الله دپاره دليل دا دې.چه موجب (حکم) د وقف زوال د ملك دې (چه دواقف د ملکيت نه وقف ختم شي) بغيرد تمليك (مالك جوړولودبل چا) نه (يعني وقف د واقف د ملك نه اوځي. خودبل چا په ملکيت کښې هم نه داخليږي) اودا (زوال د ملك بغيرد تمليك نه) هميشه دپاره وي. (دا نه چه دځه وخت دپاره ترې د واقف ملك زائله شي.اوبيا ورته واپس شي) پشان د عتق (ځکه چه يوځل غلام آزاد شي.نود مولی ملك هميشه دپاره زائله شو.دوباره ئې په دغه غلام باندې ملکيت نشي راتلې) نوهرکله چه وي مصرف هغه (چه متعين کړې وي واقف دپاره د وقف) چه ګمان کيدې شي دختميدو دهغې (مصرف) نو نه پوره کيږي د هغې (ختميدونکی مصرف) نه مقتضا (دوقف ځکه چه د وقف مقصد خو دا وي.چه هميشه دپاره واقف ته د هغې ثواب رسي)اوددې وجې(چه مقتضا دوقف هميشوالې دې)دې وقت مقررکول(په وقف کښې) باطلونکې ددې (وقف دپاره ،مثلاً يوکس د لسو

کالودپاره یوځیزوقف کړلو.نودغه وقف نه صحیح کیږی.بلکه په دې موده مقررکولوسره وقف باطل شو لکه وخت مقررکول په بیع کښې (مثلاً که زید بکرته اووائی.چه ما په تابانديٰ دا ځیز مثلاً د لسو ورځو دپاره خرڅ کړلو.نودا توقیت صحیح نه دې.بیع نه صحیح کیږی)

| وَقَالَ أَبُويُوسُفَ: إِذَاسَمَّى فِيهِ جِهَةً تَنْقَطِعُ جَازَوَصَارَبَعْدَهَالِلْفُقَرَاءِوَإِنْ لَمْ يُسَمِّهِمْ.(1) |
|---|

**ترجمه و تشريح** >اوفرمائی امام ابویوسف رحمه الله کله چه یاد کړی په دې کښې یومصرف چه ختمیږی (اوهغه مصرف همیشه دپاره نه وی.نوهم) جائزدې اوګرځی (دغه وقف ځیز) پس ددغه (مصرف د ختمیدو نه) دپاره د فقیرانو اګرچه نه ئې وی یاد کړې دوی (یعنی فقیران، یعنی دا ئې نه وی وئیلي.چه کله دا مصرف ختم شی.نوبیا دې دا وقف مال په فقیرانو باندې خرچ کولې شی، مثلاً داسې اووائی.چه زمونږ په جمات کښې په دې رمضان کښې څومره مسافرافطارکوی.نوپه هغوی باندې دې خرچ کړې شی.نوپه دغه رمضان کښې به په روژه دارو باندې خرچ کړې شی.اوچه کله کوژه شی.نوبیا به په عامو فقیرانوباندې خرچ کولې شی)

**دليله** > دامام ابویوسف رحمه الله دپاره دلیل دا دې.چه مقصود (دوقف) نزدیکت حاصلول دی الله تعالی ته اودا (تقرب الی الله) پوره کیږی په دې (باندې چه وقف د داسې ځیزدپاره اوکړی.چه هغه ختمیږی) خکه چه نزدیکت (الله تعالی ته) کله وی په خرچ کولوپه داسې مصرف کښې چه ختمیږی اوکله وی په خرچ کولو کښې چه همیشه وی. (یعنی که په دائمی مصرف کښې خرچ کړې شی.اوکه په غیردائمی په دواړو صورتونو کښې تقرب الی الله حاصلیږی.اګرچه په غیردائمی مصرف کښې دتقرب سلسله جاری نه وی) نوصحیح کیږی (وقف) په دواړو صورتونوکښې (که مصرف دائمی وی اوکه غیردائمی وی)

**دغیرمنقول ځیزدوقف جواز**

| (وَيَصِحُّ وَقْفُ الْعَقَارِ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** >فرمائی (ابو الحسن قدوری رحمه الله) اوجائزده وقف د عقار (هغه زمکه چه دیوخائې نه بل خائې ته نقل کیدې نشی)

**دليله** > خکه چه یوې ډلې دصحابه کرامو رضي الله عنهم نه وقف کړې وه دا (عقار) امام حاکم دحضرت زیدبن ارقم رضي الله عنه د خوی نه روایت کړې دې.چه زما د پلار په صفا غریاندې یوکور وو.په هغې کښې به نبی صلی الله علیه وسلم دخپلو ملګرو سره جمع کیدل.اوهغوی ته به ئې داسلام دعوت ورکولو،هم په دې کور کښې حضرت عمرفاروق رضي الله عنه هم ایمان راوړې وو.اودې ته به دارالاسلام وئیلې شو.روستو دا کورزیدبن ارقم رضي الله عنه په خپلوخامنوباندې وقف کړلو،دغه شان امام طبرانی نقل کړی دی.چه حضرت عثمان رضي الله عنه په پنځه دیرش زره روپۍ باندې بیررومه واخستلو.او وقف ئې کړلو، د حضرت زبیر رضي الله عنه د وقف ذکرپه صحیح بخاری کښې راغلې دې.دغه شان حضرت ابوبکرصدیق حضرت عمراوحضرت علی رضي الله عنهم خپلې زمکې وقف کړې وې.

**دنقلي ځیزونود وقف عدم صحت**

| (وَلَايَجُوزُوَقْفُ مَايُنْقَلُ وَيُحَوَّلُ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** >اوجائزنه دې وقف دهغه څه چه نقل کیږی اواړولې شی.فرمائی (مصنف رحمه الله) اودا (قول

[1]) القول الراجح هوهذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في الدرالمنتقى (۷۴۲\۱) والبحرالرائق (۱۹۷\۵) والخلاصة (۴۲۱\۴) وردالمحتار(۴۰۱\۳) نقلاً عن القول الراجح (۵۲۴\۱)-

دعدم جواز مطلقا قول دامام ابوحنیفه رحمه الله دی.

(وَقَالَ أَبُوْيُوسُفَ: إِذَاوَقَفَ ضَيْعَةً بِبَقَرِهَا وَأَكَرَتِهَا وَهُمْ عَبِيدُهُ جَازَ)(١)

**حل اللغة** ① **ضیعة**: پټی ② **بقر**: غویان ③ **الحراثة**: کرکرونده، زمینداری

**مسلک ابی یوسف** اوفرمائی امام ابویوسف رحمه الله کله چه وقف کړی پټی سره د هغې دغویانواوکرکونکوسره چه هغوی (کرکونکی) غلامان وی، نوجائزدی (وقف)

**دلیله** ځکه چه دا (څیزونه) تابع دی د زمکې په حاصلولو د هغه څه کښې چه هغه مقصود دی، (یعنی چه زمکه وقف کړی شی. نودهغې وقف ځکه صحیح دی. چه دهغې نه فائدې اخستې شی. نودغه شان دا څیزونه کوم چه ذکرشول. ددې نه بغیرد زمکې نه پیداوار نشی حاصلیدی. نودا څیزونه د زمکې تابع شول. اوچه دهغې تابع شول. نوزمکه ئې اصل شو. اود زمکې وقف جائزدی. دغه شان به د دې څیزونووقف هم جائز وی)

## داسونواو وسلود وقف کولوحکم

(وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَجُوزُ حَبْسُ الْكُرَاعِ وَالسِّلَاحِ)

**حل اللغة** ① **الكراع**: دجنګ اس

**ترجمه و تشریح** اوفرمائی امام محمد رحمه الله جائزدی بندول د اسونو اود وسلې مطلب ددې (قول دامام محمد رحمه الله) وقف کول ددې (اسونواود وسلې) دی په لاردالله تعالی کښې، اودا (جوازدوقف په دې څیزونوکښې) استحسان دی.

**دلائله** ① وجه داستحسان آثارمشهوره دی په دې (وقف د اسونواووسلې) کښې دهغې (آثارو) نه قول د نبی ﷺ دی لکه نبی کریم ﷺ چې فرمائیلی دی وَأَمَّا خَالِدٌ فَقَدْ حَبَسَ أَدْرُعَا وَأَفْرَاسَالَهُ فِي سَبِيلِ اللهِ تَعَالَى (٢). اوهرچه خالد رضی الله عنه دی نوهغه وقف کړی دی زرهې اواسونه په لاردالله تعالی کښې او (دغه شان حضرت طلحه رضی الله عنه وقف کړی وې زرهې خپلې په لار دالله تعالی کښې (٢) د دې حدیث وضاحت دا دې چې د حضرت خالدبن ولید رضی الله عنه د وقف ذکردی. نوددې وضاحت دا دی. چه نبی ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه د زکاة په راغونډولوباندې ماموركړلو، په هغه وخت کښې ابن جمیل، خالدبن ولید اوعباس رضی الله عنهما د زکاة ورکولونه انکاراوکړلو، کله چه نبی ﷺ ته ددوی دانکارخبر ورکړې شو. نونبی ﷺ اوفرمائیل. ابن جمیل ولې انکاراوکړلو. حالانکه دې غریب وو. الله تعالی مالداره کړلو. اوحضرت خالد بن ولید رضی الله عنه په باره کښې ئې اوفرمائیل. تاسوپه هغه باندې ظلم کوئ. ځکه چه هغه خو خپل زرهې او سامان جنګ دالله تعالی په لارکښې وقف کړی دی. اوحضرت عباس رضی الله عنه په باره کښې ئې اوفرمائیل. د هغه زکاة زما په ذمه دې. بخاری اومسلم دا واقعه ذکرکړې ده.

---

(١) القول الراجح هوهذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في الدرالمختار(٣\٤٠٨) وفتح القدير(٥\٤٣٠) والخانية (٤\٣٠٩) ورد المختار(٣\٤٠٨) نقلاً عن القول الراجح (١\٥٢٤)-

(١) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه البخاری فی الجهاد باب ٨٩ ومسلم فی الزكاة رقم ١١ وأبوداود فی الزكاة باب ٢٢ والنسائی فی الزكاة باب ١٥ )_

(٢) قال الزيلعي رحمه الله غريب جداً (نصب:٣\٧٣٨)_

## دوقف د صحت نه پس د خرخولواوتمليك عدم صحت

(وَإِذَاصَحَّ الْوَقْفُ لَمْ يَجُزْ بَيْعُهُ وَلَا تَمْلِيكُهُ، إِلَّا أَنْ يَكُونَ مُشَاعًا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ فَيَطْلُبُ الشَّرِيكُ الْقِسْمَةَ فَيَصِحُّ مُقَاسَمَتُهُ)

**حل اللغة** ◄ ① **افراز**: جدا كول ② **مقاسمة**: تقسيم كول

**ترجمه و تشريح** ◄ فرمائي (ابو الحسن قدوري رحمه الله) اوكله چه صحيح شي وقف جائز نه دى خرخول ددې (وقف) اونه بل څوك ددې مالك جوړول مګردا چه وى (دغه وقف) مشاع (غيرتقسيم) په نيزدامام ابويوسف رحمه الله نوچه مطالبه اوكړي شريك د تقسيم نوصحيح كيږي تقسيم دهغه سره (يعني كه يوكس داسې زمكه وقف كړه. چه په هغې كښې دبل چاحصه هم وه. خولاتقسيم نه وى شوې. اود وقف نه پس هغه مطالبه اوكړه. چه په دې زمكه كښې زما حصه ده. نودامام ابويوسف رحمه الله په نيزددغه غيرتقسيم زمكې نه هغه ته دهغه حصه بيلولې شى)

**دليله** ◄ هرچه منع كول د تمليك دى. (يعني د وقف نه پس بل څوك ددغه څيزمالك نشي جوړيدې) دهغه وجې چه مونږ بيان كړه (چه دوقف حكم دا دې. چه ددې نه واقف ملك ختم شو. خودبل چا په ملك كښې نه داخليږي) او هر چه جواز د تقسيم دې نوځكه چه دا (تقسيم) تميز دې اوجداوالې (دحصو) دې. (اومنع خو تمليك دې. جدا كول نه دى. يعني په دغه وقف شوې زمكه كښې د وقف نه روسته بل څوك مالك جوړول نه دى. بلكه د وقف نه وړاندې دغه بل كس ددغه زمكې مالك وو. البته دومره ده. چه وړاندې د وقف زمكې سره خلط وه. اواوس جدا كيږي)

## دوقف د آبادئ حكم

(وَالْوَاجِبُ أَنْ يَبْتَدَأَ مِنْ ارْتِفَاعِ الْوَقْفِ بِعِمَارَتِهِ شَرَطَ ذَلِكَ الْوَاقِفُ أَوْلَمْ يَشْتَرِطْ)

**حل اللغة** ◄ ① **الارتفاع**: پورته كول ② **عمارة**: آبادي ③ **الغلة**: محاصل

**ترجمه و تشريح** ◄ فرمائي (صاحب دقدوري رحمه الله) اوواجب دى چه شروع وكړې (اول د حاصلاتو او آمدنئ د وقف نه) په آبادئ د هغې (وقف، برابره خبره ده) كه شرط كړې وى دا (آبادې) واقف اوكه نه ئې وى شرط كړې (يعني كله چه واقف مثلاً يوه زمكه وقف كړى. نوپكارده چه اول دهغه زمكې د حفاظت انتظام اوكړې شي. اودهغې نه چارديوارى تاؤ كړې شي. چه محفوظ شي. كه واقف دا شرط لګولې وى چه زه خپله زمكه وقف كوم. خوپه دې شرط چه ددې د حفاظت دپاره به انتظام كولې شي. اوكه دا ئې نه وى ويلې. په دواړو صورتونوكښې به اول د وقف دحفاظت انتظام كولې شي)

**دلائله** ◄ ① ځكه چه غرض د واقف (د وقف كولونه) خرچ كول د منافعو (دوقف) دى هميشه دپاره، اونه پاتې كيږي (منافع د وقف زمكې) مګرپه آبادئ سره (چه دهغې نه چار ديوالي تاؤ شي. اومحفوظ شي) نوثابتيږي شرط د آبادي په اقتضاء النص سره (يعني كله چه واقف وقف اوكړلو. نود وقف مقصد دا وى. چه ددې نه خلق هميشه دپاره فائده اخلى. نودا ضروري شوه. چه ددغه وقف د حفاظت انتظام دې هم اوشي. نوحفاظت ترې په اقتضاء النص سره ثابت شو)

② اوبله دا چه فائده په مقابله د تاوان كښې وى. (يعني څوك چه فائده اخلى هغه به تاوان هم برداشت كوى. نوواقف چه دچا دپاره زمكه وقف كړې وى. هغه كسان چه فقيران دى. هغوى به ددې وقف د حفاظت انتظام كوى. مثلاً يوكس محكمه اوقاف ته خپله زمكه حواله كړله. چه دا ما وقف كړه. نواوس دا د اوقاف ذمه وارى ده. چه ددغه زمكې دحفاظت انتظام اوكړى. اواوقاف پرې خپله خرچ اوكړى) او اوګرځيدلو (حكم ددې وقف) پشان د نفقه د غلام چه وصيت شوى وى په خدمت كولودهغه (غلام) ځكه

چه نفقه په موصی له وی په (عوض) د دې (خدمت يعنی چه يوكس دا وصيت اوكړی.چه زما د مرګ نه پس به زما دا غلام د فلانی خدمت كوی.نوددغه غلام نفقه په موصی له ده.څكه چه فائده دې اخلی. نو تاوان به هم په ده راځی .دا نه چه خدمت دې د موصی له كوی.او روټۍ دې د موصی خوری)

**چه څوك موقوف عليه وی د وقف آبادی به هم په هغه وی**

| (فَإِنْ وَقَفَ دَارًا عَلَى سُكْنَى وَلَدِهِ فَالْعِمَارَةُ عَلَى مَنْ لَهُ سُكْنَى) |
|---|

**ترجمه و تشريح** > فرمائی (ابو الحسن قدوری رحمه الله) كه وقف نې كړلو كورد استوګنې دپاره په خپل اولاد ،نوآبادې به لازم وی په هغه چا چه چادپاره استوګنه وی.(يعنی چه دچا دپاره نې په كوركښې اوسيدل وقف كړی وی.چه ما خپل كورد خپل اولاد د استوګنې دپاره وقف كړې دې.نوكه په دغه كوركښې څه مرمت وی .د هغې خرچه به هم هغه څوك برداشت كوی.چه دچا دپاره وقف شوې وی. )

**دليله** > څكه منافع په مقابله د تاوان كښې وی. (يعنی څوك چه فائده اخلی.نوهغه به تاوان هم برداشت كوی.دا نه چه اوسيږی دې په كښې موقوف عليه اوخرچ دې پرې واقف يا حكومت كوی) نو اوګرځيدلو(دا صورت د وقف) پشان د نفقه د غلام چه وصيت شوې وی په خدمت دهغه، (يعنی چه يوكس دا وصيت اوكړی.چه زما د مرګ نه پس به زما دا غلام د فلانی خدمت كوی.نوددغه غلام نفقه په موصی له ده.څكه چه فائده دې اخلی. نو تاوان به هم په ده راځی.دا نه چه خدمت دې د موصی له كوی.او روټۍ دې د موصی خوری.نودغه شان دلته د وقف په مسئله كښې هم چه دچا دپاره وقف شوې وی.دآبادۍ خرچه به هم په هغه وی)

**دموقوف عليه د تعميرنه انكاريا د تعميروس نه لرلو حكم**

| (فَإِنِ امْتَنَعَ ذَالِكَ، أَوْكَانَ فَقِيرًا آجَرَهَا الْحَاكِمُ وَعَمَّرَهَا بِأُجْرَتِهَا، وَإِذَا عُمِّرَتْ رَدَّهَا إِلَى مَنْ لَهُ السُّكْنَى ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** > كه انكاراوكړلو (موقوف عليه) د دې (آبادۍ د وقف) نه اويا دا (چه انكارنه كوی.خو وی غريب (چه د آبادولووس نه لری.نوپه دې دواړو صورتونوكښې) په كرايه به نې وركړی حاكم اوآباد به نې كړی په كرايه دهغې (وقف) اوكله چه نې آباد كړی (اوكرايه ختمه شی.نوكرايه داربه ترې اوباسی) اوواپس به نې كړی هغه چاته چه دچا دپاره (په كښې) استوګنه وی. (چه واقف دچا د استوګنې دپاره وقف كړې وی.هغه ته به نې واپس كړی)

**دليله** > څكه چه په دې (كرايه وركولو) كښې خيال ساتل د دواړو حقونودی. ،چه حق د واقف دې اوحق د صاحب د استوګنې دې. (دواقف حق په دې حيثيت دې) كه آباد نكړی دغه (وقف څيز نو ختميږی (په كښې)استوګنه بيخی (يعنی كه آبادی په كښې نه كوی.نودغه كور د اوسيدو قابل نه دې.نوچه د كوم مقصد دپاره واقف دغه كوروقف كړې وو.چه ده ته به ثواب ملاويږی. هغه مقصد پوره نشو.څكه شار به پروت وی.څوك به په كښې اوسيدې نشی.نوچه څوك په كښې اوسيږی نه واقف ته به ثواب څه ملاؤ شی. اودمن له السكنی د حق په كښې په دې حيثيت خيال ساتل دی.چه مرمت په كښې اوشی.نواګرچه دڅه مياشتو دپاره به په كرايه وركړې شی.خوچه كله هغه پيسې ختمې شی.كومې چه ددې په مرمت لګيدلې وی.بيا به په كښې من له السكنی اوسيږی.اوكه مرمت نې اونشی.نونه په كښې دې اوسيدې شی.اونه بل څوك) اواوله خبره (چه حاكم په كرايه باندې كور وركړی. اوبه دغه كرايه باندې په كوركښې آبادې اوكړی.دا ددې نه بهتره ده.چه دغه كوردغه شان ناقابل استعمال پروت وی.اوڅوك په كښې اوسيدې نشی)

### د وقف پربوتلي عمارت اوخراب آلاتومصرف

(وَمَا انْهَدَمَ مِنْ بِنَاءِ الْوَقْفِ وَآلَتِهِ) صَرَفَهُ الْحَاكِمُ فِي عِمَارَةِ الْوَقْفِ إِنِ احْتَاجَ إِلَيْهِ، وَإِنِ اسْتَغْنَى عَنْهُ أَمْسَكَهُ حَتَّى يَحْتَاجَ إِلَى عِمَارَتِهِ فَيَصْرِفَهُ فِيهَا؛

**حل اللغة** ﴿١﴾ **انهدم:** ناریدلي وو

**ترجمه و تشريح** فرمائي (ابو الحسن قدوري رحمه الله) اوهغه چه راوغورځيږي آبادي د وقف او (خراب شي) سامان ددي (وقف) نواوبه ئي لګوي حاکم په آبادئ د وقف کښي که چيرته ضرورت وی هغي (سامان ته، مثلاً د وقف کوردیوال راپريوتلو.نوبنختي به ئي هم په دغه کورکښي اولګوي.اوواپس به پرې بل ديوال اوخيژوی.يا که دروازه وره دروازه وی.هغه خرابه شي.نوهغه به ترې اوباسي.اوهم په وقف کورکښي به ئي په بل خائي کښي اولګوي) اوکه ضرورت نه وی (په وقف کوروغيره کښي) هغي (سامان) ته نواوبه ئي ساتي (په محفوظ خائي کښي) تردي چه ضرورت شي آبادولودهغي ته نو اوبه ئي لګوی په هغي کښي

**دليله** څکه چه ضرورت دي آبادئ (د وقف) ته دي دپاره چه باقي پاتې شي (وقف کوروغيره) هميشه دپاره نو حاصل به شي مقصود د واقف (اومقصود د واقف دا وو.چه ماته هميشه ددې وقف ثواب راسي)

(وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَقْسِمَهُ بَيْنَ مُسْتَحِقِّي الْوَقْفِ)

**ترجمه و تشريح** اوجائزنه ده چه تقسيم کړی هغه (زياتي اومات ګوډ سامان) په مينځ د مستحقينود وقف کښي،

**دليله** څکه چه دا (فالتو او زياتي سامان) يوه حصه د ذات د وقف دي.اونشته حق د پاره دهغه چا چه وقف شوی وی په هغوی باندې په دي (په ذات د وقف) کښي بلکه حق ددوی (مستحقينو) دي په منافعو (د وقف) کښي نوشو (دغه زياتي سامان) حق دالله تعالى (اوهرکله چه دالله تعالى حق شو) نونه به شي ورکولي دوی (فقيرانو) ته سوا د حق ددوی نه (يعني دوی ته به د دوی حق ورکولي شي.چه منافع دي. او ذات د وقف چونکه ددوی حق نه دي.څکه به دوی ته نشي ورکولي)

### دواقف دوقف منافع يا تصرف ځان دپاره کرځول

(وَإِذَا جَعَلَ الْوَاقِفُ غَلَّةَ الْوَقْفِ لِنَفْسِهِ أَوْ جَعَلَ الْوِلَايَةَ إِلَيْهِ جَازَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ)

**ترجمه و تشريح** فرمائي (ابو الحسن قدوري رحمه الله) اوکله چه اوګرځوی واقف منافع د وقف دځپل ځان دپاره اويا اوګرځوی ولايت (دوقف) دځپل ځان دپاره نو(دا) جائزدي په نيزدامام ابويوسف رحمه الله

**تشريح صاحب الهداية** صاحب د هدايه فرمائيلي دي چې ذکرکړي (صاحب د قدوري رحمه الله) دوه خبرې (يوه خبره) شرط کړی منافع دځپل ځان دپاره (يعني وقف په دې شرط اوکړی.چه ددي منافع به هم زما وی) اووې ګرځولو ولايت (دوقف) دځپل ځان دپاره (يعني د وقف متولی به زه يم) هرچه اوله خبره ده (چه وقف دځپل ځان دپاره اوګرځوی) دا جائزده په نيزدامام ابويوسف رحمه الله

**دليله** دامام ابويوسف رحمه الله دپاره هغه حديث دليل دي.چه روايت شوی دي.يقيناً نبی ﷺ به خوراك کول دځپلي صدقې نه (١) اومراد ددې (صدقې) نه هغه صدقه موقوفه ده. (يعني په دې حديث کښي چه

١) اخرجه الخصاف في الوقف قاله صاحب ،،فيما قات الزيلعي منية الألمعي (ص،١٠٥)۔

دا راغلي دي.چه نبي ﷺ به دخپلي صدقي نه خوراك كولو.ددي نه هغه صدقه مراد ده.چه نبي ﷺ به هغه وقف كړي وه) اونه دي جائز خوراك ددي (صدقي موقوفه) نه مګرپه شرط كولوسره(نوهركله چه دا ثابته شوه.چه نبي ﷺ دخپل وقف صدقي نه خوراك كړي دي.اودا خوراك بـه نـي خامخا پـه دي وجه كړي وي.چه د وقف په وخت كښي به ئي دا شرط لګولي وو.چه زه دا څيزصدقه كوم.خوددي نه بـه زه هم خوراك كوم.څكه كه چيرته دا شرط لګول اونه منلي شي.نود نبي ﷺ دپاره خودصدقي خوراك حرام وو) نودلالت كوي (عمل د نبي ﷺ په وقف كښي) په [illegible] شرط.كه يو كس په وقف كښي [illegible] خان دپاره د منافعوشرط اولګوي.بيا هم وقف صحيح دي.

**وَقَالَ محمدلَايَجُوزُ**

**ترجمه و تشريح** ﴿اوامام محمد فرمائيلي دي چې جائز نه ده (يعني چه دامام محمدؒ په قول باندې نظر واچولي شي.نودا معلوميږي.چه دا وقف جائزنه دي) اودا (قول دعدم جواز) قول دهلال رازيؒ دي (خوصحيح دا ده.چه دا هلال بن يحى الرائي دي دغه شان علامه عينيؒ په بنايه كښي فرمائيلي دي) اوپه دي (عدم جواز) باندې قول كړي دي امام شافعيؒ (يعني دامام شـافعيؒ هم دا مذهب دي.چه داسي وقف جائز نه دي)

**الرواية الثانية**﴾ اوونيلي شوي دي چه اختلاف (په دي مسئله كښي) په مينځ ددوی دواړو (امام ابويوسف اومحمدؒ) په مينځ كښي بناء دي په اختلاف باندې په شرط كولود قبض او جدا والي كښې (يعني امام ابويوسفؒ په وقف كښي دا نه شرط كوي.چه متولي دي وقف قبض كړي.اوكه مشاع وي.هغه دي جدا كړي شي.بلكه كه متولي قبض كړي نه وي.اوداسي زمكه وي.چه تقسيم شوي نه وي.هم ئي وقف جائز دي. او دامام محمدؒ په نيزپه وقف كښي دا دواړه څيزونه شرط دي.يعني دا چه متولي وقف قبض كړي.اوكه وقف په مشاع كښي وي.چه هغه جدا شي.نوددغه اختلاف په بنياد په زيربحث مسئله كښي چونكه دامام ابويوسفؒ په نيزد وقف قبض اوجدا كول شرط نه دي. نو دا وقف صحيح كيږي. او دامام محمدؒ په نيزچونكه دغه دواړه څيزونه شرط دي.اوپه دي زيربحث مسئله كښي قبض او جداوالي نه راځي.څكه دا وقف جائز نه دي) او ونيلي شوي دي چه دا مستقله مسئله ده. (په بله مسئله باندې متفرع نه ده)

**محل الاختلاف**﴾ اوخلاف ( په مينځ دامام ابويوسفؒ اوامام محمدؒ كښي) په هغه صورت كښي دي چه شرط كړي(واقف) بعضي (وقف)دخپل خان دپاره (چه ددي بعضي وقف منافع بـه زه اخلم) په ژوند خپل كښي اوپس د مرګ دده نه (به وي منافع ددغه وقف) د فقيرانو(مثلاً دده يوكوردي.هغه ئي په لس زره روپئ كرايه وركړي دي.اودي دا اووائي.دا كور ما وقف كړلو.خوپه دي شرط چه ددي نيمه كرايه به زه اخلم. اونيمه به فقيرانوته وركوم.اوچه كله زه مړ شم.نوبيا بـه ئي فقيـران اخلي) اوپه هغه صورت كښي چه شرط كړي(ټول منافع د وقف) دخپل خان دپاره په ژوند خپل كښي اوپس د مرګ دده (واقف) نه (اوګرخوي منافع د وقف) د فقيرانو دپاره (نودا دواړه صورتونه ) برابر دي. (يعني په دواړو صورتونو كښي دامام ابويوسف اوامام محمدؒ اختلاف شته.امام ابويوسفؒ د جواز قائل دي.اوامام محمدؒ دعدم جواز قائل دي)

**دليله**﴾ وجه د قول دامام محمدؒ (چه دخان دپاره دحصي يا ټول وقف دمنافعوتخصيص نه صحيح كيږي) دا ده.چه وقف احسان دي په طريقه د تمليك (چه بل كس مالك جوړ كړي) په هغه طريقه كومه چه مونږوراندي بيان كړي ده( چه دامام محمدؒ په نيزپه وقف كښي متولي اومنتظم تـه د وقف سپارل ضروري دي.بغيرددي نه وقف نه صحيح كيږي) نوشرط كول دد( واقف) بعضي (وقف) يا ټول

(وقف) د ځان دپاره (چه دا ځيزما وقف کړلو.خوددې بعضې يا ټولې منافع به زه اخلم) باطلوی دې (وقف) لره ځکه چه مالك جوړول خپل (ځان) دخپل طرف نه نه ثابتيږي. (چه يوکس دې سره يوځيز وی. او د هغې خپل ځان مالك کړي.ځکه چه دا خوتحصيل حاصل دې) نواوګرځيدلو (حکم ددې وقف) پشان د صدقه منفذه (چه دخپل مالك څه حصه يا ټول فقيرته صدقه ورکړي.خو په دې شرط چه ددې بعضې مال به زما وی.نولکه څنګه چه دغه صدقه نه صحيح کيږي.دغه شان دا وقف هم نه صحيح کيږي)

## دجمات جوړونکي د جمات نه د ملکيت د زوال وخت

وَإِذَا بَنَى مَسْجِدًا لَمْ يَزُلْ مِلْكُهُ عَنْهُ حَتَّى يُفْرِزَهُ عَنْ مِلْكِهِ بِطَرِيقِهِ وَيَأْذَنَ لِلنَّاسِ بِالصَّلَاةِ فِيهِ، فَإِذَا صَلَّى فِيهِ وَاحِدٌ زَالَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ عَنْ مِلْكِهِ)

**ترجمه و تشريح** >فصل: اوکله چه جوړکړي (يوکس) جمات نو نه ختميږي ملکيت دده (جوړونکي) ددې (جمات دزمکې) نه تردې چه جدا کړي دا (جمات) دملك خپل نه سره د لارې دهغې (جمات يعنی دجمات چه کومه لاره وی.هغه هم جدا کړي.چه دا ددې جمات لاره شوه) اوحکم اوکړي خلقوته د مونځ کولوپه هغې (جمات) کښې کله چه مونځ اوکړي په هغې (جمات) کښې يوکس نواووتلو(دغه جمات) په نيزدامام ابوحنيفه رحمه الله د ملکيت دده (جوړونکي) نه

**دليله**> هرچه (شرطيت د جداوالی دجمات د زمکې دنورې زمکې نه) دې.نوځکه چه دا (جمات) نه خالص کيږي دالله تعالی دپاره (چه دجمات حکم اخلی) مګرپه دې (جداکولو) سره اوهرچه (شرطيت دمونځ کول دی) په دې (جمات) کښې ځکه چه ضروری دی حواله کول (دوقف) په نيزدامام ابوحنيفه اومحمد رحمهما الله او شرط کولی شی حواله کول موافق د ضرورت سره (دوقف يعنی د طرفينو رحمهما الله په نيز په وقف کښې دا ضروری ده.چه واقف موقوف عليه ته وقف په داسې طريقه باندې حواله کړي.چه ددغه وقف نه کومه فائده اوکوم کاراخستې شي.دهغې قابل شي) اودا (ضرورت پوره کيدل) واقع کيږي په جمات کښې په مانځه سره (چه په جمات کښې مونځ اوشي.نودکوم ځيزدپاره چه دا وقف شوې وو.نوهغه مقصد په کښې ادا شو)

(وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يَزُولُ مِلْكُهُ بِقَوْلِهِ جَعَلْتُه مَسْجِدًا)[1]

**ترجمه و تشريح** >اوفرمائيلي دې امام ابويوسف رحمه الله چه زائله کيږي ملك دده (واقف دجمات نه صرف) په قول دده چه ما اوګرځولودا (آبادی) جمات

**دليله**> ځکه چه سپارل (متولی اوموقوف عليه ته په وقف کښې) نه دی شرط په نيز دده (ابويوسف رحمه الله) ځکه چه دا (وقف) ساقط کول د ملکيت د بنده دی (اوچه دبنده ملکيت ترې ختم شي) نوګرځي خالص دالله تعالی دپاره (اودالله دپاره ګرځي) ځکه چه دبنده حق ترې ختم شو.او اوګر ځيدلو(وقف) پشان د آزادولو(دغلام يا د وينځې) اويقيناً مونږ بيان کړي دي ددې وړاندې په اول بيان د کتاب الوقف کښې چه دامام ابويوسف رحمه الله په نيز په وقف کښې تسيم ضروری نه دې.بلکه لکه څنګه په اعتاق کښې صرف په دې وينا باندې ملکيت ختميږي.چه ته آزاد نې.نودغه شان په وقف کښې د وقف ځيزنه ملکيت هم صرف په قول باندې ختميږي.چه دا اووائې.ما دا ځيزوقف کړلو.تسيلم ته ضرورت نشته .لکه څنګه چه دامام محمد رحمه الله مذهب دې)

---

[1] ) القول الراجح هو هذا قول ابي يوسف رحمه الله كذا في فتح القدير(٥\٤٢٤) وردالمحتار(٣\٣٩٣) والهندية (٢\٣٥١) والبحرالرائق (٥\١٩٧) نقلاً عن القول الراجح(١\٥٢٢)-

## دمسافرخانه سبیل اومقبره جوړولوحکم

(وَمَنْ بَنَى سِقَايَةً لِلْمُسْلِمِينَ أَوْخَانًا يَسْكُنُهُ بَنُوالسَّبِيلِ أَوْرِبَاطًا أَوْجَعَلَ أَرْضَهُ مَقْبَرَةً لَمْ يَزُلْ مِلْكُهُ عَنْ ذٰلِكَ حَتّٰى يَحْكُمَ بِهِ الْحَاكِمُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ)

**حل اللغة**﴿ ① **سقاية**:سبیل ،هغه ځائې چه مفتې اوبه په کښې ورکولې شي ② **رباط**:چوکئ چه اسلامی سرحد حفاظت په کښې کولې شي

**ترجمه و تشریح**﴿فرمائی(ابو الحسن قدوری رحمه الله) اوچا چه جوړ کړلو سبیل دپاره (دځکلو)دمسلمانانو اویا مسافرخانه چه اوسیږی په کښې مسافراویا چوکئ (چه محافظین دملك په کښې اوسیږی) اویا ئې اوګرځوله زمکه خپله مقبره نو نه ختمیږی ملك دده (واقف) ددې (ځیزونو) نه تردې چه حکم اوکړی په (وقفیت د) دې حاکم په نیزدامام ابوحنیفه رحمه الله (یعنی کله چه حاکم دا حکم جاری کړی.چه دا ځیزدوقف دې،نوهله به وقف ګرځی،صرف ددې ځیزونوپه جوړولودا وقف نه ګرځی)

**دلیله**﴿ ځکه چه دا (ځیزونه) نه دی خالی شوی دحق د بنده نه (بلکه دوقف نه پس هم واقف ددې نه فائده اخلی) ولې ته ګورې نه چه جائز دی ده (واقف) لره چه فائده واخلی ددې نه (اودفائدې اخستلو تفصیل دادې) چه اوسیږی په مسافرخانه کښې اوحصاریږی په چوکئ کښې اوځکاك کوی دسبیل نه اوښخوی (مړی خپل ) په مقبره کښې (نوددې تصرفاتود جواز نه دا معلومیږی.چه صرف ددې ځیزونوپه جوړولواوخلقو ته ددې داستعمال اجازت ورکولوباندې دا وقف نه ګرځی.بلکه د یویل ځیز ضرورت دې.اودهغې بیان دا دې.چه) شرط کولې به شی حکم دحاکم (چه هغه دا فیصله اوکړی.چه دا ځیزوقف دې) یا دا چه اضافت اوکړی(واقف د وقف ددې ځیزونو) د مرګ نه پس حالت ته (یعنی چه دا اووائی.زما د مرګ نه پس دا ځیزونه وقف دی.نوبیا وقف صحیح دې) لکه ځنګه چه په صورت د وقف کولوکښې دی په فقیرانو(یعنی چه یوسړې یوځیزوقف کړی.اووقف په دې طریقه اوکړی.چه دا زما دمرګ نه پس دفقیرانودپاره وقف دې.نولکه ځنګه چه دغه وقف صحیح کیږی.دغه شان ددې ځیزونو وقف هم صحیح کیږی)

(وَقَالَ أَبُويُوسُفَ يَزُولُ مِلْكُهُ بِالْقَوْلِ)([1])

**ترجمه و تشریح**﴿اوپه نیزدامام ابویوسف رحمه الله ختمیږی ملك دده (واقف ددې ځیزونونه صرف په) قول سره (چه دا اووائی.ما دا ځیزونه وقف کړی دی.نووقف صحیح شو.دقاضی فیصلې ته ضرورت نشته) لکه ځنګه چه دا اصل د دوی (امام ابویوسف) دې (په وقف کښې)

**دلیله**﴿ ځکه چه سپارل (د وقف موقوف علیه) ته نه دې شرط ( دوقف دصحت دپاره.بلکه چه صرف په قول سره یوځیزوقف کړی.نو) وقف لازمیږی.

(وَقَالَ مُحَمَّدٌ إِذَا اسْتَقَى النَّاسُ مِنَ السِّقَايَةِ وَسَكَنُوا الْخَانَ وَالرِّبَاطَ وَدُفِنُوا فِي الْمَقْبَرَةِ زَالَ الْمِلْكُ)

**حل اللغة**﴿ ① **السقاية**:سبیل،د ځکولو ځائې ② **خان**:مسافرخانه

**ترجمه و تشریح**﴿اوپه نیزدامام محمد رحمه الله کله چه ځکاك شروع کړی خلق د سبیل نه اواوسیدل شروع کړی په مسافرخانه کښې اوپه چوکئ کښې اوښخ کړی (مړی) په مقبره کښې نوختم شو ملك (دواقف ددې ځیزونونه)

[1] ) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله كذا في الخانية (٤\٢٩٦) والبحرالرائق (٥\٢٥٣) والهندية (٢\٤٦٥) نقلاً عن القول الراجح (١١\٥٣٠)-

**دليله>** ځکه چه سپارل (موقوف عليـه) تـه شرط دې (پـه وقـف کښـې) پـه نيزددوی (امام محمد رحمه الله) اوشرط سپارل د نوعې دې اودا (سپارل دنوع) پـه هغـه څـه راځي.چه مونږذکرکړی دی. (چـه خلق پـه مسافرخانه يا پـه چوکئ کښې اوسيدل اوکړي.اويا دسبيل نه اوبه اوڅکی.اويا پـه مقبره کښې مړي دفن کړي.يعني چه کوم څيزئې وقف کړی وی.چه هغه دکوم مقصد اوضرورت دپاره وی.چه هغه مقصد تـرې پوره شي.اگرچه يوځل وی اواگرچه يوکس ئې ترې پوره کړي.نوبس وقف صحيح شو)

# كِتَابُ الْغَصْبِ

**ترجمه>** ( دا) کتاب د غصب ( د احکامو په بيان کي ) دې.

**تشريح>** د کتاب الوقف او کتاب الغصب په مينځ کښې مناسبت د تضاد او مقابلې دې ځکه چې په وقف کښې موقوف عليه دپاره د وقف نه فائده اخستل جائز دی اوپه غصب کښې د غاصب دپاره د مغصوبې نه فائده اخستل ناجائز دی.اوجائز مقدم وی په ناجائز باندې نو ځکه ئې وقف مقدم کړو په غصب باندې

**الغصب لغة>** غصب په لغت کې يو شی (څيز) په زبردستئ اخستل دی.که دا شی (څيز) مال وی.او که غير مال وی.(يقال غصب زوجة فلان و خمر فلان)

**الغصب شرعا>** په اصطلاح د شريعت کې د غصب جامع مانع تعريف دا دې.(هوازالة اليد المحقة باثبات اليد المبطلة) ،، غصب د حقدار قبضه لرې کول او ناحق قبضه کول دی،،

### د غصب شوی څيز د تاوان حکم

| وَمَنْ غَصَبَ شَيْئًا لَهُ مِثْلٌ فَهَلَكَ فِي يَدِهِ چا چې غصب کړو.يو مثلی څيز، او هغه هلاک شو دده سره، فَعَلَيْهِ ضَمَانُ مِثْلِهِ)نو په ده د هغې مثل واجب دې. |
|---|

**تشريح>** که مغصوب شی (څيز) هلاک شوې وی.او هغه مثلی وی.يعنی کيلی يا وزنی ( مثلاً غنم، اوريشې، دراهم اودنانير وغيره) نو د مغصوب مثل واپس کول ضروری دی.

**دليله>** د الله تعالی فرمان دې((فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَى عَلَيْكُمْ)) چا چې په تا ظلم اوکړو. او که ددې مثل منقطع شوې وی.يعنی هغه بازار کې نه موندلې کيږی.نو ددې قيمت واجب دې.

| وَإِنْ كَانَ مِمَّا لَا مِثْلَ لَهُ اوکه مغصوب څيز داسې وی چې د هغې مثل نه وی فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ نو په ده باندې د هغې قيمت واجب دې |
|---|

**تشريح>** اوکه داسې څيز غصب کړی چې د هغې مثل نه وی لکه غوا ميخا گډ وغيره نوکه اصل څيز کوم چې غصب شوې دې موجود نه وی هلاک شوې وی نو په غاصب باندې به د هغې قيمت واجب وی

**دليله>** الله تعالی فرمائيلی دی ((فَمَنِ اعْتَدَى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَى عَلَيْكُمْ)) يعنی چاچې په تاسو ظلم کړی وی نو تاسو دهغې په مثل ظلم اوکړئ يعنی بدله واخلئ

**الاستدلال>** چې په دې باندې قياس اوکړی شی نو کوم څيز چې غصب شوې وی که هغـه موجود نه وی نو دهغې په مثل به د غاصب نه اخستلې شی.اويا د هغې قيمت بر ترې اخستې شی.

| (وَعَلَى الْغَاصِبِ رَدُّ الْعَيْنِ الْمَغْصُوبَةِ)او غاصب باندې عين مغصوبه واپس کول ضروری دی. |
|---|

**تشریح**﴿مذکوره حکم هغه وخت دې.کله چې مغصوب شی (څيز) هلاك شوې وی.اوکه هغه بعينه باقی وی.د هغې واپس کول ضروری دی.

**دلائله**﴿ ① څکه د نبی کريم ﷺ ارشاد دې.(على اليد ما أخذت حتى تؤدي)([1])

② دغه شان د نبی کريم ﷺ ارشاد دې. (لا يأخذ أحدكم متاع أخيه جاداً ولا لاعباً وإذا أخذ أحدكم عصا أخيه فليردها)([2])

③ او په دې وجه هم چې د سړی قبضه يو مقصودی حق وی.چه په دې سره هرقسمه انتفاع کولې شی.او غاصب دا قبضه ختمه کړله.نو ددې قبضې اعاده په دې طريقه ضروری ده.چه هغه ته هم هغه شی (څيز) واپس کړی.

**تشريح**﴿ **د مغصوبه څيز اصل حکم**﴿بيا په قول د مشائخو د غصب اصلی حکم دا دې.چه بعينه هم هغه شی (څيز) واپس کړې شی.پاتې شو قيمت واپس کول، نو دا د خلاصې موندلو لپاره ددې خليفه دې.څکه چې دا ناقص اداکول دی.کامل ادا کول هم دا دی.چه عين شی (څيز) سره د ماليت نه واپس کړې شی. او په قول د بعضو مشائخو د غصب اصلی حکم قيمت
واپس کول دی.او عين واپس کول خلاصې دې.

**ثمرة الاختلاف**﴿ علامه مرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی.چه ددې اختلاف ثمره ( فائده) په بعضو احکامو کې ښکاره کيږی.مثلاً :

① که د عين موجود کيدو په حالت کې غاصب د تاوان نه بری کړی.نو دا صحيح ده. تردې که ددې نه روسته هلاك شی.نو ضمان نه واجبيږی.که موجب اصلی قيمت نه وې.نو ابراء به نه صحيح کيدله.(لأن الإبراء عن العين لايصح)

② دمغصوب کفالت صحيح دې.معلومه شوه.چه اصلی موجب قيمت دې.ګنی ښکاره ده.چه د عين کفالت به نه صحيح کيدلو.

③ که د غاصب په ملك کې نصاب وی.او هغه څه شی (څيز) غصب کړې وی.نو هغه باندې زکاة نه واجبيږی.حالانکه د مغصوب د موجود کيدلو په حالت کې د قيمت وجوب د مغصوب په مقابله کې هغه نصاب کم وی.

(فَإِنِ ادَّعَى هَلَاكَهَا بيا که ده دعوه اوکړله.د هغې د ضائع کيدو،حَبَسَهُ الْحَاكِمُ نو قاضی دې هغه قيد کړی.حَتَّى يَعْلَمَ أَنَّهَا لَوْ كَانَتْ بَاقِيَةً لَأَظْهَرَهَا تردې چې معلومه شی که دا مغصوب څيز موجود وې نو خامخا به ئې ښکاره کړې وو ثُمَّ قَضَى عَلَيْهِ بِبَدَلِهَا)اوبيا به په هغه باندې د هغې مغصوبه څيز په

---

١) من حديث سمرة رضي الله عنه اخرجه ابوداود فى البيوع باب ٨٨ رقم ٣٥٦١ والترمذى فى البيوع باب ٣٩ وابن ماجه فى الصدقات باب ٥ رقم ٢٤٠٠ والنسائى فى السنن الكبرى (٤١١\٣) رقم ٥٧٨٣ والبيهقى فى السنن الكبرى (١٤٦\٦) والدارمى فى البيوع باب ٨٨ والحاكم فى المستدرك (٤٧\٢) واحمد فى المسند(١٣\٥) وابن ابى شيبة فى المصنف كتاب ١٥)۔

٢) من حديث يزيدبن السائب رضي الله عنه اخرجه اخرجه ابوداود فى الأدب با ٨٥ رقم ٥٠٠٣) والترمذى فى الفتن باب ٣ رقم ٢١٦٠ واحمد فى المسند(٢٢١\٤) والحاكم فى المستدرك (٦٣٧\٣)۔

مثل حکم اوکړي

تشريح> بيا د کوم ځاي نه چې غاصب دا غصب کړې وو.هم هلته کي واپس کول ضروري دی. ځکه چې د ځاي په مختلف کيدو سره قيمتونه مختلف کيږي.اوس که غاصب دعوه اوکړله.چه مغصوب مال هلاك شو.نو حاکم به دې قيد کړي.تردې چې دا خبره ښکاره شي.که دا مال باقي وي. نو هغه به د قيد د تکليفونو نه د خلاصی لپاره ضرور ښکاره کړې وو.يا غاصب ددې په هلاکولو باندې بينه قائم کړي.که دا نه وی.نو قاضي به په دې غاصب باندې د مغصوب مال د عوض حکم ورکوی.

دليله> وجه دا ده.چه په غاصب باندې بعينه مال واپس کول ضروری او واجب وو.او هلاکيدل عارضی امردی.نوهغه د ظاهر خلاف د عارضی امر مدعی شو.نو خالص دده قول به نه قبليږي.

نظيره> لکه مثلاً يو اخستونکي ( مشتری) چې په ده باندې د مبيع ثمن لازم دې.هغه د خپلې غريبۍ دعوه اوکړي.نو خالي دعوه نه قبليږي.بلکه هغه قيد کولې شي.بيا کله چې د مغصوب مال هلاکيدل معلوم شي.نو عين مغصوب واپس کول به دده د ذمې نه ساقط شي.او د هغې عوض واپس کول به ضروری وی.او عوض هم دغه قيمت دې.

### غصب په کومو څيزونو کښې کيږي؟

وَالْغَصْبُ فِيمَا يُنْقَلُ وَيُحَوَّلُ،او غصب هم په هغې کي کيږي.چه هغه منتقل او محول ( آخوا) کيدې شي.

تشريح> ددې قول اصل مقصد دا بيانول دی. چې د غصب تحقق صرف په منقوله څيزونو کي کيږي.کوم چې د يو ځاي نه بل ځاي کي ايخودل ممکن وی.او په غير منقول کي غصب نه متحقق کيږي.صرف د منقول څيزونو د غصب تحقق بيانول مقصود نه دې.ځکه چې نه په دې کي څه خلاف دې.او نه څه اشتباه ده.خلاف او اشتباه خو په غير منقول کي د غصب په نه متحقق کيدو کي ده.نو مذکوره ترکيب (و الغصب فيما ينقل و يحول) کي قصر او حصر معتبر دې.لکه څنګه چې تاج الشريعة صاحب د عنايه رحمه الله بلکه پخپله صاحب دهدايه رحمه الله هم دې ارخ (طرف) ته اشاره کړې ده.(حيث قال: لأن الغصب بحقيقته يتحقق فيه دون غيره) اوس پاتې شوه دا خبره چې په ترکيب کي ادات د حصر کوم دی؟ نو هغه غالباً لام جنس سره د مسند اليه تعريف دې.چه دا مسند باندې د مسند اليه د قصر فائده ورکوی.چه ددې تصريح په علم معانی کي موجود ده.(ومثلوه بنحو: ألتوكل على الله، ألكرم في العرب، الأئمة من قريش) د قول مطلب دا دې.

(وَإِذَا غَصَبَ عَقَارًا که عقار ( زمکه، عمارت وغيره) ئې غصب کړو.فَهَلَكَ فِي يَدِهِ او هغه دده په قبضه کي هلاك شو.لَمْ يَضْمَنْهُ) نو غاصب به ددې ضامن نه وی. عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ. دا د شيخينو رحمهما الله په نيز دی.

تشريح> دا مسئله په اصل مذکور باندې متفرع ده.په دې وجه د واؤ په ځاي ،فاء،، سره ،،فإذا غصب،، وئيل پکار دی.لکه چې نورو عامو کتابونو کي په دې موقع باندې کلمه د فاء او په محيط کي کلمه د حتی راوړولې شوې ده.او د تعجب خبره دا ده.چه دلته په مختصرالقدوری کي کلمه د فاء وه.خو علامه مرغينانی رحمه الله په بدايه، او نهايه دواړو کي فاء په واؤ سره بدل کړو.

د شيخينو رحمهما الله مسلك> د شيخينو رحمهما الله په نيز د غصب تحقق صرف په منقول څيزونو کي کيږي.ځکه چې غصب په حقيقت کي اعيان منقوله کي کيږي.غير منقوله کي نه کيږي.ځکه چې غصب د قبضې د

ازالې نه بغیرنشي کیدي.او د مالك د قبضې ازاله به هغه وخت کیږي.کله چې منقول منتقل کړې شي.حالانکه عقار کې نقل او تحویل نا ممکن دي.

**دلیلهما>** د شیخینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه د غصب لپاره ازاله د یَد محققه او اثبات د یَد مبطله سره په عین مغصوب کې د غاصب تصرف هم ضروری دې.او دا خبره په زمکه کې غیر متصور ده.ځکه چې د مالك د ید ( قبضې) د ازالې صورت هم دا دې.چه هغه د زمکې نه اوشړلې شي.او ښکاره ده.چه اوشړل صرف تصرف فی المالك دې.تصرف فی المغصوب نه دې.نو دا داسې شوه.لکه چې د څاروو د رمې نه ددې مالك لرې (جدا) کړی.چه په دې صورت کې که رمه هلاکه شي.نو غصب نه وی.پا تې شو مذکوره حدیث نو هغه په مدعا باندې دلالت نه کوی.ځکه چې په دې کې نبی کریم ﷺ د زمکې د غصب بدله ( او سزا) په طوق سره بیان کړې ده.که ضمان واجبیدو.نو هغه به نې بیان کړی وو.ځکه چې ضمان د دنیاوی احکامو څخه دې.او په حدیث کې په زمکه باندې د غصب د لفظ اطلاق مجازاً دې.لکه چې حدیث «باع حراً» کې د حر ( آزاد) د بیع لپاره لفظ د بیع وئیلې شوې دې.(د الالزم تحقق البیع فی الحر) ددې نه علاوه په صحیحینو کې د ،،غصب شبراً،، په ځاې ،،أخذ شبراً،، دې.

| وَقَالَ مُحَمَّدٌ:امام محمد رحمه الله فرمائی.يَضْمَنُهُ.() چې ضامن به وی. |
|---|

**تشریح> مسلک محمد>** په مذکوره مسئله کښې د امام محمد قول دې چې ضامن به وی.

**دلیله>** ځکه چې په یو حالت کې په یو محل باندې د دوه قبضو جمع کیدل ناممکن دی.نو دواړه وصفونه متحقق شو.یعنی ازاله د یَد محققه او اثبات د یَد مبطله، او هم دا غصب دې.نو د عقار حکم داسې شو.لکه مال منقول غصب کول،او د ودیعت انکار کول.چه په دې کې بالاتفاق ضامن کیږی.او په حدیث کې دی.چه کوم کس د چا د یو لیشت برابر زمکه غصب کړی.الله تعالی به د قیامت په ورځ د هغه په سټ کې د اووه زمکو طوق ورواچوی.( صحیحین)

**الجواب عنه>** د دې دلیل نه جواب دا دې چې په خلاف د منقول، چې مال منقول منتقل کول په دې مال کې یو فعل دې.او هم دا غصب وی.پاتې شوه د ودیعت د انکار مسئله، نو دا خو اول منو نه، بلکه که د یوکس سره نې عقار ودیعت کیخودو.بیا هغه د ودیعت نه منکر شو.نو د زیات صحیح قول مطابق به بالاتفاق ضامن نه وی.لکه څنګه چې مبسوط کې ذکر دی.او که مونږ (مونږ) اومنو.نو بیا هم د ودیعت په صورت کې د ضمان وجوب ځکه دې.چه د کوم ساتنه (حفاظت) ده التزام کړې وو.هغه نې پریخودو.او په انکار د ودیعت کې هم دا لازمیږی.په بزاریه کې د شیخینو رحمهما الله د قول تصحیح ده.خو په عینی، شرح کنز، منح، فتاوی ظهیریه وغیره کې دی.چه په باب د وقف کې فتوی د امام محمد رحمه الله په قول ده.

**د مغصوبه زمکې حکم**

| (وَمَا نَقَصَهُ مِنْهُ بِفِعْلِهِ أَوْ سُكْنَاهُ ضَمِنَهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا )او په عقار کې چې کوم څه دده په فعل یا اوسیدو سره ناقص شی.د هغې به ضامن وی.د ټولو په قول کې ، |
|---|

[1] ) القول الراجح في هذه المسئلة تفصيل وهو إن كان الغاصب غصب أرضاً أو داراً موقوفاً فالفتوى في هذه الصورة على قول قول محمد رحمه الله وإن كان الغاصب غصب أرضاً غير موقوفة فالقول المفتى به هو قول الشيخين رحمهما الله يفهم هذا الترجيح من الدرالمنتقى (٤\٨١) والبحرالرائق (٨\٢٠٢) ومجمع الأنهر(٤\٨١) والدر المختار (٥\١٣١) وحاشية الزيلعي (٣٤٣) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٦٠)-

تشریح> په مغصوبه عقار( زمکه یا کور وغیره) کي څه غاصب پخپل فعل سره ناقص کړو.یا هغه دده په اوسیدو سره ناقص شو.نو د امام ابوحنیفه، صاحبینو، او د امام شافعي ﷺ د ټولو په قول کي به ضامن وی.د امام محمد او د امام شافعي رحمهما الله په قول باندي خو وجوب د ضمان ښکاره دي.او هم دغه شان د شیخینو رحمهما الله په قول باندي هم،ځکه چي داهلاکول دی.اودهلاکولوپه وجه دعقار ضمان واجبیږی .لکه ( مثلاً) دعقار خاوره اونړه وی.او منتقل ئې کړی.نو ضامن کیږی.ځکه چي دا په عین عقار کي خپل فعل دي.

فائده> د نقصان معلومولو طریقه د نصیر بن یحي د قول مطابق دا ده.چه اودي کتلي شی.چه د استعمال نه وړاندي دا زمکه په څومره باندي په اجاره ملاویدله.او د استعمال نه روسته په څومره ملاویږی.نو کوم فرق چي وی.هم هغه نقصان دي.او د محمد بن مسلمه د قول مطابق د نقصان معلومولو طریقه دا ده.چه اودي کتلي شی.چه دا زمکه مخکي په څومره خرڅیدله.او اوس په څومره خرڅیږی.په دي کي چي کوم فرق(فرق) وی.هم هغه نقصان دي.(قیل رجع محمد إلى قول نصیر)

**د غاصب په قبضه کښي د منقولي څیز د ضمان حکم**

| (وَإِذَا هَلَكَ المغصوب فِي يَدِ الْغَاصِبِ بِفِعْلِهِ کله چي هلاك شومغصوب شي (څیز) د غاصب په قبضه کي ، دده په فعل سره أَوْ بِغَيْرِ فِعْلِهِ یا دده د فعل نه بغیر ، فَعَلَيْهِ ضَمَانُ )نو دده به ضامن وی. |
|---|

تشریح> که د غاصب په قبضه کي دده په فعل سره یا دده د فعل نه بغیر مال منقول هلاك شو.نو هغه به ددي ضامن وی.

دلیله> د تیرشوی غصب په ذریعه دا مال دده په ضمانت کي داخل شو.ځکه چي غصب ددي سبب دي.او کله چي ددي د واپسئ نه عاجز شو.نو ددي د قیمت واپسی واجب شوه.یا کوم خلق چي دا واني.چه قیمت واپس کول اصل دي.نو ددي سبب په وجه قیمت مقرر شو.او ددي په وجه مخکښي غصب ددي سبب وی.هغه قیمت به معتبر وی.کوم چي ددي غصب په ورځ وو.

| (وَإِنْ نَقَصَ فِي يَدِهِ او که ناقص شو دده په قبضه کي ،فَعَلَيْهِ ضَمَانُ النُّقْصَانِ )نو په ده باندي تاوان د نقصان دي |
|---|

تشریح> که دا مال منقول هلاك خو نشو.البته دده په قبضه کي عیبدار شو.نو د نقصان به ضامن وی.

دلیله> ځکه چي د غصب په وجه ددي مال واړه (ټول) اجزاء دده په ضمانت کي داخل شو.د کوم جزء چي بعینه واپس کول متعذر وی.د هغي د قیمت واپس کول به واجب وی.

**د بل کس د اوښ، وزه (چیلئ) وغیره د نقصان حکم**

| وَمَنْ ذَبَحَ شَاةَ غَيْرِهِ اوکه د بل چا وزه (چیلئ) ئې ذبح کړله. فَمَالِكُهَا بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَتَهَا نومالك ته اختیار دي.که غواړی.ددي د قیمت دي ضامن کړی.وَسَلَّمَهَا إِلَيْهِ،او مذبوحه دي هغه ته ورکړی.وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ نُقْصَانَهَا،او که غواړی.ددي د نقصان دي ضامن کړی. |
|---|

تشریح> که یوکس د بل چا وزه (چیلئ) د هغه د اجازت نه بغیر ذبح کړله.نو مالك ته اختیار دي.که غواړی.هغه نه دي د وزه (چیلئ) د قیمت تاوان واخلي.او ذبح کړي شوي وزه (چیلئ) دي هغه ته ورکړی.اوکه غواړی.ذبح کړي شوي غوښه دي پخپله واخلي.او هغه نه دي نقصان واخلي.یعنی د مذبوحه او ژوندئ په قیمت کي چي کوم فرق(فرق) وی.هغه نقصان دي واخلي.

**دليله**> د وزه (چيلۍ) نه مختلف منافع حاصليږي.مثلاً شوده (پيۍ) څکل، نسل زياتول، غوښه خوړل وغيره، او د ذبح نه روسته څه منافع باقي دی.او څه فوت شو.په دې وجه به مالك ته دواړه اختيار وی.لکه څنګه چې په کپړه کي غټه سوړه کولوسره مالك ته د ضمان يا نقصان اختيار وی.

## د بل کس په کپړې کښې د نقصان حکم

| وَمَنْ خَرَقَ ثَوْبَ غَيْرِهِ خَرْقًا يَسِيرًاکه يوکس د بل په کپړه کي معمولی شان سوړه اوکړله.ضَمِنَ نُقْصَانَهُ نو هغه به د نقصان ضامن وی. |
|---|

**تشريح**>که يوکس د بل په کپړه کي معمولی سوړه اوکړله.نو عين مال چونکه په هرشان قائم دې.صرف په دې کي يو عيب راغې.په دې وجه به هغه د نقصان ضامن وی.

**دليله**> څکه چې مال عين په هرشان قائم دې.صرف په دې کي نقصان پيدا شو. نو د نقصان به ضامن وی.

| (وَإِنْ خَرَقَ خَرْقًا كَثِيرًا يُبْطِلُ عَامَّةَ مَنْفَعَتِهِاو که غټه سوړه ئې اوکړله.چه په دې سره ددې اکثر منافع ختم شو.فَلِمَالِكِهِ أَنْ يُضَمِّنَهُ جَمِيعَ قِيمَتِهِ)نو مالك دده نه پوره قيمت تاوان اخستې شي. |
|---|

**تشريح**>او که غټه سوړه ئې اوکړله.چه هغې سره د کپړې اکثر منافع ختم شو.نو مالك ته به اختيار وی.چه هغه دده نه د پوره قيمت تاوان واخلی.

**دليله**> څکه چې دې لحاظ سره دده دا فعل هلاکول دی.ګويا چې ده کپړه اوسوزوله. علامه مرغينانی رحمه الله فرمائيلی دی .چه د ابو الحسن قدوری رحمه الله دقول(فلمالكه أن يضمنه جميع قيمته) مطلب دا دې.که غواړی.کپړه دې هم دده سره پريږدی.او قيمت دې واخلی.او که غواړی.کپړه دې واخلی.او د هغه نه دې د نقصان تاوان واخلی.څکه چې دا يو لحاظ سره عيب دار کول دی.چه عين کپړه سره د بعضو منافعو باقی ده.

## د مغصوبه څيز د بدليدو حکم

| (وَإِذَا تَغَيَّرَتِ الْعَيْنُ الْمَغْصُوبَةُ بِفِعْلِ الْغَاصِبِ حَتَّى زَالَ اسْمُهَا وَعِظَمُ مَنَافِعِهَاکله چې متغير شی.عين مغصوب د غاصب په فعل سره، تردې چې د هغې نوم او لوئې منفعت زائل شی.زَالَ مِلْكُ الْمَغْصُوبِ مِنْهُ عَنْهَانو هغې سره د مغصوب منه ملك زائل کيږی.وَمَلَكَهَا الْغَاصِبُاو غاصب به ددې مالك وی.وَضَمِنَهَا،او ددې به ضامن وی. |
|---|

**تشريح**>غاصب يو شی (څيز) غصب کړو.او هغه داسې متغير کړو.چه د هغې نوم او د هغې اکثر مقاصد زائل شو.مثلاً مغصوب وزه (چيلۍ) وه.هغه ئې ذبح کړله.او وورته ئې کړله.يا ئې پخه کړله.يا غنم وو.هغه ئې اوړه کړل.يا ئې په پټی کي تخم اوکرلو.يا اوسپنه وه.د هغې نه ئې توره جوړه کړله.يا پيتل وو.د هغې نه ئې لوخې جوړ کړو.يا ئې په داسې کي څه داسې تصرف اوکړو.چه د هغې په وجه هغه د غاصب ملك سره داسې ګډ ( ملاو) شو.چه دهغې جدا کول ممتنع شو.مثلاً مغصوب د ساګون لرګې (يو قسم مضبوط لرګې لکه نختر) شهتير وو. غاصب دهغې نه عمارت جوړ کړو.په پورتنو

صورتونو کي زمونږ په نیز غاصب ددې مالك کیږی. (¹)

**دلیل>** دلیل دا دې.چه غاصب په مغصوب کي یو داسې قیمتی صنعت پیدا کړو.چه د هغې په وجه د مالك حق من وجه ختم شو.او په صنعت کي د غاصب حق ثابت دې.نو دې ته به په اصل باندې ترجیح ورکولې شی.خو چونکه دده حق من کل وجه باقی دې.په خلاف د اصل مالك، چې د هغه حق من وجه فوت شوې دې.آیا نه ګورې.چه ددې نوم بدل شو.او لوښي منفعت ئې ختم شو.او په دې صنعت کي د غاصب حق هر لحاظ سره قائم دې.نو ده ته به اصل حق باندې ترجیح وی.چه هغه په یوه وجه موجود نه دې.

## غاصب لپاره د مغصوبه څیز د استعمال حکم

**وَلَا يَحِلُّ لَهُ الِانْتِفَاعُ بِهَا** خو په دې سره به انتفاع حلال نه وی. **حَتَّى يُؤَدِّيَ بَدَلَهَا،**

**وجه عدم جواز الانتفاع>** بیا زمونږ په نیز غاصب اګرچه د مغصوب مالك جوړیږی.خو د ضمان ادا کولو نه وړاندې به دده لپاره انتفاع حلال نه وی.د حسن بن زیاد او د امام زفر رحمهما الله په نیز انتفاع حلال ده.د قیاس تقاضه هم دا ده.او د امام صاحب رحمه الله نه د فقیه ابواللیث رحمه الله روایت هم دا دې.هم دا وجه ده.چه غاصب لپاره ملك مطلق ثابت شو.نو انتفاع به جائز وی.آیا نه ګورې.که غاصب دا شی (څیز) هبه یا خرڅ کړی.نو جائز دی. ځکه چې هغه په محظور ( او ممنوع) وجه ددې مالك شو.نو دا هم داسې ده.لکه چې د بیع فاسد په طریقه مقبوضه څیز، چې ددې بیع صحیح وی.

**فائده>** د خلاصة الفتاوی د کتاب الغصب په آخر کي د سمرقند د فتاوی نه نقل دی.چه یو سړی طعام غصب کړو.او هغه ئې په چوپلو هلاك کړو.او تیر ئې کړو.نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ده په حلال طریقه تیر کړې دې.او د پاکیزه کیدو شرط ددوی په نیز د بدل وجوب دې.او د صاحبینو رحمهما الله په نیز بدل ادا کول دی.او فتوی د صاحبینو رحمهما الله په قول ده.

**وجه الاستحسان>** وجه د استحسان د یو انصاری صحابی رضی الله عنه حدیث دې.(قال خرجنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم فی جنازة فرأیت رسول الله صلی الله علیه وسلم و هو علی القبر یوصی الحافر أوسع من قبل رجلیه أوسع من قبل رأسه فلما رجع استقبله داعی إمرأة فجاء و جیئ بالطعام فوضع یده ثم وضع القوم فأکلوا فنظر آباؤنا رسول الله صلی الله علیه وسلم یلوك لقمة فی فیه ثم قال إنی أجد لحم شاة أخذت بغیر إذن أهلها فأرسلت المرأة یا رسول الله صلی الله علیه وسلم إنی أرسلت إلی البقیع لیشتری لی شاة فلم أجد فأرسلت إلی جار لی قد إشتری شاة أن أرسل إلی بثمنها فلم یوجد فأرسلت إلی إمرأته فأرسلت بها إلی فقال صلی الله علیه وسلم أطعمیه الأساری) (²)، یو انصاری صحابی رضی الله عنه فرمائی.چه مونږ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره په یوه جنازه کي اووتلو.نوما اوکتل

---

¹) **مسلك شافعی رحمه الله>** د امام شافعی رحمه الله په نیز په دې صورتونو کي د اصل مالك حق نه منقطع کیږی.دا یو روایت د امام ابویوسف رحمه الله نه هم دې.او هم دا د امام احمد رحمه الله قول دې.صرف دومره فرق(فرق) دې.که مالك اوړه اخستل اختیار کړی.نو د غاصب نه تاوان نشی اخستلې.ځکه چې دې سره سود لازمیږی.او د امام شافعی رحمه الله په نیز نقصان اخستلې شی.او د امام ابویوسف رحمه الله نه یو روایت دا هم دې.چه ددې نه به (نه به) د مالك شی (څیز) زائل کیږی.خو که غاصب مړشی.نو د اصل مالك په قرضه کي به دا شی (څیز) خرڅولې شی.مثلاً اوړه به خرڅولې شی.او د هغې په مثل به غنم اخستلې شی.او مالك ته به ورکولې شی.او د نورو قرضخواهانو په نسبت به مالك ددې زیات حقدار وی.

²) من حدیث أبی موسی الأشعری رضی الله عنه أخرجه الطبرانی فی معجمه الکبیر کما ذکره الهیثمی فی مجمع الزوائد

. چې قبر سره اودریدواو قبر کنستونکی ته ئې تعلیم ورکولو.پښنو (خپو) ارخ (طرف) ته لې نور هم کلاؤ کړه.سر ارخ (طرف) ته نور هم کلاؤ کړه.کله چې دوی ﷺ راواپس شو.نو یوې ښځې ارخ (طرف) ته رابلونکې راغې.دوی ﷺ هلته تشریف یوړو. خوراك مخې ته راوړلې شو.نو مخکې نبی کریم ﷺ او بیا نورو خلقو لاسونه وراندې کړل.اوخوراك ئې پیل (شروع) کړو. زمونږ مشرانو هغوی اوکتل.چه هغوی هم یوه نوړئ چوپې.(اوهغه دحلق نه ښکته کیږی).بیا نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.داسې معلومیږی .چه داسې وزه (چیلئ) ده.چه دا ددې د مالك نه بغیر اخستې شوې ده.هغه ښځې یو کس راؤلیګلو.اې ـ الله رسوله ﷺ ! ما بقیع ته د وزه (چیلئ) اخستلو لپاره لیګل اوکړو.نو وزه (چیلئ) ملاؤ نشوه.ما خپل ګاونډی ته یو کس اولیګلو.چه کوم وزه (چیلئ) تا اخستې ده.هغه هم په دغه قیمت ما ته راؤلیګه.هغه ګاونډی هم په کور کې نه وو.نو ما دغه ښځې ته یوکس اولیګلو.هغې وزه (چیلئ) ماته راؤلیګله.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.دا غوښه قیدیانو بانې اوخوروئ، ،

(كَمَنْ غَصَبَ شَاةً‌لكه (مثلاً) یوکس یوه وزه غصب کړله.فَذَبَحَهَااو ذبح ئې کړله.وَشَوَاهَاهغه ئې وورته کړله.أَوْطَبَخَهَایا ئې پخه کړله.أَوْغصب حِنْطَةًیا ئې غنم غصب کړل.فَطَحَنَهَااو اوړه ئې کړل.أَوْ حَدِيدًايا ئې اوسپنه غصب کړله.فَاتَّخَذَهُ سَيْفًااو د هغې نه ئې توره جوړه کړله.أَوْصُفْرًايا ئې پیتل غصب کړل.فَعَمِلَهُ آنِيَةً)او لوخې ئې جوړ کړو.

**تشریح**﴿ غاصب یو شئ غصب کړو.او هغه داسې متغیر کړو.چه د هغې نوم او د هغې اکثر مقاصد زائل شو. مثلاً مغصوب وزه وه.هغه ئې ذبح کړله.او وورته ئې کړله.یا ئې پخه کړله.یا غنم وو.هغه ئې اوړه کړل.یا ئې په پټی کې تخم اوکرلو.یا اوسپنه وه.د هغې نه ئې توره جوړه کړله.یا پیتل وو.د هغې نه ئې لوخې جوړ کړو.یا ئې په داسې کې څه داسې تصرف اوکړو.چه د هغې په وجه هغه د غاصب ملك سره داسې ګډ ( ملاؤ) شو.چه دهغې جداکول ممتنع شو.مثلاً مغصوب د ساګون لرګې (یو قسم مضبوط لرګې لکه نختر) شهتیر وو. غاصب دهغې نه عمارت جوړ کړو.

**د سرو او سپینو زرو د غصب کولو نه روسته د بدلیدو حکم**

(وَإِنْ غَصَبَ فِضَّةً أَوْذَهَبًاکه سپین زر یا سره زر ئې غصب کړل.فَضَرَبَهَادَرَاهِمَ أَوْدَنَانِيرَأَوْآنِيَةًاو ددې نه ئې دراهم یا دنانیر یا لوخې جوړ کړو.لَمْ يَزُلْ مِلْكُ مَالِكِهَاعَنْهَاعِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ[1]نو ددې د مالك ملك به نه زائل کیږی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز،

**تشریح**﴿که غاصب سپین زر یا سرهٔ زر غصب کړل.او ددې نه ئې دراهم یا دنانیر ئې جوړ کړل.یا ئې لوخې جوړ کړل.نو د امام ابوحنیفه او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز به ددې نه د مالك ملك نه زائل کیږی.نو مالك به دا اخلی.او غاصب لپاره به څه هم نه وی.

**دلیله**﴿د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه مال عین په هرشان باقی دې.ځکه چې هم هغه نوم باقی دې.چه د صنعت نه روسته هم دې ته سرهٔ زر او سپین زر وئیلې شی.او ددې اصلی معنی یعنی ثمن کیدل او وزنی کیدل هم باقی دی.ترڅو چې په دې لحاظ سره چې دا موزونی دی.په دې کې سود جاری

________________

.........(۱۷۳\٤)ـ

[1] ) القول الراجح هوقول ابي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (۸\٤٦٤۲) والكفاية (۸\٢٦٤) وملتقى الأبحر (٤\٨٥) والدرالمنتقى (٤\٨٥) نقلاً عن القول الراجح (۲\۲٦۲)ـ

کيږي.حاصل داچه سپينو او سروزرو سره متعلق څلور احکام ( ثمنيت کيدل، ددې موزون کيدل، د سود جاري کيدل، د زکاة واجبيدل) هم په دې دلالت کوي.چه عين مال په هرشان باقي دې.

**مسلک الصاحبين** ﷫> صاحبين ﷫ فرماني.چه غاصب به ددې مالك کيږي.او په ده به ددې د مثل تاوان لازم وي.

**دليلهما:** ﷫> څکه چې غاصب په دې کي يو معتبر صنعت يعني نقصان پيدا کړو.چه دې په يوه وجه د مالك حق ختم کړو.څکه چې اوس د غاصب دفعل په وجه ددې نوم بدل شو.څکه چې د سوانچه کولو نه مخکي دې ته سپين زر او سرهٔ زر ونيلی شو.او اوس ورته دراهم او دنانير ونيلې شي.او بعض مقاصد هم ختم شو.چه د سکې نه بغير دا متعين کيدې شو.او اوس نشي متعين کيدې. دغه شان د سکې نه بغير دا د مضاربت او د شرکت راس المال کيدلو قابل نه وو.او اوس ددې قابل شو.

**الجواب عنه**> د صاحبينو ﷫ د قول «و التبر لا يصلح راس المال» جواب دې.چه د راس المال کيدلو صلاحيت د صنعت د احکامو څنې دې.چه دا د مال عين نه يو زياتی شی (څيز) دې.نو ددې هيڅ اعتبار نشته.او د «لأنه أحدث صنعة معتبرة» جواب دا دې.چه په سرو او سپينو زرو کي صنعت على الاطلاق قيمتی نه وي.نو صنعت معتبر نشو.څکه چې کله سرهٔ زر په مقابله د سرو زرو، او سپين زر په مقابله د سپينو زرو کي شي.نو ددې صنعت هيڅ قيمت نه وي.بلکه د سرو زرو په مقابله کي سرهٔ زر برابر کيدل پکار دی.گنی د زياتوالی په صورت کي به سود لازميږي.معلومه شوه.چه د صنعت هيڅ قيمت نشته.

### په مغصوبه لرګو باندې د عمارت جوړولو حکم

(وَمَنْ غَصَبَ سَاجَةً که يوکس برګې غصب کړل.فَبَنَى عَلَيْهَا او په دې نې عمارت جوړ کړو.زَالَ مِلْكُ مَالِكِهَا عَنْهَا نو په دې سره به د مالك ملك زائل کيږي.وَلَزِمَ الْغَاصِبَ قِيمَتُهَا )او په غاصب به ددې قيمت لازم وي.

**تشريح**>که يوکس برګې ( کړئ او لرګی چې په آبادئ کي د چت لپاره استعمالولې شي.) غصب کړلې.او په دې نې عمارت جوړ کړو.نو په دې سره به د مالك ملك زائل کيږي.او په غاصب به ددې قيمت لازم وي.

### په مغصوبه زمکه کښې د عمارت او ونو وغيره حکم

(وَمَنْ غَصَبَ أَرْضًا چاچه زمکه غصب کړله.فَغَرَسَ فِيهَا او په دې کي نې ونې اولګولې.أَوْبَنَى يا نې عمارت جوړ کړو.قِيلَ لَهُ نو ده ته به ونيلې شي.اقْلَعْ الْبِنَاءَ وَالْغَرْسَ چې عمارت او ونې لرې کړه.وَرُدَّهَا إِلَى مَالِكِهَا فَارِغَةً)او زمکه واپس کړه خپل مالك ته خالی

**تشريح**>که يوکس د بل چا زمکه غصب کړله.او په هغې کي نې ونې اولګولې.يا نې عمارت جوړ کړو.نو هغه ته به ونيلې شي.چه خپل عمارت وران کړه.او ونې اوباسه.او خالی زمکه واپس کړه.

**دلائله**> ① څکه د نبی کريم ﷺ ارشاد دې.«ليس لعرق ظالم حق» (1)

---

1) من حديث سعيد بن زيد﷛ اخرجه ابوداود في الخراج والإمارة باب ۳۷ رقم۳۰۷۳ والترمذی في الأحكام باب ۳۹ والنسائي في السنن الكبرى (۳\۴۰۵) رقم ۵۷۶۱ وأحمد في المسند(۵\۳۲۷)۔

②دوئم (دويم) دليل دا دې.چه د زمکې د مالك ملك باقي دې.ځکه چې زمکه څوك نشي هلاکولې.او په زمکه کي د غصب تحقق نه کيږي.حالانکه ملك لپاره څه نا څه سبب ضرور وي.چه هغه دلته کي موجود نه دې.نو کوم کس چې زمکه بوخت (مشغول) کړې ده.هغه ته به حکم ورکولې شي.چه زمکه خالي کړي.لکه مثلاً يوکس د بل په لوخي کي خپله غله واچوي.نو هغه ته به د لوخي خالي کولو حکم ورکولې شي.

| |
|---|
| فَإِنْ كَانَتِ الْأَرْضُ تَنْقُصُ بِقَلْعِ ذَلِكَ اوس که په زمکه کي دده په وُرانولو سره نقصان راځي. فَلِلْمَالِكِ أَنْ يُضْمِنَ لَهُ قِيمَةَ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ مَقْلُوعًا نو مالك ته به اختيار وي.چه هغه ورکړي غاصب ته، د وُران عمارت او د اوښکلي شوي وُنو قيمت، |

**تشريح**> بيا که په عمارت وُرانولو يا په وُنو اوښکلو کي زمکې ته نقصان رسيږي.نو مالك ته به اختيار وي.چه هغه غاصب ته د وُران شوي عمارت او د اوښکلې شوې وُنو په حساب سره قيمت ورکړي.نو دا دواړه شيان (څيزونه) به د مالك شي.

**دليله**> ځکه چې داسې کولو کي د دواړو رعايت دې.او دواړو نه ضرر دفع کول دي.ځکه چې غاصب د عمارت وُرانولو او د وُنو اوښکلو نه منع کولو کي پخپله د هغه ضرر دې.ځکه چې هغه خو د هغه عين مال دې.او د هغې وُرانولو او اوښکلو سره خالي زمکه مالك ته سپارلو کي د مالك ضرر دې.(وقد قال ﷺلا ضرر ولا ضرار في الإسلام).

**د قلعې مطلب**> په کتاب کي چې دا ونيلي شوي دي.چه د اوښکلو شوو او وُرانولو په حساب سره دې ورکړي.ددې مطلب دا دې.چه د داسې عمارت او وُنو قيمت دې ورکړي.دکومو د وُرانولو او اوښکلو چې حکم ورکړې شوې دې.ځکه چې د غاصب حق هم دومره دې.ځکه چې هغه لپاره په زمکه کي د برقرار ساتلو حکم نشته.اوس ددې طريقه دا ده.چه مخکي د زمکې قيمت د عمارت او وُنو نه بغير اولګولې شي.بيا عمارت او وُنو سره ددې د قيمت اندازه اوکړې شي.چه کوم فرق(فرق) راشي.هغه دې د زمکې مالك غاصب ته ورکړي.

## د مغصوبه کپړې رنګ بدلول يا د څيز د نقصان حکم

| |
|---|
| (وَمَنْ غَصَبَ ثَوْبًا يوکس کپړه غصب کړله.فَصَبَغَهُ أَحْمَرَاو سور رنګ ئې ورکړو.أَوْسَوِيقًا يا ئې ستوان غصب کړل.فَلَتَّهُ بِسَمْنٍ او په غوړو کي ئې ملاؤ کړل.فَصَاحِبُهُ بِالْخِيَارِ،نو مالك ته اختيار دې.إِنْ شَاءَ ضَمَّنَهُ قِيمَةَ ثَوْبٍ أَبْيَضَ که غواړي.د سپينې کپړې قيمت وَمِثْلَ السَّوِيقِ وَسَلَّمَهُ لِلْغَاصِبِ،او هم هغه شان ستوان دې واخلي.او کپړه او ستوان دې غاصب ته ورکړي.وَإِنْ شَاءَ أَخَذَهُمَا اوکه غواړي.هم دا دې واخلي وَغَرِمَ مَا زَادَ الصَّبْغُ وَالسَّمْنُ فِيهِمَا )او کوم رنګ او غوړو سره چې زياتوالې راغلې دې. د هغې معاوضه دې ورکړي. |

**تشريح**> که يوکس د بل چا کپړه غصب کړله.او سور رنګ ئې ورکړو.يا ئې ستوان غصب کړل.هغې کي ئې غوړي ملاؤ کړل.نو مالك ته اختيار دې.که غواړي.د سپينې کپړې د قيمت تاوان او د خپلو ستوانو په مثل ستوان دې واخلي.او دا کپړه او ستوان دې غاصب ته ورکړي.او که غواړي.دا

دواړه دې واخلي.په رنګ او غوړو سره چې کوم زیاتوالې شوې دې.هغه دې ورکړي.د رنګ په مسئله کې د امام مالك رحمه الله په نیز هم دا حکم دی.[1]

**دلیل**> دلیل هم هغه دې.کوم چې وړاندې بیان شوې دې.چه په مذکوره حکم کې د دواړو طرفونو رعایت دې.او د کپړې مالك ته اختیار ځکه ورکړې شو.چه اصل یعنی د کپړې مالك هم هغه دې.

په خلاف د زمکې والا مسئلې، ځکه چې د عمارت وړانولو نه روسته غاصب ته ملبه ( متیریل) یعنی خښتې او لرګی وغیره ملاویږي.او رنګ د لرې کولو نه روسته بربادیږي.په دې وجه غاصب ته د رنګ لرې کولو حکم ورنکړې شو.چه د هغه حق فوت نشي.په خلاف ددې که د هوا په چپو سره کپړه اوچته شوه.او په رنګ کې پریوتله.او رنګینه شوه.نو اختیار به نه وي.ځکه چې ددې صورت کې د رنګ والا هیڅ جرم نشته. تردې چې هغه ضامن اوګرځولې شي.نو کپړې والا به د رنګ قیمت ور کولوسره ددې مالك کیږي.

## غصب سره متعلق متفرق مسئلې

| وَمَنْ غَصَبَ عَيْنًا یوکس مال عین غصب کړو.فَغَيَّبَهَا او غائب ئې کړو.فَضَمَّنَهُ الْمَالِكُ قِيمَتَهَا او مالك د هغې د قیمت تاوان واخستلو.مَلَكَهَا الْغَاصِبُ بِالْقِيمَةِ نو غاصب به په قیمت سره د هغې مالك وي. |
|---|

**تشریح**>که غاصب یوڅیز غصب کړو.او هغه ئې غائب کړو.او مالك ته ئې دهغې د قیمت تاوان ورکړو.نو زمونږ.او د امام مالك رحمه الله په نیز به غاصب ددې مالك کیږي.[2]

لکه یو مدبر غلام غصب کړي.او غائب ئې کړي.او د هغه د قیمت تاوان ورکړي.نو هغه بالاتفاق د هغه نه مالك کیږي.وجه دا ده.چه ملك مشروع دې.او غصب غیر مشروع دې.او کوم امر چې غیر مشروع وي.هغه د مشروع حاصلیدو سبب نه جوړیږي.

**دلیل**> دلیل دا دې.چه مالك د مغصوب شي (څیز) د بدل یعنی ددې د قیمت په کمال طریقه مالك شو.او کوم سړې چې د بدل مالك کیږي.نو مبدل د هغه د ملك نه خارجیږي.او د صاحب بدل په ملکیت کې داخلیږي.چه د بدل د مالك نقصان لازم نشي.البته ددې لپاره دا ضروري ده.چه په مبدل کې د یوملك نه بل ملك ارخ (طرف) ته د منتقل کیدو صلاحیت وي.او دلته کې دا شرط موجود دې.یعنی مبدل قابل د نقل دې.په خلاف د مدبر، چې هغه قابل د نقل نه دې ,,فافترقا،،

## د مغصوبه څیز په قیمت کښې د مالك او غاصب د قول حکم

| (وَالْقَوْلُ فِي الْقِيمَةِ قَوْلُ الْغَاصِبِ مَعَ يَمِينِهِ)او د قیمت په باره کې به قول د غاصب مقبول وي.دده په قسم سره،(إِلَّا أَنْ يُقِيمَ الْمَالِكُ الْبَيِّنَةَ بِأَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ)خو که مالك بینه قائم کړي.ددې نه د زیاتو، |
|---|

**تشریح**>که د مالك او غاصب په مینځ کې د قیمت په باره (باره) کې اختلاف وي.نو د غاصب قول به سره دده د قسم نه مقبول وي.

---

[1] ) **مسلك الشافعي** رحمه الله > امام شافعي رحمه الله د کپړې په مسئله کې فرمائي.چه د کپړې مالك ته اختیار دې. چه خپله کپړه خان سره اوساتي.او غاصب ته اووائي.چه ترکومه پورې ممکن وي.خپل رنګ خلاص کړه.

[2] ) **مسلك الشافعي** رحمه الله > د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په نیز نه مالك کیږي.دوی دا فرمائي.چه غصب خالص ظلم دې.چه دا د نعمت د ملك سبب نشي کیدې.

**دليله**> ځکه چې مالك د زياتوالى مدعى دې.او غاصب ددې منكر دې.او قول د منكر معتبر وى. سره د هغه د قسم نه.البته كه مالك ددې نه په زيات قيمت باندې ګواهان قائم كړى.نو دده بينه به مقبول وى.ځکه چې ده په حجتِ ملزمه سره ثابته كړله.

**فائده**> كه مالك د ګواهانو قائمولو نه عاجز شى.او د غاصب نه د قسم مطالبه اوكړى. حالانكه غاصب سره داسې ګواهان موجود دى.چه هغه د مغصوب د قيمت لپاره ګواهى وركوى.نو د غاصب بينه به نه قبليږى. بلكه د هغه نه به (نه به) قسم اخستلې شى.ځکه چې دده بينه د زياتوالى نفى كوى.او كوم بينه چې په نفى باندې وى. هغه نه قبليږى.بيا بعضو مشائخو ونيلى دى.چه د قسم د اسقاط لپاره د غاصب ګواهان قبليدل پكار دى. لكه چې مودع كه د وديعت دعوه اوكړى.نو د هغه قول قبليږى.او كه هغه په دې باندې ګواهان قائم كړى.نو ګواهان هم قبلولې شى.قاضى ابوعلى نسفى رحمه الله فرمائى.چه دا مسئله مشكله شمارلې شوې ده.او بعضو مشائخو په دې دواړو كې فرق(فرق) كړې دې.او دا خصومت ختم شو.پاتې شو غاصب نو په ده باندې دلته كې قسم او قيمت دوه شيان (څيزونه ) لازم دى.او په ګواهانو قائمولو .سره صرف قسم ساقط شوې دې.نو غاصب د مودع په معنى كې نه دې.

| (فَإِذَا ظَهَرَتِ الْعَيْنُ بيا كه عين مال ښكاره شو.وَقِيمَتُهَا أَكْثَرُ مِمَّا ضَمِنَ او حال دا چې دهغې قيمت ددې نه زيات دې.كوم چې غاصب تاوان وركړو.وَقَدْ ضَمِنَهَا بِقَوْلِ الْمَالِكِ او هغه ددې ضامن د مالك په ونيلو.أَوْ بِبَيِّنَةٍ أَقَامَهَا أَوْ بِنُكُولِ الْغَاصِبِ عَنِ الْيَمِينِ يا ددې بينه قائمولو، يا د قسم نه د غاصب انكار كولوسره شوې وو.فَلَا خِيَارَ لِلْمَالِكِ نو مالك لپاره به هيڅ اختيار نه وى.وَهُوَ لِلْغَاصِبِ او دا شى (څيز) به د غاصب وى. |
|---|

**تشريح**> بيا كه دا مغصوب شى (څيز) په څه وخت كې ښكاره شو.او د هغې قيمت د هغه مقدار،نه زيات دې.دكوم چې غاصب تاوان وركړې دې.او تاوان ئې هم د مالك د قول مطابق، يا دده د ګواهانو مطابق، يا د خپل قسم نه د انكار په سبب سره وركړې دې.نو مغصوب شى (څيز) به د غاصب مملوك وى.او مالك ته به ددې اختيار نه وى.

**دليله**> ځکه چې مالك هم ددې مقدارمدعى وو.او په دې راضى شوې وو.

| ( وَإِنْ كَانَ ضَمِنَهَا بِقَوْلِ الْغَاصِبِ مَعَ يَمِينِهِ اوكه مالك د غاصب قول سره د قسم باندې تاوان اخستې وى. فَالْمَالِكُ بِالْخِيَارِ،نو هغه ته به اختيار وى.إِنْ شَاءَ أَمْضَى الضَّمَانَ،كه غواړى.مذكوره تاوان دې جائز اوګرځوى.وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الْعَيْنَ وَرَدَّ الْعِوَضَ )او كه غواړى.مال عين دې واخلى.اوعوض دې واپس كړى. |
|---|

**الضمان بقول الغاصب**> او كه غاصب د خپل قول موافق قسم خوړلې وى.او تاوان ئې وركړې وى.نو مالك ته به اختيار وى.كه غواړى.مغصوب شى (څيز) دې واخلى.د هغې ضمان دې واپس كړى.اوكه غواړى.هم دا ضمان دې برقرار اوساتى.

**دليله**> ځکه چې دې مقدار سره دده رضامندى نه وه پوره شوې.ځکه چې دې د زيات مدعى وو.او د زياتوالى نه بغير اخستل، صرف په دې وجه وو.چه دده سره ګواهان نه وو.نو رضامندى ثابته نشوه.

**د مغصوبه څيز د زياتوالى حكم**

| (وَوَلَدُ الْمَغْصُوبَةِ وَنَمَاؤُهَا،د مغصوبه وينځې بچې او ددې زياتيدل، وَثَمَرَةُ الْبُسْتَانِ الْمَغْصُوبِ أَمَانَةٌ اود مغصوب باغ ميوې امانت وى. فِي يَدِ الْغَاصِبِ غاصب سره.إِنْ هَلَكَ فِي يَدِهِ د كه ضائع شى د هغه په |
|---|

لاس کې فَلَاضَمَانَ عَلَيْهِ، إِلَّاأَنْ يَتَعَدّٰى فِيهَانو هغه باندې تاوان نشته.خو دا چې غاصب په دې کې تعدی ( ذاتی عمل) اوکړی. أَوْيَطْلُبَهَامَالِكُهَافَيَمْنَعُهَاإِيَّاهُ). يا د مالك په طلب كولو باندې دا منع كړی.

**تشريح**> كه يوه وينځه نې غصب كړله.او د هغې نه بچې پيدا شو.نو د هغې بچې او كوم څه چې د وينځې منافع وی.دغه شان د مغصوب باغ ميوې د غاصب سره د امانت په طور وی.كه دده په قبضه كې وی.او هلاك شی.نو په غاصب به تاوان لازم نه وی.البته كه په دې كې د غاصب د اړخه زياتوالې اوموندې شی.يا د مالك په طلب كولو باندې دا هغه ته ورنكړی.نو ضامن به وی.امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.([1])

**المراد من نماء المغصوبة**> د نماءِ مغصوبه نه مراد حسن او جمال وغيره دې.پاتې شو هغه منافع كوم چې د غاصب په استغلال ( او كوشش) سره حاصل شی.نو هغه د مغصوب د قبيلې څخې نه دی.تردې چې هغې كې زياتوالې كولو سره ضامن شی.كنې (الاأن يتعدى فيها) استثناء به مستقيم نه وی.ځكه چې دا په غاصب باندې مضمون نه وی.اګرچه دا هلاك كړی.ځكه چې دا منافع د مغصوب عوض دې.او زمونږ په نيز د مغصوب په منافعو باندې ضمان نه وی.نو هم دغه شان به ددې بدل هم مغصوب نه وی.

**دليله**> دليل دا دې.چه د غصب معنی ده.د غير په مال باندې خپله قبضه په دې طريقه اچول.چه د مالك قبضه زائل كړی.لكه څنګه چې په پيل د كتاب الغصب كې بيان شو.او دلته په زياتوالی باندې د مالك قبضه د مخكې نه د سره ثابت نه وه.تردې چې غاصب دا زائل كړی.نو مذكوره اختلاف د غصب په تعريف باندې مبنی شو.

## د بچی پيدا كيدو په وجه مغصوبه وينځه كښې د نقصان حكم

(وَمَانَقَصَتِ الْجَارِيَةُ بِالْوِلَادَةِ فهوفِي ضَمَانِ الْغَاصِبِ،او كوم نقصان چې راشی په وينځه كې ، د بچی پيدا كيدو په وجه، نو دا به د غاصب په ضمان كې وی. فَإِنْ كَانَ فِي قِيمَةِ الْوَلَدِوَفَاءٌبِهِنو كه د بچی په قيمت سره نقصان پوره شی. جُبِرَالنُّقْصَانُ بِالْوَلَدِنو هم ددې نه به (نه به) پوره كولې شی. وَسَقَطَ ضَمَانُهُ عَنِ الْغَاصِبِ). او د غاصب نه به (نه به) دا تاوان ساقطيږی.

**حل اللغة: وفاء:** د واجب حقونو پوره كولو لائق مال، **جبر(ن) جبراً:** درست كول،

**تشريح**> يو سړی د يوكس وينځه غصب كړله.او د هغې بچې پيدا شو.نو د بچی پيدا كيدو په وجه چې ددې په قيمت كې كوم نقصان لازميږی.د هغې نقصان به په غاصب وی.خو دا نقصان به ددې په بچی سره پوره كولې شی.كه دده قيمت د نقصان برابر وو.اوكه كم وی.نو د قيمت برابر نقصان ضمان به ساقطيږی. مثلاً د مغصوبه وينځې قيمت سل روپۍ وو.او د بچی پيدا كيدو نه روسته شپيته روپۍ شو.نو كه ددې د بچی قيمت څلويښت روپۍ وی.نو نقصان به پوره كولې شی.او وينځه به سره د بچی مالك ته وركولې شی.او په غاصب به هيڅ واجب نه وی.اوكه د بچی قيمت پنځويشت روپۍ وی.نو په څلويښت روپو كې به پنځويشت روپۍ حسابولې شی.او په غاصب به د پنځلسو روپو ضمان لازم

---

[1] ) امام شافعی او امام احمد رحمهما الله فرمائی.چه د مغصوب شی نه څه قسم زياتوالې حاصل شی.غاصب به دهغې ضامن وی.كه هغه زياتوالې متصل وی.لكه حسن او جمال وغيره يا هغه زياتوالې منفصل وی.لكه بچې وغيره،

وی.خو په قیمت سره نقصان هغه وخت پوره کولې شی.کله چې بچې ژوندې پیدا شی.گنی غره( یعنی دیت سره به نقصان پوره کولې شی).([1])

**دلیله>** دلیل دا دې.چه دلته د زیاتوالی او نقصان دواړو سبب متحد دې.او هغه د بچی پیدا کیدل دی. (د صاحبینو رحمهما الله په نیز) یا نطفه قائمیدل دی.( د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز). او هرکله چې د زیاتوالی او د نقصان سبب یو شی (څیز) دې.نو د بچی پیدا کیدل به نقصان نه شمارلې کیږی.نو دا به موجب د ضمان هم نه وی.او دا داسې شوه.لکه چې غټه موټه ( سربه) وینځه ئې غصب کړله.او هغه کمزوري شوه.او ددې نه روسته بیا سربه شوه.یا ددې مخکی (مخامخ) غاښونه اووتل.روسته بیا راوختل.یا د مغصوب غلام لاس کټ کړې شو.او غاصب جرمانه واخستله.او لاس کټ شوې غلام ئې سره د جرمانې واپس کړو.نو په دې درې واړو صورتونو کې نقصان پوره کیږی.

## غاصب د مغصوب د منافعو نه ضامن کیږی

(وَلَا يَضْمَنُ الْغَاصِبُ مَنَافِعَ مَا غَصَبَهُ إِلَّا أَنْ يَنْقُصَ بِاسْتِعْمَالِهِ او نه ضامن کیږی غاصب، د هغه شی (څیز) د منافعو، کوم چې ده غصب کړې دې.خو دا چې ناقص شی.دده په استعمال سره، فَيَغْرَمُ النُّقْصَانَ )نو هغه به د نقصان تاوان ورکوی.

**تشریح>** غاصب د مغصوب شی (څیز) واپس کولو پورې ددې د منافعو نه ضامن کیږی.که ده دا منافع بالفعل حاصل کړې وی.اوکه مغصوب شی (څیز) ئې بې کاره پریښودې (پریخودې) وی.مثلاً یوسړی د بل کس غلام غصب کړو.او هغه ئې یوه میاشت پورې خان سره بند اوساتلو.تردې چې هغه د منافعو غاصب شو.یا ئې ددې غلام نه خدمت واخستلو.تردې چې هغه د منافعو هلاکونکې شو.نو زمونږ په نیز به هغه ددې منافعو ضامن نه وی.د صدرالاسلام بزدوی رحمه الله په شرح کافی کې دی. (ليس على الغاصب في ركوب الدابة وسكنى الدار أجر اوهو مذهب علمائنا). البته که دده په استعمال سره مغصوب کې څه نقصان راغې.نو د نقصان به ضامن وی. ([2])

**دلیله>** دلیل دا دې.چه کله غاصب د مغصوب ضامن شو.که په قیمت سره وی.او که په مثل سره وی.نو هله دا منافع پیدا شوی دی. نو دا منافع د غاصب په ملکیت باندې پیدا شوی دی.څکه چې هغه دده په امکان او تصرف او قدرت کې دده په فعل او عمل سره حاصل شوی دی.(والكسب للكاسب لقوله عليه السلام كل الناس أحق بكسبه) څکه چې ددې منافعو وجود د مالك په قبضه کې وو.څکه چې منافع اعیان نه دی.بلکه اعراض دی.چه دا باقی نه پاتې کیږی.نو د ضرورت دفع کولو په خاطر به غاصب ددې مالك کیږی.او دا ښکاره ده.چه انسان د خپل ملك نه ضامن کیږی.اوکه د مالك په ملك باندې ددې منافعو حدوث تسلیم کړې شی.بیا هم هغه نشی ضامن کیدې.څکه چې منافع غصب کول یا هلاکول غیر متصور دی.څکه چې ددې باقی پاتې کیدل نا ممکن دی.او په دې وجه هم چې منافع د اعیانو مثل نشی کیدې.څکه چې دا زر فناکیږی.او اعیان باقی پاتې کیږی.حالانکه د زیاتی (او ظلم)

---

[1] )**مذهب الشافعي**:-امام زفر، امام شافعی، او امام احمد رحمهم الله فرمائی. چې د بچی په ذریعه به نقصان نشی پوره کولې.

[2] ) **مذهب الشافعي**:-د امام شافعی او امام احمد رحمهما الله په نیز به د منافعو هم ضامن وی.نو دومره موده چې ددې شی (څیز) کوم اجر مثل جوړیږی.هغه به د غاصب په ذمه واجب وی.

ضمان په مماثلت باندې مبنی دې. قال الله تعالی ﴿فَمَنِ اعْتَدٰی عَلَیْکُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَیْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰی عَلَیْکُمْ﴾

**د غير متقوم څيزونو د ضمان حکم**

وَإِذَا أَتْلَفَ الْمُسْلِمُ خَمْرَ الذِّمِّيِّ أَوْ خِنْزِيرَهُ کله چې هلاك کړي. مسلمان د ذمي شراب، يا دده خنزير ضَمِنَ قِيمَتَهُمَا، نو ضامن به وي. وَإِنْ اسْتَهْلَكَهُمَا الْمُسْلِمُ لِمُسْلِمٍ اوکه دا شيان (څيزونه) ني هلاك کړل، يومسلمان د بل مسلمان، لَمْ يَضْمَنْ) نو ضامن به نه وي.

**تشريح** ددې مسئلې څلور صورتونه دي: ① يو مسلمان د بل مسلمان شراب ضائع کول. ② د ذمي د يو مسلمان شراب ضائع کول. (په کتاب کې دا صورت ذکر نه دې). ③ د يو ذمي د بل ذمي شراب هلاکول. ④ مسلمان د ذمي شراب هلاکول.... په رومبو دوو صورتونو کې په هلاکونکي باندې بالاجماع ضمان نشته. او په آخری دوو کې زمونږ په نيز ضمان واجب دې. په خلاف د امام شافعي.[1]

**دليله** دليل دا دې. چه د ذميانو په حق کې د شرابو او د خنزير قيمتی کيدل باقی دی. ځکه چې دا ددوی په حق کې داسې دی. لکه زمونږ په حق کې چې سرکه او چيلي ده. او مونږ (مونږ) شرعاً هغوی لره د هغوی په دين باندې په پريخودو مامور يو. نو کوم خلق چې ددې د ماليت معتقد دی. د هغوی ابطال توره کيدې شی. حالانکه د ذمي په وجه توره د هغوی د ذمې نه پورته کړې شوې ده. نو حکم لازمول متعذر دی. او هرکله چې ددوی په حق کې تقوم باقی پاتې شو. نو د متقوم مملوك هلاکيدل اوموندې شو. نو ضامن به وی.

# كِتَابُ الْوَدِيعَةِ

**ترجمه** (دا) کتاب د وديعت (ايخودلو په بيان کې) دې.

**تشريح** په کتاب الوديعت او کتاب الغصب کښې مناسبت د تقابل په اعتبار سره دې هغه دا چې په غصب کښې غاصب په زبردستۍ سره د بل په مال قبضه کوی او په وديعت کښې د مودع په اعتماد سره د هغه مال ده سره امانت پروت وی.

**الوديعة لغة:** وديعة په وزن د فعيلة د مفعوله په معنی ده. ودع معنیٰ د مطلق ترك (پريښولو) اووديعت ته وديعت ځکه وائی. چه دا امين (امانتدار) سره پريخودلې شی. اود ودع معنی د محفوظ ساتلو هم ده... يقال ودع وتودم الثوب، کپړه ني محفوظ کړله.

**الوديعة شرعا** په اصطلاح د شرع کې ايداع دې ته وائی. چه دخپل مال په ساتنه کولو بل چاته قابو (او قدرت) ورکړې شی. په دې شرط چې هغه ددې قابل وی. چه هغې باندې قبضه ثابتـه شی. کـه تختيدونکي غلام وديعت کيخودلې شی. يا کوم شئ چې په درياب کې اوغورزيدلو، هغه ني وديعت کيخودلو. نودا صحيح نه ده. کوم شئ چې د بل کس په نګرانۍ (او حفاظت) کي پريخودلې شی. هغې ته وديعت وائی. او ددې جمع ودائع ده.

**الفرق بين الوديعة والامانة** په وديعت او امانت کي فرق دادې. چه امانت عام دې. او وديعت خاص دې. ځکه چې وديعت کي په غير سره حفاظت کول قصداً مطلوب دی. او امانت کله کله د قصد نه بغير هم

[1] **مسلك الشافعي واحمد** امام شافعي او امام احمد فرمائی. که يو مسلمان د ذمي دا شيان (څيزونه) هلاك کړل. نو په دې کې به هم ضامن نه وی.

کیږي.مثلاً هوا د یوکس کپړه اوچته کړله.اود بل کس په کور کي نې اوغورزوله.نودا کپړه د هغه سره امانت ده.او بله دا چې ودیعت د عقد په ذریعه کیږي.په امانت کي عقد ضروري نه دې.بیا په ودیعت کي ،،اعاده الی الوفاق،، سره ضمانت نه لازمیږي.په خلاف د امانت،چه په دې کي ضمان واجبیږي.خو صاحب د نتائج په دې باندې اوګد بحث کړې دې.د هغې خلاصه داده.چه په دې دواړو کي مباینت دې.

### د ودیعت شرعی حیثیت

(اَلْوَدِیْعَةُ اَمَانَةٌ فِیْ یَدِالْمُوْدَعِ ودیعت مودع سره امانت وی. اِذَاهَلَكَتْ فِیْ یَدِهٖ که هلاك شی دده سره. لَمْ یَضْمَنْهَا)نو ضامن نه وی.

**تشریح**> مودع سره مال د ودیعت امانت وی.که دده د فعل (او حرکت) نه بغیر ضائع شی.نو تاوان به نه وی. سفیان ثوری ، امام مالك،امام شافعی رحمهم الله وغیره اکثر اهل علم ددې قائل دی.

**دلیله**> د نبی کریم ﷺ ارشاد دې عن عمرو بن شعیب عن أبیه عن جده «لَیْسَ عَلَی الْمُسْتَعِیْرِ غَیْرِالْمُغِلِّ ضَمَانٌ وَلَا عَلَی الْمُسْتَوْدَعِ غَیْرِالْمُغِلِّ ضَمَانٌ»[1] چې غیرخائن مستعیر باندې ضمان نشته. او نه په غیر خائن مستودع باندې،

### پخپله یا پخپل اهل وعیال سره د ودیعت حفاظت ضروری دی

(وَلِلْمُوْدَعِ اَنْ یَّحْفَظَهَا بِنَفْسِهٖ او مودع ته اختیار دې.چه د ودیعت ساتنه اوکړی.پخپله وَبِمَنْ فِیْ عِیَالِهٖ) یا په ذریعه د هغه چا چې دده په عیال کې دی.

**تشریح**> که مودع د مال ودیعت حفاظت پخپله کوی.یا نې پخپل اهل وعیال کوی.په دواړو صورتونو سره جائز دې.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی.[2]

**دلیله**> ① ابن اسحاق په قوی سند سره ذکرکړې دې. (أنه ﷺ كانت عنده ودائع فلما أراد الهجرأودعها عند أم أيمن وأمرعلياً رضي الله عنه أن يردها على أهلها قال فأقام علی بن أبي طالب رضي الله عنه خمس ليال وأيامها حتى أدى عن النبی ﷺ الودائع ألتي كانت عنده للناس)

② ددې نه علاوه د ودیعت مالك ته دا خبره پخپله هم معلومه ده.چه زه د کوم کس سره ودیعت ایږدم.هغه د ودیعت په وجه نه هر وخت په کور کي کیناستلې شی.او نه ودیعت هر یو ځانې ته د ځان سره اوړلې شی.خامخا به نې د خپل کور والا خلقو سره پریږدی.ددې باوجود چې هرکله هغه ودیعت دده سره ایخودې دې.نو هغه پخپله په دې راضي شوې دې.

**المراد من العیال**> د عیال نه مراد هغه خلق دی.کوم چې دده سره اوسیږی.که حقیقتاً وی او که حکماً وی.که په نان نفقه کي شریك وی.اوکه نه وی.لکه مثلاً ښځه، اولاد، موراو پلار،خاص ګوانډی ، خپل غلام،وینځه وغیره،( خو په ښځه او ولد صغیر کي حقیقي اوسیدل ضروري نه دی ).نو کوم اجنبی چې دده سره اوسیږی. هغه سره د ودیعت په ایخودلو به ضمان نه لازمیږی.بیا ذخیره کي دی.چه اهل وعیال سره د ودیعت ایخودلو جواز هغه وخت دې.کله چې هغه امانت دار وی.ګنی جائز نه دې.په فتاوی

---

[1]) من حدیث عمروبن شعیب عن أبیه عن جده عن النبی ﷺ أخرجه الدارقطنی فی سننه (۳\۴۱)رقم ۱۶۸)۔

[2]) **مذهب الشافعي**:- د امام شافعی او اشهب مالکی رحمهما الله په نیز اهل وعیال سره پریښودل جائز نه دی. که ودیعت ضائع شو.نو ضامن به وی.ځکه چې مالك دا شی صرف د مودع په حفاظت کي ورکړې وو.

ابو الليث كي هم دغه شان دي.په خزانة الفقه كي دي. (لا ضمان على المودع إلا في ثلاثة أشياء التقصير في حفظها او خلطها بماله ومنعها عن مالكها بعد الطلب)

## د خپل اهل و عيال نه علاوه باندې د وديعت حفاظت كولو كښې د ضمان حكم

(فَإِنْ حَفِظَهَا بِغَيْرِهِمْ)نو كه ددوی نه علاوه باندې ئې حفاظت اوكړو.(أَوْ أَوْدَعَهَا غَيْرَهُمْ)يا ئې غير سره وديعت كيخودلو.(ضَمِنَ)نو ضامن به وی.

**تشريح>** كه مودع مال وديعت د خپل عيال نه سوا د بل چا په حفاظت كي وركړو.يا ئې د بل چا سره وديعت كيخودلو.نو ضامن به وی.

**دليله>** ځكه چې مالك د مستودع په قبضې سره راضی دې.دغير قبضې سره (راضی) نه دې.نود غير په قبضه كي وركول، دمالك د رضا نه بغير شو.ممكن ده.

(إِلَّا أَنْ يَقَعَ فِي دَارِهِ حَرِيقٌ خوكله ئې چې د حفاظت خانې په كرايه باندې اخستې وی.چه په دې صورت كې به دحفاظت ذاتی خانې سره حفاظت كونكې وی. البته كه اور اولگی.دده په كوركې ، فَيُسَلِّمَهَا إِلَى جَارِهِ نو وردې كړی.خپل گوانډی ته، أَوْيَكُونَ فِي سَفِينَةٍ يا دې په كشتۍ كي وی. وهويَخَافُ الْغَرَقَ او ده ته د ډوبيدلو خطره وی.فَيُلْقِيهَا إِلَى سَفِينَةٍ أُخْرَى)نو په بله كشتۍ كي دې اوغورزوی.

**تشريح>** د مخكنی قول (فإن حفظها بغيرهم ضمن) نه استثناء ده.مطلب دادې.چه د عيال نه د علاوه په ساتنه كي ور كولو سره د ضمان وجوب هغه وخت دې.كله چې په قصد او اختيار سره وی.كه د مجبورئ په حالت كي ئې وركړو.نو ضامن به نه وی.مثلاً دده په كور كي اور اولگيدلو.په دې وجه ده خپل گوانډی ته وركړو.يا دې په كشتۍ كي سور وو.نود غرقيدلو د يرې ئې په بله كشتۍ كي اوغورزولو.نو ضامن به نه وی.

**دليله>** ځكه چې داسې صورت كي د ساتنه هم دا طريقه متعين ده.چه مالك به يقيناً هم په دې سره راضی وی.بيا كه مودع دا اووائی.چه د ذكرشوی صورت راپيښيدلو په وجه داسې كړی وو.نودا خبره به د گواهانو نه بغير نشی منلې كيدلې.ځكه چې دده د اړخه غير ته وركول اومونډلی شو.چه دا موجب د ضمان دې.او هغه په ذكر شوی قول سره د ضمان ساقطيدلو مدعی دې.نو گواهانو سره ثابتول به ضروری وی.لكه مثلاً كه هغه دا اووائی.چه ماته مودع له د وركولو اجازت راكړې شوې وو.نودا خبره به د گواهانو نه بغير نه قبليږی.

(وَإِنْ خَلَطَهَا الْمُودَعُ بِمَالِهِ حَتَّى لَا تَتَمَيَّزَ كه مودع مال وديعت خپل مال سره ملاؤ كړو.په داسې طريقه چې نشو جدا كيدلې.فَضَمِنَهَا نو ضامن به وی.

**تشريح>** كه مودع وديعت خپل مال سره ملاؤ كړو.نو ددې څلور صورتونه دی. ① خلط په طريقه د مجاورت سره دجدا كيدلو په آسانتيا،يعنی په داسې طريقه ئې يو ځائې كړی.چه جدا كيدلې شی.لكه سپين دراهم د تورو دراهمو سره، يا دراهم د دنانيرو سره، يا غوزان د بادامو سره ملاؤ كړی.نو په دې صورت كي به بلا خلاف ضامن نه وی.

② خلط په طريقه د مجاورت سره د جدا كولو د مشكل كيدلو، يعنی په داسې طريقه ملاؤكړی.چه جدا كول متعذر شی.لكه غنم د اوربشو سره ملاؤ كړی.په دې صورت كي به بلا خلاف ضامن وی.

③ خلط د جنس خلاف جنس سره په طريقه د ملاوټ (او حل كولو)،لكه د كونځلو تيل د زيتون تيلو

سره ملاوول،په دې صورت کې به هم بلا خلاف ضامن وي.

③ خلط د جنس مع الجنس،لکه سپین دراهم د سپینو دراهمو سره ملاوول.یا تور دراهم د تورو دراهمو سره ملاوول. یا غنم د غنمو سره اواوربشې د اوربشو سره ملاوول،دا صورت مختلف فیه دی.د امام ابوحنیفه ، امام شافعي ،اود امام احمد رحمهم الله په نیز به ضامن وي. (۱)

**دلیله** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دې.چه یو خاني کول هرلحاظ سره د ودیعت استهلاك دې.ځکه چې ملاوول یو داسې فعل دې.چه ددې په موجودګئ کې عین حق ته د مودع رسیدل محال (او ناممکن) دی.اود بنده ګانو د اړخه استهلاك هم دادې.چه شئ عیب دار کړي. (وأما إنعدام المحل فبتخليق الله تعالى) پاتې شو تقسیمول نو ددې هیڅ اعتبار نشته.ځکه چې دا خود شرکت د احکامو څنې دی.نودا د شرکت موجب کیدلو نشی لائق کیدلې.یعني هرکله چې په شرکت کیدلو باندې دا حکم کیږي.چه ویش کړې شي.نو ویش داسې شئ نشی کیدلې.چه دا شرکت واجب کړي.

**مذهب الصاحبين** په ذکر شوی څلورم صورت کښې د صاحبینو رحمهما الله په نیز به ده ته اختیار وي.که غواړي.ضمان دې واخلي.او که غواړي .ملاؤ شوي کې دې شریك شي. (وقال مالك رحمه الله شاركه بلا خيار).

**دليلهما** دلیل دادې.چه مودع لپاره عین حق ته رسیدل صورتاً ممکن نه دی.خو معناً ممکن دی.په دې طریقه چې مستودع سره ویش اوکړي.ځکه چې کوم شیان کیل یا وزن کیږي. هغې کې ویش سره بالاجماع جداوالي او تعیین کیږي.په دې وجه شریکینو کې هریو خپله برخه د رضا او قضاء نه بغیر اخستلې شي.نو ودیعت په یو لحاظ سره مستهلك شو.او یو لحاظ سره غیر مستهلك شو.نو که غواړي.د هلاك طرف ته دې مائل شي.ددې د مثل ضامن دې کړي.اوکه غواړي.قیام طرف ته دې مائل شي.او په ملاؤ شوي کې دې شریك شي.

**ثمرة الاختلاف** د امام صاحب او صاحبینو رحمهم الله د ذکر شوی اختلاف ثمره (او نتیجه) ده.چه که مودع یوخاني کونکې بری کړو.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د یوخاني کړې شوی د ویش هیڅ صورت نشته.ځکه چې د دوی په نیز مودع ته صرف د تاوان اختیار وو.کوم چې د مستودع په ذمه واجب وو.او هغه په بری کولو سره ساقط شو.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز بری کولو سره صرف د تاوان اختیار ختم شو.نو په یوخاني کړې شوي مال کې شرکت کول متعین شو.

| (فَإِنْ طَلَبَهَا صَاحِبُهَا فَحَبَسَهَا عَنْهُ)یا که مالك ودیعت طلب کړو.او هغه منع کړو.(وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى تَسْلِيمِهَا ضَمِنَهَا)حالانکه هغه ورکولې شو.نو ضامن به وي. |
|---|

**تشريح** په مذکوره صورت کښې به مودع ضامن وي.

**دليله** ځکه چې هغه منع کولو سره متعدی شو.اودا ځکه چې هرکله مالك ودیعت طلب کړو.نو ددې نه روسته هغه ددې په ایخودلو باندې راضي پاتې نشو. نو په منع کولو سره به ضامن وي.

### د مودع په مال کښې د ودیعت پخپله بغير دده د حرکته د ملاویدلو مسئله

| (وَإِنْ اخْتَلَطَتْ بِمَالِهِ مِنْ غَيْرِ فِعْلِهِ)که ودیعت د مودع په مال کې ملاؤ شو.دده د څه حرکت کولو نه بغیر،(فَهُوَ شَرِيكٌ لِصَاحِبِهَا)نو دې به د ودیعت ایخودونکی انډیوال وي. |
|---|

[1] ) القول الراجح هو قول الإمام الأعظم رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر(٣\٤٧١) وكنز الدقائق (٣٠٤) والبحرالرائق (٧\٢٧٦) وردالمحتار(٤\٥٥٤) والهندية (٤\٣٤٧) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢١٤)۔

**تشریح**> که د ودیعت مال د مودع د عمل نه بغیر دهغه په مال کښې ګډ شو لکه مال ودیعت په یو لوښي کښې وو. او په بل لوښي کښې د مودع خپل ذاتي مال وو. دواړه لوښي مات شول او مال د یو بل سره ګډ شو او تمیز نشو کیدې. نو په دې صورت کښې به دغه مال د صاحب مال او مودع په مینځ کښې مشترك وي او اود شراکت احکام به پرې جاري کیږي.

**دلیله**> په مودع باندې ځکه څه ضمان نشته چې دده په عمل سره په کښې ګډون نه دی راغلی.

(فَإِنْ أَنْفَقَ الْمُودَعُ بَعْضَهَا مودع په ودیعت باندې څه خرچ اوکړو. ثُمَّ رَدَّ مِثْلَهُ که د هغې مثل ئې واخستلو. فَخَلَطَهَا بِالْبَاقِي او باقي کې ئې ملاؤ کړو. ضَمِنَ الْجَمِيعَ) نو د پوره به ضامن وي.

**تشریح**> که مودع د مال ودیعت نه څه خرچ کړې خو بیا ئې هم هغه مقدار د خپل مال نه واپس د هغې سره ملاؤ کړې او بیا دا هلاك شو نو مودع ته به د پوره ودیعت تاوان ورکوي مثلاً د مودع (صاحب ودیعت) پنځه سوه روپئ وې مودع د هغې نه درې سوه اولګولې او بیا ئې په کښې درې سوه کیخودې د دې نه پس دغه پنځه سوه ټولې هلاکې شوې نو په دې صورت کښې به په مودع باندې د ټولو پنځو سوو تاوان راځي.

**دلیله**> چه یو خائې کول هرلحاظ سره د ودیعت استهلاك دې. ځکه چې ملاوول یو داسې فعل دې. چه ددې په موجودګئ کې عین حق ته د مودع رسیدل محال (او ناممکن) دی. اود بنده ګانو د اړخه استهلاك هم دادې. چه شئ عیب دار کړي. نو په ده به ضمان واجب وي.

(وَإِذَا تَعَدَّى الْمُودَعُ فِي الْوَدِيعَةِ کله چې مودع په ودیعت کې تعدی (خپل څه حرکت) اوکړو. بِأَنْ كَانَتْ دَابَّةً په دې طریقه چې هغه حیوان (خاروې) وو. فَرَكِبَهَا په هغې سور شو. أَوْ ثَوْبًا فَلَبِسَهُ یا کپړه وه. هغه ئې واغوستله. أَوْ عَبْدًا فَاسْتَخْدَمَهُ یا غلام وو. د هغه نه ئې خدمت واخستلو. أَوْ أَوْدَعَهَا عِنْدَ غَيْرِهِ یا ئې دا د بل چا سره ودیعت کیخودلو. ثُمَّ أَزَالَ التَّعَدِّيَ بیا ئې تعدی (خپل تصرف) لرې کړو. فَرَدَّهَا إِلَى يَدِهِ او واپس ئې خلی. خپل خان سره کیږدی. زَالَ الضَّمَانُ) نو ضمان ساقط شو.

**تشریح**> که مودع په ودیعت کې څه قسمه تصرف اوکړو. مثلاً ودیعت کپړه وه. نودا ئې واغوستله. یا حیوان (خاروې) وو. په هغې سور شو. یا غلام وو. د هغه نه ئې خدمت واخستلو. ددې نه روسته ده تعدی ختمه کړله. نو ضمان به هم ختمیږي.(1)

**دلیله**> امر بالحفظ یعني ایداع اوس هم باقي ده. ځکه چې د مودع قول، «إحفظ هذا المال»، مطلق دې. چه دا ټولو وختونو ته شامل دې. پاتې شو ارتفاع د حکم یعني عدم ضمان نودا په دې وجه وو. چه ددې نقیض ثابت وو. او هرکله چې نقیض مرتفع شو. نو حکم د عقد بیا راواپس شو.

## د مالك په ودیعت طلب کولو د مودع د انکار حکم

(فَإِنْ طَلَبَهَا صَاحِبُهَا که مالك ودیعت طلب کړو. فَجَحَدَهَا إِيَّاهَا او مودع ددې نه منکر شو. ضَمِنَهَا) نو ضامن به وي.

**تشریح**> که مالك خپل ودیعت طلب کړو. او مودع انکار اوکړو. او وې وئیل. چه ما سره هیڅ ودیعت

(1) **مسلك الشافعي**:- د امام شافعي رحمه الله په نیز د ضمان نه نه بری کیږي. ځکه چې هرکله مودع د تعدی (او تصرف) په وجه ضامن شو. نو عقد ودیعت مرتفع شو.

نشته.نو مستودع به ددې ضامن وی.تردې که ددې نه روسته ضائع شي.نو ده له به د ودیعت تاوان ورکول ضروري وی.

**دلیله>** خکه چې کله مالك دده نه د ودیعت واپس کولو مطالبه اوکړله.نوده د امانت د حفاظت نه مودع معزول کړو.نو ددې نه روسته دې د ودیعت ځان سره ساتلو کي غاصب او منع کونکي شو.نو ضامن به وی.

| فَإِنْ عَادَ إِلَى الِاعْتِرَافِ بیا که ده اقرار هم اوکړو.د عقد د ارتفاع په وجه.لَمْ يَبْرَأْ مِنَ الضَّمَانِ نو د تاوان نه به نه بری کیږی. |
|---|

**تشریح>** که مودع په اول کي د ایداع انکار اوکړو.او مالك ته ئي صفا اووئیل.چه تا ما سره ودیعت نه دې ایخودې.بیا ئي د ودیعت اقرار اوکړو.نو په دې صورت کي به مودع نه بری کیږی.بلکه تاوان به لازم وی.ترکومه ئي چې مالك ته اونه سپاری.

**دلائله>** ① یو خو په دې وجه چې عقد د ودیعت ختم شو.خکه چې د مالك د اړخه د واپسۍ مطالبه کول، عقد د ودیعت اوچتول دی.اود مستودع انکار کول دده د اړخه هم فسخ د عقد ده.لکه د وکیل د وکالت نه انکار کول فسخ د وکالت ده.اود بائع او مشتری د بیع نه انکار کول فسخ د بیع وی.نود دواړو طرفونو نه د عقد ودیعت اوچتول پوره شو.

② دوئم خکه چې ودیعت کي مستودع ته ددې خبرې اختیار وی.چه هغه د مودع په موجودګۍ کي اود هغه په خبریدلو کي کله هم اوغواړی.خپل ځان معزول کړی.لکه چې وکیل ته د مؤکل په موجودګۍ کي د خپل ځان معزول کولو اختیار وی.اوکله چې عقد ودیعت ختم شو.نو هغه به د تجدید نه بغیر نه واپس کیږی.بیا که ده د ودیعت اقرار اوکړو.بیا به هم هغه امین وی.خکه چې نائب مالك ته واپس کول اونه مونډې شو.خکه چې د ودیعت فسخ کولو نه روسته هغه نائب پاتې نشو.

**مودع ودیعت په سفر کښې اوړلې شی او که نه؟**

| (وَلِلْمُودَعِ أَنْ يُسَافِرَ بِالْوَدِيعَةِ مودع لپاره جائز دی.ودیعت په سفر کي اوړل.وَإِنْ كَانَ لَهَا حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ ()اګرچه په دې کي د بار اوړلو خرچه او مشقت وی. |
|---|

**تشریح>** مودع لپاره ودیعت په سفر کي اوړل جائز دی.اګرچه ددې په اوچتولو کي د څاروی یا د اوچتونکي د اجرت ضرورت وی.په دې شرط چې مالك نه وی منع کړې.اود ودیعت ضائع کیدلو خطره نه وی.([2])

**دلیله>** د مودع د اړخه د ودیعت د حفاظت امر کول مطلق دی.نو لکه څنګه چې دا زمانې سره مقید نه دې.هم دغه شان به یو خاص ځائې سره هم مقید نه وی.

**مسلک الصاحبین>** د صاحبینو رحمهما الله په نیز که د بار اوړلو او د خرچې کولو حاجت وی.نو په سفر کي اوړل

---

[1]) القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر(٣\٤٦٩) وردالمحتار(٤\٥٥٦) وخلاصة الفتاوى (٤\٢٨٥) والهندية (٤\٣٤٢) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢١٥)

[2]) **مسلک الشافعي**:-د امام شافعي رحمه الله په نیز دواړو صورتونو کي اوړل جائز نه دی.خکه چې ددوی په نیز د ودیعت حفاظت په متعارف (د عام رواج مطابق) حفاظت باندې محمول دې. ( و هو الحفظ في الأمصار) صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه په فرض کړې شوی صورت کي په ده باندې د بار اوړلو اجرت لازم دې.او بنکاره هم داده.چه مودع به په دې سره نه راضی کیږی.



جائز نه دی.

**دلیلهما>** دلیل دا دې. چې د مالك په ذمه به د واپسۍ خرچه لازم وی. کله چې ودیعت داسې شئ وی. کله چې په دې کې د بار اوړلو خرچه او مشقت وی. او ښکاره هم داده. چه مالك به په دې سره نه راضی کیږی. نو مطلق به ددې سره مقید کولې شی.

**الجواب عنه>** د دې نه جواب دا دې. چه دا خرچه دده په ملکیت کې په دې ارتیا سره لازم شوه. چه دده د ساتنه د حکم تعمیل اوشی. نو ددې خرچې راوستلو به هیڅ پرواه نشی کولې.

**د دوه سړو د مشترك امانت بیان**

| (وَ)إِذَا أَوْدَعَ رَجُلَانِ عِنْدَ رَجُلٍ وَدِيعَةً که دوه سړو د یو کس سره ودیعت کیخودلو. فَحَضَرَ أَحَدُهُمَا بیا په دوی کې یو کس راغې. وَطَلَبَ نَصِيبَهُ مِنْهَا او خپله برخه ئې اوغوښتله. لَمْ يَدْفَعْ إِلَيْهِ شَيْئًا نو مودع به هغه ته هیڅ څه نه ورکوی. عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ حَتَّى يَحْضُرَ الْآخَرُ([1]) تردې چې دوئم سړې راحاضر شی. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز. |
|---|

**تشریح>** دوه سړو څه شئ د مودع سره ودیعت کیخودلو. بیا یو سړې راغی: او د خپلې برخې (حصې) واپس کولو مطالبه ئې اوکړله. نو که دا شئ د ذوات القیم (د قیمت والا) څنې وی. نو مودع لپاره دده برخه ورکول بالاجماع جائز نه ده تر هغه وخته پورې چې دوئم سړې حاضر نشی. او که دا شئ کیلی وی. دامام صاحب رحمه الله په نیز جائز نه دی.

**دلیله>** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې. چه دې خپله برخه نه غواړی. بلکه د غائب برخه هم غواړی. څکه چې دې مفرز (غیرویش شوې) غواړی. حالانکه دده حق مشاع (خور او ګډ) دې. جدا نه دې. او دده برخه به هغه وخت جدا کیږی. کله چې ویش اوشی. او مودع ته د تقسیمولو اختیار نشته.

| وَقَالَا صاحبین رحمهما الله فرمانی. يَدْفَعُ إِلَيْهِ نَصِيبَهُ) چې د هغه برخه به ورکوی. |
|---|

**مسلك الصاحبین>** په مذکوره صورت کښې د صاحبینو رحمهما الله په نیز جائز دی.

**دلیلهما>** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دادې. چه ده کوم څه مودع ته سپارلی وو. یعنی نصف برخه دې دهغې مطالبه کوی. نو ده ته ورکول پکار دی. لکه څنګه چې مشترك قرضه کې کیږی. مثلاً دوه سړو خپل مشترك غلام خرڅ کړو. نو په دوی کې که یو سړې حاضر شی. نو مقروض نه د خپلې برخې (حصې) مطالبه کولې شی.

**فائده>** په فوائد ظهیریه کې دی. چه دې مسئلې ته مسئلة حمامی وائی. ددې قصه داده. چه دوه سړو د حمام مالك ته همیانئ (بټوه) ودیعت ورکړله. او حمام کې داخل شو. بیا په دوی کې یو بهر راووتلو. او همیانی ئې واخستله. او لاړلو. ددې نه روسته دوئم کس راغی: او د همیانئ مطالبه ئې اوکړله. (دا کیدې شی ددوی دواړو سازش وو). د حمام مالك حیران پاتې شو. چه اوس څه اوکړم. نو ده ته چا اوویل. چه ددې تدبیر (چل) امام ابوحنیفه رحمه الله خودلې شی. دې د هغه په خدمت کې حاضر شو. او قصه ئې واورولـه. امام ابوحنیفه رحمه الله اوفرمائیل. تـه هغـه تـه دا مـه وایـه. چه مـا همیانئ ورکړې ده. بلکه داسې وایه. چه ترکومه پورې ستا اندیوال رانشی. همیانئ زه نه درکوم. ده هم داسې اوکړل. نو دغه کس مجبوراً د حمام مالك پرېښولو.

[1]) القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله كذا في العناية (٤٥٩\٧) نقلاً عن القول الراجح (٢١٦\٢)

**د یو بري دوه کسانو سره د امانت ایخودلو مسئله**

(وَإِنْ أَوْدَعَ رَجُلٌ عِنْدَ رَجُلَيْنِ شَيْئًا او که یو کس د دوو سړو سره داسي شئ ودیعت کیخودلو. مِمَّا يُقْسَمُ کوم چي تقسیمیدلي شي. لَمْ يَجُزْ أَنْ يَدْفَعَهُ أَحَدُهُمَا إِلَى الْآخَرِ نو جائز نه دی.دا چي واړه شئ ورکړي.په دوی کي یو کس بل ته. وَلَكِنَّهُمَا يَقْتَسِمَانِهِ بلکه دادي ویش کړي فَيَحْفَظُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفَهُ. بیا دي هر یو ددې د نصف ساتنه اوکړي. وَإِنْ كَانَ مِمَّا لَا يُقْسَمُ او که داشیز داسي دي.چه تقسیمیدلي نشي جَازَ أَنْ يَحْفَظَ أَحَدُهُمَا بِإِذْنِ الْآخَرِ نو په دوی کي یو د بل په اجازت سره ساتنه کولي شي

**تشریح** یوکس دوه سړو سره داسي شئ ودیعت کیخودلو.کوم چي د ویش قابل دي.یعنی په دي کي حسی ویش سره څه عیب نه راځي.لکه مکیلی او موزونی شیان (څیزونه ).نو په دوی کي یو کس لپاره دا جائز نه دی.چه هغه پوره شئ د بل په حفاظت کي ورکړي.بلکه دوی دواړه دي دا ویش کړي.اود نصف نصف حفاظت دي اوکړي.البته که دا شئ د ویش قابل نه وي.لکه غلام، سوارلئ، یوه کپړه، تهال ( کاسه) وغیره.نو په دې کي دا جائز دی.چه په دوی کي یوکس د دوئم په اجازت سره ددې حفاظت اوکړي.دا د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دی.اود دوه مرتهنینو ( گانړه ایخودونکو ) او د اخستلو د دوه وکیلانو حکم هم ددوی په نیز هم دغه دي. (وكذا المستبضعين والوصيين والعدلين) د رهن مثال لکه مثلاً زید د دوه کسانو سره داسي شئ رهن کیخودلو.چه د ویش قابل وو.او په دوی کي یو کس هغه شئ بل ته اوسپارلو.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به ددې برخي (حصي) ضامن وي.اوکه دا شئ ویش قابل نه وي.نو یو مرتهن د دوئم په اجازت سره ددې حفاظت کولي شي.د اخستلو د وکیل مثال لك مثلاً زید دوه کسان د یو شئ اخستلو لپاره وکیل کړل.او دوی ته ئې داسي مال ثمن ورکړو.چه هغه د تقسیمیدلو قابل دي.او په دوی کي یو وکیل هغه واړه مال دوئم وکیل ته ورکړو.اود هغه نه دغه مال ضائع شو.نو ورکونکي به د نصف ضامن وي.

**دلیله** د ا مام صاحب رحمه الله دلیل دادي.چه مودع ددوی دواړو ساتنه کولو سره راضی شوي دي.په دي امر نه دي راضی شوي.چه په دواړو کي هم یو سړي د پوره ودیعت ساتنه اوکړي.وجه داده.چه هرکله د ساتنه فعل داسي شئ اړخ ته مضاف وي.کوم چي د تجزی صفت قبلوی.نو هغه جزء ته شاملیږي.کل ته نه شاملیږي.نو خپله برخه بل ته سپارل، د مالك د رضامندئ نه بغیر شو.نو ورکونکي به ضامن وي.البته قابض به ضامن نه وي.څکه چي د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مودع المودع نه ضامن کیږي.

په خلاف د هغه ودیعت کوم چي ناقابل ویش وي.چه په دوی کي هر یو ته بل ته د سپارلو اجازت دي.څکه چي هرکله مودع دا دواړو سره ودیعت ایخودي دي.او هغه پوهیږي.چه په شپه ورځ کي هروخت ددوی دواړو یوځائي اوسیدل ممکن نه دی.نودا ددي خبري دلیل دي.چه هغه ددوی په وار وار ساتنه کولو باندي راضی دي.

**مسلك الصاحبين** صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه ودیعت که د ویش قابل وي.اوکه نه وي.په دواړو صورتونو کي دوی کي هر یو مودع ته دا اختیار دي.چه د دوئم په اجازت سره ساتنه اوکړي.

**دلیلهما** دلیل ښکاره دي.چه مودع د دواړو امانت سره راضی دي. نو هر یو ته به اختیار وي.چه بل ته ئې اوسپاری او ضامن به نه وي. لکه څنگه چي په غیرقابل قسمت شئ کي دی.

**د صاحب ودیعت د قول خلاف بنځي ته په ودیعت ورکولو د ضمان مسئله**

(وَإِذَا قَالَ صَاحِبُ الْوَدِيعَةِ لِلْمُودَعِ کله چي صاحب ودیعت مودع ته اووئیل. لَا تُسَلِّمْهُ إِلَى زَوْجَتِكَ چي دا

خپلې ښځې ته مه ورکوه. فَسَلَّمَهَا إِلَيْهَا هغه خپلې ښځې ته ورکړو. لَا يَضْمَنُ. نو ضامن به نه وي.

**تشریح>** مودع (بکسر الدال)، مودَع (بفتح الدال) منع کړو .چه ودیعت خپلې ښځې ته مه سپاره. مودَع ښځې ته اوسپارلو. نو هغه به ضامن وي. یعنی که د مودع د منع کولو باوجود مودَع ودیعت اوسپارلو. نو ددې به دوه صورتونه وي. ① یو دا چې هغه ته د ودیعت سپارلو نه بغیر خلاصې نه وو. ② او دوئم دا چې د ودیعت سپارلو نه خلاصې وو. (یعنی د سپارلو هیڅ ضرورت نه وو). که هیڅ خلاصې نه وو. مثلاً ودیعت د سوارلۍ یو حیوان (څاروي) وو. د هغې باره کې مودع اووئیل. چه خپل غلام ته ئې مه ورکوه. حالانکه د ونډې او اوبه وغیره ورکولو لپاره غلام ته د ورکولو نه بغیر خلاصې نشته. یا دا ودیعت څه داسې شئ دې. چه دهغې حفاظت په ښځو سره کولې شي. نو مودع ښځې ته د ورکولو نه منع کړو. نو په داسې صورت کې به مودع ضامن نه وي.

**دلیله>** ځکه چې د مودع د شرط لحاظ ساتلو سره د حفاظت عمل ناممکن دې. نو ذکر شوې شرط اګرچه دده په حق کې مفید وي. خو لغوه به وي. اوکه ودیعت داسې شئ وي. چه ددې د ورکولو نه بغیر خلاصې وي. مثلاً د سپینو زرو ګتمه ده. چه دا خپل ځان سره ساتلې شي. نو په داسې صورت کې به خلاف ورزی کولو سره ضامن وي. ځکه چې دا شرط مفید هم دې. (ځکه چې د سړی بعض عیال (د کورخلق) د اعتماد قابل نه وي) او دده نګرانۍ سره حفاظت کول ممکن هم دي.

(وَإِنْ قَالَ لهٔکه مودع ده ته اووئیل. احْفَظْهَا فِي هَذَا الْبَيْتِ چې د ودیعت ساتنه په دې اطاق کې کوه. فَحَفِظَهَا فِي بَيْتٍ آخَرَ مِنَ الدَّارِ او هغه د کور په بله اطاق کې ساتنه اوکړو. لَمْ يَضْمَنْ) نو ضامن به نه وي.

**تشریح>** اوکه صاحب ودیعت مودع ته اووئیل. چه ودیعت په دې اطاق کې کیږده. مودع ددې کور په بله اطاق کې کیخودلو. نو ضامن به نه وي. د استحسان په طور، د قیاس په طور ضامن کیدل پکار دی.

**دلیله>** ځکه چې کله کله دوه کمرې هم د ساتنه په لحاظ سره متفاوت وي. مثلاً د یوې کمرې شا کوڅې ارخ ته ده. چه په دې کې غل آسانتیا سره غار کولې شي. اود بلې کمرې شا د کور په مینځ کې ده. چه هغې کې دا خطره نشته. وجه د استحسان داده. چه لکه څنګه د مودع دا وئیل، چه د کمرې په دې ګوټ کې ئې کیږده. یا په دې صندوق کې کیږده. د غیر مفید کیدلو په وجه معتبر نه دی. دغه شان د کمرې په مسئله کې هم معتبر نه دی.

(وَإِنْ حَفِظَهَا فِي دَارٍ أُخْرَى اوکه په بل کور کې ئې ساتنه اوکړو. ضَمِنَ) نو ضامن به وي.

**تشریح>** اوکه مودع د بل کوره په اطاق کې ساتنه اوکړو. نو په ضائع کولو سره به ضامن وي.

**دلیله>** ځکه چې د ساتنه په حق کې دوه کورونه متفاوت وي. بعض کور زیات محفوظ وي. او بعض کم وي.

البته که په تحفظ کې برابر وي. یا دوئم د رومبی نه هم زیات محفوظ وي. او بیا ضائع شي. نو مودع باندې به تاوان نه وي.

# كِتَابُ الْعَارِيَةِ

**ترجمه>** (دا) کتاب د عاریت (په بیان کې) دې.

**تشریح>** ددې د مناسبت وجه خو د کتاب الودعة په پیل کې بیان شوې ده. چه په دې کې هر یو امانت دې.

**د عاريت لغوي تحقيق** لفظ د عاريت د یاء په تشدید سره افصح دی.او تخفیف هم جائز دی.لکه څنګه چې قاموس کې دی.علامه مرغیناني رحمه الله دا د عریه په معنی د عطیه منلې دی.چه په دې علامه بدرالدین عیني رحمه الله وغیره مناقشه کړې ده.چه په راروانو صفحاتو کې ذکرکولې شي.ان شاء الله.

**فائده** دعاریت ورکولو په محاسنو کې یو ښه صفت دا هم دی.چه مستعیر د خپل حاجت او ضرورت په وجه مضطر او مجبوره وی.اود الله تعالی ارشاد دی. ﴿أَمَّن يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ﴾ آیا څوك آوری.د بې قراره (ضرورت مند) کله چې هغه ده ته آواز اوکړی.نو معیر مستعیر ته عاریت ورکولو سره د هغه په فریاد اوریدلو او حاجت پوره کولو کې ګویا د الله تعالی نائب او په حکم د حدیث (تخلقوا بأخلاق الله) متخلق باخلاق رباني (د خدائی صفاتو مالك) شو.

**د عاريت شرعي حيثيت**

| (الْعَارِيَةُ جَائِزَةٌ) عاریت جائز دی. |
|---|

**تشريح** د عاریت شرعی حکم دادې.چه دا جائز دی.(په ورکولو کې ثواب او په اخستلو کې هم څه عیب نشته).

**دلائل جوازه** ① شیخ موفق په المغني کې وئیلی دی.چه د عاریت په جواز او ددې په استحباب باندې د مسلمانانو اجماع ده.څکه چې دا یو قسم احسان دی. ﴿أَمَّن يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ﴾ ② حاکم د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه نه په مختلفو الفاظو سره روایت کړې دی.چه (أن النبي ﷺ استعار منه دروعاً يوم حنين فقال أغصباً يا محمد! ﷺ قال بل عارية مضمونة) (۱)

**د عاريت تعريف او اصطلاحي تحقيق**

| (وَهِيَ تَمْلِيكُ الْمَنَافِعِ بِغَيْرِ عِوَضٍ) او عاریت د منافعو مالك جوړول دی.د عوض نه بغیر، |
|---|

**تشريح** **العارية شرعاً** په اصطلاح د شرع کې د عامو عالمانو په نیز د عوض نه بغیر د تملیك منافعو ته عاریت وائی.کوم کس چې مالك جوړوی.هغه ته معیر وائی.او کوم کس چې مالك جوړ کړې شي.هغه ته مستعیر، او کوم شئ چې د منفعت مالك جوړکړې شي.هغه ته عاریت او مستعار وائی.د افواه اودی شعر دی.~**إنما نعمة قوم متعة وحياة المرء ثوب مستعار**

**فائده** په تعریف کې د بلا عوض قید سره اجاره اووتله.چه په دې کې اګرچه د منافعو تملیك کیږی. خو بلاعوض نه کیږی.عاریت ورکول یو قسم نیکی او احسان دی.او عقد تبرع (نیکی) صرف ایجاب باندې موقول کیږی.په دې وجه فتاوی عالمګیری کې دی.چه د عاریت رکن صرف د معیر د اړخه ایجاب کیدل دی.پاتې شو د مستعیر د اړخه قبلول، نو زمونږ د اصحاب ثلاثه په نیز د احسان په رو سره شرط نه دی.بیا د ایجاب قولی کیدل ضروری دی.لکه چې خانیه کې دی.که یو کس عاریت اوغوښتلو.او معیر خاموش پاتې شو.نودا به عاریت نه وی.البته د قبول قولی کیدل هیڅ ضروری نه دی.فعلی هم کیدې شي.مثلاً معیر اووئیل.چه دا کپړه د عاریت په طور باندې واخله.مستعیر خپل

۱) من حديث أمية بن صفوان بن أمية عن ابيه صفوان بن أمية رضي الله عنه اخرجه ابودود فى البيوع باب ۸۸ رقم ۳۵۶۲ والنسائى فى السنن الكبى (۱۳\۴۱۰) رقم ۵۷۷۹ والبيهقى فى السنن الكبرى (۶\۱۴۷) رقم ۱۱۴۷۸ وفى معرفة السنن والآثار رقم ۵۷۷۹ـ

لاس ور ورانديږ کړو.او کپړه ئې واخستله.

**عاريت په کومو الفاظو سره صحيح دی؟**

(وَتَصِحُّ بِقَوْلِهِ أَعَرْتُكَ)او عاريت صحيح دی.په دی ونيلو چې ما تاته عاريت ( ستا په غوښتلو) درکړو.لِأَنَّهُ صَرِيحٌ فِيهِ خکه چې دا لفظ په دی کې صريح دی.(وَأَطْعَمْتُكَ هَذِهِ الْأَرْضَ)او خوراك لپاره مې دا زمکه درکړله.لِأَنَّهُ مُسْتَعْمَلٌ فِيهِ خکه چې دا لفظ هم په دی معنی کې مستعمل دی.

**تشريح>** مذکوره عاريت په لاندينو الفاظو سره صحيح کيږی. (أعرتك)خکه چې دا لفظ عاريت لپاره صريح او حقيقت دی.(أطعمتك أرضی)

**دليله>** خکه چې دا لفظ هم په دی معنی کې مستعمل دی.خکه چې کله د لفظ،،اطعام،، اضافت غير ماکول العين طرف ته اوشی.نو هغې نه مجازاً حال باندی د محل اطلاق کولو سره د هغې پيداوار مراد اخستلې شی.دلته يو سوال په ذهن کې راتلې شی.هغه دا چه،

**السوال>** دا استعمال مجاز متعارف وی.او مجاز متعارف هم صريح وی.لکه څنګه چې اصول کې ذکر دی.نو په دواړو عبارتونو کې هيڅ فرق اونشو؟ ددی سوال جواب دادی.

**الجواب>** چه ذکر شوی دواړه لفظونه صريح دی.خو يو حقيقت دی. او دوئم مجاز دی.خکه د اصولو د عالمانو په نيز صريح هغه دی.چه د هغې مراد د خپل ذات نه واضح وی.نو دا حقيقت غيرمهجوره او مجاز متعارف دواړو ته شامل دی.

(وَمَنَحْتُكَ هَذَا الثَّوْبَ او اومې بخښله تاته دا کپړه، وَحَمَلْتُكَ عَلَى هَذِهِ الدَّابَّةِ او سور مې کړلې ته په دی خاروی باندی،

**تشريح>** په دی عبارتونو سره هم عاريت صحيح دی.

**دليله>** خکه چې د ،،منحتك،، معنی ده. (أعطيتك،يقال منحه(ف،ض) منحاً الشئ)په معنی د عطاء کولو( اوبخلو)، ددی نه منحه او منيحه هم دی. دا د پيو والا هغه وزه يا اوښې ته ونيلې شی.کومه چې چاته د پيو ورکولو لپاره ورکړې شی.او کله چې پئ ختم شی.نو مالك ته ئې واپس کړی.بيا په هره عطاء ( ورکړه او بخشش) کې ددی استعمال زيات شو.په دی وجه (حمل الأمير فلاناً)ونيلې شی.او ددی نه مراد تمليك وی.نو په منحت او حملت کې هر يو د تمليك منفعت او تمليك عين لپاره حقيقت دی.نو د نيت کيدلو چه وخت به عاريت باندی محمول وی.چه دا متيقن دی.( خودا هغه وخت دی.کله ئې چې دی سره د هبې نيت نه وی کړی).

(وَأَخْدَمْتُكَ هَذَا الْعَبْدَ)او د خدمت لپاره مې درکړو، تاته دا غلام،

**تشريح>** په اخدمتك عبدی ونيلو سره به هم عاريت وی.

**دليله>** خکه چې دا د استخدام اجازت دی.تمليك نه دی.

(وَدَارِي لَكَ سُكْنَى)او زما کور ستا د اوسيدلو لپاره دی.

په(داری لك سكنى) سره به هم عاريت وی.

**دليله>** خکه چې لفظ د سکنی منفعت کې محکم دی. نو د ،،لك،، لام به په تمليك د منافعو محمول کولې شی.خکه چې دا ددی محتمل دی.

(وَدَارِي لَكَ عُمْرَى سُكْنَى)او زما كور ستا د واړه عمر اوسيدلو لپاره دي.

**تشريح>** په (داري لك عمرى سكنى،، ونيلو سره هم عاريت دي.

**دليله>** ځكه چې ده د خپل كور سكونت ( اوسيدل) دده لپاره تر عمره پورې اوګرځولو.ځكه چې لفظ سكنى ونيل د لفظ،،لك،، تفسير دې.ځكه چې دا ځنګه هبې ته محتمل دې.دغه شان تمليك د منافعو ته هم محتمل دې.نو آخرى كلمه يعنى د سكنى دلالت سره به هم په دې معنى باندې محمول كولې شي.

(وَلِلْمُعِيرِ أَنْ يَرْجِعَ فِي الْعَارِيَةِ مَتَى شَاءَ)او معير ته اختيار دې.چه واپس واخلى عاريت كله چې غواړي.

**تشريح>** معير چې كله اوغواړي.خپل شئ واپس اخستلې شي.عاريت مطلقه وي.او كه موقته ( نيته دار) وي.

**دلائله>** ① ځكه د نبى كريم ﷺ ارشاد دې. { الْمِنْحَةُ مَرْدُودَةٌ وَالْعَارِيَةُ مُؤَدَّاةٌ }(١)چې وركړې شوې شئ به واپس كولې شي. او غوښتلې شئ به واپس وركولې شي.

② په دې وجه هم چې منافع څومره قدرې پيدا كيږي.هم هغه حساب سره لږ لږ په ملك كې راځى.نو كوم منافع چې اوس په وجود كې نه دى راغلى.هغې سره د تمليك قبضه نه ده متصل شوې.آود قبضې نه وړاندې رجوع كول صحيح نه دى.

**عاريت امانت دې او كه مضمون؟**

(وَالْعَارِيَةُ أَمَانَةٌ فِي يَدِ الْمُسْتَعِيرِ)او عاريت امانت دې په لاس د مستعير كښې(إِنْ هَلَكَ مِنْ غَيْرِ تَعَدٍّ)كه د تعدى (دتصرف) نه بغير هلاك شي.(لَمْ يَضْمَنْ المستعير)نو ضامن به نه وي مستعير

**تشريح>** زمونږ په نيز دعاريت شئ امانت وي.اوس كه هغه پخپل حال قائم وي.نودا بلاخلاف واپس كول ضرورى دى.اوكه هغه ضائع شو.نو كتلې به شي.چه د مستعير تعدى او زياتې كولو سره ضائع شوې دې.او كه بغير د تعدى (او حركت) نه هلاك شوې دې.كه د مستعير د تعدى نه بغير ضائع شوې وي.نو په ده به ضمان لازم نه وي.قاضى ابن شبرمه د كوفې د قضاء په زمانه كې متواتر ديرش كاله پورې په دې مسئله باندې عمل كونكې پاتې شوې وو.امام مالك، سفيان ثورى، اوزاعى ﷺهم ددې قائل دى.اوهم دا د حضرت على ، ابن مسعود، عمر، جابر ﷺ،اود حسن، ابراهيم نخعى ، شعبى ، عمربن عبدالعزيز ﷺنه نقل دى.د امام مالك ﷺ نه دا هم نقل دې.كه عاريت حيوان (څاروې) وي.نو ضامن به نه وي.او كه زيورات او كپړې وغيره وي.نو ضامن به وي.(٢)

١) من حديث أبي امامة ﷺ اخرجه أبوداود في البيوع بب ٨٨ رقم ٣٥٦٣ والترمذى في الوصايا باب ٥ وابن ماجه في الصدقة باب ٥ واحمد في المسند (٥\٢٦٧) والدالقطنى في سننه (٣\٤٠) رقم ١٦٥ وَالنسائى في السنن الكبرى (٣\٤١١) رقم ٥٧٨٢)_

٢) **مسلك الشافعي:**- د امام شافعى او امام احمد ﷺ په نيز كه عاريت هلاك شي.نو مستعير به ضامن وي.هم دا د عطاء او اسحاق قول دې.اودا د حضرت ابن عباس او حضرت ابوهريره ﷺ نه هم نقل دى.( د امام شافعى ﷺ نه يو قول دا هم نقل دې.چه دا په معتاد ( عام) استعمال سره هلاك شو.نو ضامن به نه وي.ګنى ضامن به وي.خو دا قول ددوى په نيز ضعيف دې)

**دلائله>** ① عن علي رضي الله عنه قال ليس العارية مضمونة انما هومعروف الاان يخالف فيضمن.[1]

② د مستعير د اړخه د ضمان د وجوب هیڅ سبب اونه موندې شو.ځکه چې سړی باندې ضمان دده د فعل نه بغیر نه واجبیږی.اود مستعیر د اړخه چې ښکاره کوم فعل اوموندې شو.هغه عقد عاریت او قبضه ده.چه په دې کې یو هم د ضمان سبب نشي کیدلې.د عقد موجب ضمان نه کیدل ځکه دی.چه په کوم لفظ سره عقد عاریت منعقد کیږی.په هغې کې د ضمان د التزام هیڅ ذکر نشته.ځکه چې عقد عاریت د تبرع په طریقه د منافعو مالك جوړول، یا دمنافعو مباح کول دی.(علی اختلاف الاصلین) اود کوم لفظ وضع چې د منافعو د تملیك لپاره وی.هغې کې عین شئ سره هیڅ تعارض نه وی.تردې چې ددې په ضائع کیدلو سره ضمان لازم شي.اود قبضې موجب ضمان کیدل ځکه دی.چه دغیر په مال باندې د هغه د اجازت نه بغیر قبضه کول د ضمان د وجوب سبب نه وی.ځکه چې دې قبضې سره خو د مال عین صیانت او حفاظت دې.نودا دده دارخه یو قسم له احسان دې. ﴿مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِن سَبِيلٍ﴾ نو اجازت سره د قبضه کولو په صورت کې به په طریقه اولی د ضمان سبب نه وی.او په دې وجه هم چې ماذون قبضه (دمالك په اجازت سره قبضه) تعدی (او زیاتې) نه وی.ځکه چې دې سره د اصل مالك قبضه نه فوت کیږی.حالانکه ضمان په تعدی کولو باندې وی.قال الله تعالی ﴿مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِن سَبِيلٍ﴾

## د عاریت څیز په کرایه باندې د ورکولو بیان

> (وَلَيْسَ لِلْمُسْتَعِيرِ أَنْ يُؤَاجِرَ مَا اسْتَعَارَهُ) او جائز نه دی.مستعیر لپاره چې په کرایه باندې ورکړی.هغه شئ کوم چې ده په عاریت باندې اخستې دې.فَإِنْ آجَرَهُ که په کرایه ئې ورکړو.فَهَلَكَ او هلاك شو.ضَمِنَ) نو ضامن به وی.

**تشریح>** مستعیر د عاریت شئ عاریت باندې نشي ورکولې.

**دلیله>** ځکه چې اجاره د معاوضه کیدلو په بناء باندې د اعارې نه زیات دې.او اعاره د دې نه کمه ده.او شئ د ځان نه زیات ته نه متضمن کیږی.

**الاشکال>** په دې باندې دا اشکال کیدې شی.چه هرکله مستعیر د معیر د اړخه دمنفعت مالك دې.نو اجاره باندې ورکول جائز کیدل پکار دی.چه دده تصرف هم باقی پاتې شی.اود معیر د واپس اخستلو حق هم منقطع نشی.بلکه د واپس اخستلو حق باقی کیدل به د اجارې د نقض عذر جوړشی.

**الجواب>** چه د اجارې جائز کیدلو دوه صورتونه دی. ① یا به لازم منعقد وی. ② یا به غیر لازم منعقد وی.که غیر لازم منعقد وی.نو قلب موضوع لازمیږی.ځکه د اجارې وضع داده.چه دا لازم وی.اوکه لازم منعقد وی.نو معیر ته زیاتی ضرر لاحق (متعلق) کیږی.ځکه چې هغه د اجارې موده تیریدلو سره قبول واپس نشی اخستلې.هرکله چې دواړه صورتونه ناممکن دی.نو اجاره به جائز نه وی.تردې که ده د عاریت شئ اجاره باندې ورکړو.او هغه ضائع شو.نو مستعیر ئې چې کله هم مستاجر ته ورسپاری.هم هغه وخت به ضامن وی.ځکه چې هرکله عاریت ورکولو کې اجاره باندې د ورکولو اختیار شامل نه دې.نوګویا مستعیر هغه شئ غصب کړو.اود غصب حکم د ضمان وجوب دې.

---

[1] مصنف عبدالرزاق (۸/ ۱۷۹)-

## د مستعير لپاره د عاريت څيز په عاريت باندې د ورکولو حکم

| |
|---|
| وَلَهُ أَنْ يُعِيرَهُ او مستعير د عاريت شئ په عاريت باندې ورکولې شي. إِذَا كَانَ المستعار مِمَّا لَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْمُسْتَعْمِلِ كله چې دا د مستعمل په بدلولو سره نه متغير كيږي. |

**تشريح** کوم شيان چې په اختلاف د مستعمل سره نه مختلف کيږي. يعنى په دې کې څه فرق نه راځي. لکه په څاروی باندې بوج بار کول، د غلام نه خدمت اخستل، په زمکه کې زمينداري کول، په کور کې رهائش او اوسيدل اختيارول، وغيره. نو داسې شيان مستعير بل ته په عاريت ورکولې شي. امام مالک رحمه الله او په يو قول کې امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې.[1]

**دليله** عقد عاريت د منافعو د تمليك نوم دې. ددې د اباحت نوم نه دې. لکه څنګه چې مونږ د ،، کتاب العاريه،، په پيل کې ذکر کړی دی. چه کله معير مستعير د عاريت د منافعو مالک جوړ کړو. نو هغه بل کس مالک جوړولې شي. څکه چې شئ خپل مثل ته متضمن کيږي. لکه مثلاً که يو کس د خپل غلام د خدمت زيد لپاره وصيت اوکړو. نو خدمت لپاره ئې بل چاته ورکولې شي.

## د کومو څيزونو عاريت قرض دې ؟

| |
|---|
| (وَعَارِيَةُ الدَّرَاهِمِ وَالدَّنَانِيرِ وَالْمَكِيلِ وَالْمَوْزُونِ قرض) د دراهمو، دنانيرو، او کيلی ، او وزني او د عددي ( د شمار) څيزونو عاريت ورکول قرض دې. |

**تشريح** دراهم او دنانير، کيلي او وزني او عددي متقارب لکه غوزان او هګۍ، دغه شان مالوچ، وړۍ، کچه ريښم، او کافور وغيره شيان عاريت ورکول د قرض په حکم کې دی. يعنی ګويا د معير قول د ،، اقرضتك،، په مرتبه کې دې. شيخ کاکی رحمه الله په حواله د شرح وجيز ذکر کړی دی. چې په دې باره کې د هيڅ چا اختلاف معلوم نه دې. سوا ددې نه کوم چې د بعض اصحاب شافعي رحمه الله نه نقل دی. چه دا اعاره فاسده ده. نو په يوه وجه کې به ضامن وی. لکه څنګه چې اعاره صحيحه کې ضامن کيږي. او يوه وجه کې به ضامن نه وی. څکه چې دا اعاره فاسده ده. خو په روضه کې دی. چې د غلې اعاره قطعی طور باندې اود دراهمو او دنانيرو اعاره د صحيح قول مطابق جائز نه ده.

**دلائله** ① د ذکرشوی څيزونو د اعارې قرض کيدل څکه دی. چه اعاره کې د منافعو تمليک کيږي. حالاتکه د ذکر شوی څيزونو نه انتفاع د عين د استهلاک نه بغير کيدې هم نشي. بلکه صرف په دې طور باندې کيدې شي. چه ددې عين په کار کې راوستلو او خرچ کولو سره کړې شي. نو دا عاريت د ضرورت په وجه دې امر ته مقتضي دې. چه معير مستعير ته ددې څيزونو د عين مالک جوړ کړو. اودا خبره په دوه خبرو سره ممکن ده. [1] يوه داچه هغه هبه کړو. [2] دويمه دا چې قرض ئې ورکړو. او په دې دواړو کې کم تر قرض دې. نو هم دا به ثابت وی.

② د ذکرشوی څيزونو د اعارې نه د قرض کيدلو دوئم دليل دادې. چه د اعارې د حکم مقتضي داده. چه

---

[1] د امام شافعي رحمه الله په دونم قول کې ددې اجازت نشته. امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې. څکه چې ددوی په نيز اعاره کې د منافعو اباحت وی. اود کوم کس لپاره چې څه شئ مباح کړې شي. هغه ته ددې شئ د بل لپاره د مباح کولو اجازت نه وی. څکه چې منافع بالفعل د نه موجود کيدلو په وجه قابل دملك نه دی. او په اجاره کې چې کوم دا موجود منلې شوې دې. دا د ضرورت په وجه دې. او په عاريت کې دا ضرورت د مباح کولو په ذريعه ختميږي. ( فلا يصار الى التمليك).

مستعير د مستعار شئ نه نفع واخلي.اودا بعينه واپس کړي.اود استهلاك په وجه ددې په بعينه واپس کولو نه دي عاجز دې.نو ددې مثل واپس کول د عين شئ واپس کولو قائم مقام کړې شوې دې.او دغه قرض دې.

**مستعير لپاره د عاريت په زمکه کښې د عمارت جوړولو يا ونو لګولو حکم**

| (وَإِذَا اسْتَعَارَ أَرْضًا کله چې مستعار واخلي زمکه ، لِيَبْنِيَ فِيهَا چې په دې کې عمارت جوړکړي.أَوْ لِيَغْرِسَ فِيهَا يا په دې کې ونې ( باغ) اولګوي. جَازَ نو دا جائز دی. وَلِلْمُعِيرِ أَنْ يَرْجِعَ فِيهَا او معير ته اختيار دې.چه واپس واخلي. وَيُكَلِّفَهُ قَلْعَ الْبِنَاءِ وَالْغَرْسِ)او مستعير ته د عمارت ورانولو ،اود ونو کښ کولو حکم اوکړي. |
|---|

**تشريح**﴾ يوکس دکور جوړولو يا باغ لګولو لپاره زمکه عاريت باندې واخستله .او په دې کې نې عمارت جوړکړو.يا باغ اولګولو.نودا جائز دی.خو معير په ده باندې ونې وغيره اوبنکلې شي. او خپله زمکه واپس اخستلې شي.اوس که هغه د عاريت هيڅ وخت معين کړي نه وو.نو په دې صورت کې معير باندې د ونو اوبنکلو هيڅ تاوان نه لازميږي.خکه چې مستعير پخپله دهوکه خوړلې ده.چه د وخت د تعين نه بغير راضي شوي دې.معير دهوکه نه ده ورکړې.

**دليله**﴾ جواز په دې وجه دې. چې دا هم يو معلوم منفعت دې. چې په ذريعه د اجارت مملوك وی. نوهم دغه شان به اعارې سره هم وی.

| فَإِنْ لَمْ يَكُنْ وَقَّتَ الْعَارِيَةَ نوکه معير د عاريت څه وخت معين کړي نه وی. فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو په ده به هيڅ ضمان نه وی. |
|---|

**تشريح**﴾ يوکس دکور جوړولو يا باغ لګولو لپاره زمکه عاريت باندې واخستله .او په دې کې نې عمارت جوړکړو.يا باغ اولګولو.نودا جائز دی.خو معير په ده باندې ونې وغيره اوبنکلې شي. او خپله زمکه واپس اخستلې شي.اوس که هغه د عاريت هيڅ وخت معين کړي نه وو.نو په دې صورت کې معير باندې د ونو اوبنکلو هيڅ تاوان نه لازميږي.

**دليله**﴾ خکه چې مستعير پخپله دهوکه خوړلې ده.چه د وخت د تعين نه بغير راضي شوې دې.معير دهوکه نه ده ورکړې.

| وَإِنْ كَانَ وَقَّتَ الْعَارِيَةَ اوکه هغه د عاريت څه وخت بيان کړو. وَرَجَعَ قَبْلَ الْوَقْتِ اود وخت نه وړاندې نې رجوع اوکړله.نو رجوع صحيح ده.خودا مکروه دی.(ضَمِنَ الْمُعِيرُ لِلْمُسْتَعِيرِ او معير به ضامن وی دپاره د مستعير مَا نَقَصَ الْبِنَاءَ وَالْغَرْسَ بِالْقَلْعِ)د هغه نقصان کوم چې په عمارت غورزولو او په ونو اوبنکلو سره رسيدلې دې. |
|---|

**تشريح**﴾ نفس مسئله آسانه ده.

**دليله**﴾ خکه چې مستعير ته د معير د اړخه دهوکه ورکړې شوې ده. چې دده لپاره نې وخت مقرر کړې دې. نو وعده پوره کول هم دا ښکاره دی. نو مستعير به نقصان واپس اخلي.د خپل ذات نه د ضرر دفع کولو دپاره،

**د عاريت څيز د واپس کولو د مزدورۍ مسئله**

| (وَأُجْرَةُ رَدِّ الْعَارِيَةِ عَلَى الْمُسْتَعِيرِ)اود عاريت واپس کولو مزدوری به د مستعير په ذمه وی. |
|---|

**تشريح>** د غوښتلې شئ واپس کولو مزدوري د مستعير په ذمه ده.او اجاره باندې د اخستې شوي شئ واپس کولو مزدوري د موجر په ذمه ده.اود عين مغصوبه شئ واپس کولو مزدوري د غاصب په ذمه ده.
**دليله>** د عاريت واپس کولو مزدوري د مستعير په ذمه کيدل خکه دي.چه مستعير په دې باندې د خپلې ذاتي نفع لپاره قبضه کړې وه.اود واپس کولو د خرچې نوم اجرت دې.نودا اجرت به هم په ده باندې واجب وي.

| (وَأُجْرَةُ رَدِّ الْعَيْنِ الْمُسْتَأْجَرَةِ عَلَى الْمُؤَجِّرِ)او په کرايه باندې د اخستې شوي شئ واپس کولو مزدوري په موجر ده. |
|---|

**تشريح>** نفس مسئله آسانه ده.
**دليله>** او په اجاره باندې داخستې شوي شئ مزدوري د موجر په ذمه کيدل خکه دي.چه د مستاجر په ذمه عين مستاجر واپس کول واجب نه دي.بلکه صرف هم دا واجب دي.چه هغه موجر ته په دې باندې قابو ورکړي.او تخليه اوکړي.( يعنې خپل اختيار او قابو لرې کړي ) خکه چې د مستاجر د قبضې منفعت معنوي طور باندې موجر لپاره صحيح سلامت دې.يعنې دده د قبضې منفعت په حقيقت کې موجر ته رسيدلې دې.چه د مستاجر په قبضه کولو سره موجر ته ددې کرايه ملاؤ شوه.نو د واپس کولو خرچه د مستاجر په ذمه نشي کيدلې.
**سوال>** د قبضې منفعت چې لکه څنګه موجر لپاره سلامت دې.هم دغه شان مستاجر لپاره هم سلامت دې.خکه چې ده د عين مستاجره نه منافع حاصل کړې دي.نود منفعت په حصول کې دواړه برابر دي ؟
**جواب>** په ذکرشوې قبضې سره مستاجر او موجر دواړو ته نفع اورسيدله.خود موجر منفعت زيات قوي دې.خکه چې هغه د مال عين مالك دې.او موجر ته چې کوم منفعت حاصل شوي دې.هغه مال دې.حقيقتاً هم او حکماً هم.په خلاف د مستاجر د منفعت،چه هغه من کل وجه مال نه دې.نود موجر د منفعت اعتبار به اولى وي.لکه څنګه چې شيخ محبوبي وغيره په اجارات د جامع صغير په متفرقو مسئلوکې دې ارخ ته اشاره کړې ده. (وفيه شئ وهو أن الأجرة لا يلزم أن تكون عيناً البتة)

| (وَأُجْرَةُ رَدِّ الْعَيْنِ الْمَغْصُوبَةِ عَلَى الْغَاصِبِ)) اود غصب کړې شوي شئ واپس کولو خرچه په غاصب ده. |
|---|

**تشريح>** نفس مسئله آسانه ده.
**دليله>** خکه چې غاصب باندې واپس کول اود مالك په قبضه کې رسول واجب دي.د هغه نه د ضرر لرې کولو دپاره، نود واپس کولو خرچه به هم په ده باندې وي.

| (وَأُجْرَةُ رَدِّ الْعَيْنِ الْمُودَعَةِ عَلَى الْمُودِعِ) اود امانت کيخودې شوي شئ واپس کولو خرچه په مودع باندې ده. |
|---|

**تشريح>** که عمرو د زيد سره يو څيز امانت کيخودو.نو کله چې زيد عمر ته دغه څيز واپس کوي او په هغې باندې کومه خرچه راځي هغه به په عمرو باندې وي.
خکه چې مودع خو هسې بغيرد څه عوضه د عمرو امانت کيخودې دې د دې څيز ضرورت خو مالك ته دې چې هغه خپل څيز د امين نه واپس واخلي.نو د دې خرچه به هم په هغه وي.

| وَإِذَا اسْتَعَارَ دَابَّةً کله ئې چې حيوان (خاروې) عاريت باندې واخستلو. فَرَدَّهَا إِلَى إِصْطَبْلِ مَالِكِهَا او هغه ئې د هغې دمالك بار(د اودريدو ځائې) ته اورسولو. فَهَلَكَتْ او هغه هلاك شو. لَمْ يَضْمَنْ نو ضامن |
|---|

به نه وي.

**تشريح>** يوكس يو اس مستعار واخستلو.بيا ئې دا د مالك بارته اورسولو.او هغه هلاك شو.نو د استحسان په رو سره به ضامن نه وي.[1]

**وجه الاستحسان>** داده.چه د عاريت شيان د مالك كور ته د رسولو عام عادت دې.لكه چې د كور د استعمال شيان د عاريت اخستلو نه روسته د مالك كور ته رسولې شي.نودا اس ئې په متعارف طريقه اوسپارلو.اوكه دا اس ئې د مالك ته رسولې وو.نو مالك به بيا هم دا بار ته رسولو.نود مستعير واپس كول صحيح شو.

شيخ تمر تاشي د ا بوسلمه نه نقل كړى دى.كه د ښاروو د ترلو ځائې دكور نه بهر وي.نو مستعير به برى الذمه نه وي.ځكه دې صورت كې ښكاره هم داده.چه هلته به اس د محافظ نه بغير وي.،،وقيل هذا عادتهم،،

# كتاب اللقيط

**ترجمه وتشريح>** (دا) كتاب د لقيط (په بيان كښې) دې.

**الربط بما قبله>** لكه څنګه چې عاريت د هغې د مالك د اجازت څخه بغير بل چاته نشي وركولې دغه شان كوم كس چې د لقيط په راؤچتلو كښې وړاندې والې اوكړو.نودهغه د اجازت څخه بغير لقيط بل چاته نشي وركولې.

**اللقيط لغة>** لقيط په لغت كښې هغه ماشوم ته وائي.چه د زمكې نه پورته كړې شي .

**اللقيط اصطلاحا>** په شريعت كښې د لقيط تعريف دا دې.،،اللقيط إسم المولود طرحه أهله خوفاً من العيلة أو فراراً من تهمة الزنا،، يعنى لقيط هغه ماشوم ته وائي.چه چا د فقيرئ د وجې يا د زنا د تهمت د ويرې په لاره كښې غورځولې وي.

**وجه تسمية اللقيط>** لقيط نامداركړې شو په دې لقيط سره په اعتبار د مستقبل سره ځكه چه دې په لاركښې غورځولې شوې دى اوڅوك به ئې راوچتوى.

**حكم رفعه>** ① پورته كول د لقيط مستحب دى ځكه چه په دې كښې ژوندون د لقيط دې. خود استحباب دا حكم په هغه وخت كښې دې.كه دې دا ګمان كوى.كه زه ئې راوچت نكرم. نوبل څوك به په دې لاره باندې راشى.اوهغه به ئې اوچت كړى.

② اوكه غالب وى په ګمان د واجد كښې ضائع كيدل ددې لقيط نوواجب دى اوچتول ددې لقيط.مثلاً په داسې شاړه لاره كښې پروت وى.چه هلته د چا د تيريدو احتمال نه وى.نوكه دې ئې دغه شان پريږدى.كيدې شى چه څه درنده راشى. مات ئې كړى.يا هم دغه شان د ولوږې تندې نه مر شى .

**لقيط به آزاد وى اونفقه ئې په بيت المال ده**

اللقيط حرٌ

**ترجمه وتشريح>** لقيط آزاد دې

---

[1] **مسلك الشافعي:-** قياساً به ضامن وى.ځكه چې ده مالك ته واپس نكړو.بلكه ضائع ئې كړو.امام شافعى ، امام احمد رحمهما الله او صحيح قول كې امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دلائله**> ① ځکه چه اصل په بنیادم کښې آزادی ده.

② اوبل دلیل دا دې په کوم ځائې دې موندې شوې دې هغه دارالاسلام دې.اوپه دارالاسلام کښې مسلمانان اوسیږی.او مسلمانان آزاد وی

③ بل دلیل دا دې چه حکم غالب ګمان لره وی. اوکله چه لقیط په دارالاسلام کښې بیا موندې شی. نو غالب ګمان هم دا وی.چه دې به د آزاد پلار بچې وی

| وَنَفَقَتُهُ فِي بَيْتِ الْمَالِ |
|---|

**ترجمه وتشریح**> اونفقه (د تربیت اوخسمانه) دده (لقیط) به په بیت المال وی. (چه دده سره روپۍ نه وی پرتې)

**دلیله**> دحضرت عمر او علی نه، (لکه امام مالک چه په خپله موطا کښې نقل کړی دی.چه یوسړی دحضرت عمر په دورخلافت کښې یوماشوم اوموندلو .نوهغه ئې راواخستلو .اوحضرت عمر ته راغلو.حضرت عمر تری تپوس اوکړلو.تا دا ماشوم ولې د لارې نه راوچت کړلو.نوهغه ورته اوونیل.چه ما سره دده د ضائع کیدو ویره وه. نو عریفه یوبل کس وو.هغه حضرت عمر ته اوونیل.اې امیرالمومنین،دا یونیك سړی دې. نوحضرت عمر ورته اوفرمائیل.آو هم دغه شان ده .بیا حضرت عمر ده ته اوونیل.چه ته لاړ شه.دې آزاد دې.اودده ولاء به ستا وی.اودده د تربیت خرچه به په مونږ وی(یعنی مونږ به ئې د بیت المال نه برداشت کوو. ([1])

② دحضرت علی روایت عبدالرزاق په خپل مصنف کښې ذکرکړې دې.چه دوی فرمائیلی دی نفقه د لقیط په بیت المال ده. او ولاء ئې د مسلمانانو ده .کذا فی البنایه)

③اوبله ددې وجې دده نفقه په بیت المال ده.چه لقیط مسلمان دې ځکه چه د مسلمانانو په وطن کښې بیا موندې شوې دې.نوظاهر هم دا وائي.چه دې به مسلمان وی اوعاجز دې د ګټې نه،اونشته مال دلقیط سره چه په هغې باندې دده تربیت اوشی او نشته خپلوان دده چه په هغوی باندې دده د تربیت ذمه واری ورواچولې شی

**د لقیط دحفاظت اونسب زیات حقدار**

| وَإِنِ الْتَقَطَهُ رَجُلٌ لَمْ يَكُنْ لِغَيْرِهِ أَنْ يَأْخُذَهُ مِنْ يَدِهِ |
|---|

**ترجمه وتشریح**> که راوچت کړلو دې(لقیط لره) یوسړی نو نه کیږی (حق) د بل چا دپاره چه واخلی دې (لقیط لره) دده (ملتقط) د لاس نه ، (بلکه ملتقط دده دحفاظت مستحق اوحقداردې)

**دلیله**> ځکه چه ثابت شو حق دحفاظت (دلقیط) ملتقط لره،د وجې د وړاندې والی دلاس د ملتقط. یعنی د بل چا نه دغه لقیط ته دملتقط لاس وړاندې وررسیدلې دې

| فَإِنِ ادَّعَى مُدَّعٍ أَنَّهُ ابْنُهُ فَالْقَوْلُ قَوْلُهُ |
|---|

**ترجمه وتشریح**>که دعوی اوکړله یو دعوی کونکی چه دې(لقیط) ځوئې د هغه (مدعی) دې. نو قول (معتبر) قول دهغه (مدعی) دې.

**تشریح**> مطلب ددې چه دمدعی قول معتبردې.خودا په هغه صورت کښې چه دعوی نه کوی ملتقط د

---

[1])أما الرواية عن عمر فاخرجها مالك في الموطا في الأقضية رقم ١٩ وأما الرواية عن علي فاخرجها عبدالرزاق في مصنفه (نصب:٣\٤٠٧)_

نسب دده لقیط.اوکه ملتقط په خپله د لقیط د نسب دعوی گر وی.چه دا زما خوئي دې.نوپه دې صورت کښې د خارجي مدعی دعوی معتبر نه ده.ځکه چه قانون دا دې .چه کله مدعیان دوه وی.نوترجیح به قابض لره وی.اوپه دې صورت کښې به هم ملتقط قابض وی.نودده دعوی به معتبر وی اودا چه دعوی دمدعی معتبر ده.اود لقیط نسب د مدعی نه ثابتیږی استحسان دې.

**وجه الاستحسان>** وجه د استحسان دا ده.چه دا دعوی دنسب اقراردې دماشوم دپاره په هغه څه چه نفع رسوی ماشوم ته.ځکه چه دا ماشوم مشرف کیږی په نسب چه نسب ئې معلوم شو اوده ته پیغور کولې شی په نشتوالی د نسب چه نسب ئې معلوم نه وی.خلق به ورته حرامی وائی.نوهرکله چه د نسب د دعوی په صحت کښې د ماشوم فائده ده.نودعوی به معتبره وی

**القیاس في المسئلة>** اوقیاس دا دې.چه قبول دې نکړې شی قول دده مدعی

**وجه القیاس>** ځکه چه دا قول د مدعی متضمن دې باطلولوحق د ملتقط لره یعنی کله چه دمدعی قول معتبرشی.نویوخونسب ثابت شو.دې سره ملتقط ته یو نقصان رسی.هغه دا چه د لقیط د حفاظت کوم حق ملتقط ته حاصل وو.هغه به ترې مدعی واخلی.ځکه چه لقیط خوبه بیا مدعی اخلی.اودغه شان به ملتقط د لقیط د ولاء نه هم محروم شی.نوچه دې ته اوکتې شی .قیاس دا وائی.چه دمدعی دعوی دې صحیح نشی

## ددووخارجي کسانودنسب دعوی کول

| وَإِنْ ادَّعَاهُ اثْنَانِ وَوَصَفَ أَحَدُهُمَا عَلَامَةً فِي جَسَدِهِ فَهُوَ أَوْلَى بِهِ |
|---|

**ترجمه وتشریح>** اوکله چه دعوی اوکړی دوه (خاری کسان چه ملتقط نه وی) او بیان کړی یوبه دوارو(مدعیانو) کښې څه نښه په بدن دده(لقیط) کښې. (چه مثلاً دده په پښه باندې توروداغ دې.اویل مدعی څه نښه اونه ښائی) نودې(چاچه نښه خودلې ده) زیات حقداردې.په دې (لقیط) باندې. (اود دغه کس دعوی به معتبره وی)

**دلیله>** ځکه چه ظاهری حالت چه دده دنښې خودلونه معلومیږی گواه دې د مدعی واصف د نښې د وجې د موافقت د نښې کلام دده لره. یعنی ده چه کومه نښه خودلې وه.په لقیط کښې هغه موجود وه. او د ده د کلام تصدیق اوشو

**صورة عدم بیان الوصف>** اوکه بیان نکړلویو د دواړوخارجي مدعیانو نه،نښه. بلکه صرف دعوی وی نودې لقیط خوئي ددې دواړومدعیانو دې.د وجې د برابری د دواړو نه په سبب د استحقاق ولد کښې، یعنی د هر یو دعوی د ثبوت نسب سبب دې.نوکه د یونه نسب ثابت کړو.اوبل محروم پریږدو.دا ترجیح بلا مرجح ده. کومه چه جائز نه ده.نوځکه به د دواړو دپاره د ولد فیصله کیږی.که پوره د سبب په موجب باندې عمل اونشی.چه په څه خو عمل اوشی

## په اسلامي ښارکښې دلقیط موندل اود ذمي دعوی کول

| وَإِذَا وُجِدَ فِي مِصْرٍ مِنْ أَمْصَارِ الْمُسْلِمِينَ أَوْ فِي قَرْيَةٍ مِنْ قُرَاهُمْ فَادَّعَى ذِمِّيٌّ أَنَّهُ ابْنُهُ ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ وَكَانَ مُسْلِمًا |
|---|

**ترجمه وتشریح>** اوکله چه اوموندې شی (لقیط) په یوښارکښې دمسلمانانونه،اویا په یوکلی کښې د کلو د دمسلمانانو نه،نودعوی اوکړله ذمی چه دا (لقیط) خوئي دده(ذمی) دې.نو ثابت شو نسب دده(لقیط) دهغه (ذمی) نه،اووی به (دغه لقیط) مسلمان،اودا(ثبوت دنسب دذمی نه) استحسان دې.

**وجوه الاستحسان**> ① د استحسان د وجې تفصيل دا دې.چه دعوى د چه دا زما خوئي دې متضمن ده ثبوت د نسب لره،اودا ثبوت نسب فائده مند دې دپاره د ماشوم خکه چه يوخويه دده نسب معلوم شى .نود حرامى د پيغور نه به خلاص شى.
② اوبله دا چه ذمى به ئې تربيت او پرورش اوکړى

**وجه كون الملتقط مسلما**> اودا ماشوم مسلمان دې.خکه چه په دارالاسلام کښې موندلې شوې دې.نواسلام د ماشوم حق دې.اودې مسلمان شو.

**الاشكال**>اوباقى داچه هرکله دذمى نه دده نسب ثابت شو.نويکارداوه.چه دې هم غيرمسلم وى.

**الجواب**> خکه چه ولد د پلارتابع وى.خوداسې نه ده.بلکه صحيح شوه دعوى د ذمى په هغه څه کښې چه فائده ورکوى لقيط ته ، چه ثبوت د نسب دې.نوپه ثبوت نسب کښې د ماشوم فائده وه.خکه مو د ذمى د دعوى صحيح اوګرځوله اونه به صحيح کيږى په هغه څه کښې چه ضرر رسوى لقيط ته چه کفردې.يعنى په کفرکښې دماشوم تاوان دې.خکه دذمى دعوى په کفرکښې نه ثابتيږى

**القياس في المسئلة**> قياس دا دې. چه د ذمى نه دده نسب ثابت نشى.

**دليل القياس**> خکه چه دې موندې شوې دې په دارالاسلام کښې،اوپه دارالاسلام کښې چه کوم ماشوم اوموندې شى.هغه به دمسلمان بچې ګڼړلې شى.نواګرچه ثبوت د نسب خلاف القياس دې. خوبيا هم دذمى دعوى صحيح کيږى.اونسب ثابتيږى.نودا وجه د استحسان ده

**د ذميانوپه علاقوکښې د لقيط موندل**

| وَإِنْ وُجِدَ فِي قَرْيَةٍ مِنْ قُرَى أَهْلِ الذِّمَّةِ أَوْفِي بِيعَةٍ أَوْكَنِيسَةٍ كَانَ ذِمِّيًّا |
|---|

**حل اللغة**> ① **بيعة**:د يهودو عبادتخانه ② **كنيسة**:د نصارو عبادتخانه

**ترجمه وتشريح**> اوکه اوموندې شو(لقيط) په يوکلى کښې د کلو د ذميانونه،اويا په عبادت خانه (يهوديانو) کښې اويا په ګرجه (دعيسايانو)کښې نووى به (دغه لقيط) ذمى،

**دليله**> دليل دا دې چې ظاهر هم دا وائى چې دا ماشوم به د ذمى وى خکه چې د کافرانو په عبادت خانوکښې مسلمان څه کوى بلکه هم ذمى به راغلى وى اودلته به ترې پاتې شوې وى.

**د لقيط په باره کښې د رقيت د دعوى عدم صحت صحيح نه ده**

| وَمَنْ ادَّعَى أَنَّ اللَّقِيطَ عَبْدُهُ أوامته لَمْ يُقْبَلْ مِنْهُ وَكَانَ حُرًّا |
|---|

**ترجمه وتشريح**> اوچا چه دعوى اوکړله چه لقيط غلام دده(مدعى) دې.يا وينزه د ده ده نونه به شى قبلولې (دعوى د مدعى) د ده، (مدعى) نه، اودې بهٔ آزاد وى.

**دليله**> خکه چه لقيط آزاددې په اعتبار د ظاهرسره، خکه چه د مسلمانانوپه وطن کښې عام طور آزاد کسان اوسيږى

**دغلام د لقيط د نسب دعوى کول**

| وَإِنْ ادَّعَى عَبْدٌ أَنَّهُ ابْنُهُ ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ |
|---|

**ترجمه وتشريح**>اوکه دعوى اوکړله غلام چه دې(لقيط) خوئې دده(غلام) دې.نوثابتيږى نسب دده (لقيط) دده(غلام) نه،

**دليله**> خکه چه دا(نسب) فائده ورکوى ده(لقيط) ته، (خکه چه دنسب په وجه به لقيط ته عزت ملاؤ شى)

وَكَانَ حُرًّا

**ترجمه وتشريح>** اووى به دا (لقيط) آزاد.

**دليله>** ځکه چه کله زيږول اوکړی د غلام دپاره آزاده ښځه يعنی دغلام ښځه آزاده وی.نو ښځه چه آزاده وی.او خاوند غلام وی.په دې صورت کښې بچې آزاد وی-اونه باطليږی حريت ځکه چه په بنيادم کښې حريت اصل دې د شك په وجه. يعنی دا په يقين سره نه ده ثابته چه دا ماشوم ددې غلام بچې دی.لکه څنګه چه غلام دعوی کوی.

**الاشکال>** څوک څوك دا اعتراض اوکړی.چه هرکله په شك سره حريت نه باطليږی.نوپکاردا وه.چه دغلام نه ئې نسب ثابت شو.نودې دې غلام هم وی.ځکه چه دغلام بچې غلام وی.

**الجواب>** ددې جواب دا دې.چه دقياس تقاضا هم دغه ده.څنګه چه معترض اووئيل. خو چونکه د نسب په ثبوت کښې د ماشوم فائده وه.نوځکه دغلام دعوی معتبرشوه.اودماشوم په عبديت کښې د ده نقصان وو.ځکه چه حريت ئې په عبديت بدليږی.نوځکه دده دعوی معتبرنشوه

**دلقيط سره دمال موندلوحکم**

وَإِنْ وُجِدَ مَعَ اللَّقِيطِ مَالٌ مَشْدُودٌ عَلَيْهِ فَهُوَ لَهُ

**حل اللغة>** ① مشدود:تړلې شوې

**ترجمه وتشريح>** اوکه اوموندې شو د لقيط سره مال چه تړلې شوې وو دهغه سره نوهغه (مال) دده (لقيط) دپاره دې.

**دليله>** .دوجې د معتبرګنړلوظاهر لره يعنی په ظاهر په دغه مال باندې د لقيط سره موجود دې.نودده په قبضه کښې شو.ځکه به دغه مال د لقيط وی

**د لقيط دپاره په دغه مال باندې دنکاح کولوعدم جواز**

وَلَا يَجُوزُ تَزْوِيجُ الْمُلْتَقِطِ

**حل اللغة>** ① التزويج:واده کول

**ترجمه وتشريح>** اوجائزنه دې واده کول د لقيط ( چه ملتقط دلقيط نکاح چاسره اوکړی.که لقيط هلك وی اوکه جينۍ وی)

**دلائله>** ① دوجې د نشتوالی دسبب دولايت ځکه چه چا ته په بل چا باندې ولايت حاصليږی. نوددې څو اسباب دی چه خپلولی ده. لکه پلاراونيکه ته چه په خپله لوريا نمسۍ باندې د قرابت په وجه باندې ولايت حاصل دې.نوکه پلاريا نيکه دخپلې لور يا نمسۍ نکاح چاسره اوکړی.دا به صحيح وی.ځکه چه دوی ته په خپله لور او نمسۍ باندې ولايت حاصل دې

② اوملکيت دې. لکه مالك ته چه په خپله وينځه باندې د ملکيت په وجه ولايت حاصل دې.نوکه مالك دخپلې وينځې نکاح چاسره اوکړی.هغه به صحيح وی

**دلقيط په مال کښې د ملتقط دپاره دتصرف حکم**

وَلَا تَصَرُّفُهُ فِي مَالِ الْمُلْتَقِطِ

**ترجمه وتشريح>** اونه (دې جائز) تصرف دده(واجد) په مال د لقيط کښې،

**دليله>** دوجې دقياس نه په موروباندې، يعنی لکه څنګه چه مورد بچی په مال کښې تصرف نشی

کولي.دغه شان به واجد هم نشی کولي خکه چې د چا په مال کښې تصرف کول عموما ددې دپاره کیږی.چه مال ئې زیات شی اودا زیادت دمال حاصلیږی په کامله رائې چه کوم کس په مال کښې تصرف کوی.پکارده ، هغه تجربه کار اوعاقل وی اوپه پوره شفقت یعنی چه متصرف د چا په مال کښې تصرف کوی.چه په هغه باندې پوره شفقت لری.د هغه سره د خیانت اراده نه لری اوموجود په هر یوکښې ددې دواړو نه که واجد دې اوکه مورده دا ځیزونه کم دی خکه واجد اګرچه په ده کښې به مهارت اوتجربه اوعقل وی.خودده په زړه کښې د لقیط دپاره شفقت کامل نه دې.اود موریه زړه کښې اګرچه د بچی دپاره شفقت کامل دې.خودې سره د تجربې اوعقل اومهارت کمې دې.نوځکه د واجد اودمور تصرف په مال د صغیرکښې جائزنه دې.

**جوازتصرف الاب>** اودپلار تصرف په مال دخپل بچی کښې خکه جائزدې.چه پلارسره مهارت هم شته. او دده په زړه کښې د بچی دپاره پوره شفقت هم شته

### دلقیط دپاره د هبه دقبض کولوجواز

| وَيَجُوزُ أَنْ يَقْبِضَ بِهِ الْهِبَةَ |
|---|

**ترجمه وتشریح>** اوجائز دی چه قبض کړی (واجد) دده( لقیط) دپاره هبه (یعنی که ځوك دغه لقیط ته څه خیزهبه کوی.نوواجد ئې دهغه دپاره قبض کولي شی)

**دلائله>** خکه چه دا قبض کول دهبه ټوله فائده ده دلقیط دپاره څه نقصان په کښې نشته

② ددې وجې چه په دې هبه کښې صرف فائده ده مالك کیږی دهغې هبة شوی ماشوم په خپله خوبه دې شرط چه عاقل وی.

### لقیط ته په هنرخودلوکښې دلقیط مال لګول

| وَيُسَلِّمُهُ فِي صِنَاعَةٍ |
|---|

**حل اللغة>** ① الصناعة:کاریګری

**ترجمه وتشریح>** اوخرچ کوی دې په کسب خودلوکښې لقیط ته، یعنی که لقیط ته څه کار کسب بنائی.اوپه هغې باندې خرچ کیږی.نوواجد ته دا اختیاردې.چه په دې کښې د لقیط مال اولګوی

**دلیله>** خکه چه دا خرچ کول په کسب اوهنرورزده کولوکښې خودلقیط دبهترئ اوپه مستقبل کښې دده دحالت دحفاظت خبره ده. (چه کله کسب زده کړی.نوچه صبا ته لوئې شی.دهغه کسب نه به فائده واخلي.اودبل محتاج به نه وی)

| وَيُؤَاجِرُهُ |
|---|

**ترجمه وتشریح>** اوپه مزدورئ باندې به لګیا کوی دې(لقیط لره)

**دلیله>** دا په مزدورئ لګول لقیط راجع کیږی بهتروالی دلقیط ته، خکه چه د اول نه دکارکولواموخته شی.نوچه لوئې شی.بیا به ورته تکلیف نه وی

## كِتَابُ اللُّقَطَةِ

**ترجمه وتشریح>** (دا) کتاب (د) لقطه راپورته کولو د احکامو په بیان کښې) دې.

| اللُّقَطَةُ أَمَانَةٌ فِي يدِ الملتقط إِذَا أَشْهَدَ الْمُلْتَقِطُ أَنَّهُ يَأْخُذُهَا لِيَحْفَظَهَا وَيَرُدُّهَا عَلَى صَاحِبِهَا |
|---|

**ترجمه وتشریح** لقطه امانت دې په لاس د ملتقط کښې کله چه ګواهي ورکړي ملتقط چه ده (ملتقط) راخستې ده دا (لقطه دلارې نه) دې دپاره چه حفاظت اوکړي ددې (لقطه) اوواپس ئې کړي مالك خپل ته.

**دلیله** څکه چه اخستل په دې طریقه چه حفاظت ئې اوکړي.اوخپل مالك ته ئې واپس کړي اجازت شوې دې په دې کښې په اعتبارد شریعت یعنی که څوك په دې طریقه د لارې نه څه څیز راخلي.نو شریعت ددې اجازت ورکړې دې بلکه د لارې نه د دې راخستل غوره دی. په نیز عامو عالمانو ﷭.

| فَإِنْ كَانَتْ أَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ دَرَاهِمَ عَرَّفَهَا أَيَّامًا، |
|---|

**ترجمه** که وی (دغه لقطه) کمه د (مالیت د) لسو روپو نه، نو تشهیردې کوی دهغې څو ورځې. (یعنی اعلان دې کوی.چه ما یوڅیزموندې دې.که دچا وی.ما سره دې)

**تشریح** صاحب د هدایه فرمائیلی دی د قدوری روایت چه دلسو روپود مالیت نه کم څیز وی. څو ورځې به ئې تشهیرکوی دامام ابوحنیفه﷫ نه یوروایت دې ، نوداظاهر روایت نه دې.بلکه ظاهر روایت دا دې.که قیمتي څیزوی اوکه کم قیمته په دواړو صورتونوکښې به یوکال تشهیرکوی.لکه امام طحاوی﷫ هم دا فرمائیلی دی)

| وَإِنْ كَانَتْ عَشَرَةً فَصَاعِدًا عَرَّفَهَا حَوْلًا كَامِلاً |
|---|

**ترجمه** اوکه وی (دغه لقطه) زیاته (دمالیت د لسوروپونه) نوتشهیر به ئې کوی پوره یوکال پورې ،

**تشریح** **دلیله** حضرت ابی بن کعب﷛ فرمائی.چه ما یوه بټوه بیا موندله.چه په هغې کښې سل دینارد وو.هغه مې نبی ﷺ ته راوړله.نبی ﷺ راته اوفرمائیل .یوکاله پورې ددې تشهیر کوه.ابی بن کعب﷛ فرمائی.ما یوکال دهغې تشهیر اوکړلو.خوماته د هغې مالك معلوم نشو. بیا مې نبی ﷺ ته راوړله.نونبی ﷺ راته اوفرمائیل.چه یوکال ئې نورهم تشهیر اوکړله. ابی ﷛ فرمائی.چا ما بیا یوکال دهغې تشهیراوکړلو.خومالك ئې پیدا نشو.بیا نبی ﷺ ته ورغلم.نونبی ﷺ راته اوفرمائیل.ددې بټوه (همیانه) محفوظه ساته.اووې شماره،که مالك ئې راغلو.نوهغه ته به ئې ورکړې.اوکه رانغلو.نوته ترې فائده اخله)

**القول المفتی به** شمس الائمه سرخسی﷫ فرمائیلی دی چه هیڅ څیزد ددې مودو نه کومې چه وړاندې ذکرشوې نه دی لازم.بلکه سپارلې به شی موده د تشهیراود اعلان رائې د ملتقط ته،هغه به تشهیر او اعلان کوی تردې چه غالب شی په ګمان د ملتقط چه مالك به ددې لقطه لټون نه کوی ددې دومره مودې نه پس، اوبیا به صدقه اوکړي په هغې لقطه باندې. اوثواب به ئې مالك ته اوبخی.

**داعلان نه پس د لقطه صدقه کول**

| فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَإِلَّا تَصَدَّقَ بِهَا |
|---|

**ترجمه** که راغلو مالك دهغې (لقطه پس د تشهیرنه.نوهغه ته به ئې ورکړي) اوکه رانغلو. نوصدقه کوی به هغه (لقطه)

**تشریح** **دلیله** که په رسولو د ذات ددغه څیزکله چه کامیاب شی په وندلو دمالك دهغې ، یعنی مستحق ته چه دهغه حق اورسی. نویوه طریقه ئې دا ده.چه مستحق اومومی.اوهغه ته خپل حق هم په هغه اصلی صورت کښې په کوم کښې چه ئې ترې اخستې وی اورسول د عوض که د عین حق رسول ممکن نه وی.مثلاً که هغه څیزهلاك شوې وی.یا دهغې مالك موجود نه وی اوهغه عوض ثواب دې.په

امید د اجازت یعني صدقه کول په هغه وخت کښې پکار دی.چه دا امید کیدې شی.چه مالك ته کله پته اولګی.چه زما څیز ئې صدقه کړې دې.نوهغه اجازت ورکوی

**د صدقه کولونه پس مالك پیدا کیدل**

| فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وهوقد تَصَدَّقَ بِهَا فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَمْضَى الصَّدَقَةَ |
|---|

**حل اللغة**> ① **امضی**:ثابت اوساتلو،برقرار اوساتلو

**ترجمه**> که راغلۀ مالك دهغې (لقطه) یعنی پس ددې نه چه صدقه کړې وو(ملتقط) هغه (لقطه) نودې (مالك) ته اختیار دې.که غواړی نوجاری دې اوساتی صدقه ،

**تشریح**> **دلیله**> ځکه چې شریعت ده.ته دلقطه د صدقه کولواجازت ورکړې دې نودې حاصل شوې اجازت په حکم دده (مالك.هرکله چه ورته د مالك د طرفه د صدقې کولواجازت نه دې . ملاؤ شوې نوموقوف به وی (دغه صدقه) په اجازت دده(مالك،که مالك د صدقه اجازت ورکړلو.نوصدقه صحیح شوه

**الاشکال**> اوکه څوك دا اووائی.چه هرکله د تصدق صحت په اجازت دمالك باندې موقوف شو .نو پکارده چه کله مالك اجازت کوی.په هغه وخت محل موجود وی.یعنی دفقیرسره هغه لقطه موجوده وی.

**الجواب**> د دې جواب دې چې ملك په لقطه باندې ثابتیږی د فقیردپاره وړاندې د اجازت د مالك نه،یعنی که مالك ته د صدقې د صحت اجازت هم نه وی کړې.بیا هم د فقیردپاره په لقطه باندې ملکیت ثابتیږی نو موقوف نه دې اجازت د مالك په قیام د محل د صدقې، بلکه که لقطه د فقیرسره موجود نه وی.هم د مالك اجازت صحیح کیږی.

**الاشکال الثاني**> اوکه څوك اووائی.چه هرکله په لقطه باندې د فقیرملکیت ثابتیږی. نو چه کله ئې مالك پیدا شی. پکارداده.چه ده ته د فقیرنه دخپل څیزد اخستلو اختیارنه وی.ځکه چه په هغې باندې خو د فقیر ملکیت ثابت شوې دې.

**الجواب**> ددې دا دې.چه ددې باوجود چه په لقطه د فقیر ملکیت ثابت شوې دې. خو اصل مالك ته د واپس اخستلو اختیارشته.ددې دپاره نظیردا دې.که یوکس بل ته څه څیز هبه کړی.نوپه دغه موهوبه باندې دموهوب له ملکیت ثابت شو.خوددې باوجودکه واهب په خپله هبه کښې رجوع کوی.نوکولې شی

| وَإِنْ شَاءَ ضَمِنَ الْمُلْتَقِطَ لِأَنَّهُ سَلَّمَ مَالَهُ إِلَى غَيْرِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ |
|---|

**ترجمه وتشریح**> اوکه غواړی (مالك د لقطه) نو تاوانی دې کړی ملتقط (چه لقطه،یا دهغې چه څه قیمت وی هغه دې تری واخلی)

**دلیله**> ځکه چه ملتقط ورکړې دې مال دمالك بل ته بغیرداجازت دهغه نه،اوڅوك چه دبل چا څیزکښې تصرف اوکړی.اوبل چاته ئې ورکړی.په ورکونکی باندې تاوان لازمیږی

**وجه جواز الصدقة**> البته دومره ده چه دا ورکول د ملتقط لقطه لره بل چاته دی په اباحت د شریعت یعنی شریعت ملتقط ته دا اجازت ورکړې دې.که ته دا لقطه د تشهیرد مودې نه پس چاته صدقه ورکوې.نو ورکولې ئې شی.نوهرکله چه شریعت اجازت ورکړې دې.نودې ګناهګار نشو. اوکه بالفرض شریعت اجازت نه وې ورکړې اوملتقط په لقطه کښې تصرف کړې وو.نوبیا به پرې د مالك دطرفه تاوان هم راتلۀ، اوعندالله به ګناهګارهم وو.

**الاشكال**﴾ اوكه ته دا وائې.چه هركله ملتقط ته دشريعت دطرفه د تصدق اجازت شته. نو بيا په ده باندې ضمان ولې راځي.

**الجواب**﴾ نود دې جواب دا دې.چه اودااجازت دتصدق د شريعت دطرفه منافى نه دې د تاوان سره بلكه د شريعت د طرفه به دتصرف اجازت وى.اوبيا به هم په مجاز له باندې تاوان واجبيږى دپاره د حق د بنده ځكه چه شريعت دمسلمان مال معصوم ګرځولې دې.نود ضرورت په وخت كښې كه چاته په كښې د تصرف اجازت هم وركړى.خودمالك ملكيت ترې نه ختموى .

**نظيره**﴾ لكه څنګه چه يوسړې دومره اوږې وى. چه هلاكيږى.اوپه دغه وخت كښې ده ته دبل چا څيز دخوراك دپاره ملاؤ شى.نوشريعت ده ته دا اجازت وركړې دې.چه د مالك نه بغيردې دغه دخوراك څيز اوخورى.اوددې اجازت باوجود كه مالك دده نه دهغې قيمت غوارى. نودې به ورته دهغې قيمت وركوى.نوګوره په دغه صورت كښې د شريعت دطرفه اباحت شته.خوتاوان هم شته.دغه شان په زير بحث مسئله كښې اګرچه ملتقط ته د تصدق اجازت شته.خوكه مالك غوارى.نوضمان پرې هم راوستې شى.

**دچيلۍ،غوا اواوښ د لقطه حكم**

| وَيَجُوزُ الِالْتِقَاطُ فِي الشَّاةِ وَالْبَقَرِ وَالْبَعِيرِ |
|---|

**حل اللغة**﴾① الشاة:ګډه ② البقر:غوا ③ البعير:اوښ

**ترجمه وتشريح**﴾ اوجائزدى رانيول په طور د لقطه د چيلۍ،غوا اواوښ،([1])

**دليله**﴾ دليل دا دې.چه دا اوښ،غوا او اس لقطه ده.توهم كيدې شى د ضائع كيدوددې نو مستحب دى رانيول ددې غوا،اوښ اواس او د رانيولونه پس تشهير ددې دپاره د حفاظت د مالونو د خلقو ځكه چه په دې طريقه كښې ددې مالونو حفاظت دې.اوكه داسې پريخودې شى. نو د دې د ضائع كيدو ډيراحتمالات دى.كيدې شى.چه د ولوږې دوجې مړ شى.كيدې شى.چه څه آسمانى آفات پرې راپريوځى.كيدې شى.چه دده نه مضبوط څناور پرې راشى. اوهلاك ئې كړى

**دقاضى داجازت نه بغيره لقطه باندې دخرچ كولوحكم**

| فَإِنْ أَنْفَقَ الْمُلْتَقِطُ عَلَيْهَا بِغَيْرِ إِذْنِ الْحَاكِمِ فَهُوَ مُتَبَرِّعٌ |
|---|

**حل اللغة**﴾① المتبرع:احسان كونكې ② القصور:كموالې

**ترجمه وتشريح**﴾كه خرچ كړلو ملتقط په دې (لقطه) باندې بغيرد اجازت د حاكم نه،نودې احسان كونكې دې (كوم خرچ چه دې په لقطه باندې اوكړى.دمالك نه د هغې مطالبه نشى كولې)

**دليله**﴾دوجې د كمزورئ د ولايت دده ملتقط نه دذمې د مالك نه يعنى ملتقط سره دومره اختيار نشته .چه دې دمالك نه دخپلې خرچې مطالبه اوكړى

**په لقطه باندې د خرچې باره كښې دقاضى فيصله**

| وَإِذَا رُفِعَ ذٰلِكَ إِلَى الْحَاكِمِ نَظَرَ فِيهِ، فَإِنْ كَانَ لِلْبَهِيمَةِ مَنْفَعَةٌ آجَرَهَا وَأَنْفَقَ عَلَيْهَا مِنْ أُجْرَتِهَا |
|---|

**حل اللغة**﴾① البهيمة:څناور ② المنفعة:فائده

---

[1] ) **مسلك مالك والشافعي**:- امام مالك اوشافعي رحمهما الله فرمائى كله چه اوموړى اوښ اوغوا په صحراء كښې نوپريخودل (ددې) غوره دى (د رانيولونه)

**ترجمه وتشريح>** اوكله چه يوړې شي دا (مقدمه د لقطه) قاضي ته نو ګوري به (يعني سوچ به كوي قاضي) په دې (لقطه) كښې نوكه چيرته وي دځاروي نه څه فائده (مثلاً اس دې.نود اس نه فائده اخستې شي.چه د دې نه د بار راوړلوكاراخستې شي.اومزدوري پرې اوكړې شي) نوبه مزدورئ به اولګوي.هغه (لقطه) اوخرچ به كوي په هغې لقطه باندې دمزدورئ دهغې نه يعني هغه لقطه لكه مونږ چه په مثال كښې اس پيش كړلو.به په كار اولګوي.اوچه هغه كومه مزدوري كوي.هم په هغه مزدورئ كښې به په هغه اس باندې خرچ كوي.ګياه به ورله وركوي.داسې نور ضروريات به ئې پوره كوي

**دليله>** ځكه چه په دې كښې چه هم په هغه لقطه باندې ګټه كوي.اودهغه ګټې نه په هغې باندې خرچ كوي باقي پاتې كول د ذات د لقطه دى په ملك د هغه مالك باندې.بغيرد راتلو د قرض نه په مالك باندې، (يعني دمالك څيزبه هم محفوظ اوباقي پاتې شي.اودده په حفاظت اوخسمانه چه څه خرچه شوې وي.هغه به هم په مالك باندې قرض نشي.ځكه چه خرچه خو هم دهغه د لقطه د مزدورئ اوګټې نه خرچ شوې ده

| وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهَا مَنْفَعَةٌ وَخَافَ أَنْ يَسْتَغْرِقَ النَّفَقَةُ قِيمَتَهَا بَاعَهَا الْحَاكِمُ وَأَمَرَ بِحِفْظِ ثَمَنِهَا |
|---|

**حل اللغة>** ① الاستغراق:راګيرول ② الابقاء:باقي پاتې كول

**ترجمه وتشريح>** اوكه نه وي ددې (لقطه) څه فائده (في الحال مثلاً وچه چيلئ وي) اوويريږي (قاضي) چه ختم به كړي خرچه قيمت ددې (لقطه،يعني كه ددې خسمانه كوي.اوخرچه پرې كوي.نوددې څه قيمت دې.هغه هومره روپۍ به ددې په خرچه باندې اولږي) نوخرڅه به ئې كړي اوحكم به اوكړي (قاضي ملتقط ته) د حفاظت د قيمت د هغې(لقطه)

**دليله>** دشريعت دا حكم دې.چه لقطه خپل مالك ته واپس شي.خود واپس كيدو دوه صورتونه دي. يو صورت دا چه عين لقطه مالك ته واپس كړي.نودا صورت خو متعذر دې. ځكه كه ددې لقطه خسمانه كوي .نودهغې په خسمانه اوتربيت باندې دهغې دقيمت نه زياتې پيسې لګې.نودويم صورت دا دې.چه په معنوي شكل كښې مالك ته خپل څيز واپس كړې شي.اومعنوي صورت دا دې.چه د هغه څيزقيمت ورته واپس كړې شي

| وَإِنْ كَانَ الْأَصْلَحُ الْإِنْفَاقَ عَلَيْهَا أَذِنَ فِي ذَٰلِكَ وَجَعَلَ النَّفَقَةَ دَيْنًا عَلَى مَالِكِهَا |
|---|

ترجمه: اوكه چيرته وي زياته فائده مند خرچه كول په دې(لقطه) باندې،نواجازت به وركړي (قاضي) د دې خرچې كولو،(ملتقط ته) اوابه ګرځوي خرچه قرض په مالك د هغې باندې (يعني چه كله ئې مالك پيدا شي.نوبه لقطه باندې چه ملتقط څومره خرچه كړې وي.هغه به ورته مالك وركړي )

**دليله>** ځكه چه قاضي مقرر شوې دې دپاره د خيګړې كولوچه دې به مسلمانانوته فائده رسوي اوپه دې كښې چه لقطه خرڅه نكړې شي.بلكه دهغې خسمانه اوشي.اوملتقط ته دهغه خرچه واپس وركړې شي فائده ده دواړو طرفونو ته ملتقط ته دا فائده ده.چه ده ته به خپله خرچه ملاؤ شي.اومالك ته به دا فائده اوشي.چه دهغه څيزبه د هلاكت نه بچ شي

**تحديدمدة النفقة>** عالمانو ﷺفرمائيلي دي يقيناً حكم به كوي قاضي ملتقط ته دخرچ كولو دوه ورځې يا درې ورځې،په هغه اندازه چه اميدپه كښې ساتي چه پيدا به شي مالك ددې لقطه هركله چه پيدا نشي مالك د لقطه نوحكم به اوكړي قاضي د خرڅولود هغې لقطه ځكه چه جاري ساتل د خرچې په لقطه باندې ختمونكي دي قيمت دلقطه لره،يعني كه په دغه لقطه باندې خرچه جاري ساتي.نوخرچه به دومره زياته شي .چه د لقطه كم قيمت دې.هغې ته به اورسي نونشته خيګړه د مالك په خرچ كولوكښې

په لقطه باندې

## دخپلې خرڅې اخستلودپاره لقطه دخپل ځان سره ایسارول

| وَإِذَا حَضَرَ مَالِكُهَا فَلِلْمُلْتَقِطِ أَنْ يَمْنَعَهَا مِنْهُ حَتَّى يَأْخُذَ النَّفَقَةَ |
|---|

**ترجمه وتشریح**> کله چه حاضرشي یعنی مالك (دلقطه) نودملتقط دپاره جائزدی چه منع کړی دا(لقطه) دده (مالك) نه تردې چه ورکړی ورته خرڅه (کومه چه ملتقط په لقطه باندې لګولې وی)

**دلیله**> ځکه چه دالقطه ژوندې پاتې شوې ده په خرڅه د ملتقط،که ده پرې خرڅه نه کوله. خولقطه به هلاکه شوې وه نودا داسې شوه.لکه چه حاصل کړې مالك ملکیت په لقطه د ملتقط دطرفه ،نو مشابه شوه د مبیع سره، یعنی ترڅوپورې چه بائع ته د مبیع قیمت نه وی ملاؤ شوې.ده دپاره دا جائز دی.چه مبیع مشتری ته د ورکولونه ایساره کړی

## دحرم اودحل د لقطه حکم

| وَلُقَطَةُ الْحِلِّ وَالْحَرَمِ سَوَاءٌ |
|---|

**ترجمه وتشریح**> اولقطه د زمین حل اودحرم برابرده. (په حکم کښې) ([1])

**دلائله**> ① دلیل قول د نبی ﷺ دی. اعْرِفْ عِفَاصَهَا وَوِكَاءَهَا ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً ([2])چه معلوم کړه او وپیژنه کڅوړه ددې (لقطې) او مزې ددې لقطې نوبیا اعلان کوه ددې لقطه یعنی دا څیزونه دې تاته یاد وی.نوکه څوك ئې نښه ښانی.تاته به څه اشکال نه وی یوکال پورې ، نبی ﷺ په دې حدیث کښې د مطلق لقطه دپاره دیوکال مودهٔ یاده کړې ده بغیرد فرق نه په مینځ د حل اوحرم په لقطه کښې. نو هر کله چه نبی ﷺ دحل اوحرم په لقطه کښې څه تفصیل اوفرق نه دې بیان کړې.مونږ ئې هم نه بیانوو

② اوبله دا چې یوکال تیرشی.اودهغې نه پس لقطه صدقه کړې شی.نودا هم یوقسم دلقطه حفاظت دې. ځکه چه دهغې لقطهٔ د صدقهٔ ثواب به ورته ملاؤ شی نومالك کیږی به ملتقط دلقطه دحرم لکه څنګه چه په نورولقطاتوکښې ملتقط دیوکال تشهیرنه پس دلقطه مالك جوړیږی.که فقیروی

| (وَإِذَا حَضَرَ رَجُلٌ فَادَّعَى اللُّقَطَةَ لَمْ تُدْفَعْ إِلَيْهِ حَتَّى يُقِيمَ الْبَيِّنَةَ. فَإِنْ أَعْطَى عَلَامَتَهَا حَلَّ لِلْمُلْتَقِطِ أَنْ يَدْفَعَهَا إِلَيْهِ وَلَا يُجْبَرُ عَلَى ذَلِكَ فِي الْقَضَاءِ) |
|---|

**ترجمه وتشریح**> اوکله چه حاضرشی یوسړې اودعوی ئې اوکړله د لقطه (چه دا زما ده) نو نه به شی ورکولې ده(مدعی) ته تردې چه ګواهان قائم کړی(اوهغوی دا ګواهی ورکړی.چه دا لقطه ددې مدعی ده) که هغه (مدعی) اوخودله څه نښه (چه زما په څیزکښې دا نښه ده.او واقعی هغه نښه په لقطه کښې وی) نوجائزشو دپاره د ملتقط چه ورکړی هغه (لقطه) ده (مدعی) ته،اومجبوره کولې به شی په دې (ورکولود لقطه باندې) په قضا(دقاضی کښې، یعنی چه مدعی ګواهان قائم نکړی.صرف نښه اوښائی

---

[1] ، مسلك الشافعي:- امام شافعی ﷫ فرمائی واجب دې تشهیرکول په لقطه د حرم کښې تردې چه راشی مالك ددې (لقطه،یعنی د اعلان اوتشهیردپاره دیوکال وغیره مودهٔ مقرر نه ده.بلکه همیشه دپاره به د هغې تشهیرکوی.تردې چه مالك ئې راشی

[2]) من حدیث زیدبن خالد الجهنی ﷜ أخرجه البخاری فی اللقطة باب ٤ رقم ٢٤٢٩ ومسلم فی اللقطةرقم ١ وأبوداود فی اللقطة باب ١ رقم ١٧٠٤ والترمذی فی الأحکام باب ٣٥ وابن ماجه فی اللقطة باب ١ رقم ٢٥٠٤ وأحمد فی المسند(١١٥\٤) والنسائی فی السنن الکبری (٤١٩\٣) رقم ٥٨١٤_

.نوکه ملتقط ورته لقطه ورکړي جائز ده. خوکه نه ورکوي.نوقاضي ئې په ورکولوباندې مجبوره کولې نشي) ([1])

**دليله**> دلیل دا دې.چه قبضه حق مقصودی دې.پشان د ملك، نو مستحق کیږي مدعی د قبضهٔ مګرپه دلیل سره،اوهغه دلیل ګواهان دی.دوجې دقیاس نه په ملك باندې، یعنی لکه څنګه چه ملکیت د ګواهانونه بغیرنه ثابتیږی.دغه شان به قبضه هم بغیرد ګواهانونه نهٔ صحیح کیږی .

**الاشکال**> اوکه ته دا وائې.چه هرکله بغیرد ګواهانوقائمولونه دمدعی قبضه نه صحیح کیږی. نوبیا دلقطه د نښنهٔ خودلو فائده څه شوه؟

**الجواب**> نودهغې جواب دا دې البته دومره ده چه جائز دی دملتقط دپاره ورکول دلقطه مدعی ته په وخت د صحیح کیدو د نښې، یعنی چه مدعی کومه نښنه اوښائی.چه کوم څیزتا موندې دې. هغه زما دې. او د هغې دا نښنه ده.اوهغه نښنه صحیح وی.نودملتقط دپاره لقطه ورکول جائزشو دوجې دقول د نبی ﷺ نه، فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَعَرَفَ عِفَاصَهَا وَعَدَدَهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ ([2]) چه که راغلومالك ددې (لقطه) اوخودنه ئې اوکړله دهغې د کسوړۍ (چه په فلانی قسم لوښی یا څیز کښې وه) او شمارنې اوکړلو دهغې (چه د لقطه مقدار دومره دې) نو ورنې کړه هغه معرف ته،

| وَلَا يَتَصَدَّقُ بِاللُّقَطَةِ عَلَى غَنِيٍّ |
|---|

**ترجمه وتشریح**> (هرکله چه د اعلان او تشهیرنه پس هم مالك پیدا نشی.نوپه دې صورت کښې) اوصدقه کولې به نشی لقطه په غنی باندې.

**دليله**> ځکه چه دکوم څیزحکم ورکړې شوې دې (یعنی نبی ﷺ ئې حکم ورکړې دې) هغه صدقه کول دی.دوجې دقول دنبی ﷺ نه (په باره د لقطه کښې) که رانغلهٔ یعنی مالك ددې (لقطه داعلان او تشهیر نه پس) نوصدقه دې اوکړي (ملتقط) په هغې (لقطهٔ)

| وَإِنْ كَانَ الْمُلْتَقِطُ غَنِيًّا لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَنْتَفِعَ بِهَا |
|---|

**ترجمه وتشریح**> اوکه چیرته وی ملتقط د مالدارنوځنې نو جائز نه دی ده (ملتقط) دپاره چه فائده واخلی ددې (لقطه) نه،([3])

**دلائله**> ① دلیل دا دې.چه دا لقطه مال د بل دې چه مالك غائبه دې نو نه مباح کیږی فائده اخستیل په دې مال دغیر مګرپه رضا د مالك دوجې داطلاق دنصوصو نه (چه هغې حرام کړې دې تعرض کول دبل مال ته مګرپه رضا دهغه لکه الله تعالی چه فرمائیلی دی. ﴿لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ﴾) نو عامه قاعده خودا ده.چه دبل چا مال دهغه داجازت نه بغیرجائزنه دې.البته په زیربحث مسئله کښې فقیر د دې نه مستثنی دې) اواباحت (دمال د غیر) دفقیردپاره راغلې دې. دوجې دهغه حدیث نه چه مونږ ئې روایت کړې دې. (چه نبی ﷺ د لقطه په باره کښې فرمائیلی دی.چه

---

[1] **مسلك مالك والشافعي**:- اوفرمائی امام مالك او شافعی رحمهما الله چه مجبوره کولې به شی.اونښنه دا ده.مثلاً چه نوم واخلی د وزن د روپو. چه د روپو وزن دومره دې.وزن ئې

[2] ) من حديث ابي بن كعب رضي الله عنه أخرجه مسلم ل اللقطة رقم ٤ (٥٨١)ـ

[3] **مسلك الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی جائزده چه مالدارملتقط دلقطه نه فائده واخلی

د اعلان نه پس د لقطه مالك پيدا نشي.نوهغه دي صدقه کړي. نو معلومه شوه.چه لقطه اباحت جائز دي. خود صدقه په حيثيت چه په چا باندي صدقه کيږي. هغه ته ورکړي شي)

| ويجوزان يتصدق بهااذاكان غنياعلى ابيه وابنه وامه وزوجته اذاكانوافقراء |
|---|

**ترجمه وتشريح>** اوجائز ده چي ملتقط صدقه اوکړي په لقطه سره که چرته غني وي په خپل پلار او خوئي او مور اوښځي خپلي خو په دي شرط چي هغوی فقيران وي.

**دليله>** څکه چي صدقه په دي مذکورو کسانو کښي په هرچا کيږي.تردي چي صدقه کافر ته هم ورکول جائزدی البته زکاة خپلو اصولو او فروعو ته نشي ورکولي دغه شان زکاة کافر ته هم نشي ورکولي.[۱]

| كِتَابُ الْخُنْثَى |
|---|

**ترجمه>** ( دا) کتاب د خنثی ( په بيان کي ) دي.

**تشريح>** اصل خو دا دي.چه د انسان يوه آله ( اندام مخصوصه) وي.چه يا د سړي وي او يا د ښځي وي.او د دوارو اندامونو(چه هم د سړي وي او هم د ښځي نو دا) جمع کيدل ډير نا آشنا دی.بهرحال کله کله داسي کيږي. په دي وجه ددي د بيان ضرورت پيښ شو.او چونکه دا نا آشنا دی.په دي وجه دا دټولو نه روستو بيان کړي شوي دی.

**د خنثی تعريف او حکم**

| إِذَاكَانَ لِلْمَوْلُودِفَرْجٌ وَذَكَرٌفَهُوَخُنْثَى اوکله چي د بچی فرج او ذکر ( د ښځي او سړي اندام مخصوصه) دواړه وي.نو هغه خنثی دي فَإِنْ كَانَ يَبُولُ مِنَ الذَّكَرِفَهُوَغُلَامٌ نوکه هغه ذکر سره بول (متيازي) کوی.نو هغه هلك دي وَإِنْ كَانَ يَبُولُ مِنَ الْفَرْجِ فَهُوَأُنْثَى اوکه فرج سره بول کوی.نوهغه ښځه ده |
|---|

**تشريح>** يو ماشوم دي.چه دده دواړه قسمه آلي دی.د سړو پشان هم دي.او د ښځو پشان خاني ني هم شته.نو ده ته خنثي واني.نو که هغه ذکر سره بول کوی.نو هغه ته به هلك ونيلي شي.او د ښځو پشان اندام به عيب شمارلي کيږي.او که د ښځو پشان شرمګاه سره بول کوی.نو هغه ته به جينۍ ونيلي شي.او ذکر به داسي شمارلي کيږي.لکه چي د يوکس شپږ ګوتي وي.چه په هغي کي يوه زياتي وي.

**دلائله>** ① دليل دا حديث دي چي ((أَنَّ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سُئِلَ عَنْهُ كَيْفَ يُوَرِّثُ؟ فَقَالَ مِنْ حَيْثُ يَبُولُ ([۲]) د رسول الله ﷺ نه ددي په اره کي پوښتنه کړي شوي وو.چه داسي کس ته به ميراث څنګه ورکولي شي.څکه چي د هلك حکم جدا دي.او د جينۍ حکم جدا دي.اوس به دي کوم يو ګنړلي شي.نو نبی کريم ﷺ اوفرمانيل.چه د کوم خاني نه بول (متيازي) کوی.د هغي اعتبار اوکړئ.يعني که هغه ذکر سره بول کوی.نو د هلکانو ميراث به ملاويږي.او که په فرج سره بول(متيازي) کوی.نو د جينکو ميراث به ملاويږي.

② دغه ډول د حضرت علی رضي الله عنه نه هم دا نقل دی.او دا اثر عبدالرزاق رحمه الله پخپل تصنيف کي د فرائضو په بيان کي کړي دي.بيا چي هغه د کوم خاني نه بول کوی.ددي خبري دليل دي.چه اصل اندام هم دا دي.او هم دا صحيح اندام دي.او دويم دعيب پشان دي.

---

[۲]) من حديث ابن عباس رضي الله عنه اخرجه ابن عدی فی الکامل والبيهقي في السنن الکبری (۶\۴۲۸) رقم ۱۲۵۱۸)

**که خنثی په دواړو لارو متیازې کوی نو څه حکم دی ؟**

وَإِنْ كَانَ يَبُولُ مِنْهُمَا اوکه دا ماشوم په دې دواړو سره بول(متیازې) کوی وَالْبَوْلُ يَسْبِقُ مِنْ أَحَدِهِمَا. او بول په دواړو لارو کښې د یوې نه وړاندې راوځی نُسِبَ إِلَى الْأَسْبَقِ مِنْهُمَا نو نسبت به کولې شی هغې ته چې وړاندې وی په دې دواړو کښې

**تشریح>** که دا ماشوم داسې وی.چه د ذکر سره هم بول(متیازې) کوی.او فرج سره هم کوی.نو دا به کتلې شی.چه بول مخکې د کوم ځائې نه راوځی.دکوم ځائې نه چې بول مخکې راوځی.نو هم د هغې حکم به په ده باندې جاری کولې شی.ګویا دا وړاندې کیدل د ترجیح د اسبابو څنې دی.

**دلیله>** ځکه چې بول(متیازې) به هغه اندام اړخ ته وړاندې والې کوی.کومه چې اصلی نالئ ده.او ددې نه روسته د متیازو د دویم ځائې نه وتل، دا د مرض علامت دې.چه دې اړخ ته به توجه نشی ورکولې.او د کوم ځائې نه چې بول(متیازې) مخکې راوتلې دی.د هغې هیڅ معارض نشته.نو هم دې ته به د متیازو اصلی نالئ وئیلې شی.

**که دواړه اندامونه په مخکښې کیدو کښې بوځائې وی نو څه حکم دی ؟**

وَإِنْ كَانَا فِي السَّبْقِ عَلَى السَّوَاءِ اوکه دا دواړه اندامونه په وړاندې والی کې برابر وی فَلَا يُعْتَبَرُ بِالْكَثْرَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د متیازو د زیاتوالی هیڅ اعتبار نشی کولې

**تشریح>** که دا ماشوم داسې وی.چه دده د دواړو اندامونو نه بول(متیازې) په یو ځائې راوځی.نو اوس هیڅ وجه د ترجیح نشته.نو که بل څه علامت د ترجیح نه وی.نو ده ته به د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز خنثی مشکل وئیلې شی.

**دلیله>** امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائیلی دی.چه د متیازو په زیاتوالی او کموالی باندې به مدار نه ایخودې کیږی.ځکه چې د قلت او کثرت مدار په دې باندې نه دې.بلکه کله داسې هم کیږی.چه یو اندام کلاو دې.او دویم تنګ دې.نو کوم چې کلاو دې.د هغې سره به بول زیاتې راوځی.او د دویمې سره به کمې راوځی.او د سړی د ذکر سوړه تنګه وی.او د ښځې شرمګاه کلاو وی.نو بول به دښځې د شرمګاه نه زیاتې راوځی. بهرحال که قلت او کثرت کې هم برابری او مساوات وی.نو اوس حضرات صاحبین رحمهما الله هم متفق دی.چه دا خنثی مشکل دې.ځکه چې دلته هیڅ مرجح نه دې موجود شوې.

وَقَالَا: يُنْسَبُ إِلَى أَكْثَرِهِمَا بَوْلًا او صاحبینو رحمهما الله فرمائیلی دی.چه ماشوم به دې دواړو اندامونو کې زیاتو متیازو والا اندام اړخ ته منسوب کولې شی

**تشریح> مسلک الصاحبین>** خو د صاحبینو رحمهما الله په نیز کله چې وړاندې کیدو کې برابری وی.نو بیا به ددې نه روستو د متیازو کم والی او زیاتوالی ته کتلې شی.یعنی دا به کتلې شی.چه زیاتې بول د ذکر نه راوځی.اوکه د فرج نه، د کوم ځائې نه چې زیاتې بول(متیازې) راوځی.هم هغه حکم به په دې باندې جاری کولې شی.

**دلیلهما>** دلیل دا دی.چه ،،للاکثر حکم الکل،، مشهوره قاعده ده.نو د کثرت په وجه به ترجیح حاصل وی.او د کوم اندام نه چې زیاتې بول(متیازې) راوځی.هغه ددې خبرې دلیل دې.چه هم دغه اندام زیات قوی او مضبوط دې.او هم دا اصلی اندام دې.

## خنثی چې بالغ شي نو په علامتونو ښکاره کيدو سره به حکم لګولی شي

وَإِذَا بَلَغَ الْخُنْثَى وَخَرَجَتْ لَهُ اللِّحْيَةُ أَوْ وَصَلَ إِلَى النِّسَاءِ فَهُوَ رَجُلٌ او کله چې خنثی بالغ شی.او ده ګیره راوخي.یا دې ښځو ارخ ته اورسیږی.نو دا سړی دی

**تشريح>** دا واړه تقرير هغه وخت دي.کله چې خنثی ماشوم وی.ګني د بلوغ علامتونه به په عامه توګه (عام طور) باندې د ترجيح لپاره موجود وی.نو ددغه علامتونو مطابق به په ده باندې حکم جاری کولی شی.نوکه د بلوغ نه روستو دده ګیره راووتله.یا ښځو سره د وطی کولو قدرت حاصل شو.یا د سړو پشان ده ته احتلام اوشو.یا دده سینه دسړو د سینې پشان برابر ده.بهر ته نه ده راوتلې.

**دليله>** چونکه دا واړه د سړو علامتونه دی.نو دې به سړې شمارلي کيږی.

## د ښځې علامتونه ښکاره شو نو د ښځې حکم به لګولی شی

وَلَوْ ظَهَرَ لَهُ ثَدْيٌ كَثَدْيِ الْمَرْأَةِ أَوْ نَزَلَ لَبَنٌ لَهُ فِي ثَدْيِهِ أَوْ حَاضَ أَوْ حَبِلَ أَوْ أَمْكَنَ الْوُصُولُ إِلَيْهِ مِنْ جِهَةِ الْفَرْجِ فَهُوَ امْرَأَةٌ اوکه د ښځې پشان ئې تهيونه راښکاره شو.یا دده په سينو کي شيدې راغلل.یا دې ته حيض راغي. یا ددې حمل اوشو. یا ددې شرمګاه ته رسيدل ممکن شو.نو دا ښځه ده وَإِنْ لَمْ يَظْهَرْ إِحْدَى هَذِهِ الْعَلَامَاتِ فَهُوَ خُنْثَى مُشْكِلٌ اوکه ددې علامتونو نه هيڅ يوښکاره نشو.نودا خنثی مشکل دی

**حل اللغة >** ① **ثدی:** سینه ② **حبل:** امید ، حمل)

**تشريح>** اوکه څه داسې علامت ښکاره شو.چه دهغې په وجه ده ته ښځه ونيلي کيدې شی.نو ښځه به شمارلي شی.مثلاً دده تهيونه د ښځو د تهيونو پشان بهرته راوپرسيدل.یا دده په تهيونو کي شيدې راغلل. یا ده ته حيض راغي.یا ده ته حمل اوشو.یا دده په شرمګاه کي وطی کول ممکن شو.نو دا ښځه ده.

**دليله>** څکه چې دا واړه کوم چې ذکر شو.د ښځو د علاماتو څنې دی.اوکه د بلوغ نه روستو داسې څه راجع علامت ښکاره نشو.یا متعارض علامات ښکاره شو.مثلاً تهيونه ئې هم راوپرسيدل.او ګيره ئې هم راغلله. وغيره وغيره.نو اوس به ده ته بالاتفاق خنثی مشکل ونيلې شی.

## د جماعت په مونځ کښې به خنثی کوم ځائې اودريږی؟

وَإِذَا وَقَفَ خَلْفَ الْإِمَامِ او کله چې خنثی د امام شاته اودريږی قَامَ بَيْنَ صَفِّ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ نود ښځو اوسړو په مينځ کښی به اودريږی.

**تشريح>** په جماعت سره د لمونځ کولو په وخت به خنثی کوم ځائې اودريږی؟ نو وې فرمانيل.چه ده له پکار دی.چه د سړو او د ښځو د صف په منځ کي اودريږی.

**دليله>** څکه کيدې شی.چه دا ښځه وی.اوکه دا په واقع کي ښځه وی.نو دده د سړو په منځ کي د اودريدو په صورت کي کله چې امام ددې د امامت نيت کړې وی.نو دهغه سړو لمونځ به فاسديږی.کوم چې ددې ښی او چپه ارخ ته دی.او کوم چې ددې شاته دی. دده په مقابل کي . نو اګرچه دلته دا ښځه نه ده.خود ښځې کيدو احتمال شته. نو په احوط طريقه باندې به عمل کولی شی.او نه به د ښځو په صف کي اودريږی.څکه کيدې شی.چه دا سړې وی. اوکه دا واقعی سړې وی.او د ښځو په صف کي ودريدلې وی.نو ددې سړی لمونځ به فاسد کيدو.نو احوط او اعتمادی طريقه هم دا ده.کومه چې بيان کړې شوه.

**د خنثی مشکل د ختنې کولو مسئله**

| وَتُبْتَاعُ لَهُ أَمَةٌ تَخْتِنُهُ مِنْ مَالِهِ إِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ او دده لپاره یوه وینځه واخستلې شي.وینځه چه هغه دده ختنه اوکړي.که دده لپاره مال وي . |
|---|

**حل اللغة** > ① **تختن**: سنت کول، ختنه کول

**تشریح** > اوکه د خنثی مشکل ختنه نه وي شوې.او که دا مراهق یا بالغ شوې دې.نو چونکه دده ختنه نه څوك سرې کولې شي.اونه ښځه. ځکه چې دا مکروه دی.ځکه کیدې شي.چه دا سړې وي.او کیدې شي چې دا ښځه وي.نوکه دده سره مال وي.نو یوه وینځه دې واخستلې شي. چې هغه دده ختنه اوکړي.
**دلیله** > ځکه چې دغه وینځه دده مملوکه ده.اوکه دا سړې وي.نو دده مملوکې لپاره دده اړخ ته کتل جائز دي.او که دا ښځه وي.نو دده مملوکه د ضرورت او عذر په وخت دده اړخ ته کتلې شي.

| وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ اوکه دده لپاره مال نه وي ابْتَاعَ لَهُ الْإِمَامُ أَمَةً مِنْ بَيْتِ الْمَالِ نو امام دې دده لپاره د بیت المال نه یوه وینځه واخلي |
|---|

**تشریح** > اوکه دده سره مال نه وي.نو بیا دې امام د بیت المال د مال نه یوه وینځه واخلي.چه هغه دده ختنه اوکړي.
**دلیله** > ځکه چې بیت المال د مسلمانانو د ضرورتونو لپاره دې

| فَإِذَا خَتَنَتْهُ بَاعَهَا نوکله چې هغې دده ختنه اوکړله.نوامام دې دا واپس خرڅه کړي وَرَدَّ ثَمَنَهَا إِلَى بَيْتِ الْمَالِ او ددې قیمت دې بیت المال ته ورکړي. |
|---|

**تشریح** > **دلیله** > ځکه چې اوس ددې وینځې نه استغناء شوې ده.او د بیت المال نه د وینځې اخستلو حکم ځکه دې.چه بیت المال د مسلمانانو د حاجتونو لپاره جوړ کړې شوې دې.

**په میراث کښې د خنثی مشکل د حصې مسئله**

| وَإِنْ مَاتَ أَبُوهُ وَخَلَّفَ ابْنًا وَخُنْثَى اوکه د خنثی مشکل پلار مړ شو.او ده یو خوئې پریخودو.او یو خنثی (او یو دا خنثی مشکل) فَالْمَالُ بَيْنَهُمَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ عَلَى ثَلَاثَةِ أَسْهُمٍ د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به مال د دوی دواړو په منځ کې دریو برخو باندې تقسیمولې شي لِلِابْنِ سَهْمَانِ نو.د خوئې لپاره به دوې (دوه) برخې وی وَلِلْخُنْثَى سَهْمٌ او د خنثی لپاره به یوه برخه وی وَهُوَ أُنْثَى عِنْدَهُ فِي الْمِيرَاثِ إِلَّا أَنْ يَثْبُتَ غَيْرُ ذَلِكَ[1] او خنثی د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز په میراث کې ښځه ده.خو دا چې ددې نه علاوه واضح شي. |
|---|

**تشریح** > د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز اصل دا دې.چه خنثی مشکل په باب د میراث کې ښځه ګنړلې شوې ده.د صاحبینو رحمهما الله مسلك ددې خلاف دې.چه ددې تفصیل اوس په روستو عبارت کې راروان دې.نوکه یو سړې مړ شي.او دوې (دوه) وارثان پریږدي.یو خوئې او یو پخپل اولاد کې خنثی مشکل.نو چونکه دا (خنثی مشکل) دلته د ښځې په درجه کې دې.نو د ټولې ترکې به درې برخې کولې شي.د هغې سره به ۲\۳ هلك ته او ۱\۳ جینۍ ته یعنی خنثی ته ورکولې شي.او دا حکم هغه

[1] ) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٥\٥١٥) والشريفية شرح (ص،١٢٦) ومجمع (٤\٤٧٠) والسراجية (٤٩) نقلاً عن القول الراجح (٢\٣٩٠)-

وخت دي.چه د خنثی اشکال نه وی ختم شوی.اوکه دده د راجح علاماتو په وجه سړی یا ښځه کیدل راجح شوی وی.نو بیا به دده هغه حکم وی.کوم چې دده کیدل راجح شوی دی.

**دلیله>** دامام اعظم د دلیل حاصل دا دی.چه په پیل کې د مال د اثبات په وخت په یقیني امر باندې عمل کولي شی.او یقیني اقل مقدار دې.او د جیني میراث کم وی.په دې وجه هم دا یقیني دې.او ددې نه په زیات کې شك دې.او د شك په وجه مال نه واجبیږی.لکه مثلاً که په نورو ذریعو سره د مال په وجوب کې شك پیدا شی.نو هلته هم اقل او یقیني ( مال) اخستلې شی.مثلاً یو کس اوونیل.چه،،لفلان علی دراهم،، او څومره دراهم دی؟ د هغې د بیانولو نه وړاندې مړ شو.نو په ده به اقل مقدار واجب وی.او د جمعې اقل مقدار درې دی.نو درې دراهم به واجب وی.نو دغه ډول په مذکوره صورت کې هم ددې اصول لحاظ ساتلې شی.او اقل او یقیني به واجبولې شی.او هغه د مال ثلث دې.

**د خنثی مشکل د میراث په اړه کښې د صاحبینو رحمهما الله نقطه نظر**

| وَقَالَا: لِلْخُنْثٰى نِصْفُ مِيرَاثِ الذَّكَرِ وَنِصْفُ مِيرَاثِ الْأُنْثٰى او صاحبینو رحمهما الله فرمائیلی دی.چه خنثی لپاره د سړی د میراث نصف او د ښځې د میراث نصف دې |
|---|

**تشریح>** حضرات صاحبینو رحمهما الله فرمائیلي دی.چه خنثی ته به هغه ملاویږی.کوم چې د سړی د میراث نصف دې.اود ښځې د میراث نصف وی.او دا په حقیقت کې د عامر بن شرحبیل رحمه الله قول دې. صاحبینو رحمهما الله ددوی د قول اتباع کړې ده.

**الاختلاف في طريق التخريج>** البته بیا د تخریج په طریقه کې ډیر اختلاف دې.نو په ذکر شوی صورت امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه په مذکوره صورت کې به ټوله ترکه اووه برخې کیږی.په دې کې درې د خنثی او څلور به د خوئی وی.چه ددې تفصیل او دهر یو دلیل په راروان عبارت کې بیانولې شی.بهرحال د امام ابویوسف رحمه الله قول د خنثی لپاره زیات د فائدې دې.ځکه چې ۳/۷ د ۵/۱۲ نه زیات دې.(کمالایخفی)

**دلیله>** د امام ابویوسف رحمه الله د دلیل حاصل دا دې.چه کله خوئې یواځې وی.نو هغه دپوره مال مستحق وی.اوکه خنثی یواځې وی.او بل هیڅ څوك وارث دده د پلار نه وی.نو دې د ۳/۴ مستحق وی. ځکه چې وړاندې اصول بیان کړې شوی دې.چه خنثی ته د جیني دمیراث نصف او د هلك د میراث نصف ملاویږی.چه ددې مجموعه ۳/۴ جوړیږی.ځکه چې د هلك میراث واړه دې.یعنی که څلورې برخې وی.نو ټولې برخې به دهلك وی.نو ددې نصف ۲/۴ شو.او د جیني میراث واړه ۲/۴ دې.چه ددې نصف ۱/۴ دې.اوکله چې ۲/۴ او ۱/۴ جمع کړې شی.نو ددې مجموعه ۳/۴ جوړیږی.نو د خنثی واړه میراث ۳/۴ دې.او د خوئی میراث څلور واړه ټولې برخې دی.نو کله چې خوئې او خنثی دواړه جمع شی.نو مونږ په دې حساب سره ټوله ترکه ویش کړله.نو ددې مجموعه اووه شوه.نو مونږ اوونیل.چه هلك ته به ۴/۷ او خنثی ته ۳/۷ ورکولې شی.دا د امام ابویوسف رحمه الله تخریج دې.او هم دا ددوی مذهب دې.

| وَقَالَ مُحَمَّدٌ: اَلْمَالُ بَيْنَهُمَا عَلَى اثْنَى عَشَرَ سَهْمًا او امام محمد رحمه الله فرمائیلي دی.چه مال به ددوی دواړو په منځ کې دولسو برخو باندې تقسیمولې شی لِلِابْنِ سَبْعَةٌ وَلِلْخُنْثٰى خَمْسَةٌ د خوئی لپاره اووه او خنثی لپاره به پنځه وی |
|---|

**تشریح>** او په ذکر شوی صور کې به د ټولې ترکې ۱۲ برخې کولې شی.په دې کې به ۵ د خنثی وی.او ۷ به د خوئی وی.دا د امام محمد رحمه الله قول دې.

**دليله**> دا د امام محمد رحمه الله دليل دي.ددې حاصل دا دي.چه خنثى ته د هلك د ميراث نصف او د جينئ د ميراث نصف ملاويږي.نو مونږ داسې عدد واخستلو.چه په هغې صحيح غيرمنكسر ثلث او نصف راوخي.نو دتولو نه وړوکې عدد ۶ مو واخستلو.نو اوس مونږ په دې کې غور اوکړو.که خنثى سړې وي.نو ده ته به په نصف ۶ کې درې ملاويدې.نو د دريو نصف محفوظ اوساتلې شو.اوکه دا جينئ وه.نو دې ته به د ۶ ثلث يعنى دوې (دوه) ملاويدې.نو ددې نصف يعنى يو محفوظ اوساتلې شو.چه ددې مجموعه دوې (دوه) نيم شوه.او دويم اړخ ته درې نيم شوه.نو خنثى لپاره دوې (دوه) پوره شوې.البته په دريمه کې شك وو.چه ده ته ملاو شي اوکه ملاو نشي.چونکه دا هلك نه دې.نو ددې تقاضا دا وه.چه دا يو زياتى ده ته ملاو نشي.ګڼې د دواړو برابرى به لازم شي.او چونکه دا جينئ هم نه ده.نو ده ته به د ټولې ترکې ثلث يعنى دوې (دوه) ملاويدل هم پکار نه دي.بلکه زيات ملاويدل پکار دي.نو مونږ ددې تنصيف اوکړو.او ددې نيمه برخه مو خنثى ته ورکړله.او دويمه نيمه مو هلك ته ورکړله.نو خنثى لپاره دوې (دوه) نيمه شوه.او هلك لپاره درې نيمې شوې.خو د دواړو په برخو کې کسر واقع کيږي.نو کسر چې لرې کړې شو.او اصل مخرج ۶ کې ضرب ورکړې شو. نو اوس مجموعه ۱۲ شو.او د هر وارث برخې ډبل شوې.نو خنثى لپاره پنځه شوې.او خونى لپاره اووه شوې.يعنى خنثى لپاره ۵\۱۲ او هلك لپاره ۷\۱۲ شوې.دا د امام محمد رحمه الله د قول مطابق د مسئلې تخريج دې.او ددې دليل دې.او د کسر د بسيط جوړولو طريقه او د حساب طريقې مونږ پخپل کتاب ،،درس سراجى،، کې تفصيل سره بيان کړې دي.

**المثال الاول**> يو مثال دا دې.

مړې ............................................. (۶)

| اخت علاتى خنثى | حقيقى ورور | زوجه |
|---|---|---|
| محروم | ۳ | ۳ |

په مذکوره صورت کې د خالد وفات اوشو.او هغه ذکر شوى وارثان پريخودل.که خنثى سړې اوګڼلې شي.يعنى علاتى رور،نو هغه لپاره هيڅ نه پاتې کيږي.نو دې به رور ګڼلې شي.او محروم به وي.اود واړه مال به ٦ برخې کولې شي. ميړه ته ۳ او او حقيقى خور ته به درې ورکولې شي.او که خنثى ته د علاتى رور درجه ورکړې شي.نو د ثلثين د تکميل لپاره به دده لپاره سدس وي.او د ۷ سره به عول کولې شي.نو په ذکر شوى صورت کې رومبئ طريقه د متيقن کيدو په وجه اختيارولې شي.

**المثال الثانى**> دويم مثال دا دې.

مړې ............................................. (۶)

| اخت حقيقى خنثى | مور | زوج |
|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ۳ |

په مذکوره صورت کې د زينب وفات اوشو.او ده مذکوره وارثان پريخودل.چه په دې کې ټوله ترکه ۶ برخې کولې شي. ميړه ته ۳ ورکړې شوې.او مور ته ثلث ( ۲ حصې) او باقى يو دعصبه کيدو په وجه خنثى ته ورکړې شوې ده.يعنى دلته دې رور ګڼلې شوې دې.چونکه په دې صورت کې ده ته برخه کمه ملاويږي. خکه چې رور د اصحاب الفروض څخې نه دې.بلکه عصبه دې.اوکه دې اصحاب الفرائض څخې دې.خکه چې دده برخه به زياتيږي.او د مسئلې صورت به بدليږي.يعنى مسئله به داسې وي.

مړې ............................................. (۸)

| اخت حقيقى خنثى | مور | زوج |
|---|---|---|

| ۳ | ۲ | ۳ |
|---|---|---|

یعني میره ته ۳ او مور ته ثلث یعني ۲ او حقیقي خور ته نصف یعني ۳، نومسئله به د ۸ نه عول کوی.
**المثال الثالث** دریم مثال دا دي.

مړی ........................................(۱۲)

| زوجه | دوې (دوه) اخیافي ورونړه | اخت حقیقي خنثی |
|---|---|---|
| ۳ | ۴ | ۵ |

په مذکوره صورت کې خنثی ته د رور درجه ورکړې شوې ده.او باقي پاتې مال ده ته ورکړې شوې دې.خکه چې بنځې لپاره ځلورمه برخه ده.او د مور اولاد لپاره ثلث، او باقي به د عصبه کیدو په وجه د رور وی.او د مسئلې تخریج به د ۱۲ نه کیږي.او ۵\۱۲ کم دې د ۶\۱۲ نه، نو دا صورت اختیار کړې شو.گنی که دې خور فرض کړې شوې وی.نو ده ته به ۶\۱۲ ملاویدله.او دده برخه به زیاتیدله.حالاتکه ده ته اقل ورکول دی.نو دا صورت اختیار کړې شوې دې.گنی ده لره د خور گڼړلو په صورت کې به د مسئلې صورت داسې وی.

مړی ........................................(۱۲)

| زوجه | دوې (دوه) اخیافي ورونړه | اخت حقیقي خنثی |
|---|---|---|
| ۳ | ۴ | ٦ |

وجه ښکاره ده.د مسئلو د تخریج اصول مونږ په درس سراجي کې بیان کړې دی.

# كِتَابُ الْمَفْقُودِ

**ترجمه و تشریح** (دا) کتاب (په بیان د احکامود) ورک شوی (کې) دې. (مفقود د فقود نه دې.په لغت کې د اضدادوځنی دې.خکه چې د دې معنی د ورکیدو هم ده.لکه چې وئیلی شی،،**فقدت الشيء**،،یعنی زما نه یو شی ورک شو.اوپه معنی د طلب هم راځي.وئیلی شی.،،**فقدته**،،یعنی ما ئې لټون اوکړلو.

**د مفقود مال لپاره محافظ مقررکول**

(إِذَا غَابَ الرَّجُلُ فَلَمْ يُعْرَفْ لَهُ مَوْضِعٌ وَلَا يُعْلَمُ أَحَيٌّ هُوَ أَمْ مَيِّتٌ نَصَّبَ الْقَاضِي مَنْ يَحْفَظُ مَالَهُ وَيَقُومُ عَلَيْهِ

**حل اللغة** ① **موضع**:ځاني ② **يستوفي**:تمام (پوره ) تمام (پوره ) اخستل

**ترجمه و تشریح** کله چې غائب شي سړې اومعلوم نه وی دده (سړی) ځاني (چه په کوم ځاني کې به وی) اوپته نه لگي چې ژوندې به وی اوکه مړ ،نومقرربه کړی قاضي هغه څوك چې ساتنه کوی د مال دده(مفقود) اونگراني کوی دهغې. (مال) اوحاصلوی (د خلقونه) حقونه دده(مفقود)

**دلیله** خکه چې قاضي مقررشوې دې مصلحت لټونکې دهریوعاجز لپاره چې هغه عاجز وی د مصلحت دخپل ځان نه (یعني چې یوکس دخپل ځان مصلحت اوفائده په خپله نشی لټولې.نوقاضي دهغه مصلحت لټونکې دې) اوورك شوې کس هم په دې صفت دې. (خکه چې دې دخپل مال نه غائب دې.اودهغې ساتنه نشی کولې)او اوگرځیدلو(دا مفقود) پشان د ماشوم او دلیوني، (خکه چې دا دواړه هم هغه چاته محتاج دی.چه د دوی دمال ساتنه اوکړی)اوپه مقررکولودمحافظ دمال دده(مفقود) لپاره اوپه مقررکولو) دنگران په دې (مال دمفقود)باندې مصلحت دې دده(مفقود ،خکه چې چیرته دده دې محافظ مقررنکړې شی. نوضائع به شی)

يَسْتَوْفِي حُقُوقَهُ

**ترجمه و تشريح>** اودا قول د ماتن چي وصول كړي حق د دده(مفقود) نشته څه پتوالي (بلكه دا خبره ښكاره ده) چي دي (محافظ) به قبض كوي (ټول) پيداوار (دمال دده، لكه په كرايه باندي ني كور وركړي وي. نود كرايه دارو سره به مياشت په مياشت كرايه اخلي) او پور هغه چي اقراركوي په هغي باندي پور دار د قرضدارانو دده (مفقود، يعني په قرضدارو كي چي په چا باندي پور وي. اوهغه پري اقراركوي. نو دهغه سره به دده پور وصولوي) ځكه چي دا (قبض كول د پيداوارد مال دده او دقرضونو دده) دقبيلي د ساتنه څني دي (يعني دمفقود مال حفاظت چي څنګه كيږي. په هغي كي دا هم ده. چه دده د مال پيداوار او قرضونه وصول كړي)

(وَيُنْفِقُ عَلَى زَوْجَتِهِ وَأَوْلَادِهِ الصِّغَارِ مِنْ مَالِهِ)

**ترجمه و تشريح>** . فرمائي (ابو الحسين قدوري رحمه الله) اوخرچ كوي به په ښځه دده (مفقود) اواولاد دده (مفقود) دمال دده(مفقود) نه اونه دي دا حكم (دخرچ كولو) خاص په دوي (مذكورينو) پوري بلكه ګډ دي ټولو اقرباو د ولادت ته (يعني چي دچا سره د ولادت په ذريعه خپلولي راغلي وي. هغه ټولوته ګډ دي. نوپه ولادت كي پلار، نيكه داسي وريسي پورته څه، اودغه ډول اولاد او داولاد اولاد داسي وريسي څه واړه داخل دي)

**القاعدة>** اواصل (اوقاعده په دي باب كي دا ده. چه) هرهغه څوك چي مستحق وي د خرچي په مال دده (مفقود) كي په حالت د موجودګئ دده(مفقود) كي (يعني چي لا ورك شوي نه وو. اوپه هغه حالت كي د ده په مالك كي دچا نفقه واجب وه) بغيرد فيصلي د قاضي نه نوخرچ كولي به شي په هغه باندي دمال دده (مفقود) نه په وخت د غائب توب دهغه كي، ځكه چي فيصله (دقاضي) په دغه صورت كي امداد دي (د دغه مستحقينوسره، لنډيز دا چي د مفقود د وجود په وخت كي په ده باندي دقاضي د فيصلي نه بغيردچا نفقه واجب وه. دده د فقد په حالت كي به دهغه نفقه هم واجب وي)

**دمفقوداودهغه د ښځي په مينځ كي موده د تفريق**

(وَلَا يُفَرَّقُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ امْرَأَتِهِ)

**ترجمه و تشريح>** فرمائي (ابو الحسين قدوري رحمه الله) فرمائي اوجدائي به نشي راوستلي په مينځ دده (مفقود) اود ښځي دده (مفقود) كي ([1])

**دلائله** ① دليل قول دنبي ﷺ دي. په اړه د ښځي د مفقود كي چي الْمَفْقُودِ أَنَّهَا امْرَأَتُهُ حَتَّى يَأْتِيَهَا الْبَيَانُ دا (ښځه د مفقود) ښځه دهغه (مفقود) ده تردي چي راشي دي ته بيان (چه هغه وفات شوي دي. نود دمرګ خبر رسيدو نه روسته به دا آزاده وي) ([2])

② اوقول د حضرت علي رضي الله عنه په دي (ښځه د مفقود) كي چي دا (ښځه د مفقود) داسي ښځه ده چي امتحان كي اچولي شوي ده (په اړه د فراق د خاوند خپل كي) نوصبر دي كوي (اوخپل ځان دي محفوظ

[1] **مسلک مالک>** اوفرمائي امام مالك رحمه الله كله چي تيرشي څلوركلونه (اوبيا هم مفقود پيدا نشي) نو جدائي به راولي قاضي په مينځ دده (مفقود) اودده په ښځه كي، (يعني قاضي به ددوي نكاح فسخ كړي)اوعدت به تيروي (دا ښځه) عدت دوفات (چه څلورمياشتي اولس ورځي دي، اوچه دا موده تيره شي) بيا دي دا نكاح كوي چاسره چي ني خوښه وي.

[2] من حديث مغيرة بن شعبة رضي الله عنه اخرجه الدارقطني في سننه (٣١٢\٣)۔

ساتي.اود خاوند دعقد نكاح خيال دې كوی) تردې چې ښكاره شی مرگ (دخاوند) اويا طلاق (چه خاوند ورته طلاق وركړي دې. (۱)

نوددې نه روسته دا آزاده ده.نودا قول د حضرت علی ﷺ ) واقع شوې دې تفسير دهغه بيان (مجمل) لپاره كوم چې ذكرشوې دې په (حديث) مرفوع كې ، (چه إنها إمرأته حتى يأتيها البيان)

④اوبله دا چې نكاح پيژندلې شوې دې ثبوت ددې (نكاح په مينځ د خلقوكې چې دا د فلانی ښځه ده.اونكاح يو أمرثابت اويقينی دې) او غائب كيدل (دخاوند) نوواجبوی بيلتون (يعنی چې يوسړې غائب وی.نودا ضروری نه ده.چه دده اودده دښځې په مينځ كې دې جدائی راوستې شی.لكه د مفقود نه علاوه كه يوسړې په سفرباندې تلې وی.نودده دا غائب كيدل خو دا نه واجبوی.چه دده ښځه دې دده نه جدا كړې شی) اومرگ (دمفقود) په محل د احتمال كې دې(يعنی يوه احتمالی خبره ده.يقينی خبره نه ده)نو نه به شی زائله كولې نكاح (چه په يقين سره ثابته ده) په شك سره (چه مرگ د مفقود دې.ځكه چې قاعده دا ده.اليقين لايزول بالشك)

**دمفقود د مرگ حكم وركولو موده**

| (وَإِذَا تَمَّ لَهُ مِائَةٌ وَعِشْرُونَ سَنَةً مِنْ يَوْمِ وُلِدَ حَكَمْنَا بِمَوْتِهِ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** < فرمائی(ابو الحسين قدوری ﷫) او كله چې برابر شی دده (مفقود ) شپږ شلې كاله عمر د ورځې د زيږيدل نه نو مونږ به حكم كوو په مرگ دده (چه دې مړشوې دې)

**قول صاحب الهدايه** < صاحب ده هدايه فرمائيلی دی چې دا (قول ) روايت دحسن دې د امام ابوحنيفه﷫ نه (چه كله د مفقود شپږ شلې كاله عمربرابرشی.نوهغه به مړ تصور كولې شی) اوپه ظاهر روايت كې دی چې اندازه كولې به شی (مرگ دده) په مرگ د همزولو دده (نوچه دده همزولی مړ شی.په هغوی كې څوك هم پاتې نشی.دې به هم مړ تصور كولې شی)

**رواية ابي يوسف** < په هغه روايت كې چې نقل شوې دې دامام ابويوسف﷫ نه (دا چې اندازه كولې به شی مرگ د مفقود) په سل كاله پورې (نوچه كله دده عمر سل كاله پوره شی.دې به مړ تصور كولې شی) اواندازه كړې دې بعضې عالمانو( مرگ دده) په لس كم سلو كالو پورې (چه لس كم لس كاله عمرئې برابر شی.دې به مړ تصور كولې شی) اوقياس سره زياته مناسبه خبره دا ده.چه اندازه كولې نشی (مرگ دده) په هيڅ شی پورې (بلكه چې كله ئې غالب گمان راشی.چه هغه به مړ شوې وی.نوهغه به مړ تصور كولې شی) او(په ښځه باندې ) آسانه خبره دا ده.چه اندازه كړې شی(مرگ دده) په لس كم سل كالو پورې

| اعْتَدَّتْ امْرَأَتُهُ |
|---|

**ترجمه و تشريح** < اوكله چې حكم اوكړې شی د وفات دده (چه مفقود مړدې نوقاضی به دمفقود د ښځې او د هغه په مينځ كې جدائی راولی.اودتفريق نه پس) عدت به تيروی ښځه دده (مفقود) اوپه هدايه كښې ورسره دا اضافه هم شوې ده چې عدت د وفات (چه څلورمياشتې اولس ورځې دی) دَدَغه وخت نه (كله چې قاضی دهغه د مړ كيدو فيصله اوكړله.چه هغه به مړ شوې وی)

**په موجوده وارثانوكې د مفقود دمال تقسيم**

| (وَقسم مَالُهُ بَيْنَ وَرَثَتِهِ الْمَوْجُودِينَ فِي ذَٰلِكَ الْوَقْتِ) |
|---|

۲)أخرجه عبدالرزاق في مصنفه في كتاب الطلاق (نصب:۳\۷۱۹)_

**ترجمه و تشريح** > اوتقسيمولې به شي مال دده (مفقود) په مينځ د وارثانو دده (مفقود) كي (كوم چې) موجود وي په هغه وخت كي (په كوم وخت كي چې قاضي هغه مړ اوګرځولو.نود قاضي دا مړ ګرځول داسي دي) لكه چې دې مړشو(كله چې قاضي دده د مرګ فيصله اوكړله) دستر ګو وړاندې
**دليله** > خكه چې حكمي (مرګ) قياس كولې شي په حقيقي باندې (اوهركله چې يوكس په حقيقت كي وفات شي.نوچه په كوم وخت كي وفات شي.په هغه وخت كي چې كوم وراثان موجود وي.هغوى به ميراث اوړي.نودغه ډول دلته به هم صرف موجود وارثان ميراث اوړي.كه روستو پيدا شي.هغوى حقدار نه دي)

(وَمَنْ مَاتَ مِنهم قَبْلَ ذَٰلِكَ لَمْ يَرِثْ مِنْهُ شيأ)

**ترجمه و تشريح** > اوڅوك چې مړ شو په دوى كښې وړاندې ددې (قاضي د فيصلې) نه نو هغه به ميراث نه اوړي دده (مفقود) نه
**دليله** > خكه چې حكم نه دې شوې د مرګ دهغه (مفقود ،اوچه يوسړې ژوندې وي.دهغه ميراث نشي تقسيمولې) نودا داسې شوه لكه چې دده (مفقود) ژوند معلوم وي (چه هغه ژوندې دې.اودا معلومه ده چې كله د مفقود د ژوند علم وي.نودهغه نه ميراث نشي اوړلې)

**مفقود دبل چانه ميراث نشي اوړي**

(وَلَا يَرِثُ الْمَفْقُودُ مِنْ أَحَدٍ مَاتَ فِي حَالِ فَقْدِهِ)

**ترجمه و تشريح** > اونه به اوړي مفقود ميراث دهيڅ چا نه چې هغه مړ شي په حالت د وركوالي دده كي ،
**دليله** > خكه چې باقي پاتې كيدل دده (مفقود) ژوندې په دغه وخت كي په استصحاب الحال سره دي. (استصحاب الحال عبارت دې د باقي پريښولو د يوخيزنه په خپل حالت باندې خكه چې دهغه حالت په ختميدو باندې څه دليل موجود نه وي. ) اودا (استصحاب الحال) صلاحيت نه لري چې حجت شي په استحقاق (ديوخيز) كي (يعني دا استصحاب الحال زمونږ په نيزدا صلاحيت لري.چه دځان نه ضرر دفع كړي. خو د استحقاق صلاحيت نه لري.چه ديوخيزمستحق جوړ شي.هم دا وجه ده.چه مفقود دخپل مال لپاره ژوندې ګڼړلې شي.نوچه ژوندې ګڼړلې شي.ميراث به ترې نشي اوړي.اودبل دمال لپاره مړ ګڼړلې شي.نوكه بل څوك وفات شي.دې ترې ميراث نشي اوړي.خكه چې په ده كي د استحقاق صلاحيت نشته)

# كِتَابُ الإِبَاقِ

**ترجمه و تشريح** > (دا) كتاب دتختيدلي غلام (د احكامويه بيان كي ) دې.

**دعبدآبق باندې دخرچ شوې مال دمطالبه حكم**

(اذاابق المملوك فرده رجل عَلَى مَوْلَاهُ مِنْ مَسِيرَةِ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا فَلَهُ عَلَيْهِ جُعْلُهُ وهواَرْبَعُونَ دِرْهَمًا، وَإِنْ رَدَّهُ لِأَقَلَّ مِنْ ذَٰلِكَ فَبِحِسَابِهِ)

**ترجمه و تشريح** > فرماني(ابو الحسين قدوري رحمه الله) كله چې اوتختي مملوك نو راواپس كړو هغه يو كس خپل مالك ته په مسافه د درې ورځونه يا زيات وي ددې (درې ورځو دمسافت) نه (يعني په كوم ځاى كي چې ئې عبد آبق نيولې وي .دهغه ځاى نه دې دمالك دځاى پورې د درې ورځو مسافه اومزل وي) نودده (عبدآبق نيونكي) لپاره په ده (مالك دغلام) باندې خرچه دده(عبدآبق) ده څلويښت روپۍ ، (يعني كه د درې ورځوپه مسافه يا ددې نه زياته فاصله وه.نومالك به دې رانيونكي ته څلويښت روپۍ

ورکوی)اوکه واپس نې کړلو(دغه عبدآبق خپل مالك ته) په کم مسافه دوې مسافه دديې مسافه د درې ورځو) نه،نو(خرچه به ورکوی) په حساب دهغې (څلويښت روپو به ورکوی.مثلاً که د يوې ورځې په مسافه باندې د لرې ځائې نه ئې راوستې وی.نوڅلويښت چې په دريو ويش کړې شي.څه سربيره ديارلس روپۍ راځي.نوڅه سربيره ديارلس روپۍ خرچه به ورته ورکوی.دغه ډول که د يوې نيمې ورځې مسافه وی.نوشل روپۍ به ورکوی) اودا (حکم د څلويښتو روپو ورکولو) استحسان دې. (عالمانوښه ګنړلې دې.اودصحابه کرامو رضي الله عنهم پرې اتفاق دې)

**دليله**> دليل دا دې.چه صحابه کرام رضي الله عنهم متفق شوی وو په وجوب د نفس خرچې (يعنى په دې باندې خواره متفق دی.چه کوم کس تخيتدلې غلام خپل مالك ته راولی.نومالك به ورته پيسې ورکوی)(۱) البته دومره ده چې په دوی (صحابو رضي الله عنهم) کې هغه څوك دی چې واجب کړې ئې دی څلويښت روپۍ (چه مالك به آخذ ته څلويښت روپۍ ورکوی.لکه حضرت عمر رضي الله عنه شو) اوپه دوی کې هغه څوك دی چې واجب کړې ئې دی کمې ددې (څلويښتو) نه، (لکه حضرت علی رضي الله عنه شو) نو مونږ واجب کړلې څلويښت روپۍ په مسافه د سفرکې (چه درې ورځې دی) اوکمې (روپۍ مو واجب کړې) په هغه (مسافت) کې چې کم وی د دې ( مسافه دسفر) نه، لپاره د موافقت راوستلوپه مينځ د آثاروکښې) اودجمعې راوستلوپه مينځ ددې دواړه قسمه روايات وکې (چه روايت د څلويښت روپو دې اوروايت د څلويښتو نه دکمو روپودې)

## دغلام قيمت د څلويښتو روپونه د کموالي صورت

| (وَإِنْ كَانَتْ قِيمَتُهُ أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعِينَ قَضَى لَهُ بِقِيمَتِهِ إِلَّا دِرْهَمًا) |
|---|

**ترجمه و تشريح**> فرمائی(ابو الحسين قدوری رحمه الله) اوکه چيرته وی قيمت دده(غلام) کم د څلويښتو روپو نه، نو فيصله به کولې شی دده(واپس راوستونکی) لپاره په قيمت دهغه(چه څلويښت روپۍ دی) مګريوه روپۍ (به کمه ورکوی.يعنى ديوکم څلويښتو روپوقيمت به ئې مقررکولې شی) صاحب دهدايه فرمائيلی دی چې دا (ورکول د يوکم څلويښت روپو) قول دامام محمد رحمه الله دې.

**دليله**> دليل دا دې.چه مقصود مائل کول د بل کس دی په واپس کولو (دعبدآبق خپل مالك ته)دې لپاره چې ژوندې شی مال د مالك (يعنى عبدآبق دمالك په حق کې پښان د مرې دې.څکه چې لکه څنګه سړې د مرې نه فائده نشي اخستې.دغه ډول مالك دعبدآبق نه فائده نشي اخستې .نودعدم فائدې په اعتبارسره دې دمالك لپاره پښان د مړ دې.خوچه دريمګړی واپس راوستلو .نو دا داسې شو.لکه چې ژوندې شو) نوکمولې به شی ترې يوه روپۍ دې لپاره چې اوسپارلې شی ده (مالك) ته څه معمولی غوندې خيز(چه يوه روپۍ ده) لپاره د ثابتولو د فائدې (چه مالك ته هم څه فائده اورسی.اوکه دغلام قيمت څلويښت روپۍ وی.اومالك واپس راوستونکی ته هم څلويښت روپۍ ورکړی.نوپه دې کې خومالك ته هدو څه فائده ملاؤ نشوه.بلکه دا خوداسې شوه.چه مالك يواجنبی غلام چې د څلويښتو روپو وو.هغه ئې واخستلو)

---

۱) فعن ابن مسعود رضي الله عنه وجوب اربعين أخرجه عبدالرزاق فی مصنفه وكذا البيهقی فی سننه الكبرى (١٦\٣٣٠) وعن عمر رضي الله عنه وجوب دينار أو إثنى عشر درهما أخرجه ابن ابي شيبة فی مصنفه (نصب:٣\٧١٤)۔

**قول ابي يوسف**﴾ اوفرمانيلي دی امام ابويوسف رحمه الله دده (واپس راوستونکی) دپاره ،څلويښت روپۍ دی[1]

(اګرچه دغلام قيمت دڅلويښتونه کم وی)

**دليله**﴾ ځکه چې اندازه کول (دخرچې) په دې (څلويښتو روپو پورې) ثابت شوی دی په نص سره (چه آثارد صحابو رضي الله عنهم دی) نونه به شي کمولې ددې (څلويښتو روپو) نه،اوددې امله (چه څلويښت روپۍ منصوص عليه دی) نه ده جائزه صلح (په مينځ د واپس کونکی اومالك کې ) په زياتي سره (ددې څلويښت روپو،يعنی کله چې د غلام راوستونکې کس د درې ورځود مسافه په لرې والی باندې تختيدلې غلام خپل مالك ته راولی.او د راوستونکی اومالك په مينځ کې دڅلويښتو روپونه په زياته باندې فيصله اوشی .مثلاً مالك ورته وائی.چه زه به تا ته پنځه څلويښت روپۍ درکړم.نودا هم جائزنه ده.ځکه منصوص عليه څلويښت روپۍ دی.دهغې سره به زيادت نشی کولې)اوپه خلاف د صلح (په مينځ د واپس راوستونکی اومالك) په کمو (د څلويښتو روپو) باندې، (يعنی چې کوم کس غلام واپس راوستې وی. هغه دمالك سره په دې راضی شی.چه دڅلويښتو نه کمې روپۍ مثلاً ديرش به راوستونکی دغلام ته ورکړی.نودا جائزده) ځکه چې دا خودهغې (څلويښت روپو) نه کمې دی. (اوپه دې کې څه قباحت نشته)

## د واپس راوستونکې دلاس نه دغلام تختيدلوحکم

(وَإِنْ أَبَقَ مِنَ الَّذِي رَدَّهُ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ وَلَا جُعْلَ لَه)

**ترجمه و تشريح**﴾ فرمانی(ابو الحسين قدوری رحمه الله) اوکه اوتختيدلو (غلام) دهغه چانه چې واپس ئې راوستې وو دې (غلام) نو نشته څه څيزپه ده (واپس راوستونکی) باندې،اونه دهغه دپاره مزدوری شته.

**دليله**﴾ ځکه چې دا (عبدآبق) امانت دې په لاس د ده (واپس راوستونکی) کې ، (اولکه چې د مودع نه امانت ورك شی.يا اوتختی.په هغه باندې ضمان نه وی) خو داحکم (چه د واپس راوستونکی نه غلام اوتختی.نوپه ده باندې ضمان اوتاوان نشته) په هغه صورت کې دې چې دې ګواهان قائم کړی (يعنی کله چې تختيدلې غلام اونيسی.نودا چغه اووهی.چه دا غلام د چانه راتختيدلې دې.که دچا وی چې حواله ئې کړم ورته.اودده دا اعلان دوو کسانو اوريدلې وی. او هغوی ګواهی ورکړی.چه آو ده زمونږ په مخ کې دا اعلان کړې وو) اويقيناً مونږ ذکرکړې ددې (ګواهانو قائمولو) په (کتاب) لقطه کې ، (اوکه د ده په اعلان کولوباندې ګواهان نه وی.نوددې نه خودا معلومه شوه.چه دې کس دا غلام دخپل ځان لپاره رانيولې دې.نودې غاصب شو.اوکله چې دغاصب په لاس کې مال مغصوبه هلاك شی .په هغه باندې ضمان وی.نوپه ده به هم ضمان وی)

(وَيَنْبَغِي إِذَا أَخَذَهُ أَنْ يُشْهِدَ أَنَّهُ يَأْخُذُهُ لِيَرُدَّهُ على صاحبه)

**ترجمه و تشريح**﴾ فرمانی (ابو الحسين قدوری رحمه الله) اومناسب دی چې کله اونيسی دې (عبدآبق) چې ګواهان جوړ کړی په دې باندې دې (نيونکې) رانيسی دې لپاره دواپس کولودده (عبدآبق خپل مولی ته،دا دابو الحسين قدوری رحمه الله کلام دې.

**دليله**﴾ ځکه چې دګواهانوقائمول پرينبول نښانه ده چې ده (نيونکی) رانيولې دې دې(عبدآبق) دخپل ځان دپاره، (ځکه که چيرته مالك ته د واپس کولوپه نيت ئې رانيول.نوبکارده چې اعلان ئې کړې وې)

---

[1] ) القول الراجح هوهذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في فتح القدير(٥\٤٤٦) و ردالمختار(٣\٤٠٦) والدرالمختار(٣\٤٠٦) و رد المختار(٣\٤٠٧) نقلاً عن القول الراجح (١\٥٠٩)-

**الاستثناء>** مګر دا چې کله ګواهان قائم کړی په دې چې ده (مشتری) اخستې دې دا (عبدابق) لپاره دواپس کولونو(په دې صورت کې) کیږی دده (مشتری) لپاره خرچه (یعنی داخستلو دقیمت نه سوا چې د ده عبدآبق په واپس کولوباندې کومه خرچه شوې وی.مولی به ورته هغه ورکوی) اودې (مشتری) احسان کونکې دې په ورکولود پیسو(هغه چاته چې غلام ئې ترې اخستې وی)

**دعبد آبق د خرچه ذمه وار**

(فَإِنْ كَانَ الْآبِقُ رَهْنًا فَالْجُعْلُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ)

**ترجمه و تشریح>** اوکه چیرته وی تختیدلې غلام ګانړه (د مرتهن سره،اودمرتهن نه اوتختیدلو. او یوکس مرتهن ته واپس راوستلونوپه دې صورت کښې) خرچه په مرتهن ده.

**دلیله>** ځکه چه ده(واپس راوستونکی) ژوندې کړلو مالیت دده(مرتهن) په رد کولو (دغلام) سره، (یعنی مرتهن دخپل قرض په بدله کښې د مقروض نه داغلام ګانړه کړې وو. نوچه مرتهن ته دغه غلام واپس کړې شو.نوګویا چه دهغه حق ژوندې شو.ځکه چه مرتهن ته خوبه خپل حق هله ملاویږی.چه کله دې راهن ته دهغه رهن واپس کړی) اودا (مالیت دعبد) حق د ده (مرتهن) دې.ځکه چه حاصلول د حق دده (مرتهن) د ده(غلام) نه دې. (چه مرتهن سره غلام موجود وی.نوهله به ورته راهن خپل قرض ورکوی) اوخرچه (کومه چه په عبدآبق باندې راغلی وی) په مقابله د ژوندی کولود مالیت ده. (یعنی دغلام خرچه به په هغه چاباندې راځی.چه دهغه مالیت ژوندې شوې وی.اوهغه مرتهن دې)نوو به (خرچه) په ده( مرتهن) باندې.

# كِتَابُ إِحْيَاءِ الْمَوَاتِ

**ترجمه>** ( دا) کتاب د احیاء موات (یعنی د شاړې زمکې ابادولو د احکامو په بیان کې ) دې.

**تشریح>** ① موات په اصل کې هغه حیوان ته وئیلې شی.چه هغه مړ شوې وی.بیا هغه زمکې ته چې د هغې هیڅ څوک مالك نه وی.او هغه نا قابل انتفاع وی.د ځاروی مرګ سره تشبیه ورکولو سره موات (مړه یعنی شاړه زمکه) نوم ایخودلې شوې دې.او د احیاء نه مراد په اعتبار د عرف تصرف او انتفاع ده.مثلاً زمکه باندې ئې عمارت جوړ کړو.یا ئې په دې کې کرونده اوکړله، یا ئې وُنې اولګولې.

**المناسبة بما قبله>** لکه څنګه چې تختیدلې غلام د واپس راتلو نه وړاندې د مړی پشان وی دغه شان زمکه چې د کرکروندې قابله نه وی نو دا د مړی پشان ده.د دې وجې د دواړو کتابونو په مینځ کښې یو مناسبت شو.

**د ارض موات مصداق**

| اَلْمَوَاتُ مَا لَا يُنْتَفَعُ بِهِ مِنَ الْأَرْضِ موات هغه زمکه ده.چه هغې نه انتفاع اونکړې شی لِانْقِطَاعِ الْمَاءِ عَنْهُ د هغې نه د اوبو د منقطع کیدو په وجه، أَوْ لِغَلَبَةِ الْمَاءِ عَلَيْهِ یا هغې باندې د اوبو د غلبې په وجه أَوْ مَا أَشْبَهَ ذَلِكَ مِمَّا يَمْنَعُ الزِّرَاعَةَ یا کومه چې ددې مشابه وی.د هغه څیزونو څخه کوم چې کرونده منع کوی |
|---|

**حل اللغة >** ① **الاراضي**: جمع د ارض، زمکه ② **الانتفاع**: فائده اخستل]

**تشریح>** دا د موات شرعی تعریف دې.چه موات هغه زمکې ته وئیلې شی.چه په څه وجه هغه قابل د انتفاع نه وی پاتې شوې.یا خو ددې د مالکیجن کیدو په وجه، یا د شګې د ډیروالی په وجه، یا د خالص بدلیدو په وجه، یا د اوبو منقطع کیدو په وجه، یا د اوبو د ډیر والی په وجه،

**د ارض موات مصداق**

فَمَا كَانَ مِنْهَا عَادِيًّا لَا مَالِكَ لَهُ نو كومه زمكه چې عادي وي.( پخوانۍ شاړه او بې آباده) چې د هغې هيڅ څوك مالك نه وي أَوْ كَانَ مَمْلُوكًا فِي الْإِسْلَامِ يا هغه په اسلام كې قبضه كړې شوې وي لَا يُعْرَفُ لَهُ مَالِكٌ بِعَيْنِهِ چې دهغې څوك معين مالك معلوم نه وي وَهُوَ بَعِيدٌ مِنَ الْقَرْيَةِ او هغه د كلي نه دومره لرې وي بِحَيْثُ إِذَا وَقَفَ إِنْسَانٌ مِنْ أَقْصَى الْعَامِرِ فَصَاحَ چې كله څوك د آبادۍ په آخر كې اودرېږي.او آواز اوكړي لَا يُسْمَعُ الصَّوْتُ فِيهِ فَهُوَ مَوَاتٌ نو هغې كې آواز واؤ نه ريدې شي.نو هغه موات (مړه او شاړه) ده.

**حل اللغة** < ①**القرية**: كلې ② **صاح**: آواز اوكړي ③**الصوت**: آواز]

**تشريح**> موات هغه زمكې ته وائي.چه د پخوا زمانې داسې وُرانه، شاړه،او د كروندې نا قابله پرته وي.او د هغې هيڅ څوك مالك نه وي.يا دارالاسلام د هغې مالك وي.خو څوك سړې د هغې مالك نه وي.او د آبادۍ نه دومره لرې وي.كه څوك سړې د آبادۍ آخري برخه (حصه) كې اودرېږي.او آواز اوكړي.نو دغه زمكې پورې آواز نه رسيږي.كه دا شرطونه موجود نه وي.نو هغې ته به موات نه وائي.او د هغې آبادول به صحيح نه وي.او كه دا آبادۍ ته نژدې (نيزدې) وي.نو دا د شهر فناء ( حريم او احاطه) ده.چه د كلي خلق ددې نه فائده اخلي.نو ددې آبادول به صحيح نه وي.

**وجه النسبة الي عاد** > عاد ارخ (طرف) ته منسوب دې.چه په دې سره د پخوانۍ كېدو كنايه كولې شي.خكه چې عاد پخوا زمانه كې وو.نو عاد هغې ته ونيلې شوې دې.چه پخوانۍ وُرانه وي.او ددې هيڅ څوك مالك معلوم نه وي.

**القاعدة**> قاعده دا ده.چه مطلق كامل ارخ (طرف) ته منسوب ( او مائل) وي.او مطلق موات هغه زمكه ده.كومه چې د هيڅ مسلمان او ذمي مملوك نه وي.نو كه يوه زمكه د يو مسلمان يا د يو ذمي وي.او هغه وُرانه وي.نو هغې ته به مرزګي (مرداره) ( شاړه) نشي ونيلې.خكه چې كومه زمكه د مسلمان يا ذمي مملوك ده.د هغې د خرابوالي باوجود به د هغې نه د مسلمان ملكيت نه زائل كيږي.نو په حديث كې چې كوم لفظ د ميته استعمال شوې دې.د هغې سره به (نه به) كامل مراد وي.او د كامل كېدو لپاره ضروري ده.چه هغه د چا مملوك نه وي.په دې وجه امام محمد رحمه الله دا شرط اولګولو.كوم چې ذكر شو.

**د شاړې زمكې آبادولو مالك جوړېدو لپاره د امام د اجازت مسئله**

مَنْ أَحْيَاهُ بِإِذْنِ الْإِمَامِ چا چې آباده كړله وُرانه زمكه،د امام په اجازت سره مَلَكَهُ، نو هغه به ددې مالك وي وَإِنْ أَحْيَاهُ بِغَيْرِ إِذْنِهِ او كه دا نې د امام د اجازت نه بغير آباده كړې وي لَمْ يَمْلِكْهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ[1] نو ددې مالك به نه وي.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز

**حل اللغة** > ①**سبقت**: وړاندې والې كړې وي ②**الحطب**: خاشي(خشاك) ③ **الصيد**: ښكار]

**تشريح**> د امام صاحب رحمه الله په نيز كه احياءِ موات ( شاړه زمكه آبادول) د امام په اجازت سره شوې وي.نو ابادونكې به ددې مالك وي.ګني سره به (نه به) وي.

[1] القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في العناية (٩\٤) وردالمحتار (٣٠٧\٥) وملتقى الأبحر (٢٢٩\٤) والخانية (٢٥٣\٤) والدرالمنتقى (٢٢٩\٤)نقلاً عن القول الراجح (٣٠٩\٢)-

**دلائله**> ① د نبی کریم ﷺ ارشاد دې ((لَيْسَ لِلْمَرْءِ إِلَّا مَا طَابَتْ نَفْسُ إِمَامِهِ)) (۱) سړی ته هغه شی (څیز) ملاویدې شی.په کوم سره چې دده امام راضی شی.، نو ددې نه د امام اجازت شرط کیدل معلومیږی.

② دویم دلیل دا چې دا زمکه هم د مال غنیمت څنې ده.او په مال غنیمت کې چاته هم دا حق نه وی.چه دا پخپله واخلی.بلکه د امام د طرفه په تقسیمولو باندې موقوف ده.او ددې مال غنیمت کیدل ښکاره دی.څکه چې مسلمانانو ته دا زمکه حاصل شوې ده.په داسې حال کې چې دوی په اسونو سواره شوی وو.او چور (حمله) ئې کړې وه.

| وَقَالَا يَمْلِكُهُ صاحبین فرمائی چه هغه به ددې مالک وی. |
|---|

**مسلك الصاحبين**> صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه په هرصورت کې به هغه ددې مالك وی.

**دلائلهما**> ① دلیل د نبی کریم ﷺ قول دې ((مَنْ أَحْيَا أَرْضًا مَيْتَةً فَهِيَ لَهُ)) (۲) دا حدیث مطلق دې. چې په دې کې د امام د اجازت قید نشته.

② دویم عقلی دلیل دې.چه په مباح مال باندې څوك د وړاندې قابض شی.نو هغه هم د هغه وی.لکه ښکار او خشاك،نو دلته کې به هم دغه ډول (دغه شان) وی.

**فائده**> د امام صاحب رحمه الله قول مختار دې.اوکه آبادونکې ذمی وی.نو بالاتفاق د امام اجازت شرط دې.[سکب الانهر ص ۴۹۰ ج ۲]

| وَيَمْلِكُ الذِّمِّيُّ بِالْإِحْيَاءِ او د زمکې آبادولو سره به ذمی ددې مالك کیږی كَمَا يَمْلِكُهُ الْمُسْلِمُ لکه څنګه چې مسلمان ددې مالك کیږی |
|---|

**حل اللغة** > ① **استيلاء:** د کافرانوپه مالونو باندې غلبه حاصلول② **سائر:** ټول[

**تشريح**> لکه څنګه چې مسلمان د آبادې زمکې د آبادولو په وجه ددې مالك کیږی.دغه ډول (دغه شان) ذمی هم مالك کیږی.

**دليله**> څکه چې آبادول د ملك سبب دې.نو لکه څنګه چې دوی دواړه د ملك په نورو اسبابو کې برابر دی.دلته به هم برابر وی.تردې چې لکه څنګه مونږ (مونږ) د کافرانو په مالونو د غلبې په وجه ددې مالك کیږو.نو کافران به هم د مسلمانانو په مالونو باندې د غالب کیدو په وجه ددې مالونو مالك کیږی.چه ددې تفصیل وړاندې تیرشوې دې.

## مالك جوړيدو لپاره د نښانانو لګولو حکم

| وَمَنْ حَجَّرَ أَرْضًا چا چې ( د آبادولو لپاره علامت) په زمکه کې د کاڼرو حد اولګولو |
|---|

**تشريح**> که یوکس د نښاناتو او علامتونو لګولو نه روسته دریو کالو پورې زمکه هم هغه شان شاړه پریخودله. نو امام دې دا زمکه بل چا ته حواله کړی.

**دليله**> چه د زمکې د آبادولو ذریعه اوشی.او مسلمانانو ته د دې نه عشر یا خراج د زمکې دحیثیت مطابق ملاویږی.چه مسلمانانو ته نفع اورسیږی.او د کاڼرو په نښاناتو او علامتونو لګولو په وجه به ددې نه مالك کیږی.څکه چې مالك کیږی.په احیاء ( ژوندی کولو) سره.او احیاء اباد ولو سره کیږی.په

---

۱) قال الزيلعي رحمه الله رواه الطبراني وفيه ضعف من حديث معاذ رضي الله عنه وقد تقدم في كتاب السير(نصب ۴\۱۶۰)۔

۲) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه البخاري في الحرث والمزارعة باب ۱۵ ورواه احمد في المسند(۶\۱۲۰)۔

کانړو لګولو سره نه کیږی.بلکه دا خو یو علامت دی.چه خلقو ته خبرداری اوشی.چه دا موات دی.او بل څوك ددې احياء ( آبادي) اونکړی.نو دا زمکه چې څنګه وه.هم هغه شان دده مملوك پاتې شوه؟ يعني داسې نه ده.لکه څنګه چې بعضو ونیلی دی.چه ملك وو.خو دا مؤقت وو.بلکه ملکیت خو اوسه پورې شوی هم نه دی.څکه چې د ملك سبب نه دی موجود شوی.او هغه احياء ده.

| |
|---|
| وَلَمْ يَعْمُرْهَا ثَلَاثَ سِنِينَ او دا ئې آباده نکړله.تر دریو کالو پورې أَخَذَهَا الْإِمَامُ وَدَفَعَهَا إِلَى غَيْرِهِ نو امام به دا اخلي.او دا به دده نه علاوه ته ورکوی |

**تشریح** > **الانتظار الي ثلاث سنين** > چا چې د احياء ( د زمکې آبادولو لپاره نشان لګولې دی.د هغه به دريو کالو پورې انتظار کولې شی.ددې نه روسته به نه کیږی.

**دليله** > څکه ① چې قاضی ابویوسف رحمه الله په کتاب الخراج کې د سعید بن المسیب رحمه الله نه د عمرفاروق رضي الله عنه دا فرمان نقل کړې دی.چه د کانړو نښې لګونکی لپاره د دریو کالو نه روسته هیڅ حق نشته.()

## آبادئ ته د نيزدې زمکې د احياء حکم

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ إِحْيَاءُ مَا قَرُبَ مِنَ الْعَامِرِ او کومه زمکه چې آبادئ ته نژدې (نيزدې) وی.د هغې احياء جائز نه ده وَيُتْرَكُ مَرْعًى لِأَهْلِ الْقَرْيَةِ وَمَطْرَحًا لِحَصَائِدِهِمْ او پريخودلې به شی.دا د کلی د خلقو چراګاه ( ورشو) دپاره،او ددوی د کټ شوو فصلونو اچولو د خانې (درمن) لپاره |

**حل اللغة** > ① **مرعي**: د څرخانې، چراګاه ② **مطرح**: درمن، ③ **حصائد**: کټ شوي فصلونه

**تشریح** > کومه زمکه چې آبادئ ته نژدې (نيزدې) وی.هغه به موات نه وی.په دې وجه به ددې احياء جائز نه وی.بلکه دا زمکه به د کلی د خلقو لپاره چراګاه ( ورشو) او د درمن ( د کټ شوی فصل راجمع کولو) لپاره پريښودې (پريخودې) شی.

**دليله** > څکه چې دې زمکې ته د کلی د خلقو حاجت دې.که حقيقي حاجت وی.لکه څنګه چې امام محمد رحمه الله فرمائيلی دی.يا دليل حاجت وی.لکه څنګه چې امام ابويوسف رحمه الله فرمائيلی دی.او دا واړه (تول) مخکې تير شو.نو لکه څنګه چې لاره او وياله (نهر) موات نه دی.او ددې احياء جائز نه ده.هم دغه حال به دهغه زمکې وی.کومه چې آبادئ ته نژدې (نيزدې) وی.

## د کوهی کنستلو،د چينې وغيره او ددې د احاطې بيان

| |
|---|
| وَمَنْ حَفَرَ بِئْرًا فِي بَرِّيَّةٍ او چا چې په ځنګل کې څاه (کوهې) اوکنستلو فَلَهُ حَرِيمُهَا نو هغه لپاره ددې حريم ( احاطې) دې |

**حل اللغة** > حريم د کوهی حريم ( احاطه) ددې سره نژدې (نيزدې) هغه خانې دې.کوم چې د کوهی حقوقو او منافعو سره تعلق ساتی.او دې ته حريم څکه وائی.چه په بل کس باندې دا حرام دی.چه په دې کې څاه (کوهې) اوکنی.يا بل څه تصرف اوکړی.

**تشریح** > احياء ( آبادول) د ملك د اسبابو څنې ده.او په کوهی کنستلو سره هم احياء کیږی. „کماهوظاهر“ بيا د امام صاحب رحمه الله په نيز دې کې د امام اجازت د تيرشوی ( مسئلو) پشان شرط دې.د صاحبينو

---

[1] - اخرجه ابويوسف رحمه الله في كتاب الخراج(نصب ٤\٢٠٤)_

چیرته په نیز شرط نه دي.،،کما مر،، نو کله چي یوکس په مړه ( شاړه) زمکه کي ( په اختلاف د دواړو اقوالو) څاه (کوهي) اوکنستلو،نو هغه لپاره به ددي حریم ( احاطه) ملاویږي.چه دهغي په وجه به بل کس ته دا حق نه وی.چه دده په حریم کي څاه (کوهي) اوکني.یا بل څه تصرف اوکړي.

### د فصل اوبه کولو والا کوهي لپاره د احاطي اندازه

| فَإِنْ كَانَتْ لِلْعَطَنِ که څاه (کوهي) ( څاروو ته) د اوبو څښلو (څکلو) لپاره وی فَحَرِيمُهَا أَرْبَعُونَ ذِرَاعًا |
|---|

**حل اللغة** > **عطن**: د کوهي ګیر چاپیره د اوښانو د کیناستلو ځاني، او د بیر عطن نه مراد هغه کوهي چي ددي مقصد صرف څاروو ته اوبه ورکول وی.فصلونو ته اوبه ورکول ددي مقصد نه وی.،،**ناصح**،، په حقیقت کي هغه کوهی ته وائي.کوم چي په عطن ( د کوهی شاو خوا (ګیرچاپیره) احاطه) کي چرګاو کوی.بیا په هر اوښ کي ددي استعمال اوشو.اګرچه هغه پخپل خان باندي اوبه نه بار کوی.او په اوښه (چه د ارتي نه پرې اوبه راویستي شی) او ارتي کي به چونکه اوښ یا غوني ترلي شو.او کار به ترې نه اخستلي شو.( لږه موده وړاندي ددي رواج وو.نن سهار (صبا) زمونږ په علاقو کي ددي رواج ختم شو.او د بجلي ټیوب ویل ددې په ځاني اولګولي شو) په دي وجه داسي کوهي ته بیرناضح اوونیلي شو.د بیر ناضح نه مراد هغه څاه (کوهي) دي.د کوم نه چي پټي اوبه کولي شي.

**تشریح**> وړاندي دا خبره معلومه شوي وه.چه کوهي لپاره به حریم وی.اوس سوال پیدا شو.چه حریم به څومره وی؟ نو وي فرمائیل.که څاه (کوهي) ددي لپاره وی.چه ددي نه په لاس سره اوبه راوښکلي شي.او څاروو باندي څکولي شی.او ددي نه ګیر چاپیره به څاروی آرام کوی.نو د داسي کوهی حریم څلویښت ذراع ( شرعي ګزه) دي.یعني د هر طرفه څلویښت څلویښت ذراع،

**دلیله**> د نبی کریم ﷺ د فرمان دي مَنْ حَفَرَ بِئْرًا فَلَهُ مِمَّا حَوْلَهَا أَرْبَعُونَ ذِرَاعًا عَطَنًا لِمَاشِيَتِهِ[1] چا چي څاه (کوهي) اوکنستلو نو هغه لپاره ددي شاو خوا (ګیرچاپیره) څلویښت ذراعه ده.د خپلو څاروو کینولو لپاره

| وَإِنْ كَانَتْ عَيْنًا او که چینه وی فَحَرِيمُهَا خَمْسُ مِائَةِ ذِرَاعٍ نو د هغي حریم پنځه سوه لاسه دي |
|---|

**تشریح**> او که دا کوهی چینه دار وو نو په اتفاق سره د اصح قول مطابق د دي حریم هرطرف ته پنځه سوه ګزه دي.

**دلیله**> ځکه چي د دي اوبه خوریږی.نو څه کمي په کښي نه راځی.

| فَمَنْ أَرَادَ أَنْ يَحْفِرَ بِئْرًا فِي حَرِيمِهَا نو کوم کس چي کوهي کنوی دده په حریم کښي مُنِعَ مِنْهُ نو ددي نه به منع کولي شي |
|---|

**تشریح**> د یو کس دپاره جائز نه دی چي دي د بل په حریم کښي کوهي اوکنوی

**دلیله**> دلیل دا دي چي ممکن ده چي د حریم دننه د کوهی په کنستلو سره د دویم کوهی ګندګی پـه بل کوهی کښي لاړه شي.یا د بل کوهی اوبهٔ دي کوهی ته راشی.دکومي په وجه چي اولنی ته نقصان دي.

[1] ) من حديث عبدالله بن مغفل ﷺ أخرجه ابن ماجه في سننه في الرهن باب ۲۲ رقم ۲٤۸٦) ورواه الدارمي في البيوع باب ۸۲)_

### د دریاب د اوبو لاره بدلولو سره ددغه زمکې د آبادئ حکم

وَمَا تَرَكَ الْفُرَاتُ أَوِ الدِّجْلَةُ او کوم ځائې چې فرات یا دجله پریخودو وَعَدَلَ عَنْهُ الْمَاءُ او هغې نه اوبه واوړیدې فَإِنْ كَانَ يَجُوزُ عَوْدُهُ إِلَيْهِ او دلته اوبه واپس راتګ (راتلل) ممکن دی لَمْ يَجُزْ إِحْيَاؤُهُ ددې احیاء جائز نه ده

**تشریح** دریاب کله کله خپل ځائې پریږدی.لکه چې ګنګا، جمنا کې اکثر هم داسې کیږی. نو د فرات او دجله تخصیص نه دې.بلکه چې هریو دریاب وی.نو په دې کې دریائې نیل، ګنګا، جمنا وغیره واړه (ټول) داخل دی.نو اوس به کتلې شی.چه دې ځائې کې بیا دوباره د اوبو د چپو راتلو امکان شته او که نشته؟ په رومبی صورت کې ددې احیاء جائز نه ده.ځکه چې دا موات (شاړه) نه ده.دا اوس هم د ویاله (نهر) په حکم کې ده.چه ددې احیاء (آبادول) جائز نه ده.

او که دوباره د اوبو د چپو راتلو امکان نه وی.نو اوس دوې (دوه) صورتونه دی. ① یا به د یوې آبادئ حریم وی. ② یا به د آباد ځائې حریم نه وی.په رومبی صورت کې ددې احیاء جائز نه ده.ځکه چې دا موات نه ده.او په دویم صورت کې ددې احیاء جائز ده.ځکه چې اوس دا موات ده.چه ددې هیڅ څوک مالك نشته.ځکه چې د اوبو قبضه د ټولو قبضه ختمه وی.او دې وخت دا د امام په قبضه کې ده.نو دده په اجازت سره (د امام صاحب رحمه الله په نیز) او په دواړو صورتونو کې (د صاحبینو رحمهما الله په نیز) ددې احیاء جائز وی.

### د بل په زمکه کښې د نهر د احاطې بیان

وَمَنْ كَانَ لَهُ نَهْرٌ فِي أَرْضِ غَيْرِهِ او د کوم کس چې د بل په زمکه کې ویاله (نهر) وی فَلَيْسَ لَهُ حَرِيمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِلَّا أَنْ يَكُونَ لَهُ بَيِّنَةٌ عَلَى ذَلِكَ، نو دده لپاره د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز حریم نشته.مګر دا چې هغه په دې باندې ګواهان قائم کړی

**تشریح** د یوکس ویاله (نهر) دې.چه ددې دواړو طرفونو کې د بل کس زمکه ده.نو د ویاله (نهر) لپاره به حریم وی.او که نه؟ امام صاحب رحمه الله فرمائی.چه حریم به نه وی.د اختلاف په وخت به پوله هم د زمکې د مالك ملکیت وی.البته که د ویاله (نهر) والا ګواهان قائم کړل.چه پوله زما ده.او زه ددې مالك یم.نو دده ګواهان به معتبر وی.

**دلیله** دا د امام صاحب رحمه الله دلیل دې.لکه څنګه چې زمونږ د ذکر شوی تفصیلاتو مطابق معلومه شوې ده.چه د حریم ثبوت خلاف قیاس دې.خو که دا اووئیلې شی.چه په کوهی کې د حریم ثبوت په نص سره ثابت دې.نو ‹‹إلحاق النهر بالبئر›› مشکل دې.او په کوهی کې د حریم ضرورت (ضرورت) زیات دې.او په ویاله (نهر) کې کم دې.ځکه چې د ویاله (نهر) نه بغیر د حریم نه نفع اخستل ممکن ده.خو په کوهی کې د حریم نه بغیر نفع اخستل ممکن نه ده.ځکه چې نهر کې خو اوبه چلول دی.او د کوهی نه راویستل دی.او د راویستلو لپاره څه ځائې پکار دې.که انسان ئې راوباسی.هغه لپاره هم، اوکه اوبښ یا غوئې ئې راوباسی.بیا هم، ځائې په دواړو صورتونو کې ضروری دې.نو ددې نه هم معلومه شوه.چه ویاله (نهر) د کوهی سره لاحق کول متعذر او مشکل دی.

وَعِنْدَهُمَا: لَهُ مُسَنَّاةُ النَّهْرِ يَمْشِي عَلَيْهَا وَيُلْقِي عَلَيْهَا طِينَهُ او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه دده لپاره به د ویاله (نهر) پوله وی.چه ددې سربیره (دپاسه) هغه ګرځی.او په دې باندې د ویاله (نهر) خټه اچوی.

**حل اللغة** ① **مسناة النهر:** د ویاله (نهر) پوله ② **طین:** خټه ]

**مسلك الصاحبين**> صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه حريم به وي.يعني كم از كم د وياله (نهر) پوله به وي.چه ددې لپاره تللې شي.او د وياله (نهر) كنستو په وخت ددې ختې په دې سربيره (دپاسه) اچولې شي.

**دليلهما**> د صاحبينو رحمهما الله دا دليل دې.چه د وياله (نهر) مالك ته به حريم ملاويږي.ځكه چې ښكاره حال هم دده لپاره شاهد دې.ځكه چې د حريم نه بغير د وياله (نهر) نه نفع نشي اخستې كيدې.ځكه چې د وياله (نهر) مالك ته د اوبو د ساتنه (حفاظت) لپاره په پوله باندې د تللو ضرورت (ضرورت) راپيښيږي.او په اوبو كې دننه تلل د عادت خلاف دي.او د وياله (نهر) خټه راويستلو لپاره په پوله باندې د اچولو ضرورت (ضرورت) راپيښيږي.ګنې بل ځائې ته ختهٔ اوړلو، او اچولو كې ښكاره ضرر دې.نو لكه څنګه چې د ضرورت (ضرورت) په خاطر د كوهي لپاره حريم وي.نهر لپاره به هم حريم وي.

# كِتَابُ الْمَأْذُوْنِ

**ترجمه**> (دا) كتاب د ماذون (د احكامو په بيان كې) دې.

**تشريح**> كتاب الماذون ئې د كتاب احياء الموات نه روسته ځكه ذكركړې دې.غلام ته چې تر كومې پورې د تجارت اجازت نه وي ملاو شوې نو د هغه مثال پشان ورك شوې څيز دې اوچې كله ورته اجازت ملاؤ شي نو هغه ته يو نوې ژوند ملاؤ شي.نو لكه څنګه چه مړې زمكې ته ژوند ملاويږي دغه شان غلام ته هم ژوند ملاويږي.دا يې مناسبت او ربط شو.

**الاذن لغة**> اذن په لغت كې په معنى د اعلام (خبرولو) دې.يعني اطلاع كول، او وئيل.د فقه په اكثرو كتابونو كې هم دا ذكر دى.

**الاذن اصطلاحاً**> په اصطلاح د شرع كې اذن ،،فك حجر،، او،،اسقاط حق،، ته وائي.يعني بچې د كم عمرئ په وجه او غلام د غلامئ په وجه د څه تصرف نه منع كړې شوې وو.هغوى ته د تصرف اجازت وركول.د،،فك حجر،، نه اطلاق د حجر مطلقاً مراد نه دې.بلكه صرف د تجارت د امورو اطلاق مراد دې.ځكه چې عبد ماذون لپاره تبرع او اعتاق او د تكفير بالمال (د مال په ذريعه د كفارې اداكولو) اجازت نه وي.په اسقاط د حق كې د حق نه مراد حق د آقا دې.ددې مطلب دا دې.چه كله آقا خپل غلام ته د تجارت اجازت وركړو.نو دده د كوم حق په وجه چې غلام د تصرف نه منع كړې شوې وو.هغه په اجازت وركولو سره دا حق ساقط كړو.په هدايه، عنايه، او كفايه وغيره ټولو كې هم دا ذكر دى.صاحب د تنوير او صاحب د اصلاح او ايضاح وئيلى دى.چه د حق نه مراد حق د منع دې.صرف د آقا حق مراد نه دى.ځكه چې په دې صورت كې به اذن صرف غلام ته ګډ (شامل) وى.صغير (ماشوم) ته نه شامليږي.حالانكه اذن غلام او صغير دواړو ته ګډ (شامل) دې.خو آفندى په تكمله كې په يو څو وجوهو سره د دې ترديد كړې دې.

**د عبد ماذون تفصيلي احكام**

> (إِذَا أَذِنَ الْمَوْلَى لِعَبْدِهِ فِي التِّجَارَةِ إِذْنًا عَامًا) كله چې اجازت وركړو.آقا خپل غلام ته د تجارت عام اجازت، (جَازَ تَصَرُّفُهُ فِي سَائِرِ التِّجَارَاتِ) نو جائز به وي.دده تصرف په ټولو تجارتونو كې ،

**تشريح**> كه آقا خپل غلام ته عام اجازت وركړو.د يو معين شي (څيز) يا د خاص ډول (قسم) تجارت سره ئې مقيد نكړو.مثلاً داسې ئې اووئيل.چه ما تا ته د تجارت اجازت دركړو.نو غلام ته به د هرقسمه تجارت اجازت وي.يعني دده لپاره اخستل، خرڅول، وكيل جوړول، رهن ايخودل، رهن

اخستل، اجرت باندې اخستل،مضاربت کول،د پور (قرض) یا امانت، یا د غصب اقرار کول،غرض دا چې واړه (ټول) تصرفات جائز دی.

**دلیله**> ځکه چې د آقا په قول(أذنت لك في التجارة...) کې لفظ د تجارت اسم جنس محلی باللام دې.نو دا عام شو.نو د تجارت ټولو انواعو او د تجارت لوازمو ته به ګډ (شامل) وی.

| (وَلَهُ أَنْ يَشْتَرِيَ او دده لپاره جائزدی.چه اخستل اوکړی سلم لپاره مال ورکړی.وَيَبِيعَ)او خرڅول اوکړی ( وَيَرْهَنَ وَيَسْتَرْهِنَ )او دې رهن هم اخستلې او ورکولې شي. |
|---|

**تشریح**> د ترجمې نه مطلب ښکاره دې.

**دلیله**> ځکه چې دا دواړه د تجارت د توابع څنې دی. ځکه چې دا ادا کول او وصولول دی.

## د خاص څیز په اجازت سره د باقی اقسامو د اذن حکم

| وإِنْ أَذِنَ لَهُ فِي نَوْعٍ مِنْهَا دُونَ غَيْرِهِ که اجازت ئې ورکړو ده ته د تجارت د یو خاص نوع،ددې نه د علاوه نې ورنکړو.فَهُوَ مَأْذُونٌ فِي جَمِيعِهَا)نو هغه به په ټولو اقسامو کې ماذون وی. |
|---|

**تشریح**> که آقا عبد ماذون ته د تجارت د یو خاص نوع اجازت ورکړو.بیا به هم ده ته زمونږ د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز د تجارت د ټولو انواعو اجازت وی. (۱)

**دلیله**> دلیل دا دې.چه اذن حجر لرې کول او حق ساقطول دی.چه ددې تحقیق به پیل (شروع) کې تیر شوې دې.اوکله چې آقا خپل حق ساقط کړو.او حجر ئې لرې کړو.نو د غلام مالکیت ښکاره شو.نو یو خاص نوع تجارت سره به اختصاص نه وی.

| فَإِذَا أَذِنَ لَهُ فِي شَيْءٍ بِعَيْنِهِ اوکه د یو معین شی (څیز) اخستلو اجازت ورکړی.فَلَيْسَ بِمَأْذُونٍ )نو هغه به ماذون نه وی. |
|---|

**تشریح**> معنی دا ده.چه ده ته د لباس ( اغوستلو) لپاره د کپړې اخستلو، یا د خپل اهل وعیال لپاره د غلې اخستلو حکم ورکړو.

**دلیله**> او ددې وجه دا ده.که دې په دې سره هم ماذون شي.نو د خدمت اخستلو دروازه به بنده شي.

| (وَإِقْرَارُ الْمَأْذُونِ بِالدُّيُونِ وَالْغُصُوبِ جَائِزٌ او د ماذون د قرضونو او د غصبونو اقرار کول جائز دې. |
|---|

**تشریح**> که عبد ماذون د قرضونو او د غصب اقرار اوکړی.نو دده اقرار جائز دې.که قرضه نقده وی.یا د څه شي (څیز) قیمت وی.او آقا دده تصدیق اوکړی.یا تکذیب اوکړی. (۲)

**دلیله**> ځکه چې اقرار د تجارت د توابع او لوازمو څنې دې.که اقرار صحیح نه وی.نو خلق به دده سره اخستل خرڅول او د معامله کولو نه پرهیز کوی.

---

(۱) **مسلک الشافعي**:- د امام زفر او امام شافعي رحمهما الله په نیز به صرف په دې خاص نوع کې ماذون وی.د کوم نې چې اجازت ورکړې دې. علامه مرغیناني رحمه الله فرمائیلی دی.هم دا اختلاف په دې صورت کې دې.کله چې آقا دې د یو خاص ډول (قسم) د تجارت نه منع کړې وی.زمونږ (مونږ) په نیز به دې ممنوع نه وی.او د امام شافعي رحمه الله په نیز به ممنوع وی.

(۲) **مسلک الأئمة**:- ( د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز د معاملې د قرضونو اقرار جائز دې.اود غصب او هلاکولو (کولو) اقرار په دې صورت کې جائز دې.کله چې آقا ددې تصدیق اوکړی) دغه ډول (دغه شان) د ودائع او امانتونو اقرار هم جائز دې.

## کوم امور چې د ماذون لپاره نا جائز دي

(وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ)او ماذون ته د نکاح کولو اختيار نشته.

**تشريح**> عبد ماذون ته دا اختيار نشته.چه هغه خپله نکاح اوکړي.

**دليله**> ځکه چې دا څه تجارت نه دې.او د طرفينو او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز د عبد ماذون په مال تجارت کې چې کوم غلام يا وينځه وي.د هغوی نکاح هم نشي کولې.

**مسلک امام ابويوسف رحمه الله** > د امام ابويوسف رحمه الله په نيز د وينځې د واده اختيار شته.ځکه چې د وينځې په منافعو سره مال يعني مهر حاصليږي.او اجازت نه مقصود مال حاصلول دی.نو داسې شوه.لکه وينځه په مزدورئ باندې ورکول، چې دا جائز دی.

**دلائلهما** > د طرفينو رحمهما الله دليل دا دې.چه د اجازت مقصد مال حاصلول دی.دا منو.خو دا مطلقاً نه دی.چه هغه د مکاتب پشان ځنګه غواړي.مال حاصل کړي.بلکه مال حاصلول په داسې طريقه پکار دي.چه هغه د باب تجارت ځنې وی.او د وينځې نکاح کول هيڅ تجارت نه دې.په دې وجه ده ته د غلام د واده اختيار نه وی.

(وَلَا أَنْ يُزَوِّجَ مَمَالِيكَهُ)او د خپلو مملوکو ( وينځو او غلامانو) نکاح هم نشي کولې.

**تشريح**> عبد ماذون ته دا اختيار نشته.چه هغه خپله نکاح اوکړي.

**دليله**> ځکه چې دا څه تجارت نه دې.او د طرفينو او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز د عبد ماذون په مال تجارت کې چې کوم غلام يا وينځه وي.د هغوی نکاح هم نشي کولې.

## ماذون غلام لپاره د غلام مکاتب کولو حکم

(وَلَا يُكَاتِبُ)او سره به (نه به) مکاتب کوی.

**تشريح**> عبد ماذون ته دا اختيار نشته.چه هغه خپل غلام مکاتب کړي.

**دليله**> ځکه چې دا هيڅ تجارت نه دې.

(وَلَا يُعْتِقُ عَلَى مَالٍ)او سره به (نه به) آزادوی په مال باندې،

**دليله**> ځکه چې هرکله دې د کتابت مالك نه دې.نو د ازادولو به په طريقه اولی مالك نه وی.

(وَلَا يَهَبُ بِعِوَضٍ وَلَا بِغَيْرِ عِوَضٍ،

**تشريح**> د ترجمې نه مطلب واضح ده

**دليله**> ځکه چې دا واړه (ټول) صريح احسانات دی.ابتداءً ، او انتهاءً ، يا صرف ابتداءً ، نو دا به د تجارت په اجازت کې داخل نه وی.

((إِلَّا أَنْ يُهْدِيَ الْيَسِيرَ مِنَ الطَّعَامِ خو دا چې معمولي شان خوراك هديه کړي.أَوْ يُضَيِّفَ مَنْ يُطْعِمُهُ)يا د هغه کس ملمستيا اوکړي.چا چې په ده باندې خوراك کړې دې.

**تشريح**> د ،،ولايهب،، نه استثناء ده.او د ،،من الطعام،، قيد دې اړخ (طرف) ته اشاره کوی.چه د غير ماکولات هديه به بالکل جائز نه وی.([1])

[1]) **مسلك الائمة**:-د امام مالك او امام شافعي رحمهما الله په نيز دلته د آقا د اجازت نه بغير ددې اختيار هم نشته.او هم دغه ډول (دغه شان) ددوی په نيز د معمولي ملمستيا حکم دې.

**دلائله**> ① دليل دا دې چې نبی کريم به د غلام دعوت قبلولو.
② ځکه چې دا د تجارت د ضروریاتو څخه دي.د مالداره تاجرانو ( سوداګرو) زړه مائل کولو دپاره.
(ولنا أن النبي ﷺ كان يجيب دعوة المملوك)..

**په ماذون غلام باندې د پور (قرض) حکم**

(وَدُيُونُهُ مُتَعَلِّقَةٌ بِرَقَبَتِهِ يُبَاعُ فِيهَا لِلْغُرَمَاءِ إِلَّا أَنْ يَفْدِيَهُ الْمَوْلَى )او دده قرضې به دده سټ پورې متعلق وی.د قرضخواهانو لپاره ۵به په هغې کښې خرڅولې شي.خو که آقا دده فدیه ورکړی.

**تشریح**> په عبد ماذون چې کومې قرضې را واوړی.هغه به دده په سټ پورې متعلق وی.چه د هغې د خلاصولو لپاره به قاضی دې خرڅوی.البته که آقا ددې فدیه ورکړی.یعنی دده ټولې قرضې ادا کړی.نو دې به نشي خرڅولې.([1])

**دليله**> دليل دا دې.چه د غلام په ذمه قرضه واجبيدل، د آقا په حق کې هم وجوب ښکاره کوی.نو ددې وصولول به دده سټ سره متعلق وی.لکه د مال ضائع کولو تاوان بالاتفاق دده سټ سره متعلق کیږی.او ددې قیاس علت جامعه د خلقو نه ضرر لرې کول دی.او دلته به هم د قرضخواهانو ضرر لرې کیږی.او وجه ددې دا ده.چه ددې قرضې سبب تجارت دې.او تجارت د اجازت لاندې داخل دې.

**په قرضخواهانو باندې د ماذون د ثمن تقسیمولو مسئله**

(وَيُقْسَمُ ثَمَنُهُ بَيْنَهُمْ بِالْحِصَصِ )او تقسیمولې به شي.دده ثمن د قرضخواهانو په منځ کې ، د برخو (حصو) مطابق.سټ ( د غلام) سره

**تشریح**> نفس مسئله آسانه ده.

**دليله**> ددوی د حق متعلق کیدو په وجه، نو ترکهٔ ( میراث) سره د تعلق ښشان شو.

فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ مِنْ دُيُونِهِ بيا که په قرضه کې څه باقی پاتې شوه.طُولِبَ بِهِ بَعْدَ الْحُرِّيَّةِ نو ددې مطالبه به د آزادئ نه روسته کیږی.

**تشریح**> نفس مسئله آسانه ده.

**دليله**> دده په ذمه کې د قرضې ثابتیدو، اود ادا کولو لپاره دده د سټ د ناکافی کیدو په وجه،

**د عبد ماذون محجور کول او ددې شرائط**

(فَإِنْ حُجِرَ عَلَيْهِ که آقا عبد ماذون محجور کړو. لَمْ يَصِرْ مَحْجُوراً عَلَيْهِ حَتَّى يَظْهَرَ الْحَجْرُ بَيْنَ أَهْلِ السُّوقِ )نو هغه به نه محجور کیږی.ترڅو چې محجور کیدل، په بازار والا خلقو کې ښکاره شي.

**تشریح**> که آقا عبد ماذون محجور کړو.نو هغه به محجور کیږی.په دې شرط چې هغه ته او دهغه اکثر بازار والا خلقو علم شوی وی.چه عبد ماذون سره معامله کونکو ته ضرر لازم نشي.

**دليله**> که د علم حاصلیدو نه بغیر عبد ماذون محجور اوګرځولې شي.نو هغه چې د حجر نه روسته کوم تصرف کوی.د هغې د دین اداکول به د آزادئ نه روسته لازم وی.ګویا د معامله کونکو حق به مؤخر کولې شي.چه دې کې د هغوی نقصان دې.ځکه چې هغوی دده سره معامله په دې امید کړې

---

[1] **مسلک الشافعي**:- د امام زفر او امام شافعي رحمه الله په نیز به عبد ماذون دده په قرضو کې نشي خرڅولې.پاتې شوه دده مزدوری ( او منافع)،نو هغه به بالاتفاق دده په قرضو کې خرڅولې شي.

وه.که ده قرضه ادا نکړي شوه.نو مونږ (مونږ) به دده د سټ یا مزدورئ نه وصول کوو.او اوس به آقا دا ګواه قائموي.چه ما دي محجور کړي وو.نو هغوی صرف د آزادئ نه روسته وصولولي شي.حالانکه دده د آزادیدو امید موهوم (او په شك کي) دي.

## د آقا د مرګ یا ارتداد حکم

| فَاِنْ مَاتَ الْمَوْلٰى که آقا مړ شو.أَوْجُنَّ یا لیوني شو.أَوْلَحِقَ بِدَارِالْحَرْبِ مُرْتَدًّا یا مرتد شو. یا دار الحرب کي ملاؤ شو.صَارَالْمَاذُوْنُ مَحْجُوْرًا عَلَيْهِ)نو ماذون غلام به محجور ګرځیږي. |
|---|

**تشریح>** که د عبد ماذون آقا مړشي.یا دائمي لیوني شي.یا مرتد شي.یا دار الحرب ته لاړشي. بیا به هم عبد ماذون محجور کیږي.که غلام ته ددي امورو علم شوي وي.او که نه وي شوي.

**دلیله>** وجه دا ده.چه اذن غیر لازم تصرف دي.نو ددي د بقاء به هم هغه حکم وي.کوم چي د ابتداء دي.نو لکه څنګه چي په ابتداء کي د اجازت اهلیت کیدل ضروري دی.دغه ډول (دغه شان) په بقاء کي هم ددي کیدل ضروري دي.حالانکه د مرګ او د جنون په وجه د اجازت اهلیت ختمیږي.او دار الحرب ته په تللو سره هم اهلیت ختم شو.څکه چي دا هم حکمي مرګ دي.ترڅو چي دده مال دده په وارثانو کي تقسیمولي شي.نو غلام به محجور ګرځیږي.

| (وَلَوْاَبَقَ الْعَبْدُالْمَاذُوْنُ کله چي غلام اوتختیدو.صَارَمَحْجُوْرًاعَلَيْهِ)نو هغه به محجور ګرځیږي. |
|---|

**تشریح>** که عبد ماذون اوتختي.نو د تختیدو په وجه به هم محجور ګرځیږي.که بازار والا خلقو ته ددي علم وي.اوکه نه وي.([1])

**دلیله>** دلیل دا دي.چه د غلام تختیدل دِلالةً حجر دي.څکه چي آقا د خپل سرکش او نافرمان غلام د تصرفاتو نه په عامه توګه (عام طور) باندي نه راضي کیږي.هغه خو د هغه په ماذون کیدو سره هغه وخت راضي کیږي.چه هغه پخپلي مزدورئ سره خپله قرضه ادا کولي شي.

## د عبد ماذون د محجور کولو نه روسته د اقرار حکم

| (وَاِذَاحُجِرَعَلَيْهِ کله چي آقا عبد ماذون محجور کړو.فَاِقْرَارُهٗ جَائِزٌفِيْمَافِيْ يَدِهٖ مِنَ الْمَالِ عِنْدَاَبِيْ حَنِيْفَةَ )()نو دده اقرار جائز دي.په هغه مال کي کوم چي دده په قبضه کي دي.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز. |
|---|

**تشریح>** عبد ماذون د محجور کیدو نه روسته اقرار اوکړو.چه ما سره کوم څه دی.هغه د فلاني امانت دي.یا مغصوب دي.یا زما په ذمه پور (قرض) دي.

**مسلک ابي حنیفة رحمه الله >** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دده اقرار استحساناً صحیح دي.نو هغه به پخپل مقبوضه مال سره دین وغیره ادا کوي.

**دلیله>** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل (او وجه د استحسان) دا دي.چه د اقرار د صحت مدار د قبضي په حقیقت دي.په دي وجه هغه مال کوم چي آقا دده د اقرار نه مخکي دده د قبضي نه اونبکلي وي.د هغه مال په نسبت دده اقرار نه صحیح کیږي.

---

[1] **مسلک الائمة:**-د امام زفر او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز نه محجور کیږي.څکه چي تختیدل په ابتداء کي د اذن منافي نه دي.نو په بقاء کي به هم د اذن منافي نه وي.

[2] القول الراجح هو قول الإمام رحمه الله كذا في ردالمختار(١١٧\٥) والبحرالرائق (١٧٨\٨) وملتقى الأبحر (٧٠\٤) ومجمع الأنهر(٧٠\٤) نقلاً عن القول الراجح (٢٥٥\٢)-

او بالفعل دده قبضه په حقيقت كي باقي ده.او د حجر په وجه حكماً ددې قبضې د باطليدو شرط دا دې.چه مال دده د ضرورت (ضرورت) نه فارغ وی.او دده اقرار كول ددې خبرې دليل دې.چه دده ضرورت (ضرورت) اوس هم باقي دې.

| وَقَالَا رَحِمَهُمَا اللّٰهُ: صاحبين رحمهما الله فرماني. لَا يَصِحُّ إِقْرَارُهُ. چې دده اقرار جائز نه دې. |
|---|

**مسلك الصاحبين**> د صاحبينو مسلك دا دې.چه دده اقرار صحيح نه دې.

**دليلهما**> د قياس تقاضه هم دا ده.دادې.چه اقرار صحيح كيدل،كه د تجارت د اجازت په وجه وی.نو د حجر په وجه اجازت زائل شو.او كه د قبضې په وجه وی.نو پخپلو منافعو چې د غلام كومه قبضه وه.هغه هم د حجر په وجه باطله شوه.ځكه چې د محجور قبضه شرعاً معتبر نه ده.نو اقرار به صحيح نه وی.

## په عبد ماذون باندې د قرضو حكم

| (وَإِذَا لَزِمَتْهُ دُيُونٌ يُحِيطُ بِمَالِهِ وَرَقَبَتِهِ كله چې لازم شی په ده باندې داسې قرضې چې هغه راګير كړی.دده مال او سټ، لَمْ يَمْلِكِ الْمَوْلَى مَا فِي يَدِهِ. نو مالك به نه وی آقا ، د هغې كوم چې اوس دده په قبضه كي دی.فَإِنْ أَعْتَقَ عَبْدَهُ اوكه آقا ده خپل غلام آزاد كړو.لَمْ يَعْتِقْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ. ( [1] ) نو آزاد به نه وی.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز، |
|---|

**تشريح**> په عبد ماذون باندې دومره قرضې را واوړی.چه هغه دده مال او دده سټ راګير كړی.نو په داسې صورت كي چې كوم مال دده سره وی.اقا د عبد ماذون په لاس كی چې څه وی د هغې نه مالك كيږی.نو كه ده خپل غلام آزاد كړو د امام ابوحنيفه په نيز نه آزاديږی.

**دليله**> دليل دا دې.چه آقا د خپل سوداګر غلام د منافعو مالك په طريقه د نيابت هغه وخت جوړيږی.كله چې دا منافع د غلام د ضرورت (ضرورت) نه فارغ وی.او كوم مال چې قرضو راګير كړی وی.هغه دده په ضرورت (ضرورت) كي بوخت (مشغول) دې.نو آقا به په دې مال كي خليفه نه وی.

| وَقَالَا: صاحبين رحمهما الله فرماني. يَمْلِكُ مَا فِي يَدِهِ چې آقا به مالك وی.دده د مقبوضه، |
|---|

**مسلك الصاحبين**> په مذكوره صورت كښې د صاحبينو په نيز آقا د هغه څه مالك دې كوم چې د عبد ماذون په لاس كښې دې.

**دليلهما**> دليل دا دې.چه د عبد ماذون مزدورئ كي د آقا د ملك سبب اوموندې شو.او هغه دا چې آقا دده د رقبې ( سټ) مالك دې.په دې وجه آقا ته دا اختيار وی.چه خپل عبد ماذون آزاد كړی.او دا دې.كه د مورث ( ميت) قرضه محيط وی.نو وارث ته د تركې د غلام آزادولو اختيار ځكه نه وی.چه د وارث ملك د مورث د بهترئ په لحاظ سره دې.او تركه باندې د قرضې د محيط كيدو په صورت كي د مورث بهتری هم په دې كي ده.چه غلام آزاد نشی.پاتې شو ملك د آقا، نو هغه د عبد ماذون د بهترئ په لحاظ نه دې.تردې چې دا لازم شی.چه دده بهتری هم په دې كي ده.چه د پور (قرض) ادا كولو پورې اعتاق جائز نه وی. بلكه د آقا ملك خو پخپله حاصل دې.

[1] ) القول الراجح هو قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في العناية (۳٦۸\۱۳) والكفاية (۲۳۰\۸) والبحرالرائق (۱٤۰\۸) وكو (۳٤۱) والدرالمختار(۱۱۷\۵) نقلاً عن القول الراجح (۲۵٦\۲)–

## د محاباټ ( یعنې په کم قیمت د ورکولو) مسئلي

(وَإِذَا بَاعَ عَبْدٌ مَأْذُونٌ مِنَ الْمَوْلَى شَيْئًا بِمِثْلِ قِيمَتِهِ که خرڅ کړو ماذون د آقا په لاس څه څيز،ددې د برابر قيمت باندې، جَازَ)نو جائز دی.

**تشريح**> كه عبد ماذون د خپل آقا په لاس په برابر قيمت سره څه شی (څيز) خرڅ كړي.نو جائز دی.خو دا هغه وخت دی.كله چې غلام قرضدار وی.څه دغه وخت دده آقا دده په مزدورئ كې پشان د اجنبی وی.اوكه هغه قرضدار نه وی.نو بيا به په دوی دواړو كې اختلاف او خرڅول نه وی.

**دليله**> څكه چې غلام او كوم څه چې دده سره دی.هغه واړه (ټول) دده د آقا دی.

(وَإِنْ بَاعَ بِنُقْصَانٍ اوكه په نقصان نې خرڅ كړو.لَمْ يَجُزْ)نو جائز نه ده.

اوكه عبد ماذون د خپل آقا په لاس نقصان سره خرڅ كړي.نو دا جائز نه دی.

**دليله**> څكه چې دې حق كې د تهمت امكان دې.

**فائده**> كله چې په قيمت كې دومره كمې وی.چه هغه د ټولو اندازه لگونكو د اندازې نه كم وی.مثلاً د يو شی (څيز) قيمت بعض اندازه لگونكی لس روشيدې(پې) او بعض نهه روشيدې(پې) اندازه لگوی. نو نهه روشيدې(پې) پورې تاوان كول كم او معمولی دی.او د نهو نه كمول زيات تاوان دې.

## د آقا د خپل عبد ماذون غلام په لاس د بيع حكم

(وَإِنْ بَاعَهُ الْمَوْلَى شَيْئًا بِمِثْلِ الْقِيمَةِ أَوْ أَقَلَّ اوكه آقا د ماذون په لاس برابر قيمت باندې يا په كم باندې څه شی (څيز) خرڅ كړو. جَازَ الْبَيْعُ)نو جائز دې.

**تشريح**> كه آقا د خپل ماذون غلام په لاس څه شی (څيز) په پوره قيمت سره يا په نقصان خرڅ كړی.نو دا بالاجماع جائز دی.

**دليله**> څكه چې هركله په غلام قرضه ده.نو آقا دده د منافعو نه اجنبی دې.او په دې بيع كې هيڅ تهمت نشته.او په دې كې فائده هم ده.څكه چې د غلام په منافعو كې به يو داسې شی (څيز) راشی.كوم چې مخكې نه وو.نو د قرضخواهانو به هيڅ نقصان نه وی.بيا آقا ددې نه وړاندې دده د منافعو نه ثمن نشی اخستلی.او اوس به هغه ته دا اختيار حاصل شی.

(فَإِنْ سَلَّمَ الْمَبِيعَ إِلَيْهِ قَبْلَ قَبْضِ الثَّمَنِ بيا كه آقا مبيع هغه ته اوسپارلو.د ثمن وصولولو نه مخكې ،بَطَلَ الثَّمَنُ )نو ثمن به باطل وی.

**تشريح**> اوس كه آقا په ثمن باندې د قبضه كولو نه وړاندې مبيع هغه ته حواله كړو.نو هغه ثمن به ضائع شی.

**دليله**> څكه چې د بيع نه روسته آقا د خپل قيمت وصولولو پورې مبيع منع كولې ( او خان سره ساتلې ) شی.اوس كه د منع كولو حق ساقطيدو نه روسته هم د آقا حق باقی پاتې شی. نو په دې مال عين كې به نه وی.بلكه دين يعنی دهغې په ثمن كې به وی.حالانكه آقا ته دا حق نشته.چه پخپل غلام باندې قرضه واجب كړی.

(وَإِنْ أَمْسَكَهُ فِي يَدِهِ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الثَّمَنَ جَازَ)،اوكه آقا دا د خپل خان سره منع كړو.تردې چې ثمن وصول كړی.نو دا جائز دی.

**تشريح**> نفس مسئله آسانه ده.

**دليله**> ځکه چې بائع ته د مبيع منع کولو حق وی.په دې و جه هغه د نورو قرضخواهانو نه ددې مبيع زيات حقداروی.

(وَإِن أَعْتَقَ الْمَوْلَى العبدَ الْمَأْذُونَ که آزاد کړو آقا عبد ماذون لره، وَعَلَيْهِ دُيُونٌ حالانکه دده په ذمه قرضې دی. فَعِتْقُهُ جَائِزٌ)نو دده آزادول جائز دی.

**تشريح**> آقا خپل ماذون قرضدار غلام آزادولې شی.چه په دې کې هيڅ اختلاف نشته.
**دليله**> ځکه چې په ده کې د آقا ملك باقی دې.( اختلاف خو دده په منافعو کې دې.کله چې په ده باندې قرضې محيط وی).

وَالْمَوْلَى ضَامِنٌ لِقِيمَتِهِ لِلْغُرَمَاءِ او آقا به ضامن وی.دده د قيمت، قرضخواهانو دپاره،

**تشريح**> اوس د آزدولو په صورت کې به آقا دده قرضخواهانو ته د غلام د قيمت تاوان ورکوی.
**دليله**> ځکه چې د هغوی حق دده د ذات سره متعلق دې.او آقا هغه لره آزاد کړو.

(وَمَا بَقِيَ مِنَ الدُّيُونِ يُطَالَبُ بِهِ بَعْدَ الْمُعْتَقِ )او کوم څه چې باقی پاتې شی.په قرضونو کې ،د هغې مطالبه به د آزادئ نه روسته کيږی.

**تشريح**> او که د پور (قرض) ادا کولو لپاره قيمت کافی نه وی.نو د باقی قرضې مطالبه به د غلام نه دده د آزادئ نه روسته کولې شی.
**دليله**> ځکه چې قرضه دده په ذمه باقی ده.او د آقا په ذمه د ضمان په طور صرف هم دومره لازم دی.څومره چې ده هلاك کړې دی.

(وَإِذَا وَلَدَتِ الْمَأْذُونَةُ لَهَا مِنْ مَوْلَاهَا )که ماذونه وينځې د خپل آقا نه بچې راوړو.فَذٰلِكَ حَجْرٌ عَلَيْهَا نو دا په دې باندې حجر دی.

**تشريح**> يوه وينځه ماذونه وه.آقا هغې سره وطی اوکړله.او هغې نه بچې پيدا شو.آقا د بچی دعوه اوکړله.نو وينځه دده ام ولد شوه.اوس به هغه د استيلاد په وجه محجور التصرف ګرځيږی.خو دلالةً.[1]
**دليله**> ام ولد په عامه توګه (عام طور) باندې پرده کې اوسيږی.اود اخستلو او خرڅولو په سلسله کې مالك ددې په وتلو او د خلقو سره ميل ملاپ کولو باندې نه راضی کيږی.نو دا ددې د محجور کيدو دليل دې.البته که مالك د استيلاد نه روسته د تجارت د اذن صراحت اوکړی:نو حجر به نه ثابتيږی.ځکه چې صراحت د دلالت نه زيات قوی دې.

### د بچی د تجارت حکم

(وَإِن أَذِنَ وَلِيُّ الصَّبِيِّ لِلصَّبِيِّ فِي التِّجَارَةِ که د بچی ولی بچی ته د تجارت اجازت ورکړو فَهُوَ فِي الشِّرَاءِ وَالْبَيْعِ كَالْعَبْدِ الْمَأْذُونِ هغه په اخستلو او خرڅولوکې د عبد ماذون پشان دې.إِذَا كَانَ يَعْقِلُ الْبَيْعَ وَالشِّرَاءَ کله چې په اخستلو او خرڅولو باندې پوهيږی

**تشريح**> که د بچی ولی بچی ته د تجارت اجازت ورکړو.نو دا بچې په اخستلواو خرڅولو کې د عبد

[1]) **مسلك زفر والائمة**:- د امام زفر او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نيز به محجور نه وی.

ماذون پشان دي.په دې شرط چې دې په اخستلو او خرڅولو باندې پوهیږي.(أن البيع للملك سالب والشراء له جالب) تردې چې دده تصرف به نافذ کیږي. ([1])

**دلیله** دلیل دا دې.چه د بچی ماذون د طرفه اخستل او خرڅول یو مشروع تصرف دې.چه دا شرعی ولایت سره د داسې سړی نه صادر شوی دې.چه هغه ددې کار لائق دې.ځکه چې هغه عاقل او هوښیار دې.او دا تصرف پخپل محل کې دې.ځکه چې مبیع مال متقوم دې.نو ددې نافذ کول ضروری دی.

# كِتَابُ الْمُزَارِعَةِ

**ترجمه** (دا) کتاب د (زمکې په) کروندې (د ور کولو د احکامو په بیان کې) دې.

**تشریح** په کتاب الماذون او کتاب المزارعت کې مناسبت دا دې.چې لکه څنګه ماذون د بل په ملك کښې کار کوی دغه شان مزارع هم د بل په زمکه او ملك کښې کار کوی.

**المزارعة لغة** مزارعت په اعتبار د لغت د ،، زرع،، نه د مفاعلت (مصدر) دی.

**المزارعة اصطلاحاً** په شریعت کې مزارعت، د پیدا وار په بعضې برخه (حصه) باندې د زمینداری کولو عقد کول دی

### د مزارعت لغوی او شرعی معنی

قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائیلی دی الْمُزَارَعَةُ بِالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ بَاطِلَةٌ) .چه په دریمه او څلورمه برخه (حصه) باندې مزارعت (زمکه په کرونده باندې ورکول) باطل دې.

**تشریح** امام ابوحنیفه رحمه الله مزارعت (زمکه په کرونده باندې ورکول) فاسد ګرځوی.د دریمې او څلورمې برخې (حصې) قید لګول د عام رواج په وجه دی.

**دلائله** ① اول دلیل دا دې چې په حدیث کې مزارعت نه منع کړې شوې ده.(نهى النبي ﷺ عن المخابرة)[x] او مخابره او محاقله مزارعت ته ونیلې شی.

شارح د هدایه مولانا محمد یوسف تالونی مدظله العالی فرمائی. دلته د رافع بن خدیج رضي الله عنه او د دوو سړو په جګړه باندې غور اونه فرمائیلو. ددوی په خواب کې نبی کریم ﷺ د مزارعت نه منع فرمائیلې وه. ددې تفصیل د عروه ابن زبیر رضي الله عنه په حدیث کې دې.په [نصب الرایه ص:۱۸۰ج۴] باندې ددې حدیث ډیر خوابونه ورکړې شوی دی.

② که پیداوار وی.نو اجرت مجهول دې.ځکه معلومه نه ده.چه څومره پیداوار کیږي.اوکه پیداوار نه وی.نو اجرت معدوم دې.او د اجرت جهالت یا د اجرت نه کیدل د اجارې مفسد دی.،، قلت ،، دا جهالت په وغیره په مضاربت کې موجود دې.بیا خو دې ته هم ناجائز وئیل پکار دی.او دا په ابتداء کې شرکت دې.چه په دې کې مذکوره جهالت وغیره مفسد نه دې.

---

[1] ) **مسلك الشافعي**:- د امام شافعی او امام مالك رحمهما الله او په دویم روایت کې د امام احمد رحمه الله په نیز به دده تصرف نه نافذ کیږي.

۷۰) من حدیث إبن عمر رضي الله عنه أخرجه البخاري في الحرث باب ۸ ومسلم في المساقاة رقم ۱ وأبوداود في البيوع باب ۳۴ والترمذي في الأحكام باب ۴۱ وابن ماجه في الرهون باب ۱۴ والدارمي في البيوع باب ۷۱ وأحمد في مسند (۱۷\۲)

**وَقَالَا: هِيَ جَائِزَةٌ** (١) او صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه جائز دی.

**تشريح﴿ مسلک الصاحبين﴾** د صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز دی.

**دليلهما﴿** کله چې نبی کريم ﷺ خيبر فتح کړو.نو د هغه ځائې يهود ئې د هغوی په زمکه باقي اوساتل.او دا فيصله ئې اوفرمائيله.چه کوم پيدا وار اوشي.د هغې نيم مسلمانانو ته ورکوئ.(٢) که مزارعت ( زمکه په کرونده باندې ورکول) جائز نه وې.نو نبی کريم ﷺ به داسې ولې اختيارول.

② دويم دليل دادې.چه لکه څنګه مضاربت جائز دې.مزارعت هم جائز وی.ځکه چې مضاربت کې د يوکس مال وی.او د بل کس کار وی.او هم دغه ډول (دغه شان) مزارعت کې هم کيږی.او دا په مضاربت باندې د قياس کولو وجه دا ده.چه خلقو ته ددې عقدونو حاجت دې.چه دا په دوی دواړو کې مشترك دی.نو قياس به صحيح وی.او دليل دحاجت دا دې.چه ډير وخته سړی سره مال وی.خو هغه ته د کار کولو چم (چل) نه ورځی.او دويم کس له د کار کولو چم (چل) ورځی.خو هغه سره مال نشته.نو که دواړه خپل مينځ کې يو ځائې نکړې شی.نو د يوکس به مال خالی پروت وی.او د بل کس هنر به بې کاره پاتې شی.نو ضرورت (ضرورت) دې.چه عقد د مزارعت جائز اوګرځولې شی.

**الجواب عنه﴿** د دې ځواب دا دې چه دا مزارعت نه وو.بلکه خراج تقسيمول وو.او امام ته اختيار دې.چه په خراج موظف او مقاسمت کوم اخستل غواړی.اختيار کړی.او دا نبی کريم ﷺ په دوی باندې احسان اوفرمائيلو.ګنی ټوله زمکه ئې هم اخستلې شوه.او وخت نه مقررول ددې ښکاره دليل دې.چه دا خراج وو.مزارعت نه وو.

علامه محمد يوسف تالوئی فرمائي چې په خيبر کې د مجاهدينو حاصلول جاری کيدل ددې خبرې دليل دې.چه دا خراج نه وو.بلکه مزارعت وو.او په صحيحينو کې د ابن عمر رضي الله عنهما په روايت سره په دې کې د برخې (حصې) جاری کولو تصريح ده.

**الفتوی﴿** ددې تفصيل ښکاره دې.د صاحبينو رحمهما الله په نيز د حديث نه کيدو په وجه د مقابل دليل په قياس سره تعبير کړې شوې دې.استصناع مثلاً يو کاريګر اوويل.چه زما لپاره پيزار جوړ کړه.په دومره روپو باندې.نو دا جائز ده.حالانکه په دې کې د معدوم بيع ده.چه دا جائز نه ده.خوپه دې باندې د امت عادت جاری دې.چه ددې په وجه قياس پريښودې (پريخودې) شوې دې.دغه ډول (دغه شان) به په مزارعت کې هم وی.

| (وَإِنْ كَانَتِ الْأَرْضُ وَالْبَقَرُ لِوَاحِدٍ) او که وی زمکه او غوئې د يوکس (وَالْبَذْرُ وَالْعَمَلُ لِآخَرَ فَهِيَ بَاطِلَةٌ) او کار او تخم د دويم کس.نو دا باطل ده. |
|---|

**تشريح﴿** که د زيد د طرفه زمکه او غوئې وی.او د عمرو د طرفه تخم او کار وی.نو دا صورت باطل دې.هم دا ظاهرالرواية دې.

دلته مخکښې څلور خبرې په ذهن کښې کينوئ① مزارعت په شروع کښې عقد اجاره ده.او د انتهاء په اعتبار سره شرکت دې. ② کوم څيز چه خلاف قياس وی.هغه د شريعت مورد پورې وی.دويم په دې

---

١) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين . رحمهما الله كذا في الكفاية (٨\٣٨٦) وخانية (٤\٢٢٢) والدالمختار (٥\١٩٣) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٨٥)۔

٧٠) من حديث إبن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الحرث باب ٨ ومسلم فی المساقاة رقم ١ وأبوداود فی البيوع باب ٣٤ والترمذی فی الأحكام باب ٤١ وابن ماجه فی الرهون باب ١٤ والدارمی فی البيوع باب ٧١ وأحمد فی مسند (٢\١٧)۔

باندې نشي قياس کيدې. ③ د پيداوار د معلومې حصې په بدله کښې زمکه کرايه باندې اخستل جائز دی.د غويانو په اجاره باندې اخستل جائز نه دی. ④ په دوو مختلف جنس والا څيزونو کښې يو د بل تابع نشي جوړيدې.د جنس د اختلاف په صورت کښې تابع کول جائز دی.

**دلائله**> ① هرکله چه دا خبرې په ذهن کښې کسناستې.نو اوس واورئ،چه په مذکوره صورت کښې د شرکت انعقاد نه دې شوې.ځکه چه د شرکت انعقاد د غوئي او کارکونکی د منفعت په مينځ کښې نه کيږي. حالانکه مزارعت په اعتبار د انتهاء شرکت دې.په دې وجه دا صورت فاسد دې.

② عامل دلته زمکه او غويان په کرايه باندې اخستی دی.او دواړه په کرايه باندې اخستل مقصود دی.او اجرت د پيداوار بعضې حصه ده.او دا جائز نه ده. چه غويان په کرايه باندې واخستلې شی.او اجرت د پيداوار بعضې حصه وی.په دې وجه به دا صورت جائز نه وی.

**الاشکال**> که څوك دا سوال اوکړی چه کارکونکی زمکه په کرايه باندې اخستې ده.او غويان د زمکې تابع دی؟

**الجواب**> نو جواب دا دې چه غويان د کارکونکی تابع کيدې شی.خو د زمکې تابع نشی کيدې.ځکه چه د تابع کيدو دپاره اتحاد د جنس پکار دې.او په منافعو د زمکې او په منافعو د غوئي کښې اختلاف جنس دې.ځکه چه د يو منفعت اثبات او د دويم کټ کول او شلول دی.بيا د يو منفعت د څاروی دمنفعت په وجه دې.او زمکې په بله وجه دې.په دې وجه معلومه شوه.چه دا دواړه مختلف جنسونه دی.چه په دې کښې تابع کيدل نشی کيدې.او هرکله چه نشی کيدې.نو شرکت په غوئي سره شو.او دا جائز نه ده.

او د قياس تقاضا خو دا وه.چه مزارعت جائز نه وی.خو مونږ د نص په وجه قياس پريخودو.او په نص مو عمل اوکړو.خو د نص مورد هغه نور صورتونه دی.دا صورت مورد دنص نه دې.په دې وجه به د اصولی قاعدې مطابق دا ناجائز ګرځولې شی.ځکه چه نورو صورتونو باندې دا نشی قياس کيدې.د کارکونکی او غوئي منفعت يوشان دې.ځکه چه غوئې په زمکه باندې د کار کولو يوه آله ده.

**مسلك ابي يوسف**> او د امام ابويوسف رحمه الله نه په نوادر کښې نقل دی.چه په متن کښې ذکرشوې صورت جائز دې.

**دليله**> ددوی دليل دا دې.چه لکه څنګه دا صورت وو.چه دا ټول څيزونه د زمکې والا د طرفه وی.علاوه د کار نه، او دا جائز دې.نو په دې کښې د بعضو شرط يواځې اولګولې شی.نو دا به هم جائز وی.او لکه څنګه چه د غويانو منفعت د کارکونکی د منفعت تابع ګرځولې شی.دغه شان به د غويانو منفعت د زمکې د منفعت تابع کولې شی.او دا صورت به جائز وی.

**د دوو لفربعالو ذکر**

| (وَلَاتَصِحُّ الْمُزَارَعَةُ إِلَّا عَلٰى مُدَّةٍ مَعْلُومَةٍ)او مزارعت صحيح نه دې.خو په معلومه موده باندې، |
|---|

**حل اللغة** > ① قفزان: د قفيز جمع د اتوهك يوه پيمانه

**تشريح**> د مودې بيانولو نه بغير مزارعت صحيح نه دې.چه ددې دليل او تفصيلي بيان تير شوې دې.

| (وَأَنْ يَكُونَ الْخَارِجُ بَيْنَهُمَا مُشَاعًا)او دا چې پيداوار د دواړو په مينځ کي په طريقه د شيوع ( او برخه (حصه) داري) وي. (فَإِنْ شَرَطَا لِأَحَدِهِمَا قُفْزَانًا مُسَمَّاةً فَهِيَ بَاطِلَةٌ ) نوکه دوی دواړو پخپلو کي يوکس لپاره د يو څو مقرر قفيزونو شرط اولګولو.نو مزارعت باطل دي. |
|---|

**تشريح**> چونکه مزارعت انتهاء کي شرکت دې.نو کوم شرط چې شرکت ختم کړي.دا شرط به مفسد د

مزارعت هم وی.د شرکت تقاضه دا ده.چه پیداوار په دوی دوارو کي مشترك وی.او دا اشتراك به طريقه د شيوع وی.نو که دا شرط اوکړې شو.چه په دوی کي یوکس ته مثلاً د لسو زنبيلو (کونټلو) ور کولو نه روسته چې کوم بچ پاتې شی.هغې کي د دوارو اشتراك دې.

**دليله>** دا صورت ځکه جائز نه دې چې شيوع اونه مونديې شو.او شرکت ختم شو.نو په دې صورت کي به مزارعت فاسد وی.او دا بعينه هم هغه صورت دې.لکه چې مضاربت کي دا شرط کړې شوې وی.چه د نفعې سره به (نه به) يو زر د زيد وی.او باقی به په دوارو کي مشترك وی.دا شرط مفسد د مضاربت دې.دغه ډول (دغه شان) مذکوره شرط هم مفسد د مزارعت دې.

## د متعين حصې پيداوار ځان لپاره شرط کولو سره د مزارعت حکم

وَكَذَا إِذَا شَرَطَا مَا عَلَى الْمَاذِيَانَاتِ وَالسَّوَاقِي او هم دغه ډول (دغه شان) ( مزارعت باطل دې) که دوی شرط کړې وی.د هغه پيداوار کوم چې په نالو او لختو باندې وی.

**تشريح>** که يوکس دا شرط اولګولو.چه کوم پيداوارد نالو ( لختو) سره نژدې (نيزدې) وی.هغه به زما وی.او باقی به د دويم وی.يا د پټی ددې ګوټ پيداوار زما او د دويم ګوټ پيداوار به د دويم وی.نو دا شرطونه شرکت ختمونکی دی.په دې وجه به دې صورتونو کي

مزارعت باطل وی.

**دليله>** ځکه چې هرکله دوی دوارو کي يو لپاره د معين ځاني د فصل شرط لګولي شوې وی. نو دا به د شرکت ختمولو ارخ (طرف) ته مفضی وی. ځکه کيدې شی.چه د زمکې ددې ځاني نه علاوه پيداوار اونشی.

(وَإِذَا صَحَّتِ الْمُزَارَعَةُ فَالْخَارِجُ بينهما عَلَى الشَّرْطِ)او کله چې صحيح شو مزارعت نو پيداوار به د دوی په مينځ کښې د شرط مطابق وی د تخم والا نه د علاوه استحقاق د شرط په وجه سره وی. (وَإِنْ لَمْ تُخْرِجْ الْأَرْضُ شَيْئًا فَلَا شَيْءَ لِلْعَامِلِ)اوکه زمکې هيڅ پيداوار اونکړو.نو کارکونکی لپاره هيڅ نشته.

**تشريح>** کله چې عاقدينو عقد اوکړو.او دوارو د شرط مطابق عمل درآمد پيل (شروع) کړو.نو اوس به دوې (دوه) صورتونه وی پيداوار به کيږی. په دې صورت کي به د شرط مطابق ويش (تقسيم) کولې شی. ② يا به په څه وجه هيڅ ( پيداوار) نه کيږی.- په دې صورت کي به کارکونکی ته هيڅ اجرت نه ملاويږی.

**دليله>** ځکه چې دده شرکت په پيداوار کي وو.او پيداوار اونشو.

## د مزارعت فاسد کيدو په صورت کښې د پيداوار حکم

وَإِذَا فَسَدَتْ او هرکله چې مزارعت فاسد شو فَالْخَارِجُ لِصَاحِبِ الْبَذْرِ ).نو پيداوار به دتخم والا ته ملاويږی.

**تشريح>** که مزارعت فاسد شی.نو واړه (ټول) پيداوار به هغه ته ملاويږی.د چا چې تخم وو.بيا به دويم ته د عامل کيدو په صورت کي د کار مثلی اجرت او دمالك کيدو په صورت کي د زمکې مثلی اجرت ملاويږی .

**دليله>** ځکه چې تخم دکوم کس نه دې.هغه ته چې د پيداوار نه کوم څه ملاويږی.هغه د شرط په وجه ملاويږی.او شرط فاسد دې.نو اوس به په تخم باندې مدار وی.

**چه تخم د زمکې د مالك وي نو کارکونکي لپاره به اجرت مثل وي**

(فَاِنْ كَانَ الْبَذْرُ مِنْ قِبَلِ رَبِّ الْاَرْضِ اوکه تخم د زمکې دمالك د طرفه وي. فَلِلْعَامِلِ اَجْرُمِثْلِهٖ لَايُزَادُ عَلٰى مِقْدَارِ مَا شَرَطَ لَهٗ مِنَ الْخَارِجِ) نو عامل لپاره دده دمثل اجرت دې.چه دا به په هغه مقدار باندې نشي زياتولې.کوم چې عامل لپاره شرط کړې شوې وي.(۱) (وَقَالَ مُحَمَّدٌ: او امام محمد رحمه الله فرمائيلي دي لَهٗ اَجْرُمِثْلِهٖ بَالِغًا مَا بَلَغَ. چه دده لپاره دده د مثل اجرت دې.په داسې حال کې چې دا رسيدونکې وي. ترکومه پورې چې رسيږي.

**تشريح>** مسئله واضحه ده.ددې نه وړاندې هم بيان شوې دې.صرف دومره خبره ده.چه په دواړو صورتونو کې د شيخينو رحمهما الله او د امام محمد رحمه الله په مينځ کې اختلاف دې.چه اجرت مثلي د شرط نه زياتول جائز دی اوکه نه؟ امام محمد رحمه الله د رومبي قائل دې ( يعني زياتول جائز دی).او شيخين رحمهما الله د دويم ( قائل دی.چه د اجرت مثلي سره به (نه به) نشي زياتولې).

**دليلهما>** د شيخينو رحمهما الله استدلال دا دې.چه هغه پخپل حق ساقطولو باندې پخپله راضي دې.گنې هغه به د پيداوار په کم مقدار باندې نه راضي کيدو.

**دليله>** د امام محمد رحمه الله د استدلال حاصل دا دې.چه دلته د منافعو واپسې متعذر ده.نو ددې قيمت واپس کول ضروري دی.که ( قيمت) کم وي.او که زيات وي.

(وَاِنْ كَانَ الْبَذْرُ مِنْ قِبَلِ الْعَامِلِ او که تخم د عامل د طرفه وي. فَلِصَاحِبِ الْاَرْضِ اَجْرُمِثْلِهَا) نو د زمکې والا لپاره به دده د زمکې اجرت وي.

**تشريح>** نفس مسئله واضحه ده.

**دليله>** خکه چې کارکونکي د عقد فاسد په ذريعه د زمکې منافع حاصل کړی دی.نو دزمکې منافع واپس کول ضروري دی. او دا متعذر دې.او دمنافعو هيڅ مثل نشته نو د منافعو قيمت به واجب وي.

**په متعاقدينو کښې د يوکس د مزارعت نه د منع کيدو مسئله**

(وَاِذَا عُقِدَتِ الْمُزَارَعَةُ او کله چې د مزارعت عقد اوشو فَامْتَنَعَ صَاحِبُ الْبَذْرِ مِنَ الْعَمَلِ نو د تخم والا د کار نه منع شو لَمْ يُجْبَرْ عَلَيْهِ) ..اوس به هغه په دې باندې نشي مبجوره کولې.

**حل اللغة >** ① **امتنع:** منع شو

**تشريح>** د مزارعت معامله د معاقدينو په مينځ کې اوشوه.اوس په دوی کې يوکس ددې دپوره کولو نه منع کيږي.نو قاضي به دې مجبوره کوی.او که نه؟ نو وې فرمائيل.که د تخم والا منع شی.نو هغه به نشي مجبوره کولې.

**دليله>** خکه چې منافع خو روستو حاصليږي.او في الحال د هغه نقصان دې.چه تخم به زمکه کې ملاوول وي.نو په دې به نشي مجبوره کولې.او دا بالکل داسې ده.لکه چې يوسړی يوکس اجير کړو.چه دده کور اوغورځوي.خو بيا د کور والا منع شو.نو حاکم هغه نشي مجبوره کولې.

(وَاِنِ امْتَنَعَ اوکه منع شو الَّذِي لَيْسَ مِنْ قِبَلِهِ الْبَذْرُ هغه کس د چا د طرفه چې تخم نشته اَجْبَرَهُ الْحَاكِمُ

---

۱) القول الراجح هو هذا قول الشيخين . رحمهما الله كذا في ملتقى (۱۴۴\۴) وردالمحتار (۱۹۶\۵) ومجمع الأنهر (۱۴۴\۴) نقلا عن القول الراجح (۲۸\۲)-

عَلَى الْعَمَلِ).. نو حاکم به هغه په کار باندې مجبوروي.

**تشریح**> او که د کار نه هغه کس منع شی.د چا چې تخم نه دې.نو حاکم به هغه په کار باندې مجبوره کوی.

**دلیله**> خکه چې د عقد پوره کولو په وجه هغه ته هیڅ نقصان نه رسیږی.او دده د طرفه عقد هم لازم دې.نو دا داجارې په درجه کې دې.لکه څنګه چې دا لازمیږی.مزارعت هم لازمیږی.

### په متعاقدینو کښې د یوکس د مرګ حکم

(وَإِذَا مَاتَ أَحَدُ الْمُتَعَاقِدَيْنِ بَطَلَتِ الْمُزَارَعَةُ)اوکله چې متعاقدینو کې یوکس مړ شی.نو مزارعت به باطل وی اعْتِبَارًا بِالْإِجَارَةِ به اجاره باندې قیاس کولو سره»

**تشریح**> که په اجاره کې عاقدینو کې یوکس مړ شی.اجاره فاسدیږی.نو کله چې مزارعت کې یوکس مړ شی.او فصل (تخم) نه دې کرلې شوې.نو مزارعت به هم باطل وی.

**دلیله**> خکه چه عقود څومره هم دی هغه د متعاقدینو سره تعلق ساتی وارثانو ته نه منتقل کیږی.او عقد مزارعت هم یو عقد دې نو دا به هم وارثانو ته نه منتقل کیږی.بلکه د یو کس په مرګ سره به عقد باطلیږی.

### د کچه فصل په منځ کښې د مزارعت د مودې ختمیدو مسئله

(وَإِذَا انْقَضَتْ مُدَّةُ الْمُزَارَعَةِ وَالزَّرْعُ لَمْ يُدْرِكْ او کله چې د مزارعت موده ختمه شوه.او فصل نه دې پوخ شوې. كَانَ عَلَى الْمُزَارِعِ أَجْرُ مِثْلِ نَصِيبِهِ مِنَ الْأَرْضِ إِلَى أَنْ يُسْتَحْصَدَ نو په زمیداربه دکټ کولوپورې په زمکه کې دخپلې برخې (حصې) په مثل اجرت وی. وَالنَّفَقَةُ عَلَى الزَّرْعِ عَلَيْهِمَا عَلَى مِقْدَارِ حُقُوقِهِمَا) او د فصل خرچ به په دوی دواړو د خپلو حقوقو په اندازه وی.

**تشریح**> موده د مزارعت ختمه شوه.او فصل کچه دې.نو داسې طریقه باندې عمل اوکړې شو.چه نه د زمکې مالك ته نقصان وی.او نه زمیدار ته.نو وې فرمائیل.چه د فصل پخیدو پورې به دا په زمکه کې ساتلې شی.خو دومره ورخو پورې چې د زمکې څومره کرایه جوړیږی.نو دا کرایه به عامل د خپلې برخې (حصې) په اندازه ادا کوی.مثلاً په نیمه باندې معامله شوې وه.او پنځه ویشت بیګه (تقریبا ۶۵ مرلې) زمکه ده.چه ددې دوو میاشتو پورې اجرت (۲۵۰۰) روشیدې(پې) دې.نو عامل به (۱۲۵۰) روشیدې(پې) د زمکې مالك ته ورکوی.خو عقد د مزارعت ختم شوې دې.او دا د دواړو مشترك مال دې.نو د خپلې برخې (حصې) په اندازه به د خرچې او کار دواړه ذمه دار وی.

**دلیله**> خکه چې فصل د اجر مثل په بدله باقی ساتلو کې د دواړو طرفو نه د شفقت برابری ده.نو هم دې اړخ (طرف) ته به رجوع کولې شی. اوکار به په دواړو وی. خکه چې عقد د مودې ختمیدو په وجه ختم شو.او بهرحال مشترك کې عمل دې.

**الاشکال**> که څوك دا سوال اوکړی که د زمکې مالك مړ شی.او فصل کچه وی.نو دلته خوکار د عامل په ذمه دې.نو دلته کار په دواړو ولې دې؟

**الجواب**> خواب دا دې چې د زمکې د مالك د مرګ په صورت کې مزارعت باقی ساتلې شوې دې.او په مزارعتونو کې کار د عامل په ذمه وی.او دلته مزارعت فاسد شو.او دا مال مشترك باقی پاتې شو.چه ددې ساتنه (حفاظت) به په دواړو لازم وی.

**د کټ کولو، درمن ته د راوړلو، د تریشر کولو وغیره د اجرت مسئله**

وَأُجْرَةُ الْحَصَادِ وَالرِّفَاعِ وَالدِّيَاسِ وَالتَّذْرِيَةِ عَلَيْهِمَا بِالْحِصَصِ او هم دغه ډول (دغه شان) د کټ کولو، او درمن ته د راوړلو، او د غوبل کولو او بادولو اجرت به په دوی دواړو باندې د برخو (حصو) په اندازه وی..فَإِنْ شَرَطَاهُ فِي الْمُزَارَعَةِ عَلَى الْعَامِلِ فَسَدَتْ نو که ددې ټولو څيزونو شرط په مزارعت کې دوی دواړو په عامل باندې اوکړو.نو مزارعت فاسد دې.

**حل اللغة <** ① **الحصاد:** پرې کول ② **الرفاع:** درمن ته اوړل ③ **الدياس:** غوبل کول ④ **التذرية:** باد ورکول

**تشريح<** کله چې فصل پوخ شو.او تيار شو.نو د مزارعت مقصود پوره شو.نو مزارعت ختم شو.او هرکله چې مزارعت ختم شو.نو بيا کار او خرچه په دواړو باندې وی.نو د فصل کټ کولو اجرت به د دواړو په ذمه وی.او بيا دا درمن ته راوړل به هم د دواړو کار وی.که پخپله ئې راوړی.اوکه په مزدورانو ئې راوړی.او بيا د غوبل کولو اجرت به هم د دواړو په ذمه وی.نن صبا خو د غوبل کولو رواج ختم شو.بلکه مشين سره کټ کولې شی. ( لکه تريشر) چې په دې کې بوسه جدا اوځی.او غله صفا جدا اوځی.بهرحال که غله صفا نه وی.او ددې د بادولو ضرورت (ضرورت) راپيښ شی.نو دا به هم ددوی دواړو په ذمه وی.او که په عقد کې دا شرط اولګولې شی.چه پرې کول وغيره واړه (ټول) کار د عامل په ذمه وی.نو دا شرط عقد مزارعت فاسدونکې دې.

**دليله<** ددې وجه دا ده.چه په فصل پخيدو سره عقد ختميږی.د مقصود حاصليدو په وجه، نو ددوی دواړو په مينځ کې مشترك مال باقی پاتې شو او هيڅ عقد نشته.. نو ددې عقد به په دوی دواړو باندې وی.

# كِتَابُ الْمُسَاقَاةِ

**ترجمه<** ( دا) کتاب د مساقات ( په بيان کې ) دې.

**تشريح< تعريف المساقاة<** ونې په ساتنه (حفاظت) ( او ساتنه) ور کولو ته مساقات وائی.مثلاً باغ ئې اولګولو.او يوکس ته ئې حواله کړو.چه ته ددې ساتنه (حفاظت) کوه.او ددې اوبه خور کوه.بيا کله چې دا ميوې اوکړی.نو موږ (موږ) دواړه به په دې کې شريك يو.يا باغ د مخکې نه موجود دې.د فصل راتلو پورې ئې دا په ساتنه (حفاظت) باندې ورکړو.دې مساقات ته معاملت هم وائی.

**الربط بما قبله<** د مزارعت او مساقات په منځ کې مناسبت ښکاره دې.بيا د مساقات د جواز قائل ډير عالمان دی.او د حديث نه هم ددې ثبوت شته.ددې باوجود مزارعت په دې وجه مخکې کړې شوې دې.چه ددې حاجت زيات دې.او په دې کې احکام فرعيه زيات دی.

**په مساقات کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله نقطه نظر**

قَالَ أَبُوحَنِيفَةَ الْمُسَاقَاةُ بِجُزْءٍ مِنَ الثَّمَرِ بَاطِلَةٌ امام ابوحنيفه رحمه الله اوفرمائيل.د ميوو په جزء ( شائع) سره مساقات باطل دې. وَقَالَا جَائِزَةٌ إِذَا ذَكَرَ مُدَّةً مَعْلُومَةً او صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه کله معلومه موده ذکرکړې شی. وَتُسَمَّى جُزْءًا مِنَ الثَّمَرِ مُشَاعًا ([1])او د ميوو يو جزء په طريقه د شيوع ( شريکوالی) معين

[1] ) القول الراجح هوهذا قول الصاحبين . رحمهما الله كذافي مجمع الأنهر (١٤٨\٤) والهندية (٢٧٨\٥) نقلاً عن القول الراجح (٢٨٦\٢)-

کړې شي.(نو جائز دې.)

**حل اللغة** ﴿ ① **مشاع**:خوررور.ناقابل تقسیم.

**تشریح**﴿ **مسلک ابي حنیفة**﴿ د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز که مساقات کي د میوو جزء شائع هم معین کړې شي.بیا هم باطل دې.یعنی امام ابوحنیفه رحمه الله مساقات باطل ګرځوی. ([1])

**مسلک الصاحبین**﴿ او صاحبین رحمهما الله دا جائز ګرځوی.او هم دا مفتی به قول دې.خو د صاحبینو رحمهما الله په نیز ددې په جواز کي بعضې شرطونه دی.شرطونه هم هغه دی.کوم چې مزارعت کي ذکر شوی دی.

**الشروط الاربعة الزائدة في المساقاة**﴿ البته مساقات په څلورو څيزونو کي د مزارعت نه جدا دې① په مزارعت کي بعضو صورتونو کي د کار کولو نه د منع کیدو په وجه زبردستی نشی کولې.او په مساقات کي منع کیدونکی باندې زبردستی کولې شي.

② که په مساقات کي موده ختمه شي.نو د اجرت نه بغیر به میوې په ونو باندې ساتلې شي.او عامل به کار کوی.او ده به دکار جدا څه اجرت نه ملاویږي.په خلاف د مزارعت.

③ که په مساقات کي باغ دچا مستحق ثابت شي.نو عامل ته به اجرت مثلیه ورکولې شي.او په مزارعت کي به د فصل قیمت ورکولې شي.

④ مساقات کي استحساناً موده بیانول شرط نه دی.( درمختار)

علامه شامی رحمه الله فرمانی.ددې وجه دا ده.چه د میوو پخیدو معلوم وخت دې.په خلاف د کروندې، البته که د فصل وخت هم معلوم وی.نو هغه هم د مودې بیانولو نه بغیر جائز دې.او فتوی هم په دې باندې ده.معلومه شوه.چه په دې اعتبار سره مزارعت او مساقات کي هیڅ توپیر(فرق) نشته.[شامی ص:۱۸۲ج۵]

### په کجورو، ونو، انګورو.او سبزیانو کښې د مساقات حکم

| وَيَجُوزُ الْمُسَاقَاةُ فِي النَّخْلِ وَالشَّجَرِ او مساقات جائز دې.په کجورو او نورو ونو کي ، وَالْكَرْمِ وَالرِّطَابِ وَأُصُولِ الْبَاذِنْجَانِ او په انګورو او سبزیانو کي او د باټنګړو په ونو کي |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **النخل**:قجوره② **الشجر**:ونه ③ **الکرم**: انګور④ **الرطاب**: سبزیاني.
⑤ **الباذنجان**: باټنګړ

**تشریح**﴿ په باغونو کي که دکجورو ونې وی.یا د بل څه شي (څیز) وی.یا د انګورو وی.یا د سبزیانو او باټنګړو وغیره وی.په دې ( ټولو) کي مساقات جائز دې.([2])

**دلیله**﴿ دلیل دا دې.چه د مساقات جواز د حاجت او ضرورت (ضرورت) په وجه دې.او حاجت لکه څنګه چې په دې دواړو کي دې.په باقی ونو او سبزیانو کي هم دې.او د امام شافعی رحمه الله د خیبر حدیث په دې دواړو کي خاص کول د فکر مقام دې.ځکه چې هغوی به لکه څنګه په دې دواړو ونو کي معامله کوله.دغه ډول (دغه شان) به نې په نورو ونو او سبزیانو کي هم کوله.اوکه اومنلې شي.چه ددوی معامله

---

[1] ) **مسلک الشافعي**:-امام شافعی فرمانی چه مزارعت جائز نه دې.او مساقات جائز دې.البته که مزارعت د مساقات تابع شي.نو د تابع کیدو په وجه مزارعت هم جائز دې.مثلاً یو باغ دې.چه ددې په دوو برخو (حصو) کي ونې دی.او په یوه برخه (حصه) کي خالی زمکه پرته ده.نو عامل ته د باغ سره دغه زمکه هم ورکړی.چه په دې کي فصل کره.نو جائز ده.ګنی مستقل مزارعت جائز نه دې.

[2] ) **مسلک الشافعي** رحمه الله:امام شافعی رحمه الله جدید قول دادې.چه مساقات صرف په انګورو اوکجوروکي جائزدې.

هم په دې دوارو کې وه.نو بیا سوال کیږي.چه ددې جواز علت څه وو؟ ځکه چې نصوصو کې اصل هم دا دې.چه دا معلول وي.خاص کر د امام شافعي رحمه الله په نیز،او هرکله چې دا نص معلول دې.نو دا علت به حاجت لپاره راوخی.او حاجت عام دې.په دې دوارو کې او ددې نه په علاوه کې هم.

**عامل ته څه څیز ورکول پکار دي او دې ـ د څه څیز مستحق دې ؟**

| فَإِنْ دَفَعَ نَخْلًا فِيهِ ثَمَرَةٌ مُسَاقَاةً نو که د مساقات په طور نې د کجورې داسې ونه وکرله.چه هغې کې میوه وي وَالثَّمَرُ تَزِيدُ بِالْعَمَلِ او کجورې په عمل ( د عامل) سره غټیږي جَازَ نوجائز ده وَإِنْ كَانَتْ قَدْ انْتَهَتْ اوکه دا انتهاء ته رسیدلې دی لَمْ يَجُزْ نو جائز نه ده |
|---|

**حل اللغة** ① **التناهي**:ختمیدل

**تشریح** عامل ته د خپل کار میوه ( منافع) ملاویږي.نو ضروری ده.چه پیداوار کې د عامل د عمل څه دخل وي.او دلته به دخل نه وي.نو عقد به فاسد وي.په باغ کې میوې راغلې.او خومره چې غټیدل وو. هغومره غټې شوې.او اوس د باغ مالك دا عامل ته حواله کول غواړي. نو جائز به نه وي.

**دلیله** ځکه چې عامل د کار په وجه مستحق کیږي او د پوره کیدو او پخیدو نه روسته د کار هیڅ اثر نشته . نو که دا مونږ (مونږ) جائز اوګرځوو نو دا د عمل نه بغیر استحقاق وی.حالانکه شریعت دې سره نه دې وارد شوې

**په فاسد مساقات کښې د عامل د اجرت مسئله**

| وَإِذَا فَسَدَتِ الْمُسَاقَاةُ او هرکله چې مساقات فاسد شی فَلِلْعَامِلِ أَجْرُ مِثْلِهِ نو عامل لپاره دده د مثل اجرت دې |
|---|

**تشریح** لکه څنګه چې اجاره فاسده کې اجیر ته دده د اجرت مثل ملاویږي.دغه ډول (دغه شان) به مساقات فاسده کې هم عامل ته اجرت مثل ملاویږي.

**دلیله** ځکه چې مساقات د اجارې په معنی کې دې.او د مزارعت فاسده هم دا حکم دې.

**په عاقدینو کښې د یوکس په مرګ سره د مساقات حکم**

| تَبْطُلُ الْمُسَاقَاةُ بِالْمَوْتِ او مساقات مرګ سره باطلیږي |
|---|

**تشریح** لکه څنګه چې دعاقدینو په مرګ سره اجاره فاسدیږي.دغه ډول (دغه شان) به مساقات هم فاسدیږي.

**دلیله** ځکه چې مساقات یو عقد دې اوعقود په مرګ د متعاقدینو سره فاسدیږي.په دې کښې وارثانو ته اختیار نه منتقل کیږي.

**د عقد مزارعت فسخ کولو عذرونه.**

| وَتُفْسَخُ بِالْأَعْذَارِ او مساقات فسخ کولې شی.د عذرونو په وجه، كَمَا تُفْسَخُ الْإِجَارَةُ لکه څنګه چې اجاره فسخ کیږي |
|---|

**تشریح** که یو عذر د عقد مانع وي.نو لکه څنګه چې ( د عذر په وجه) عقد اجاره فسخ کولې شی. مساقات به هم فسخ کولې شی.مثلاً

① عامل غل وي.یره ده.چه ټولې میوې او د باغ لرګی به کورته یوسی.

② يا عامل دومره بيمار شو.چه كار نشي كولې.نو عقد مساقات فسخ كولې شي.

**الاشكال**> څوك اووائی چې هركله عامل دا كولې شي.چه مزدورانو باندې كار اوكړی.نو بيا عذر څنګه شو؟

**الجواب**> مونږ (مونږ) څواب وركوو چې عقد كي هغه ددې التزام نه دې كړې.نو دا به په هغه ضرر اچول وی.

# كِتَابُ النِّكَاحِ

**ترجمه** > (دا)كتاب د نكاح (داحكامو پر(په)بيان كښې ) دې .

**تشريح**> **النكاح من باب العبادات اوالمباحات**> په دې كي اختلاف دې چې نكاح آيا په باب دعبادات كي ګډ (شامل) دې يا مباحات كي ؟

① حضرات حنفيه او حنابله په نيز داپه عبادات كي شامل دی.

② حضرات شوافع دا په مباحات كي شميری.

③ دمالكيه نه دواړه قولونه منقول دی. يو دا چې نكاح ((اقوات °كي نه ده ، (قوت) هغه شي (څيز) ته ونيلې شي چې دهغې نه بغير ژوند تيرول مشكل وی او نكاح داسې شی (څيز) دې چې ددې نه بغير ژوند مشكل دی ،

④ دويم قول دادې نكاح دتفكهات دقبيل نه ده او دفواكه شان داوی كه استعمال شی نو ډيره ښه ، كه نه وی نو هيڅ حرج نشته.

**حكم النكاح؟**> بيا په دې كي اختلاف دې چې نكاح كول سنت دی يا واجب ؟ ① دجمهور علماء كرام مسلك دادې چې نكاح كول سنت دی ،

② اود داود ظاهری رحمه الله ، علامه ابن حزم رحمه الله اوامام احمد بن حنبل رحمه الله يو قول دادې چې نكاح كول واجب دی.

دا اختلاف دعامو حالاتو په اعتبار سره دې ، كله چې انسان ته په زنا وغيره كي داختـه (مبتلا) كيدو ويره نه وی ، كه ددې ويره وی نو (عندالتوقان) بيا دټولو لپاره نكاح كول واجب دی. البتـه حضرات شوافع په دې صورت كي هم دوجوب قائل نـه دی ، بلكه هغوی ورتـه صرف مستحب وائی. چه كوم حضرات دوجوب نكاح قائل دی لكه څنګه چه د داود ظاهری رحمه الله وغيره مذهب دې

**دلائل الوجوب**> ① هغوی دقران عظيم الشان آيت مبارك ﴿فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ﴾ نه استدلال كوی چې (فَانْكِحُوْا) دامر صيغه ده ،

② داشان په حديث كي (تزوجوا الولود الودود فانى مكاثر بكم الامم) كي واردشوی دی او په دې كي هم (تزوجو) دامر صيغه ده.داشان په بخاری شريف كي يو حديث رازی ، ددې په آخر كي دی چې (فمن رغب عن سنتي فليس مني) ، ددې نه هم وجوب ثابتيږی.

**دلائل عدم الوجوب**> ليكن جمهور عالمان فرمائي چې دا دلائل دوجوب لپاره كافی نـه دی ، آيت كريمه چې ((فَانْكِحُوْا)) دامر صيغه دې ليكن امر هر ځائې كي دوجوب لپاره نـه راځی،د آيت كريمه سياق وسباق هم په دې باندې دلالت كوی چې نكاح واجب نه ده،داشان (تزوجوا الولود الودود) ، كي دامر صيغه

خوده لیکن مخکې چې په (مکاثریکم الامم) سره کوم علت بیان فرمائیلې دې، دې نه متبادر هم دا کیږي چې وجوب لره بیانول مقصود نه دي.

او(من رغب عن سنتي فليس مني) دهغه سړي لپاره بيان فرمائيلې شوي دي چې د حضرت نبی کريم دسنتومبارك نه اعراض اوكړي، بياهم كه يوسړي دسنت نه اعراض نه كوي اوهغه نكاح صرف په دې وجه نه كوي چې ده ته دنكاح كولو ضرورت (ضرورت) او حاجت نشته نو دا وعيد دهغه لپاره نه دې.

دشام مشهور عالم شيخ عبدالفتاح ابوغده په يوكتاب د (العلماء العزاب الذين آثروا العلم على الزواج) نوم سره تحرير فرمائيلى دى ، په دې كې هغوى دهغه عالمانو مختصر حالات جمع كړي دي چې هغوى دعلمي مصروفياتو په وجه د ازواج ضرورت (ضرورت) محسوس نه كړو . اوپه دې كې هغوى تقريبا د شپږديرشو (۳۶) عالمانو ذكر فرمائيلې دې چې په هغوى كې ابن تيميه ﷫ او علامه نووي ﷫ پشان اساطين علم نومونه ګډ (شامل) دى. ظاهره ده چې ددې اهل علم متعلق خودا نشى ونيلې كيدې چې هغوى يو واجب عمل پريښودو.

پخپله دامام بخاري ﷫ دصنيع اوطرزنه معلوميږي چې هغه هغوى مطلقا دنكاح دوجوب قائل نه دې خكه د(لوجكتاني) والآيت هغوى په(باب الترغيب في النكاح) لاندې ذكركړي دي. دې خبرې طرفته داشاري كولو لپاره دا په وجوب باندې دال نه دې ، صرف دترغيب لپاره دې.

### د نكاح د منعقد كيدوالفاظ

| النِّكَاحُ يَنْعَقِدُ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ نكاح تړلې كيږي په ايجاب او قبول بِلَفْظَيْنِ يُعَبَّرُ بِهِمَا عَنِ الْمَاضِي يعني په داسې دووه لفظونو په كومو چې تعبير او كړې شي دَ ماضي نه ، |
|---|

**حل اللغة >** ① **ايجاب:** واجبول ② **الاخبار:**خبر وركول

**تشريح>** ايجاب هغه لفظ ته وائي.كوم چې د احد المتعاقدين نه اولاً صادر شي.خكه چې دا مخاطب باندې اثبات يا نفي كې خواب واجبوي.اوكوم لفظ چې د احد المتعاقدين نه ثانياً صادرشي.هغه ته قبول وائي. ماتن بلفظين اوفرمائيل.اودې ارخ (طرف) ته ئې اشاره اوفرمائيله.چه صرف د ليكلو په ايجاب اوقبول سره نكاح نه منعقد كيږي.هم دا قول د ائمه ثلاثه ﷭ دې.خكه چې ليكلى شوي ايجاب اوقبول ته نقوش وائي. لفظ ورته نه وائي.

### د نكاح انعقاد

| وَيَنْعَقِدُ بِلَفْظَيْنِ يُعَبَّرُ بِأَحَدِهِمَا عَنِ الْمَاضِي وَبِالْآخَرِ عَنِ الْمُسْتَقْبَلِ اوتړلې كيږي په داسې دوو لفظونو،چه په دوى كې دَ يونه تعبير اوكړې شي په ماضى،او دَ بل نه په مستقبل، مِثْلَ أَنْ يَقُولَ زَوِّجْنِي فَيَقُولُ زَوَّجْتُكَ مثلاً څوك او فرمائي زوجني بل او فرمائي زوجتك |
|---|

**تشريح>** په متن كې د مستقبل نه مراد د امر صيغه ده.حاصل داشو.چه نكاح د ماضى په صيغه اود امر په صيغه سره هم منعقد كيږي.مثلا سړي اوونيل، زما نكاح اوكړه،بنځه په خواب كې اووائي،مانكاح اوكړله.يا ددې په عكس،نو نكاح به منعقد شي.

**دليله>** خكه چې رومبې قول ايجاب نه دې .بلكه د نكاح وكيل جوړول دى.او دويم قول،زوجتك، ايجاب او قبول دواړه دى.او په نكاح كې ،احد المتعاقدين،ايجاب او قبول دواړه كولې شي.د خپل طرفه د اصل كيدلو،اود بل دطرفه د وكيل كيدلو په وجه،د نكاح په باب كې يوسړې د ايجاب اوقبول

دواړو متولی جوړیدلې شي. اګرچه د بیع په باب کې صحیح نه دی.وجه د توپیر(فرق) داده.چه په بیع کې حقوق واپس کیږی وکیل ارخ(طرف) ته،او په نکاح کې واپس کیږی موکل ارخ(طرف) ته.نو په بیع کې د ،احد المتعاقدین،د طرفینو متولی جوړیدلو په صورت کې د یوکس مطالب او مطالب،مملوك اومتملك کیدل لازمیږی.اودا غیر معقول اومحال ده.اوچونکه په نکاح کې حقوق موکل ارخ(طرف) ته واپس کیږی.په دې وجه دا خرابی نه لازمیږی.

**د نکاح شرائط،اود ګواهانو صفات**

| وَلَا يَنْعَقِدُ نِكَاحُ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا بِحُضُورِ شَاهِدَيْنِ حُرَّيْنِ عَاقِلَيْنِ بَالِغَيْنِ مُسْلِمَيْنِ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ نه معقد کیږی نکاح د مسلمانانو مګر په حضور د دوو ګواهانو چې آزاد وی عاقلان وی بالغان وی مسلمانان وی دوی سړی وی یا یو سړي او دوه ښځې وی |
|---|

**تشریح>** ددې ځائې نه مصنف رحمه الله د نکاح شرط بیانوی.فرمائی.چه په نکاح کې شهادت شرط دې.[1]

**دلیله>** دلیل دا حدیث دې لَا نِكَاحَ إِلَّا بِشُهُودٍ [1]یعنی بغیر د ګواهانو نه منعقد کیږی.

**صفات الشهود>** ددې نه روسته صاحب د کتاب رحمه الله د ګواهانو یوځو صفات بیان کړی دی.

① اول داچه د دواړو آزاد کیدل ضروری دی.ځکه چې د شهادت اهل به هغه کس وی.چاته چې د ولایت حق حاصل وی.اوچونکه غلام ته په خپل ذات باندې د ولایت حق حاصل نه وی.نو په غیر باندې به هم د ولایت حق حاصل نه وی.ولایت وائی.[تنفیذ القول علی الغیر] ته.

② دویم دا چې دواړه ګواهان عاقل بالغ وی.ځکه چې ددې دواړو څیزونو نه بغیر د ولایت حق نه حاصلیږی.نود شهادت اهل به هم نه وی.

③ دریم داچه د مسلمانانو په نکاح کې دګواهانو مسلمان کیدل ضروری دی.دلیل دادې.چه د هیڅ مسلمان خلاف د کافرشهادت معتبر نه دې.د قرآن آیت [وَلَن يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا](النساء:١٤١) په وجه د احنافو رحمهم الله په نیز د ګواهانو سړی کیدل ضروری نه دی.بلکه یو سړې او دوې(دوه) ښځې هم ګواهان جوړیدلی شي.

| عُدُولًا كَانُوا أَوْ غَيْرَ عُدُولٍ که عادلان وی اوکه غیر عادلان وی. |
|---|

**تشریح> عدم شرطیة العدالة>** د شاهدینو عدالت شرط نه دې.[2]

**دلائله>** ① فاسق د اهل ولایت ځنې دې.نود اهل شهادت ځنې به هم وی.او فاسق په اهل ولایت کې کیدل ځکه دی.چه شریعت دې د مسلمان کیدلو په وجه په خپل ځان باندې د ولایت نه نه دې محروم کړې.نو په غیر باندې به هم د ولایت نه نشی محروم کیدلې.ځکه چې دا غیر هم د مسلمان کیدلو په وجه دده هم جنس دې.

---

[1] **مسلک مالک:-** امام مالك رحمه الله فرمائی.چه اعلان شرط دې شهادت شرط نه دې.

[1] غربه الزیلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عدة أحادیث فمنها حدیث عائشة رضی الله عنها قالت قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا نکاح إلا بولی وشاهدی عدل،وماکان من نکاح علی غیرذلك فهو باطل فإن تشاجروا فالسلطان ولی من لا ولی له) أخرجه ابن حبان فی صحیحه فی النوع الثامن والتسعین من القسم الأول) نصب الرایة(٢١٣/٣)_

[2] **مسلک الشافعی:-** امام شافعی رحمه الله عدالت د ګواهانو لپاره شرط ګرځوی.

② د دويم دليل حاصل دادي.چه فاسق حاكم جوړيدلې شي.او د حاكم لپاره جائز دی.چه دې څوك قاضي جوړ كړي.او فاسق حاكم چې هركله بل څوك قاضي جوړولې شي.نو په خپله هم قاضي جوړيدلې شي.او هركله چې قاضي جوړيدلې شي.نو شاهد هم جوړيدلې شي.ځكه چې شهادت او قضاء دواړه د يو باب څني دی.ځكه چې په دواړو كې د [تنفيذ الحكم على الغير] معنى موجود ده.

أَوْ مَحْدُودِينَ فِي الْقَذْفِ اويا دَ يو سړي او دوو ښځو ،كه عادلان وی او كه غير عادلان او يا په تهمت لګولو كې پرې حد جاری شوې وی.

حل اللغة > المحدود في القذف: محدود في القذف هغه چاته وائي چې په چا باندې د زنا الزام اولګوي او بيا په څلورو ګواهانوسره هغه ثابته نكړې شي او دهغې په سزا كې ورته اتيا كوړې وركړې شي.

تشريح > جواز شهادة المحدود في القذف > كوم كس ته چې حدقذف لګولې شوې وی.هغه هم چونكه د اهل ولايت څني دې.نود اهل شهادت والو سره به (نه به) هم وی.خودا كس د تحمل شهادت(يعنى د شهادت اوچتولو) اهل دې.د شهادت ادا كولو اهل نه دې. يعنى د ،محدود في القذف، په موجودګئ كې نكاح منعقد كيږي.ځكه چې په نكاح كې تحمل شهادت كافي دې.خو كه كله د قضاء په مجلس كې د ګواهي وركولو ضرورت (ضرورت) راپيښ شي.نو دده ګواهي به نه قبليږي.د آيت [وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا] په وجه، يعنى ددوی ګواهي كله هم مه قبلوئ.

دا بالكل داسې ده.لكه چې د دوې (دوه) ړندو يا د عاقدينو د دوې (دوه) ځامنو په موجودګئ كې نكاح منعقد كيږي.ځكه چې دوی د تحمل شهادت اهل دی.خود ړندو ګواهي،او د عاقدينو د ځامنو ګواهي دپلار په حق كې نه قبليږي.خوكه خلاف ګواهي وركړي.نو د ځوی ګواهي به هم د پلار په خلاف قبليږي.

### د ذميانو ګواهي

وَإِنْ تَزَوَّجَ مُسْلِمٌ ذِمِّيَّةً بِشَهَادَةِ ذِمِّيَّيْنِ جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله[1] كه چا مسلمان دَ يوې ذميه ښځې،نكاح او كړه په شهادت دَ دوو ذميانو نو جائز ده په نزد دَ امام ابوحنيفه او ابويوسف رحمهما الله ،

تشريح > په تيره شوې مسئله كې د شاهدينو لپاره مسلمان كيدل شرط اوخودلې شو.دا مسئله هم په هغې متفرع ده.ذمي هغه كافر خلق دی.چه دوی په اسلامي ملك كې په فرمانبرداری اوذمه داری سره اوسيږي.كه هندو وی.او كه يهودي يا نصراني وی.خو په متن كې د ذمي نه مراد اهل كتاب دی.كه يهودي وی اوكه نصراني وی.ځكه چې د مسلمان نكاح صرف كتابيه سره جائز ده. غيركتابيه سره جائز نه ده.

مسلک الشيخين > د متن په مسئله كې اختلاف دې.شيخين رحمهما الله د جواز قائل دی.

دليلهما > د شيخينو رحمهما الله د دليل حاصل دادې.چه په نكاح كې دوې (دوه) شيان (څيزونه ) دی.يوخو داچه ملك بضع د ميره (خاوند) لپاره ثابتيږي. دويم داچه د ښځې لپاره په ميره (خاوند) باندې مال مهر واجبيږي.داخبره منلې شوې ده.چه شهادت د داسې شی (څيز) د پاره وی.چه هغه د احترام قابل وی.او بضع د احترام قابل ده.د مال په لزوم كې هيڅ احترام او عظمت نشته.تردې كه د نكاح په وخت كې د مال ذكر اونكړې شي.بيا هم نكاح منعقد كيږي.ددې تمهيد نه دا خبره ثابته شوه.چه په نكاح كې

---

[1] ) القول الراجح هو قول الشخين رحمهما الله كذا في الخانية (١\١٥٦) وفتح القدير(٣\١١٤) وردالمحتار(٢\٢٩٧) والهندية (١\٢٦٧) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٤٣)-

گواهي، ملك بضع على الزوجه، د ميره (خاوند) لپاره ثابتولو لپاره ده.په ميره (خاوند) باندې د مال واجبولو لپاره نه ده.نو معلومه شوه.چه داگواهي د مسلمان ميره (خاوند) په حق كې اود ذميه ښځې په خلاف ده.ځكه چې د كافر گواهي د مسلمان په حق كې قبلولې شي.اگرچه په خلاف نه قبليږي.نود دوې (دوه) ذميانو په گواهۍ سره دا نكاح منعقد كيږي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ لَايَجُوْزُ اوامام محمد رحمه الله فرمائي چې جائز نه ده، اِلَّااَنْ يَّشْهَدَ شَاهِدَيْنِ مُسْلِمَيْنِ مگر كه دوه مسلمانانو گواهانو گواهي وركړه.

**مسلك محمد** ﴿ امام محمد د جواز قائل نه دى.

**دليله** ﴿ د امام محمد دليل دادې.چه په نكاح كې د ايجاب اوقبول اوريدلو نوم شهادت دې.اود كافر شهادت د مسلمان په خلاف معتبر نه دې.نو گويا ذميانو د مسلمان كلام اوريدلې هم نه دې.حاصل داچه دې دواړه حضراتو سماع قياس كړه په عدم سماع باندې.او هركله چې ايجاب اوقبول ئې اوريدلې نه دې.نو شهادت هم موجود نشو.نو نكاح به هم منعقد نه وي.

**الجواب عنه** ﴿ د دې نه خواب دادې.چه سماع په عدم سماع باندې قياس كول، قياس مع الفارق دى.چه ددې هيڅ اعتبار نشته.والله اعلم بالصواب.

## د محرمه كيدلو اسباب او ددې اقسام

لَايَحِلُّ لِلرَّجُلِ جائز نه دى لپاره دسړي اَنْ يَّتَزَوَّجَ چې نكاح اوكړي بِاُمِّهٖ د مور خپلې سره وَلَابِجَدَّاتِهٖ اونه د انا (نيا) خپلې سره مِنْ قِبَلِ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ د سړي او د ښځو دطرفه

**تشريح** ﴿ هغه ښځې چې د هغوى سره نكاح حرام ده.په دوې (دوه) قسمه دى.يو هغه چې د هغوى سره هيڅ كله هم نكاح جائز نه ده.هميشه حرام ده.مثلاً مور، خور،وغيره. دويم هغه چې دوى سره بالفعل حرام وى.څه وخت كې حلال كيدلې هم شي.لكه د غير منكوحه، يا معتده وغيره.بيا د محرمه كيدلو اووه اسبابه دى. ① قرابت خاصه ② نكاحى رشته ③رضاعت ④ جمع كيدل ⑤ مالك كيدل ⑥كفر ⑦ په آزاده باندې وينځه په نكاح كې راوستل،په كتاب الله كې هم په دې ترتيب سره بيان شوى دى.لكه ارشاددې.فرمائي چه،مور دچا د خيټې نه چې پيدا شوې.دې سره نكاح حلال نه ده.دغه ډول (دغه شان) نياگانې(يعنى د مور او پلار مياندې)اود مور پلار اناگانې (نياگانې) وغيره حلال نه دى.

**دليله** ﴿ دليل د قرآن پاك آيت دې. حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ اُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ الخ حرامې شوى دى په تاسو باندې مندې (مياندې) ستاسو او لونړه ستاسو

## د لور حرمت

وَلَابِبِنْتِهٖ او نه دَ خپلې لور سره، وَلَابِبِنْتِ وَلَدِهٖ وَاِنْ سَفَلَتْ او نه دَ خپل اولاد دَ لور سره اگر كه ځكته وى، وَلَابِاُخْتِهٖ وَلَابِبَنَاتِ اُخْتِهٖ اونه دَ خپلې خور سره او نه دَ لونړو دَ خور سره وَلَابِعَمَّتِهٖ وَلَابِخَالَتِهٖ او نه دَ پلار دَ خور سره او نه دَ مور دَ خور سره لونړه يعنى نمسى؛ اود لونړو لونړه يعنى نمسى؛ وَلَابِبَنَاتِ اَخِيْهِ اونه د وريرو سره

**حل اللغة** ﴿ ① **سلفت**: لاندې ② **خالة**: د مور خور ③ **عمة**: د پلار خور]

**تشريح** ﴿ لور كومه چې دده د نطفې نه پيدا شوې ده.دا هم ددې ذكر شوى آيت په وجه حرام ده.دغه ډول (دغه شان) د خامنو لونړه يعنى نمسى؛ اود لونړو لونړه يعنى نمسى؛ هم قطعاً حرام دى.ددوى حرمت په

اجماع سره ثابت دي.دغه ډول (دغه شان) خور، خورځې، وريرې، ترورياني( يعنی د مور پلار خويندې) ټولې حرامې دی.

**دليله>** ددوی حرمت په دې ذکر شوی آيت کې بيان کړې شوې دې.آيت [حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالَاتُكُمْ وَبَنَاتُ الْأَخِ وَبَنَاتُ الْأُخْتِ] ، يعنی حرام شوی دی په تاسو باندې، ستاسو مياندې، او لونړه،او خويندې،اود پلار خور(يعنی ترور)اود مورخور(يعنی ترور)اود خوی لونړه،اود لور لونړه،

## د خوابنې حرمت

| |
|---|
| وَلَا بِأُمِّ امْرَأَتِهِ الَّتِي دَخَلَ بِهَا أَوْ لَمْ يَدْخُلْ او نه دَ خپلې ښځې دَ مور سره چې دَ دې دَ لور سره ئې صحبت کړې وی او که نه، |

**تشريح>** په دې عبارت کې د خوابنې حکم بيان شوې دې.که ښځې سره نې دخول کړې وی. اوکه دخول نې نه وی کړې.په دواړه صورتونوکې د خوابنې سره نکاح حرام ده.دليل دادې.چه په قرآن کې د خوابنې حرمت د دخول د قيد نه مطلق ساتلې شوې دې.نودا حکم به په خپل اطلاق باندې باقی پاتې وی.

دويمه مسئله دا ذکر شوې ده.که د داسې ښځې سره نکاح اوشوه.چه د رومبی ميړه (خاوند) نه نې يوه لور راوړلې ده.داسې جينۍ ته ربيبه وائی.دې ربيبې سره د نکاح په جواز کې دا تفصيل دې.چه د ښځې سره که دخول شوې وی.نود ربيبه سره نکاح حلال نه ده.او که دخول نې نه وی کړې.نو نکاح حلال ده.

**دليله>** دليل دا دې.چه په کلام پاك کې قيد د دخول موجود دې.لکه چې ارشاد دې. [وَرَبَائِبُكُمُ اللَّاتِي فِي حُجُورِكُمْ مِنْ نِسَائِكُمُ اللَّاتِي دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَإِنْ لَمْ تَكُونُوا دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ] ،اوددوی لونړه کومې چې ستاسو په پرورش کې دی.کومې چې پيدا شوی دی.ستاسو دهغه ښځو نه دچاسره چې تاسو صحبت کړې دې. اوکه تاسو ددوی سره صحبت نه وی کړې.نو په تاسو هيڅ ګناه نشته ددوی سره په نکاح کولوکې ،

| |
|---|
| وَلَا بِبِنْتِ امْرَأَتِهِ الَّتِي دَخَلَ بِهَا او نه دَ لور دَ خپلې هغې ښځې سره چې دَ هغې سره صحبت شوې وی،سواءكان فی حجرهٖ اوفی حجرغيرهٖ برابره ده که دده په تربيت کې وی اوکه دبل چا په تربيت کې وی. |

**تشريح>** نفس مسئله آسانه ده.

**دليله>** دَ وجه دَ ثبوت دَ قيد دَ دخول نه په نص سره خواه دغه جينۍ دَ ده په پرورش کې وی او که دَ غير په پرورش کې وی،

**الاشکال>** په کلام پاك کې قيد د دخول موجود دې.دغه ډول (دغه شان) ،حجور، په معنی د غيږې او پرورش قيد هم موجود دې.ددې مطلب دادې.چه دا ربيبه که ستاسو په پرورش کې وی.بيا خو نکاح حرام ده. خوکه د دويم ميړه (خاوند) نه علاوه د بل چا په پرورش کې وی.نونکاح حلال کيدل پکار دی. حالانکه حکم ددې په خلاف دې.

**الجواب>** په آيت کې د ،حجور، قيد قيد اتفاقی او قيد عادی دې.قيد احترازی نه دې.

يعنی عام عادت هغه دې.چه د داسې قسمه بچو پرورش دويم ميړه (خاوند) کوی.او مور خپلو وړو ماشومانو سره راځی.وجه دا ده.چه هرکله قرآن د نکاح جواز بيان کړو.نو صرف د دخول په قيد باندې

نې اکتفاء اوکړه.د ،حجور، نفی نې ذکر نه کړله.که دا قید ملحوظ وې.نود جواز په موقع باندې به هم ددې نفی شوې وه.

## د پلار،نیکونو د منکوحې سره د نکاح حرمت

| وَلَا بِامْرَأَةِ أَبِيهِ وَأَجْدَادِهِ او نه دَ خپل پلار نیکونو دَ ښځو سره، |
|---|

**تشریح**> ددې عبارت حاصل دادې.چه دپلار او نیکونو(د مور پلار،اود پلار پلار) منکوحه سره هم نکاح حلال نه ده. دغه ډول (دغه شان) د خوی اود نمسی ښځې سره هم نکاح جائز نه ده.

**دلیله**> د الله تعالی ارشاد دې وَلَا تَنْكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُمْ مِنَ النِّسَاءِ یعنی تاسو د هغه زنانو سره نکاح مه کوئ کومو سره چې ستاسو پلرونو نکاح کړې وی..

| وَلَا بِامْرَأَةِ ابْنِهِ وَبَنِي أَوْلَادِهِ او نه دَ خوئی دَ ښځې سره اود نوسو دَ ښځو سره. |
|---|

**دلیله**> دلیل د الله تعالی ارشاد دې {وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلَابِكُمْ} اوبه تاسو باندې ستاسو د خامنو ښځې حرامې دی هغه خامن کوم چې ستاسو د شاګانو نه وی

**الاشکال**> په آیت کې د ،اصلاب، د قید نه معلومیږی.چه د رضاعی خوی د ښځې سره نکاح حلال ده.حالانکه داسې نه ده.

**الجواب**> د ،اصلاب، قید د متبنی یعنی (په خوئی توب نیولې) اعتبار ساقطولو لپاره دې. د رضاعی خوی ښځې حلالولو لپاره نه دې. لنډیز (خلاصه) داچه د کوموخامنو ښځې ستاسو لپاره حرام دی.چه هغه ستاسو د شانه پیدا شوی وی.اوکوم چې ستاسو د شانه پیدا شوې نه دی.هغه دوې (دوه) قسمه دی. یو رضاعی، دویم متبنی خو د حدیث نه معلومیږی چه رضاعی خوئې د نسبی خوی پشان دې.ددې نه معلومه شوه.چه د ،اصلاب، په قیدسره صرف متبنی خارج شوې دې.لهذا د متبنی ښځه حلاله ده.

## رضاعی مور اوخور سره د نکاح حرمت

| وَلَا بِأُمِّهِ مِنَ الرَّضَاعَةِ وَلَا بِأُخْتِهِ مِنَ الرَّضَاعَةِ او نه دَ خپلې رضاعی مور سره اونه رضاعی خور سره. |
|---|

**تشریح**> مصنف رحمه الله په دې عبارت کې رضاعی محرمات بیان کړی دی.رضاعی مور چې یو ځاځکې شیدې (پی) نې هم څکولې وی.د رضاعی خور سره نکاح حرام ده.

**دلائله**① د الله تعالی ارشاد دې «وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ» اوکومو میندو چې تاسوله تې درکړې دې او دَ تی خویندې.

② د نبی کریم ﷺ ارشاد دې ((يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ)) ([1]) اودَ ارشاد نبوی په وجه سره چې دَ رضاعت په وجه حرام دی هغه کوم چې دَ نسب په وجه حرام دی

## دوه خویندې په یوه نکاح کښې جمع کول

| وَلَا يَجْمَعُ بَيْنَ أُخْتَيْنِ نِكَاحًا وَلَا بِمِلْكِ يَمِينٍ وَطْئًا او سره به (نه به) جمع کوی دوې (دوه) خویندې په نکاح سره،او نه دَ ملك یمین په ذریعه په وطئ سره |
|---|

[1] ) من حدیث إبن عباس رضي الله عنهما أخرجه البخاری في الشهادات باب ۷ رقم ۲٦٤٥ ومسلم في الرضاع رقم ۱۲)

**تشریح** ﴿ **قسمي الاجمع بين الاختين** ﴾دوې (دوه) خويندې په نکاح کې جمع کول په دوې (دوه) قسمه دی.
①اول داچه دواړه خويندو سره په يوځائې يا وړاندې روسته نکاح اوکړی.نو دا نکاح درست نه ده.که دواړو سره په يو عقد کې نکاح شوی وی. نود دواړو نکاح باطل ده.اوکه وړاندې روسته شوې وی.نود اولې نکاح صحيح ده.اود دويمې باطل ده.
② دويم صورت دادې.چه په ملك کې کومې وينځې دی.دواړه خويندې دی.نو دواړه په ملك کې جمع کول جائز دی.خود دواړو سره وطی کول جائز نه دی.حاصل داشو.چه د دوې (دوه) خويندو د نکاح په طور جمع جائز نه ده.اود دوې (دوه) وينځو په ملك کې جمع کول د وطی په طريقه جمع کول جائز نه دی.خود دواړو مالك جوړيدلې شی.

**دلائله** ﴿ ① دليل د الله تعالی قول دې. [وَأَنْ تَجْمَعُوْا] يعنی، په تاسو باندې حرام شوی دی چې جمع کړئ دوې (دوه) خويندې په نکاح کې ،
② دويم نبی کريمﷺ فرمانيلی دی. .مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَجْمَعَنَّ مَاءَهُ فِي رَحِمِ أُخْتَيْنِ (۴) چه کوم کس په الله تعالی او په ورځ د آخرت باندې ايمان لری.نودې دې خپلې اوبه د دوې (دوه) خويندو په رحمونوکې هيڅ کله نه جمع کوی، په فيروز ديلمی کې حديث دې.چه زه د نبی کريمﷺ په خدمت کې حاضرشوم.عرض مې کړل.چه ما اسلام راوړلو.او زما په نکاح کې دوې (دوه) خويندې دی.نبی کريمﷺ اوفرمائيل.چه ته په دواړوکې يوه خوښه کړه.

## د جمع بعض حرام صورتونه

| وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَ الْمَرْأَةِ وَعَمَّتِهَا أَوْ خَالَتِهَا وَلَا ابْنَةِ أَخِيهَا وَلَا ابْنَةِ أُخْتِهَا او سره به (نه به) جمع کوی ښځه او دَ دې دَ پلار خور او يا دَ مور خور او يا وريره او يا خورزه |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **عمة**: د پلار خور ② **خالة**: د مور خور ③ **اخت**: خور]

**تشريح** ﴿ په دې عبارت کې مصنفﷺ په نکاح کې د جمع د حرام کيدلوخو صورتونه بيان کړی دی.مثلاً ښځه او ددې د پلار خور(تروړ) جمع کول حرام دی.دغه ډول (دغه شان) ښځه اوددې د مورخور(تروړ)،ښځه او ددې وريره، ښځه او ددې خورزه،جمع کول حرام دی.

**دليله** ﴿ د نبی کريمﷺ ارشاد دې. لَا تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا وَلَا عَلَى خَالَتِهَا وَلَا عَلَى ابْنَةِ أَخِيهَا وَلَا عَلَى ابْنَةِ أُخْتِهَا(۵)

---

۴) غربه الزيلعی ﷺ هذا اللفظ ثم نقل عدة احاديث فمنها حديث ام حبيبة ﷺ قالت يارسول اللهﷺ انكح اختی قال ﷺ اوتحبين ذلك قلت نعم،لست لك بمخلية واحب من شركنی فی خيراختی قال ﷺ فانها لا تحل لی قلت فانی اخبرت انك تخطب درة بنت ابی سلمة قال لوانها لم تكن ربيبتی فی حجری .... [بقيه حاشيه په راروان مخ]
[بقيه د تيرمخ] ما حلت لی انها ابنة اخی من الرضاعة ارضعتنی واباها ثويبة فلا تعرضن علی بناتكن ولا اخواتكن الحديث اخرجه البخاری فی النكاح باب ۲۰ رقم ۵۰۹۹ ومسلم فی الرضاع رقم ۱ وابوداود فی النكاح باب ٦ رقم ۲۰۵۵ والترمذی فی الرضاع باب ۱ رقم ۱۱۴۷ والنسائی رقم ۳۰۹٦ واحمد فی المسند (٦/۴۴)۔
۵) من حديث ابی هريرة ﷺ اخرجه ابوداود فی النكاح باب ۱۲ رقم ۲۰٦۵ والترمذی فی النكاح باب ۳۰ رقم ۱۱۲٦ وابن ماجه فی النكاح باب ۳۱ والنسائی فی النكاح باب ۴۷ ورواه ايضاً فی السنن الكبری (۲۹۳/۳) رقم ۵۴۲۴)۔

نکاح د نه شی کولې په ښځه باند د دې د پلار د خور او نه د مور د خور او نه د رور د لور او نه د خور د لورسره.

**الاشکال>** خو په دې باندې اشکال کیږی.هغه داچه په قرآن پاك کې د ټولو محرماتو بیانولو نه روسته [وَأُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ] ذکر شوې دې.او قرآن د محرماتو په بیان کې ددې ښځو ذکر نه دې کړې.نودا واړه (ټول) صورتونه جائز کیدل پکار دی؟

**الجواب>** دا حدیث کوم چې د جمع په حرمت کې پیش شوې دې.حدیث مشهور دې.او په حدیث مشهور سره په کتاب الله باندې زیاتوالې کیدلې شی.

## د جمع بین المراتین په حرمت کښې قاعده

| وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَ امْرَأَتَيْنِ لَوْ كَانَتْ إِحْدَاهُمَا رَجُلًا لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ بِالْأُخْرَى او نه په جمع کوی داسې دوؤ ښځو لره چې که شی په دوی کې یو سړې نو جائز به ورلره نه وی چې نکاح او کړی د دغې بلې سره. |
|---|

**تشریح>** صاحب د کتاب رحمه الله د ،جمع بین المراتین، په سلسله کې یوه قاعده ذکر کړې ده.قاعده داده.چه کومې دوې (دوه) ښځې په نکاح کې جمع کول وی.په دې کې هره یوه مذکر(نر) فرض کړې شی.چه ددې دواړو په خپل مینځ کې نکاح شرعاً درست ده.او که نه ده؟ که درست ده.نو دواړه جمع کولې شی.اوکه صحیح نه وی.نود داسې دوې (دوه) ښځو په نکاح کې جمع کول هم صحیح نه دی.مثلاً جینۍ او ددې د پلار خور(ترور)جمع کول حرام دی.ځکه که جینۍ مذکر فرض کړې شی. نو په دوی کې به د ترور او وراره رشته وی.او که ترور مذکر فرض کړې شی.نو په دوی کې به د اکا (تره) او خورزې رشته وی.او په دې دواړو صورتونوکې په خپلو کې نکاح ناجائز ده.نودا دواړه په نکاح کې جمع کول هم ناجائز دی.هم په دې باندې نور صورتونه هم قیاس کولې شی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه داسې دوې (دوه) ښځې په نکاح کې جمع کول د قطع رحم سبب جوړیږی.په دې طریقه چې د نکاح نه روسته به دا دواړه په خپلو کې بنزې وی.او په بنو کې عداوت او دښمنی په عامه توګه (عام طور) وی.او قطع رحمی حرام ده.نو کوم چې د حرام سبب وی. هغه به هم حرام وی.نو د داسې دوې (دوه) ښځو جمع کول هم حرام دی.هم دا علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی چه کوم د نکاح قرابت حرامکونکی وی.هم هغه د قطع رحم حرامونکې دې.په کومو صورتونوکې چې د نسبی قرابت په وجه چې ،جمع بین المراتین، حرام ده.په دغه صورتونوکې د رضاعت په وجه هم جمع بین المراتین حرام ده.دلیل هم هغه حدیث دې.کوم چې وراندې تیر شو.یعنی[یحرم من الرضاع مایحرم من النسب]

## ښځه او ددې د بنې لور په نکاح کښې جمع کول

| وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَجْمَعَ بَيْنَ امْرَأَةٍ وَابْنَةِ زَوْجٍ كَانَ لَهَا مِنْ قَبْلُ او په دې کې څه باك نشته چې جمع کړی ښځه او د دې د تیر میړه (خاوند) لور لره |
|---|

**تشریح>** دا مسئله په ماقبل اصول باندې متفرع ده.مسئله داده.چه د ښځې او ددې د مخ کښینی میړه (خاوند) د رومبۍ ښځې نه چې کومه لور ده.دا په نکاح کې جمع کولې شی.مثلاً هنده د زید سره نکاح اوکړه.اود زید یوه لور د زید مخکنۍ ښځې فاطمه' نه هم ده.بیا هنده زید ته طلاق بائن ورکړو.اوس که خالد د زید لور زینب او هنده سره نکاح اوکړه.او جمع ئې کړل.نو هیڅ باك نشته.[1]

**دلیله>** ځکه چې د هنده او زینب په مینځ کې نه قرابت شته او نه رضاعت شته.

---

[1] **مسلک زفر:-** حضرت امام زفر رحمه الله فرمائی.چه جائز نه ده.

## په زنا سره د حرمت مصاهرت ثبوت اوعدم ثبوت

| وَمَنْ زَنٰی بِامْرَأَةٍ او چا چې د يوې ښځې سره زنا او کړه حَرُمَتْ عَلَيْهِ اُمُّهَا وَبِنْتُهَا نو د هغې مور او لور پرې حرامه شوه، |
|---|

**تشريح>** په زنا سره حرمت مصاهرت ثابتيږي.نو په زاني باندې به د مزنيه اصول او فروع حرام وي.او په مزنيه باندې به د زاني اصول اوفروع حرام وي.يعني نياګاني(دمور پلار مياندې) مراد وغيره دي.اود فروع نه نوسی (د لونړو اوخامنو لورياني) وغيره مراد دی.([1])

**دليله>** د ليل دادې.چه د حرماتو په استحقاق کې ولد اصل دې.يعنی ولد که موتث وی.نو په ولد باندې د واطی پلار او خوې حرام وی.اوکه ولد مذکر وی.نو د موطوءه مور او لور به په دې ولد باندې حرام وی.بيا به دا حرمت متعدی وی.د ولد په طرفين يعنی د واطی او موطوءه په طرف،نود موطوءه اصول اوفروع به په واطی باندې،اود واطی اصول او فروع به په موطوءه باندې حرام وی.ځکه چې ولد د واطی او موطوءه په مينځ کې اتحاد او جزئيت پيداکړې دې.هم دغه وجه ده.چه ولد واحد په مکمله طريقه د واطی په اړخ (طرف) هم منسوب کولې شی.لکه ونيلې شی.چه دا د فلانی سړی خوې دې.او په مکمله طريقه باندې موطوءه اړخ (طرف) ته هم منسوب کولې شی.ونيلې شی.چه دا بچې د فلانۍ ښځې دې. نوددې ولد په واسطه سره واطی جزء شو د موطوءه،او موطوءه جزء شو د واطی.نود واطی اصول اوفروع به د موطوءه اصول اوفروع شمارلې شی.اود موطوءه اصول اوفروع به د واطی اصول اوفروع شمارلې شی.او استمتاع بالجزء حرام ده.نود واطی لپاره به د موطوءه مور او لور حرام وی.اوپه موطوءه باندې به د واطی پلار او خوې حرام وی.خو په دې باندې يو اشکال کيږی.هغه داچه هرکله دا ثابته شوه.چه موطوءه د ولد په واسطه سره د واطی جزء دې.نود يو بچی پيدا کيدلو نه روسته دوباره موطوءه دده لپاره حلال کيدل نه دی پکار،حالانکه حکم ددې خلاف دې؟

**ځواب>** اصل هم دغه دې.چه استمتاع بالجزء حرام ده.خو دلته کې ضرورةً حرج د فع کولو لپاره اجازت ورکړې شوې دې.چه د نکاح مقصد توالد او تناسل فوت نشی.او دا بالکل داسې ده.لکه څنګه چې حضرت آدم ﷺ باندې ددوی لونړه حرام وې.خو حواءعليهاالسلام ددې قاعدې نه د ضرورت (ضرورت) په وجه مستثنی کړې شوه.

## د معتده ښځې خور سره د نکاح حکم

| وَاِذَاطَلَّقَ الرجل امْرَأَةً طَلَاقًا بَائِنًا لَمْ يَجُزْ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ بِأُخْتِهَا حَتّٰى تَنْقَضِيَ عِدَّتُهَا که خپلې ښځې له يې طلاق ورکړه بائن يا رجعی نو د ده د پاره جائز نه دی د دې د خور سره نکاح کول تر دې چې عدت نې تير شی، |
|---|

**حل اللغة >** ① **طلاق بائن:** هغه طلاق چې د طلاق په کنائی الفاظو سره واقع شوې وی لکه ته زما نه جدا نې او نيت نې د طلاق وی

**تشريح>** مسئله داده.چه يوکس خپلې ښځې ته طلاق بائن ( يا طلاق رجعی) ورکړو.نو اوس دا سړې ددې معتده خور سره دعدت په موده کې نکاح نشی کولې؟ ([1])

---

[1] ، **مسلک الشافعي:** دشوافعو ﷺ مذهب دادې.چه په زنا سره حرمت مصاهرت نه ثابتيږی.نو ددوی په نيزبه دزانی اصول اوفروع دمزنيه لپاره حلال وی.اودمزنيه اصول اوفروع به دزانی لپاره حلال وی.

**دليله>** دليل دادي.چه د معتده نكاح باقي ده.لكه څنګه چې د منكوحه كيدلو په حالت كي وه.او ميره (خاوند) ته دا اختيار دي.چه د كور نه په وتلو باندې پابندي اولګوي.دغه ډول (دغه شان) كه په دوي (دوه) كاله كي دننه بچې پيدا شو.نود فراش كيدلو په وجه ددې سړي نه نسب هم ثابت وي.

**د مولا خپلې وينځې سره،او ښځې خپل غلام سره د نكاح ممانعت**

| وَلَايجوزللمولى ان يَتَزَوَّجُ اَمَتَهٗ او مالك به دَ خپلې ونځې سره نكاح نه كوي، وَلَاالْمَرْاَةُعَبْدَهَا او نه ښځه دَ خپل غلام سره. |
|---|

**تشريح>** مولا به خپلې وينځې سره نكاح نه كوي.كه د وينځې د كل مالك وي.او كه د بعض مالك وي.دغه ډول (دغه شان) به ښځه د خپل غلام سره نكاح نه كوي.كه ښځه د پوره غلام مالكه وي.او كه د بعض غلام مالكه وي.په دواړه صورتونوكي نكاح ممنوع ده.كه مالك او مملوك يوځائې اوسيدل.او نكاح ئې اوكره.نو باطل به وي.آئمه اربعه هم ددې قائل دي.

**دليله>** دليل دادي.چه نكاح د داسې منافعو او فوائدو په لحاظ سره مشروع شوې ده.چه هغه د دواړو ښځې ميره (خاوند) په مينځ كي مشترك وي.بعض منافع ښځې ته حاصليږي. مثلا د ښځې لپاره مهر،كسوه او نفقه واجبيږي.او په سړي باندې حكماً وطى هم واجبيږي.د ښځې د رضامندئ نه بغير سړي لپاره عزل جائز نه دي.د سړي د ،مقطوع الذكر،اود ،عنين، كيدلو په صورت كي ښځې ته خيار فسخ هم حاصل وي.او بعض منافع سړي ته حاصليږي.مثلاً د نكاح نه روسته د ښځې په نفس باندې قدرت حاصليدل.دښځې لپاره دَ سړي په كور كي قيام كول،د كور دننه كار كول،مثلاً خوراك پخول،كپړې وينځل،د بچو تربيت كول،بچو ته شيدې (پې) وركول وغيره، لنډيز (خلاصه) داده.چه د نكاح په ذكر شوي دواړه صورتونوكي مالكيت او مملوكيت جمع كيدل لازميږي.حالانكه په دې دواړو كي منافات دي.څكه چې مالكيت تقاضا كوي د قاهريت.او مملوكيت تقاضا كوي،د مقهوريت.او ددې دواړو په منافات كي هيڅ شبه نشته.نو هركله چې داسې ده.نو په شركت باندې به د ثمره حصول ممتنع وي.

**الاشكال>** په دې باندې يو اشكال كيږي.هغه داچه مملوكيت كه د مالكيت منافي دي.نو بيا د مملوك نكاح بالكل صحيح كيدل نه دي پكار.څكه چې كله مملوك د آزادې ښځې سره نكاح اوكړي.نود ناكح كيدلو په وجه به مالكيت هم ثابتيږي.نوپه دې صورت كي هم د مالكيت او مملوكيت جمع كيدل لازميږي.

**الجواب>** د قياس تقاضا هم دغه ده.چه د مملوك نكاح مطلقاً درست نه وي.خود ضرورت (ضرورت) په وجه خلاف قياس جائز ګرځولې شوې ده.(عيني شرح هدايه)

**د كتابيه ښځې سره نكاح**

| وَيَجُوزُتَزْوِيجُ الْكِتَابِيَّاتِ او جائز دي دَ كتابيه ښځو سره نكاح كول : |
|---|

**تشريح>** كتابيات، د كتابيه جمع ده.ددې مذكر كتابي دي.كتابي هغه كس دي.چه په نبي باندې ايمان لري.اود كتاب اقرار كوي.په آئمه اربعه كي د آزاد كتابيه سره نكاح كولوكي د هيڅ چا اختلاف نشته.دكتابيه وينځې سره په نكاح كولوكي اختلاف دي.چه ددې بيان روسته راروان دي.

---

[1] **مسلك الشافعي:-** امام شافعي رحمه الله فرمائي.كه دا ښځه په طلاق بائن يا د درې طلاقو په وجه په عدت كي ده.نو ددې د خورسره نكاح جائز ده.

**دلیله>** د لیل د الله تعالی قول دي. ،وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ ستاسو لپاره حلال کړې شو.د اهل کتابو ځنې هغه ښځې چې پاکدامنې وي، په آیت کې د ،عفت، قید عادةً ذکر کړې شو.دجواز نکاح لپاره شرط نه دې.

## مجوسیه او صابیه ښځې سره د نکاح حکم

| وَلَا يَجُوزُ تَزْوِيجُ الْمَجُوسِيَّاتِ او جائز نه دې نکاح کول دَ آتش پرستو ښځو سره وَلَا الْوَثَنِيَّاتِ او نه بت پرستې سره |
|---|

**حل اللغة >** ① **مجوسیات**:جمع د **مجوسیة**: آتش پرسته،چه د هور عبادت کوی

**تشریح>** د آتش پرستو ښځو سره نکاح کول په اتفاق سره ناجائز دی.

**دلیله>** دلیل دادې.نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی. ،سُنُّوا بِهِمْ سُنَّةَ أَهْلِ الْكِتَابِ غَيْرَ نَاكِحِي نِسَائِهِمْ وَلَا آكِلِي ذَبَائِحِهِمْ(١) چه د اهل کتابو سره کومه معامله کوئ.دمجوسو سره هم هغه معامله کوئ.سوا ددې نه چې د مجوسو ښځوسره نکاح مه کوئ.او ددوی ذبیحه مه خورئ.حاصل داچه دمجوسو ښځو سره نکاح مه کوئ.او ددوی ذبیحه مه خورئ.ددې نه علاوه په امان ورکولو،او جزیه اخستلوکې د اهل کتابو په شان معامله کوئ.

| وَلَا الْوَثَنِيَّاتِ او دَ بت پرستو ښځو سره، |
|---|

**حل اللغة >** ① **الوثنیات**: جمع د **ثنیة**: بت پرسته

**تشریح>** د بت پرستو ښځې سره هم نکاح کول ناجائز دی.

**دلیله>** دلیل د قرآن پاك آیت دې. ،وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّى يُؤْمِنَّ چه شرك کونکو ښځو سره نکاح مه کوئ،

| وَيَجُوزُ تَزْوِيجُ الصَّابِئَاتِ إِنْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِنَبِيٍّ وَيُقِرُّونَ بِكِتَابٍ او جائز دې نکاح کول دَ صابیه ښځو سره که هغوی ایمان درلودی (لرلو) په یو نبی او منلو ئې څه کتاب لره. وَإِنْ كَانُوا يَعْبُدُونَ الْكَوَاكِبَ وَلَا كِتَابَ لَهُمْ لَمْ يَجُزْ مُنَاكَحَتُهُمْ او که عبادت ئې کولو دَ ستورو،او دَ دوی سره څه کتاب نۀ وه نو جائز نه دی ورسره نکاح کول |
|---|

**حل اللغة >** **صابیات**:جمع د **صابیة**: هغه ښځه چې په د اسلام نه سوا په نورو دینونو کې د یو دین نه بل دین ته اوړیدلې وی

**تشریح>** د صابیه ښځو سره د نکاح په جواز او عدم جواز کې اختلاف دې.امام ابوحنیفه رحمه الله د جواز قائل دې.او صاحبین رحمهما الله د عدم جواز قائل دی.په حقیقت کې دا اختلاف د صابی په تعریف او تفسیر کې دې.امام صاحب رحمه الله فرمائی.چه صابی هغه دې.چه په نبیانو علیهم السلام کې په یونبی باندې ایمان لري.او د یو آسمانی کتاب اقرار کوی.دې وخت کې به صابی اهل کتاب شمارلې شی.اود اهل کتابو ښځوسره نکاح جائز ده.نو صابیه سره به هم نکاح جائز وی.صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه صابی د ستورو

---

٦) خرجه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عن محمدبن حسن بن علي ان النبي ﷺ كتب إلى مجوس هجر يعرض عليهم الإسلام فمن أسلم قبل منه ومن لم يسلم ضربت عليه الجزية غيرناكحي نسائهم ولاآكلي ذبائحهم أخرجه ابن ابي شيبة في النكاح ومصنف ابن عبدالرزاق في كتاب أهل الكتاب (نصب الراية ٣/٢١٨)

عبادت کوی.اود هیڅ یو اسمانی کتاب اقرار نه کوی.نو دوی به د بت پرستو په حکم کي وی.لکه څنګه چې د بت پرستو سره نکاح جائز نه ده.دغه ډول (دغه شان) به صابیه ښځو سره هم نکاح جائز نه وی.

## د احرام په حالت کښې نکاح

| وَيَجُوزُ لِلْمُحْرِمِ وَالْمُحْرِمَةِ أَنْ يَتَزَوَّجَا فِي حَالَةِ الْإِحْرَامِ مُحرم او مُحرمې دَ پاره په حالت دَ احرام کې نکاح کول جائز دی |
|---|

**تشریح** د احرام والا ښځې سړی دپاره د احرام په حالت کې نکاح کول جائز دی. ([1])

**دلیله** دلیل د ابن عباس رضی الله عنهما روایت دی.چه نبی کریم ﷺ د حضرت میمونه رضی الله عنها سره د محرم کیدلو په حالت کې نکاح اوکړه.او امام بخاری رحمه الله اضافه کړې ده.[وبنى بها وهوحلال وماتت بسرف] ([2]) یعنی نبی کریم ﷺ د میمونه سره نکاح اوکړه.حالانکه نبی کریم ﷺ محرم وو.او ددې سره نې زفاف اوکړو.(د خپلې بی بی سره د واده شپه تیرول) حالانکه نبی کریم ﷺ حلال وو.اود میمونه رضی الله عنها انتقال په مقام سرف کې اوشو.بعض حضرات د لطیفه په طورباندې بیان کړی دی.چه د میمونه رضی الله عنها واده هم په مقام سرف کې اوشو.شب زفاف ئې هم په مقام سرف کې تیرکړو.اود حضرت میمونه رضی الله عنها انتقال هم په مقام سرف کې اوشو.ددې حدیث نه معلومیږی.چه نبی کریم ﷺ دمیمونه رضی الله عنها سره د احرام په حالت کې نکاح اوکړه.

## د ولی نه بغیر د نکاح انعقاد

| وَيَنْعَقِدُ نِكَاحُ الْمَرْأَةِ الْحُرَّةِ الْعَاقِلَةِ الْبَالِغَةِ بِرِضَاهَا او تړلې کیږی نکاح دَ آزادې عاقلې بالغې ښځې په رضا دَ دې سره وَإِنْ لَمْ يَعْقِدْ عَلَيْهَا وَلِيٌّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ بِكْرًا كَانَتْ أَوْ ثَيِّبًا اګر چې نه وی کړې ولی دَ دې،پیغله وی او که میره (خاوند) لیدلې وی،په نزد دَ امام ابوحنیفه رحمه الله . |
|---|

**حل اللغة** ① **یرتفع**: پورته کیږی ② **الخلل**: رکاوټ

**تشریح** مسئله داده.چه دحرة، عاقله، بالغه نکاح ددې په رضامندئ، بغیر د اجازت د ولی نه د امام ابوحنیفه په نیز منعقد کیږی.

**دلیله** وجه د جواز داده.چه دې ښځې خالص په خپل حق کې تصرف کړې دی.څکه چې د بضع بدل هم ددې لپاره دی.اودا ښځه د تصرف اهل هم ده.څکه چې ممیز عقل لری.هم دا وجه ده.چه په مال کې هم د تصرف اختیار دې ښځې ته حاصل وی.څوکه څوک اشکال اوکړی.چه هرکله ښځه اختیارمنده ده.نو بیا د نکاح مطالبه د ولی نه ولې کیږی.د ښځو نه ولې نه کیږی؟ ددې څواب دادې.چه په داسې کولوسره به د ښځو اړخ (طرف) ته بې حیائی منسوب کولې شی.څکه چې ښځې د سړو مجلسونو اړخ (طرف) ته په وتلوکې حیا محسوسوی.که داسې کوی.نو خلق به دوی بې حیا ګڼړی.

---

[1] **مسلک الائمة**:- امام شافعی رحمه الله ناجائز وائی.امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی.

[2] من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه البخارى في الصيد باب ١٢ ومسلم في النكاح رقم ٤٦ وأبوداود في المناسك باب ٢١ والترمذى في الحج باب ٢٤ والنسائى في المناسك باب ٩٠ وابن ماجه في المناسك رقم ١٩٦٥ والدارمى في المناسك باب ٢١ واحمد في المسند(١/٢٤٥).

وقالالاينعقدالابولي()او صاحبين فرمائي نه ترلې کيږي مګر په ولي سره.

**تشريح** ◀ **مسلك الصاحبين** ◀ د صاحبينو په نيز نه منعقد کيږي دغه شان امام مالك او امام شافعي رحمه الله فرماني.چه دښځو په الفاظ سره بالكل نه منعقد كيږي.

**دليلهما** ◀ د صاحبينو رحمهما الله دليل دادی.چه د نكاح نه د نكاح مقاصد مقصود وی.دا مقاصد ښځو ته سپارل، په دې کې خلل اچول دی.ځکه چې ښځې ناقصات العقل دی.په دې وجه ښځو ته به د نكاح اختيار نشی وركيدلې.

**په بالغه ښځې باندې ولايت اجبار**

ولايجوزللولي اجبارالبكرالبالغةالعاقلة او جائز نه دې ولي لره دَ عاقلې بالغې مجبوره كول په نكاح باندې،

**تشريح** ◀ مسئله داده.چه زمونږ په نيز به باكره بالغه په نكاح باندې نشي مجبوروليې.كه بغير ددې د رضامندئ نه نكاح اوكړې شوه.نو ددې په اجازت باندې به موقوف وی.كه رد نې كړه.نو باطل به وی.او كه د ولي اجازت اخستلو په وخت كې خاموش پاتې شوه.نودا به ددې د طرفه اجازت شمارلې شي.([2])

**دليله** ◀ دليل دادې.چه باكره بالغه آزاده ده.او په آزاد باندې هيڅ چاته ولايت د اجبار حاصل نه وی.نو په باكره بالغه باندې به هم هيڅ چاته د اجبار ولايت نه وی.خو كه څوك سوال اوكړی.چه صغيره هم آزاده ده.نو په دې باندې هم د اجبار ولايت نه دې پكار؟ نوددې خواب دادې.چه په صغيره باندې د اجبار ولايت ددې د عقل د قصور په وجه دې.او په بالغ كيدلوسره عقل مكمل شو.نو په بالغه باندې د اجبار ولايت نه وی.او په صغيره باندې به وی.او ددې دليل چې په بلوغ باندې عقل كامل كيږي.د الله تعالى خطاب د بالغه ارخ (طرف) متوجه كيدل دی.چه تركومه پورې نابالغه وی.نود شريعت د احكامو مكلفه نه وی.او هركله چې بالغه شي.نو مكلف شي.او بالغه جينئ داسې ده.لكه بالغ هلك.يعنى لكه څنګه چې په بالغ هلك باندې د اجبار ولايت نه وی.دغه ډول (دغه شان) په بالغه جينئ باندې هم د اجبار ولايت نه وی.اودا داسې ده.لكه ،تصرف في المال، يعنى لكه څنګه چې باكره بالغه په خپل مال كې تصرف كولې شي.ددې پلار ته ددې په مال كې د تصرف اجازت نشته.دغه ډول (دغه شان) باكره بالغه به په خپل نفس كې هم د تصرف اختيارمنده وی.د پلار يا دبل ولي اجازت شرط نه دې.

**د باكره بالغې د طرفه د رضامندئ د اظهار صورتونه**

واذااستاذنهاالولي فسكتت اوضحكت اوبكت بغيرصوت فذلك اذن منهااو هر كله چې اجازت طلب كړو د باكرې بالغې نه دَ دې ولي او داچوپ (چپ) پاتې شوه يا ئ او خندل يا ئې بغير آوازه اوژړل نو دا د دې د طرفه اجازت دې. وان ابت لم يزوجها اوكه دې انكار اوكړو نو نه به ئې وادة كوی.

**حل اللغة** ◀ ① **الضحك**:خندا ② **السكوت**: چپوالې، چوپوالې(خاموشی) ③ **صوت**: آواز ④ **بكت**: ژاړی ]

---

[1] ) القول الراجح هو قول ابي يوسف رحمه الله وهو المختار للفتوى في زماننا كذا يفهم من تحقيق صاحب القول الراجح وارجع للتفصيل إليه (۲۵۱\۱)ـ

[2] ) **مسلك الشافعي**:- دامام شافعي رحمه الله په نيز باكره بالغه په نكاح باندې مجبورول جائز دی.

**تشریح**> مسئله داده.چه دنکاح نه مخکي ولی د باکره بالغه نه اجازت اوغوښتلو.هغې چې واوریدل،نو خاموش شوه.یا ئې اوخندل.نودا خاموش پاتې کیدل،یا خندل به ددې د طرفه اجازت وی.دغه دول «دغه شان» ضحک«تبسم او مسکی کیدل» هم د رضامندئ دلیل دې.

**دلالة**> ① د نبی کریم ﷺ ارشاد البِكْرُ تُسْتَأْمَرُ فِي نَفْسِهَا فَإِنْ سَكَتَتْ فَقَدْ رَضِيَتْ [1] دې.چه د باکره سره به «نه به» ددې د ذات په اړه «باره»کي رائې اخستلې شي.که دا خاموش شوه.نودا به رضامندی وی.
② دلیل عقلی دادې.چه په‌چوپ «چپ» پاتې کیدلوکي او په خندلوکي د رضامندئ معنی غالب ده.ځکه چې باکره د رغبت په ښکاره کولو شرمیږی.خو په انکار کولو نه شرمیږی. نوکه دا ناراضه وې.نو صفا صفا به ئې انکار کړې وې.خودا انکار نه کول،ددې د رضامندئ دلیل دې.
البته د باکره بالغه ژړل به د رضامندئ دلیل نه وی.بلکه د ناخوښئ دلیل به وی.

**الضحک علی وجه الاستهزاء**> د بعض حضراتو رائې داده.که باکره د استهزاء په اندازکي اوخندل.نودا خندا به د باکره رضامندی نشی شمارلې.ځکه چې دا به د ولی د خبرې تمسخر«خندا» وی.اجازت به نه وی.اوکه باکره بغیر د آوازه اوژړل.نودا به ددې دطرفه انکار نشی شمارلې.ځکه چې ډیرکرته د موریلار نه دجدایئ په خبر باندې بغیر د اختیاره اوښکې روانیږی.په دې فتوی ده.بلکه کتلې شي.چه کله د خوشئ په خبر باندې هم اوښکې راوځی.نودا بغیرآوازه ژړا به انکار او رد نه ګڼړلې کیږی.

## د ثیبه ښځې د نکاح د اجازت د پاره کلام ضروری دې

| وَإِذَا اسْتَأْذَنَ الثَّيِّبَ فَلَا بُدَّ مِنْ رِضَاهَا بِالْقَوْلِ که دَ ثیبې نه ئې دَ نکاح اجازت طلب کړو نو دَ دې رضامندی په قول سره ضروری ده. |
|---|

**تشریح**> که د ،ثیبه، بالغه نه د نکاح په اړه «باره»کي اجازت اوغوښتلې شو.نو ددې دطرفه به د رضامندئ اظهارپه ژبه ضروری وی.

**دلالة**> ①دلیل د نبی کریم ﷺ ارشاد الثَّيِّبُ تُشَاوَرُ [2] دې.تشاور،مشاورت د مفاعلت ځنې دې.اود مفاعلت خاصه ده.اشتراک،او مشوره وائی.طلب د رائې بالقول ته.یعنی په ژبه باندې د رائې طلب کول.نو هرکله چې په،احد الجانبین،کي قول شته.نو په جانب آخر کي به هم قول وی.نود حدیث تقاضا تکلم دې.اوهم دا اصل دې.
② دویم دلیل عقلی دادې.چه کلام کول،د ثیبه په حق کي عیب نه شمارلې کیږی.اود سړوسره د اختلاط په وجه ددې حیاء هم کمه شوه.نو ددې په حق کي د کلام کولو نه هیڅ مانع نشته.

## په زنا یا په بل څه د وجه دجینئ بکارت زائل کیدلوحکم

| وَإِذَا زَالَتْ بَكَارَتُهَا بِوَثْبَةٍ أَوْ حَيْضَةٍ أَوْ جِرَاحَةٍ أَوْ تَعْنِيسٍ فَهِيَ فِي حُكْمِ الْأَبْكَارِ او هر کله چې زائله شی بکارت دَ باکرې په ټوپ وهلوسره او یا چې حیض یا په زخم کیدو یا بې نکاح یو مُده په کیناستو نو دَغه دَ باکرې په حکم کي ده. |
|---|

[1]) غربه الزیلعی ﷺ هذا اللفظ ثم ذکرعن ابی هریرة ﷺ ان النبی ﷺ قال لا تنکح الأیم حتی تستامرولاتنکح البکر حتی تستاذن قالوا یارسول الله ﷺ وکیف إذنها قی ﷺ ان تسکت اخرجه البخاری فی النکاح باب ٤١ ومسلم فی النکاح رقم ٦٤ وأبوداود فی النکاح باب ٢٣ رقم ٢٠٩٢ والترمذی فی النکاح باب ١٧ رقم ١١١٠ والنسائی فی النکاح باب ١١ رقم ١٨٧١ والدارمی فی النکاح باب ١٣ وأحمد فی المسند(٢/٤٣٤) ( نصب الرایة ٣/٢٤٣)_

[2]) غربه الزیلعی هذا اللفظ ثم قال وتقدم معناه قریبا (أي حدیث ابی هریرة ﷺ ) (نصب الرایة (٣/٢٤٤)_

**حل اللغة** ﴿ ① **وثبة**: توپ ② **جراحة**: زخم③ **تعنيس**: زياته موده بې واده پاتې كيدل

**تشريح**﴿ مسئله داده.كه د يوې ښځې بكارت زائل شو.د توپونو په وجه،يا د حيض د كثرت په وجه،يا د څه زخم په وجه،يا زياته موده پاتې كيدلو په وجه،نو په دې ټولوصورتونوكې به دا جينۍ د باكره په حكم كې وي.يعني د استيذان په وخت به ددې سكوت اذن وي.كلام كول به ضروري نه وي.

**دليله**﴿ دليل دادې.چه دا ښځه په حقيقت كې باكره ده.اود،باء كاف را، په ماده كې د اوليت معنى موجود ده.لكه ،باكوره ،رومبۍ ميوه،او،بكره، رومبى صبا، ته وائي.نو دې ښځې ته چې څوك هم رومبې اورسيږي.هغه به رومبې رسيدونكې شمارلې شي.نو دې ښځې ته به د باكره حكم وركولې شي.

دويم دليل دادې.چه دې ښځې ته د سړو سره د اختلاط او محارست موقع خو ملاؤ شوې نه ده.نودا به هم د حياء اود شرم په وجه په ژبه باندې اجازت نه وركوي.

| وَإِنْ زَالَتْ بَكَارَتُهَا بِزِنًا فَهِيَ كَذَٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ [1] اوكه د دې بكارت زائل شو په زنا سره نو هم داسې ده،په نزد د امام ابوحنيفه رحمه الله باندې |
|---|

**تشريح**﴿ اوكه د ښځې بكارت په زنا سره زائل شو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به داهم د باكره په حكم كې وي.

**دليله**﴿ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه خلق دا ښځه باكره ګڼړي.اوس كه كلام كوي.نو خلق به دا معيوبه ګرځوي.او ددې سره به (نه به) دا حياء كوي.اود كلام كولو سره به (نه به) منع كيږي.چه ددې په نتيجه كې به ددې مصلحتونه معطل پاتې شي.په دې وجه به دا د باكره په حكم كې ساتلې شي.

| وَقَالَا هِيَ فِي حُكْمِ الثَّيِّبِ او صاحبين وائي چې دا د ثيبه په حكم كښې ده |
|---|

**مسلك الصاحبين**: د صاحبينو (دغه شان د امام شافعي رحمه الله) په نيز به د ثيبه په حكم كې وي.
نو ددې په سكوت باندې به اكتفاء نه كيږي.بلكه په ژبه باندې اجازت وركول به ضروري وي.

**دليلهما**﴿ ددې حضراتو دليل دادې.چه د،ث يا ب، په ماده كې دعود معنى پرته ده.مثلاً ،مثوبه، د نيك عمل جزاء ته وائي. نو اوس ګويا چې دوباره عمل ملاؤشو. دغه ډول (دغه شان) ،مثابه، د باربار واپس كيدلو ځائې ته وائي.په دې وجه مكې ته مثابه وائي.چه خلق باربار د حج اوعمره لپاره واپس خي.دغه ډول (دغه شان) ،تثويب، اعلام بعد اعلام ته وائي.

د دليل حاصل داشو.چه د كومې ښځې بكارت په زناء سره زائل شي.هغه په حقيقت كې ثيبه ده.ځكه چې څوك دې ته په رومبى ځل اورسيدلو.دوباره هم دغه فعل دې.نو هركله چې دې ښځې سره به دوباره هم دغه فعل واقع كيږي.كوم چې يوځل په زنا سره شوې دې.نو هغه ثيبه ده.نو په دې باندې به د ثيبه احكام لګولې شي.

**حكم ا لوطئ بالشبهة والنكاح الفاسد**﴿ البته كه د باكره سره ،وطى بشبه، اوشوله.يا په نكاح فاسد سره وطى اوشوه.نودا په اتفاق سره ثيبه شمارلې شي.ځكه چې شريعت په دې باندې د ثيبه احكام لګولې دي.اودا ئې ښكاره كړې ده.مثلاً عدت به واجب وي.مهر به واجب وي. او پاتې شوه زنا،نو په دې كې پواره (ټول) مستحب دي.تردې كه چرې ددې حال مشهور شو.او په زنا باندې څلورو ګواهانو ګواهي وركړه.نو بيا به داهم د ثيبه په حكم كې وي.او ددې په سكوت به اكتفاء نشي كولې.والله اعلم بالصواب

---

[1] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(۱۷۰\۳) والخانية (۱۶۰\۱) ورد المحتار(۳۲۸\۲) والهندية (۲۹۰\۱) نقلاً عن القول الراجح (۲۵٤\۱)—

## د نکاح په خبر د ښځې په خاموشئ یا رد کولوکښې د ښځې اوسړي اختلاف

وَإِذَاقَالَ الزَّوْجُ للبِكرِبَلَغَكِ النِّكَاحُ فَسَكَتِّ کله چې میړه (خاوند) باکره ته او وې کله چې تاته دَ نکاح خبر در او رسیدو نو تـهٔ خاموش شوې وَقَالَتْ رَدَدْتُ فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا او هغې او وې مـارد کـړې وه نـو دَ ښځې قول به معتبر وی وَلَايَمِيْنُ عَلَيْهَا اوپه هغې باندې قسم نشته.

**تشریح**﴾ صورت د مسئلې دادې.چه یوسړی ښځې تـه اوونیـل.چـه تاتـه کلـه د نکـاح خبـر ملاؤشـو.نـو تـا چوپوالي(خاموشي) اختیارکړله.نو زماسره ستا نکاح لازم شوه.ښځې اوونیل. چه اطلاع ملاؤشـوه.تومـا رد کړې وه.نو نکاح اونشوه.او ګواهان دې دواړو سره موجود نشته.نو د ښځې قول به معتبر وی.

**دلیله**﴾ دلیل دادې.سړې دعوی کوی.چه عقد د نکاح لازم شو.او زه د بضع مالك شوم.او ښځه ددې انکارکوی.او اصل عدم نکاح،او عدم تملك د بضع دې.نود سړی قـول بـه د اصـل خـلاف وی.اود ښځې به د اصل موافق وی.او دچا قول چې د اصل خلاف وی.هغه مدعی وی. او دچا چې د اصـل موافق وی. هغه مدعی علیه وی.اود مدعی یعنی سړی سره ګواهان نشته.نود مدعی علیـه یعنـی د ښځې قـول بـه معتبر وی.

**نظیره**﴾ اودا داسې ده.لکه مؤدع چاسره چې امانتونه ایخودلې شی.دې وائی.چه ما امانت اداکړې دې. او صاحب د ودیعت وائی.چه اداکړې دې نه دې.نو دلته کې به د مؤدع قول معتبر وی.ځکه چې مؤدع د ذمې د فراغت دعوی کوی.او صاحب د ودیعت د ذمې د مشغولیدلو دعـوی کـوی.او فراغـت د ذمـه اصل دې.اود ذمه مشغولیدل خلاف اصل وی.نو مؤدع مدع علیـه شـو.او صـاحب د ودیعـت مـدعی شو.اود مدعی سره بینه نشته.نود مدعی علیه قول به معتبر وی.

**مسلك زفر**﴾ د امام زفر رحمه الله په نیز به د سړی قول معتبر وی.

**دلیله**﴾ دلیل دا دې.چه سکوت اصل دې.ځکه چې سکوت نـوم دې،دعـدم کـلام.او پـه هرڅیـز کـې عـدم اصل دې.او ردکول عارض یعنی خلاف اصل دی.نو سړې مدعی علیـه او ښځه مدعیـه شـوه.او مدعیـه سره ګواه نشته.نود مدعی علیه یعنی د زوج قول به معتبر وی.

**الجواب عنه**﴾ د دې نه خواب دادې.چه دخیارشرط په صورت کې د عقد بیع لزوم پـه دې وجـه نـه دې شوې.چه د سکوت د مدعی قول معتبر منلې شوې دې.بلکه د خیـار د مـودې پـه تیریـدلو سـره پخپلـه عقد بیع لازم شوې دې.

وَلَايُسْتَحْلَفُ عِنْدَهُ فِي النِّكَاحِ اود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به نکاح کې قسم نشی اخستلې.

**تشریح**﴾ **مذهب أبي حنيفة رحمه الله في المسئلة** ﴾ نهه شیان دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز داسې دی.چه هغې کې د منکر یعنی مدعی علیه نه قسم نشی اخستلې.یوه په هغې کښې نکاح ده یعنی سړی پـه یـوې ښځې باندې دعوه اوکړله.چه ما ددې ښځې سره نکاح کړې ده.او ښځه ددې انکار کوی.یا ښځې د نکاح دعوه اوکړله.او سړې ددې منکر دې.

**الاشياء الثمانية التي لا يستحلف فيها**﴾ اود نکاح نه علاوه اته دا دی :

① **رجعت**﴾ یعنی سړی خپلې ښځې ته طلاق رجعی ورکړو.اود هغې عدت پوره شو.ددې نه روسته سړی دعوه اوکړله.چه د عدت په زمانه کې ده رجعت کړې وو.خو ښځه ددې منکره ده.

② **ایلاء رجعت**﴾ یعنی د ایلاء موده تیریدلو نه روسته سړی دعوه اوکړله.چه ما د ایلاء پـه مـوده کـې دې ته رجوع کړې ده.او ښځه ددې منکره ده.یا ښځې د رجوع کاوه دعوه اوکړله.او سړی ددې انکار اوکړو.

③**رقیت**> یعني یوسړی د یو مجهول النسب سړی په اړه کي دعوه اوکړله.چه دا زما غلام دي.او مجهول النسب ددي انکاراوکړو.یا مجهول النسب دعوه اوکړله.چه زه دده غلام یم.اوهغه انکار اوکړو.
④ **استیلاد**> یعني یوې وینځي خپل مولا باندي دعوه اوکړله.چه ما دده د نطفي نه یو بچي راوړلي دي.او مولا ددي انکار اوکړو.دي صورت کي به عکس نه جاري کیږي.ځکه که مولا دعوه اوکړله.نود مولا په اقرار سره به استیلاد ثابتیږي.اود وینځي انکار ارخ ته به توجه نشي ورکولي.
⑤ **نسب**> یعني یوسړی په یو مجهول النسب باندي دعوه اوکړله.چه دا زما زوی دي.یا دا زما پلار دي.او مجهول النسب ددي انکار اوکړو.یا مجهول النسب ددي دعوه اوکړله.او دي سړی انکار اوکړو.
⑥ **ولاء**> یعني یو سړی د یو مجهول النسب سړی په اړه کي دعوه اوکړله.چه ما دا آزاد کړي دي. او زه دده مولا یم.خو مجهول النسب ددي انکار اوکړو.یا مجهول النسب ددي خبري دعوه اوکړله.او دي سړی انکار اوکړو.
⑦ **حدود**> یعني یو سړی په بل کس باندي دداسي شئ دعوه اوکړله.چه هغه حد واجبوی.مثلاً د زنا، یا غلا دعوه ئي اوکړله.او هغه دوهم سړي ددي منکر دي.
⑧**لعان**> یعني ښځي خپل میړه باندي دعوه اوکړله.چه ده په ما باندي داسي تهمت لګولي دي.چه هغه لعان واجبوی.خو میړه ددي انکار اوکړو.د لعان نه سوا واړه شیان قدوری کي ذکر دی.او لعان اګرچه قدوری کي مذکور نه دي.خو په جامع صغیر کي مذکور نه دي.
**دلیله**> دحضرت امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادي.چه د مدعی علیه د قسم نه انکار کول، بذل یعني بهادریٔ او زړه ورتیا سره د ور کاوه اراده ده.او بذل نه مقصود جګړه لري کول دی.اود بذل په صورت کي هم جګړه لري کولي شي.نو بذل سره به قسم واجب نه وی.

| وَقَالَا:او صاحبین رحمهما الله فرمائی.يُسْتَحْلَفُ فِي ذٰلِكَ كُلِّهِ(١) |
|---|

**تشریح**> **مذهب الصاحبین رحمهما الله**> صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه حدود او لعان نه علاوه کي به منکر یعني مدعی علیه نه قسم اخستلي شي.حاصل داچه په حدود او لعان کي به بالاتفاق مدعی علیه یعني منکر نه قسم نشي اخستلي.خوپه پاته اووه ځیزونو کي اختلاف دي.یعني د امام صاحب رحمه الله په نیز په دي اووه ځیزونو کي به قسم نشي اخستلي.اود صاحبینو رحمهما الله په نیز به اخستلي شي.د حضرت امام صاحب رحمه الله په نیز د قسم نه اخستلو مطلب دادي.که مدعی سره بینه نه وی. نو مقدمه به خارجولي شي.او قاضي لپاره به دمدعی په حق کي فیصله ورکول جائز نه وی.
**دلیلهما**> د مدعی علیه یعني منکر د قسم نه انکار کول،یو قسم له د مدعی د دعوه اقرار کول دی.ځکه چي قسم خوړلو سره انکار کول ددي خبري دلیل دي.چه مدعی علیه د مدعی دعوه نه په انکار کولوکي بالکل دروغجن دي.ځکه که مدعی علیه د دعوه په انکار کي دروغجن نه وو. نو هغه به قسم خوړلو ته ضروروړاندي شوي وو.غرض داچه د مدعی علیه د قسم خوړلو نه انکار کول، د مدعی د دعوه اقرار دي.یا د اقرار بدل او خلیفه دي.او اقرار په ذکر شوی ټولو ځیزونو کي جاری کیږی.نوانکار عن الیمین به هم په ټولو ځیزونو کي جاری کیږی.او انکار عن الیمین به هغه وخت جاری کیږی.کله چي مدعی علیه نه قسم واخستلي شي.نو ثابته شوه.چه په ذکرشوی مسئلوکي به

(١) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في نتائج الأفكار(١٦٩\٧) والخانية٩٢، ٩٣) وردالمحتار(٤٧٣\٤) ومجمع الأنهر(٣٥١\٣)نقلاً عن القول الراجح (١٧١\٢)

مدعی علیه نه قسم اخستلې شي. مزید تفصیل به په هدایه راشي انشاء الله تعالی

## د نکاح د الفاظو بیان

| وَيَنْعَقِدُ النِّكَاحُ بِلَفْظِ النِّكَاحِ وَالتَّزْوِيجِ وَالتَّمْلِيكِ وَالْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ او تړلې کیږي په لفظ دَ نکاح،او تز ویج،او تملیك هبه او صدقې،سره |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **التزویج**:وادهٔ کول ② **التملیك**: مالك جوړول

**تشریح**﴿ مصنف رحمه الله په دې عبارت کښې د نکاح الفاظ بیان کړي دي. په متن کښې ذکرشوي تولو الفاظوسره نکاح منعقد کیږي.صاحب د شرح وقایه رحمه الله قاعده بیان کړې ده.چه هرهغه لفظ چه د [تمسك عین فی الحال] دپاره وضع شوي دي.په هغې سره نکاح منعقد کیږي. ([1])

**دلیله**﴿ دلیل دا دې.چه تملیك وغیره لفظونه د نکاح په معنی کښې مجازاً مستعمل دی.د سببیت د علاقې په وجه،ځکه چه تملیك د ملك رقبه په واسطې سره د ملك متعه سبب دې.د متعه په محل کښې،مثلاً که څوك سړې د یوې وینځې د رقبه مالك شي.نود رقبه یعني د ذات په ضمن کښې ددې د متعه هم مالك جوړیږي.او ملك متعه حاصلیږي.په لفظ د نکاح سره.نو ګویا لفظ د تملیك سبب شو.او لفظ د نکاح مسبب،او اصول دادي.چه سبب وئیل، او مسبب مراد اخستل مجازاً درست دی.اګرچه ددې په عکس درست نه دی.نو تملیك وغیره الفاظوسره نکاح مراد اخستلې شي.

## په لفظ د بیع سره د نکاح انعقاد

| وَلَا يَنْعَقِدُ بِلَفْظِ الْإِجَارَةِ وَالْإِعَارَةِ وَالْإِبَاحَةِ او نه تړلې کیږي په لفظ دَ اجارې او اعارې او اباحت سره |
|---|

**تشریح**﴿ د اجاره په لفظ سره د صحیح قول په بناء باندې نکاح نه منعقد کیږي.

**دلیله**﴿ دلیل دادې.چه اجاره د ملك متعه سبب نه دې.نود سببیت علاقه د نه کیدلو په وجه طریق مجاز موجود نشو. دغه شان په لفظ د اباحت، اعلال، اعاره سره هم نکاح نه منعقد کیږي.هم دا وجه ده.چه دا الفاظ هم د ملك متعه سبب نه دی.

| وَلَا يُسْتَحْلَفُ فِي النِّكَاحِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ([2]) اوقسم به نشي ورکولې په نکاح کښې په نیز دامام ابوحنیفه رحمه الله، |
|---|

**تشریح**﴿ په دې مسئله کې که زوج د ښځې په سکوت باندې بینه پیش کړل.نو نکاح به ثابت وی.

**دلیله**﴿ ځکه چې مدعی خپله دعوی په حجت باندې منوره کړه.او که دده سره ګواهان نه وی.نود امام صاحب رحمه الله په نیز به په ښځه باندې یمین(قسم) نه راځي.اودا هم دهغه څیزونو څنې یو دې.په کوم کې چې په مدعی علیه باندې د امام صاحب رحمه الله په نیز یمین نه راځي.

| وقالا یستحلف فیه اوصاحبین فرمائي چې په دې کښې به قسم ورکولې شي |
|---|

**تشریح**﴿ **مسلک الصاحبین**﴿ د صاحبینو په نیز په دې باندې قسم راځي.

**دلیلهما**﴿ فتوی د صاحبیو په قول ده.زیات تفصیل به انشاء الله په کتاب الدعوی کښې راشي.

---

[1] **مسلك الشافعي**:- امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه صرف په دوه لفظونو(نکاح او تزویج) سره نکاح منعقد کیږي.

[2] القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في فتح القدير(۱۷۲\۳) وردالمحتار(۳۲۹\۲) والبحرالرائق (۲۰۶\۳) نقلا عن القول الراجح (۲۵۵\۱)-

**فائده>** د فریقینو دلائلو نه روسته د مدعی او مدعی علیه تعریف او ددوی حکم په ذهن کې کینوئ. مدعی هغه کس ته وائی.دچا قول چې د اصل خلاف وی.او مدعا علیه هغه کس ته وائی.دچا قول چې د اصل موافق وی.د حدیث د بیان مطابق په مدعی باندې بینه(گواهان) واجبیږی.که د مدعی سره بینه نه وی.نو بیا به د مدعی علیه قول ،مع الیمین، معتبر وی.البته شپږ شیان (څیزونه ) داسې دی.چه په هغې کې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مدعی علیه باندې یمین نه راځی.اود صاحبین،امام شافعی،امام مالك،اود امام احمد رحمه الله په نیز د مدعی علیه نه قسم اخستلې شی.هغه شپږ شیان (څیزونه ) دا دی.
① نکاح ② رجعت ③ فی فی الایلاء ④ استیلاء ⑤ رق ⑥ ولاء.

**حق د ولایت به چاته وی.او په چا به وی؟**

| وَيَجُوزُ نِكَاحُ الصَّغِيرِ وَالصَّغِيرَةِ إِذَا زَوَّجَهُمَا الْوَلِيُّ او جائز دی دَ وړوکی هلك او وړې جینئ نکاح هر کله چې کړې وی دَ دوی ولی بِكْرًا كَانَتِ الصَّغِيرَةُ أَوْ ثَيِّبًا وَالْوَلِيُّ هُوَ الْعَصَبَةُ دا صغیره باکره وی او که ثیبه وی او ولی عصبه وی. |
|---|

**تشریح> الولایة لمن؟>** دلته یوه دا مسئله بیانوی چې د ولایت حق به چا ته وی؟ هر ولی ته د ولایت حق حاصل دې.پلار نیکه وی.او که ددوی نه علاوه وی.
② اود امام مالك رحمه الله په نیز د ولایت حق صرف پلار ته حاصل وی.
③ اود امام شافعی رحمه الله په نیز به پلار اونیکه ته حاصل وی.
**الولایة علي من؟>** دویمه مسئله په دې مقام کې دا ده چې د ولایت حق به په چا وی؟ ① نو په دې اړه (باره)کې د احنافو رحمهم الله مذهب دادې.چه د ولایت حق به په صغیره باندې وی.صغیره که باکره وی.او که ثیبه وی.
② اود شوافعو رحمهم الله مذهب دادې.چه ولایت به په باکره باندې وی.که صغیره وی.او که بالغه وی.حاصل داچه د احنافو رحمهم الله په نیز سبب د ولایت ،صغر، دې.اود شوافعو رحمهم الله په نیز ، بکر، دې.
**الصور الاربعة>** اوس څلور صورتونه پیدا شو.دوې (دوه) متفق علیه،او دوې (دوه) مختلف فیه.
**الصور الاتفاقیة>** ① په متفق علیه کې یو صورت دادې باکره صغیره، په دې صورت کې د احنافو او شوافعو رحمهم الله دواړو په نیز به د ولایت حق حاصل وی.
② دویم ثیبه بالغه ده. په دې صورت کې به د دواړو په نیز د ولایت حق حاصل نه وی.
**الصور الاختلافیة>** ① د مختلف فیه یو صورت دادې.باکره بالغه، په دې صورت یعنی په باکره بالغه باندې به د شوافعو رحمهم الله په نیز د ولایت حق حاصل وی.د احنافو رحمهم الله په نیز به حاصل نه وی.
② دویم صورت ثیبه صغیره ده. په دې صورت یعنی په ثیبه صغیره باندې به د احنافو رحمهم الله په نیز ولایت حاصل وی.خود شوافعو رحمهم الله په نیز به حاصل نه وی.
**دلیل الولایة لغیر الاب>** په صغیره باندې د غیر اب ولایت ځکه حاصل دې چې نکاح متضمن وی.څه مصلحتونو ته.مثلاً تناسل، ازدواج، قضاء شهوت وغیره.او دا مصلحتونه د هغه دوې (دوه) کسانو په مینځ کې حاصلیدلې شی.چه په دوی کې هر یو د بل کفو وی.او د کفو په هره زمانه کې ملاویدل ضروری نه دی.په دې وجه مونږ (مونږ) د ماشوموالی په زمانه کې ولایت ثابت کړو.چه کفو محفوظ پاتې شی.ځکه که د بالغ کیدلو انتظار اوکړې شی.نو داکفو فوت کیدلې هم شی.
**دلیل الولایة فی لغیر الاب والجد>** قرابت د شفقت سبب دې.لکه په پلار اونیکه کې چې دې.پاتې شوه داخبره چې د پلار او نیکه نه په علاوه کې شفقت کم دې.نو ددې توپیر(فرق) به داسې کوو.چه پلار او

نیکه چې په دوی کې کامل شفقت وی.دوی ته ولایت د اجبار او ولایت د الزام د دواړوحق ورکړې شو.اود پلار نیکه نه علاوه په چا کې چې شفقت کم دې.دوی لپاره ولایت د اجبار ثابت دې.خو ولایت د الزام ثابت نه دې.نو هرکله چې قرابت سبب دې د شفقت.اود ولایت دارومدار په شفقت باندې دې.نوپه کوم کوم خائې کې چې شفقت بیا موندې شی.هم هلته کې به ولایت هم ثابت وی.که پلار نیکه وی.او که ددوی نه علاوه نورخوك نیز دې رشته دار وی.

**الفرق بین ولایة الاجبار وولایة الالزام>** په ولایت اجبار او ولایت الزام کې توپیر(فرق) دادې.چه چاته ولایت د اجبار حاصل دې.او ولایت د الزام ثابت نه دې.نو ددوی کړې شوې نکاح به لازم نه وی.بلکه د بالغ کیدلو نه روسته به صغیرته خیار بلوغ حاصل وی. اوچاته چې د ولایت اجبار سره ولایت الزام هم حاصل دې ددوی کړې شوې نکاح به لازم وی.د بالغ کیدلو نه روسته به خیار بلوغ حاصل نه وی.

**دلیل الولایة علي الصغیرة وان کانت ثیبة؟>** په صغیر او صغیره کې خاجت هم متحقق دې.او په پلار نیکه کې سنفقت هم کامل دې.او پاتې شوه داخبره چې ممارست (تجربه ) رائې پیدا کوی.مونږ (مونږ) وایو.چه بغیر د شهوت نه ممارست هم نه پیدا کوی.بغیرد شهوت نه جماع کول،او په دیوال کې ډغره وهل برابر دی.نوحکم به په صغیره باندې دائر کولې شی.نو هرکله چې صِغر موجود شی.نو ولایت به ثابت وی.

## د پلار نیکه په نکاح باندې د خیار بلوغ حکم

فَإِنْ زَوَّجَهُمَا الْأَبُ وَالْجَدُّ نو که نکاح او کړو دَ دې دواړو پلار یا نیکه، فَلَا خِيَارَ لَهُمَا بَعْدَ الْبُلُوغِ یعنی د صغیر او صغیرې،نو سره به (نه به) وی خیار دوی لره نو دَ بلوغ دَ دواړو نه ،

**تشریح>** په دې عبارت کې په ولایت اجبار باندې تفریع بیان کړې شوې ده.فرمائی.که د صغیر او صغیره نکاح پلار اوکړه.یا د پلار په غیرموجودګئ کې نیکه اوکړه.نودا نکاح به لازم وی.اود بالغ کیدلو نه روسته به صغیر او صغیره ته خیار بلوغ حاصل نه وی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه پلار اونیکه دواړه کامل رائې او پوره شفقت لری.په دې وجه به د دواړو شوې نکاح لازم وی.لکه څنګه چې د بالغ کیدلو نه روسته پلار یا نیکه ددې دواړو په رضامندئ سره نکاح اوکړه.نودا نکاح به لازم وی.

## د پلار نیکه نه علاوه د بل کس په نکاح د خیاربلوغ حکم

وَإِنْ زَوَّجَهُمَا غَيْرُ الْأَبِ وَالْجَدِّ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْخِيَارُ اوکه نکاح اوکړو دَ صغیر او صغیرې دَ پلار نیکه نه علاوه بل چا نو هریو لره دَ دې دواړو نه خیار دې إِنْ شَاءَ أَقَامَ عَلَى النِّكَاحِ وَإِنْ شَاءَ فَسَخَ

**تشریح> الخیاربعدالبلوغ اذا کان الولي غیرالاب والجد>** په دې عبارت کې په ولایت اجبار باندې تفریع بیان شوې ده.مسئله داده.که د صغیر او صغیرې نکاح د پلار نیکه نه علاوه بل چا اوکړه.نود بالغ کیدلو نه روسته به په صغیرنوکې هر یوته د خیار بلوغ په وجه د نکاح باقی پاتې کیدلو اود فسخ کولو اختیار وی.دا حکم د طرفینو رحمهما الله په نیز دې[1]

[1] ) القول الراجح هو قول الطرفین رحمهما الله کذا في ردالمحتار(۲\۳۳۱) والعنایة علی هامش (۳\۱۷۵) والبحرالرائق (۳\۲۱۲) والهندیة (۱\۲۸۶) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۵۷)-

**دليلهما** > دليل دادې.چه د پلار نيکه نه علاوه،مثلاً د وورور قرابت د پلار نيکه د قرابت نه ناقص دې.او نقصان د قرابت،د شفقت د نقصان دليل دې.نود شفقت د نقصان په وجه دپلار نيکه نه علاوه د نورو ترلې شوې نکاح کې خلل واقع کيدل ممکن دی.اود شفقت د نقصان په وجه د نکاح په مقاصدو کې چې د خلل کوم امکان پيدا شوې دې.د خيار بلوغ په ذريعه ددې تلافي هم ممکن ده. نو ددې خلل د لرې کولو لپاره به صغيرينو ته خيار بلوغ حاصل وی.اود پلار نيکه نه علاوه د بل ترلې شوې نکاح به لازم نه وی.حاصل داچه د طرفينو رحمهما الله په نيز غيراب او غيرجد ته ولايت اجبار حاصل دې.خو ولايت الزام حاصل نه دې.

**مسلک ابي يوسف** > امام ابويوسف رحمه الله فرمائي.چه صغيرينو ته به خيار بلوغ حاصل نه وی.

**دليله** > امام ابويوسف رحمه الله غيراب او غيرجد قياس کوی په اب او جد باندې.يعنی لکه څنګه چې د پلار نيکه کړې شوې نکاح لازم وی.د بالغ کيدلو نه روسته دانشی فسخ کولې.دغه ډول (دغه شان) د غيراب اود غيرجد ترلې شوې نکاح به هم لازم وی.د بالغ کيدلو نه روسته به صغيرينو ته د فسخ کولو اختيار نه وی.د مقيس او مقيس عليه په مينځ کې جامع قرابت دې.حاصل داچه دابويوسف رحمه الله په نيز د پلار نيکه په شان غير پلار اوغيرنيکه ته به هم، ولايت اجبار سره ولايت الزام حاصل وی.

**د غلام، ماشوم،اود مجنون د ولايت حکم**

| وَلَاوِلَايَةَ لِعَبْدٍ وَّلَا لِصَغِيْرٍ وَّلَا لِمَجْنُوْنٍ او نشته ولايت دَ غلام دَ پاره او نهٔ دَ صغير دَ پاره او نهٔ دَ مجنون دَ پاره، |
|---|

**حل اللغة** > ① **ولاية:** اختيار،تصرف

**تشريح** > فرمائي.چه غلام ،صغير او مجنون(ليونی) ته د ولايت حق نشته.

**دلائله** > ① دليل دادې.چه،ولايت متعديه،د ،ولايت قاصره،فرع ده.نو کوم کس ته چې په خپل ځان باندې ولايت حاصل نه وی.نو په بل باندې به په درجه اولی حاصل نه وی.اودې درې واړو ته په خپل ځان باندې دولايت حق نشته.نو په بل باندې به هم نه وی.

② دويم دليل دادې.چه د ولايت دارومدار په شفقت باندې دې.او دې درې واړو ته که د نکاح امور اوسپارلې شی.نو په دوی کې هيڅ شفقت نشته.څکه چې ماشوم او ديوانه خود کفو حاصلولو نه عاجز دی.او پاتې شو غلام،نو دې د مولا په خدمت کې د بوخت (مشغول) کيدلو په وجه کفو نشی حاصلولې.

| ولاولَايَةَ لِكَافِرٍ عَلَى مُسْلِمَةٍ او نشته ولايت کافر لره په مسلمان باند ،دَ دې وجهې نه چې دَ حق تعالی ارشاد دې، |
|---|

**تشريح** > صاحب د قدوری رحمه الله فرمائي.چه کافر ته به هم د مسلمان په خلاف د ولايت حق نه وی.

**دليله** > څکه چې الله تعالی فرمائيلی دی.چه،الله کافر ته د مسلمان په خلاف څه لاره نه ورکوی،اود سبيل نه مراد دلته کې شرعی تصرف دې.اوچونکه کافر ته په مسلمان باندې د ولايت حق نشته.په دې وجه د مسلمان خلاف دکافر ګواهی هم نه قبليږی.او (نه به) کافر د مسلمان وراث جوړيږی.اونه به مسلمان د کافر وارث جوړيږی. البته کافر ته دخپل کافر خوی په نکاح کولو ولايت حاصل دې.

## دعصباتو په عدم موجودګئ کښې د ولايت مستحقين

وقال أبو حنيفة رحمه الله امام ابوحنيفه فرمائي يجوز لغير العصبات من الأقارب التزويج او دَ غير عصباتو دَ پارهٔ دَ اقاربو نه دَ نکاح کولو ولايت دې. مثل الاخت والام والخالة لکه خوز مور او د مور خور يعني ترور

**تشريح** مسئله داده.چه د عصبياتو په عدم موجودګئ کي به ولايت دچا لپاره ثابت وی.په دې اره (باره)کي اختلاف دې.د امام صاحب رحمه الله په نيز به د عصبياتو نه علاوه د نورو رشته دارانو لپاره ثابت وی.مثلاً ماما ،تروريانې وغيره.د امام صاحب رحمه الله مذهب استحساناً دې.

**دليله** دليل دادې.چه د ولايت مدار په شفقت باندې دې.او شفقت به په هرهغه کس کي موجود وی.چه په هغه کي ،قرابت باعثه على الشفقت،موجود وی.نو په کوم کس کي چې داسې قرابت موجود شي.هغه ته به ولايت حاصل وی.که عصبه وی.او که غير عصبه وی.اود [النكاح الى العصبيات] حديث خواب دادې.چه د عصبياتو په موجودګئ کي به نکاح هم دوی ته سپارلې شي.خوددوی په عدم موجودګئ کي د غيرعصبياتو نفي نه ده شوې.

**مسلك الصاحبين** اود امام محمد رحمه الله په نيزد عصبياتو نه علاوه د نورو رشته دارانو لپاره ولايت ثابت نه دې.او قياس هم دا دې.د امام ابويوسف رحمه الله په قول کي اضطراب دې.خو مشهوره داده.چه د امام محمد رحمه الله سره دې.

**دليلهما** دليل په ماقبل کي روايت شوې حديث دې.يعنى[النكاح الى العصبيات] او ،الف لام، دجنس دې.نو مطلب به داوی.چه جنس نکاح سپارلې شوې ده.جنس عصبياتو ته.ددوی غير ته به دې کي هيڅ دخل نشته. دويم دليل عقلي دادې.چه ولايت د قرابت د ساتنه (حفاظت) لپاره وی.چه رشته داری ارخ (طرف) ته غيرکفو منسوب نکړې شي.اودا ساتنه (حفاظت) به عصبياتو ته په سپارلوسره کيږی.ځکه چې د ولايت حق صرف عصبياتو ته دې.د عصبياتو نه علاوه ته نشته.

وَمَنْ لَا وَلِيَّ لَهَا او دَ کومې ښځې چې څوك ولی نه وی، إِذَا زَوَّجَهَا مَوْلَاهَا الَّذِي أَعْتَقَهَا جَازَ هر کله چې دَ دې نکاح اوکړه دَ دې مولی ،کوم چې دا ازاده کړې ده،نو جائز دې.

**تشريح** صاحب دقدوري رحمه الله بيان کړی دی.که د صغيره ولی نه وی.يعنی د قرابت په وجه عصبه نه وی.او ددې نکاح مولا عتاقه اوکړه.نو ټيك ده.

**دليله** ځکه چې دا آخرې عصبه دې.او هرکله چې هيڅ څوك ولی نه وی.نه عصبه وی.او نه غير عصبه وی.نو په دې صورت کي ولايت امام او حاکم لپاره وی.د امام نه مراد خليفه اود حاکم نه مراد ده نائب دې.ياد حاکم نه مراد قاضی دې.خو قاضی ته به د نکاح ولايت هغه وخت حاصل وی.هرکله چې امام ده ته ددې اختيار ورکړې وی.ځکه چې په حديث کښې راغلی دی السُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ[1] دچا هيڅ څوك ولی نه وی.دهغه ولی امام دې.

---

(۱) من حديث عائشة رضي الله عنها احرجه أبوداود في النكاح باب ۱۹ رقم ۲۰۸۳ والترمذی في النكاح باب ۱٤ رقم ۱۱۰ وابن ماجه في النكاح باب ۱۵ رقم ۱۸۷۹).

## د ولی اقرب د غائب کېدو په صورت کښې حکم

وَاِذَا غَابَ الْوَلِيُّ اوکله چې غائب وی ولی غَيْبَةً مُنْقَطِعَةً په غیبه منقطعه سره جَازَ لِمَنْ هُوَ اَبْعَدُ مِنْهُ نو جائز دی د هغه چا دپاره چې ابعد د هغه نه اَنْ يُزَوِّجَهَا چې په نکاح سره ورکړی دا جینۍ

**تشریح**> مسئله دا ده که ولی اقرب مثلا پلار په غیبت منقطعه سره غائب شی نو ولی ابعد مثلا نیکه ده ته به په نکاح د ورکولو ولایت منتقل شی.اوولی ابعد به د کامل ولایت مالک شی.که د نکاح نه روسته ولی اقرب واپس راغلو نو نکاح به نه باطلیږی.

**دلیله**> ځکه چې په کوم وخت کښې ولی ابعد په نکاح سره جینۍ ورکوله نو په هغه وخت کښې هغه د کامل ولایت مالک وو.

## غیبت منقطعه

وَالْغَيْبَةُ الْمُنْقَطِعَةُ اَنْ يَكُونَ فِي بَلَدٍ لَا تَصِلُ اِلَيْهِ الْقَوَافِلُ فِي السَّنَةِ اِلَّا مَرَّةً وَاحِدَةً دا دې چې هغه په داسې ښار کې وی چې قافلې ورته نه رسی په کال کې مگر یو وار،

**تشریح**> مصنف رحمه الله په دې عبارت کې د غیبت منقطعه تعریف کول غواړی.په دې اره (باره) کې د صاحب د قدوری رحمه الله مختار مذهب خودا دې.چه سړې داسې ښار ته لاړشی.چه هلته کې قافلې په کال کې یوځل ځی.

**القولان الآخران فيه**> ① د بعض متاخرینومختار مذهب دادې.چه ادنی موده د سفر، یعنی د درې ورځو په مسافه (مسافت) باندې تللو سره به غیبت منقطعه متحقق کیږی.ځکه چې د سفر د مودې هیڅ انتهاء نشته.نود سفر د ادنی مودې اعتبار شوې دې.

②بعض حضرات چې په هغوی کې شمس الائمه سرخسی رحمه الله هم دې.ددوی رائې داده.که ولی داسې خانې ته لاړ شی.چه دده رائې که معلومیږی.نوکفو فوت کیږی.نوپه داسې صورت کې به غیبت منقطعه متحقق وی. دا قول فقهیه دلائلو سره زیات قریب دې.ځکه چې د کفو فوت کیدلو باوجود دده ولایت باقی ساتلو کې هیڅ شفقت نشته دې.حالانکه د ولایت مدار په شفقت باندې دې.په دې وجه په جامع صغیر کې ونیلی شوی دی.چه ولی که په ښار کې پټ شو.او دده په اره (باره) کې هیڅ چاته علم نه وی.نودا به غیبت منقطعه وی.والله اعلم

## په نکاح کښې د کفو احکام

وَالْكَفَاءَةُ فِي النِّكَاحِ مُعْتَبَرَةٌ همسری معتبره ده په نکاح کې فِي النَّسَبِ وَالدِّيْنِ وَالْمَالِ په نسب کښې په دین کښې په مال کښې وَهُوَ اَنْ يَكُونَ مَالِكًا لِلْمَهْرِ وَالنَّفَقَةِ او په مال کښې برابری دا ده چې د مهر مالک وی او د نفقې مالک وی وَتُعْتَبَرُ فِي الصَّنَائِعِ او معتبره ده برابری به پیشه کښې

**تشریح**> د کفاءت معنی ده همسری.برابری، کفو، مثال، مساوی بالکفاءة فی النکاح، داده چه میړه (خاوند) د ښځې مساوی وی ددې په حسب کې ،نسب کې ، دین کې ،عمر او جمال کې و غیره ذالك په نکاح کې د کفاءة اعتبار په دې وجه شوې دې چه د ولیانو د فسخ حق ساقط شی.او نکاح لازم شی.په نکاح کې د کفو په معتبر کیدلو باندې

**دليله** ﴿ أَلَا لَا يُزَوِّجُ النِّسَاءَ إِلَّا الْأَوْلِيَاءُ، وَلَا يُزَوَّجْنَ إِلَّا مِنَ الْأَكْفَاءِ[1] د نبي كريم ﷺ فرمان دي.،خبردار دښځو نكاح دې نه كوي.مګراولياء.،او نكاح دې نه كوي.مګرد برابر سره(يعنى په كفوكې)

## په كفاءت كښې د نسب اعتبار

| وَالْكَفَاءَةُ تُعْتَبَرُ فِي النَّسَبِ كفاءت معتبر دې په نسب كې ، |
|---|

**تشريح** ﴿ مصنف رحمه الله فرمائي.چه په نسب كې كفاءت معتبر دې.

**دليله** ﴿ ځكه چې نسب سره هم په خپل مينځ كې يوبل باندې فخر كولې شي.او كوم شي (څيز) چې داسې وي.چه په هغې سره خلق فخر كوي.په هغې كې د كفاءت اعتبار شوې دې.نو يوقريشى به دبل قريشى كفو وي.اود قريشى نه علاوه به يو عرب د بل عرب كفو وي.

**دليل الدليل** ﴿ په دې سلسله كې دليل د نبي كريم ﷺ فرمان دې. { قُرَيْشٌ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ بَطْنٌ بِبَطْنٍ ،وَالْعَرَبُ بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ قَبِيلَةٌ بِقَبِيلَةٍ،وَالْمَوَالِي بَعْضُهُمْ أَكْفَاءٌ لِبَعْضٍ رَجُلٌ بِرَجُلٍ }[2] چه،قريش خپل مينځ كې د يوبل كفو دى.يو بطن د بل بطن،او عرب خپل مينځ كښې د يوبل كفو دى.يوه قبيله د بلې قبيلې اوغير عرب(عجم) خپل مينځ كې د يوبل كفو دى.يو كس د بل كس،د بيان كړې حديث په وجه په قريشوكې په خپل مينځ كې په يوبل باندې فضيلت معتبر نه دې.نو هر قريشى به د بل قريشى كفو وي.ځكه چې دحديث،الائمه من قريش، په وجه په هرقريشى كې د خلافت صلاحيت او اهليت شته.

## په كفاءت كښې د دين حيثيت

| وَالدِّيْنِ او كفاءت معتبر دې په دين كې يعنى په ديانت كې هم او دا قول دَ شيخينو دې دا صحيح دے[3] |
|---|

**تشريح** ﴿ مصنف رحمه الله فرمائي.چه په دين كې هم كفاءت معتبر دې.علامه مرغينانى رحمه الله فرمائيلي دي.چه د دين نه مراد ديانت دې.يعنى تقوى، صلاح، حسب، او مكارم اخلاق.

**دليله** ﴿ ځكه چې دين دَاعلى مفاخره ځنې دې او ښځې ته دَ ميړه (خاوند) په فاسق كيدو عار ور كولې شي (كولې شي) زيات دَ دې نه چې دَ ميړه (خاوند) په كمتر نسب وركولې شي

| وَالْمَالِ اوكفاءت معتبر دې په مال كښې وَهُوَ أَنْ يَكُوْنَ مَالِكًا لِلْمَهْرِ وَالنَّفَقَةِ اوكفاءت په مال كښې دا دې چې سړې د مهر او نفقې مالك وي |
|---|

**تشريح** ﴿ اوس پاتې شوه داخبره چې په غنى، يعنى په صاحب نصاب كيدلوكې كفاءت معتبر دې او كه نه؟ نود طرفينو رحمهما الله مذهب دادې.چه معتبر دې.نو كه ښځه صاحب نصاب وي.نو سړې چې صرف د نفقه او مهر قدرت لرى.ددې ښځې كفو نشى كيدلې.

**دليلهما** ﴿ ځكه چې خلق په مالداره كيدلو باندې فخر كوي.او په غريبۍ باندې شرم محسوسوي.

---

[1]) من حديث جابربن عبدالله رضى الله عنهما أخرجه البيهقى في السنن الكبرى (٧/٢١٥) والدارقطنى في سننه ٣/٤٤، برقم ١١ في باب المهر)۔

[2]) من حديث عبدالله بن عمر رضي الله عنهما أخرجه البيهقى في السنن الكبرى (٧/٢١٧)۔

[3]) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا في فتح القدير(١٩٢\٣) والعناية (١٩٢\٣) والخانية (١٦٣\١) والهندية (٢٩١\١) وردالمحتار(٣٤٧\٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٦٢\١)۔

**مسلك ابي يوسف**> خو ابویوسف‌ رحمه الله په غنی کې د کفاءت اعتبار نه کوي.

**دليله**> څکه چې مالداري يو داسې شی (څيز) دي.چه دا نه ايساريږي.تلونکې راتلونکې شی (څيز) دې.مال سهار صبا) راځي.مابنام ځي.نود داسې ناپائیداره شی (څیز) اعتبار به نشی کيدلې.

**په کاروبارکښې د کفاءت حکم**

| وَتُعْتَبَرُ فِي الصَّنَائِعِ () او کفاءت معتبر دې په پیشی (پیشو) کې |
|---|

**حل اللغة**> ① **الصنائع**: جمع د **صنعة** پیشه کسب

**تشريح**> په پیشه (کاروبار) کې کفاءت معتبر دې اوکه نه؟ په دې اړه (باره) کې د صاحبينو رحمهما الله مذهب دادی.چه معتبر دې.اود امام صاحب‌ رحمه الله نه هم دا يو روايت دې چې په پیشه کښې کفاءت معتبر دې

**دليله**> په پیشه کې د کفاءت معتبر کیدلو وجه داده.چه خلق په ښه پیشه باندې فخر کوی.او په ذلیله پیشه باندې عار اوشرم محسوسوی.

**الرواية الثانية**> د امام ابوحنيفه معتبر نه دې .او د امام ابويوسف‌ رحمه الله نه هم يو روايت دادې.چه معتبر نه دې.خو که پیشه بیخي سپکه(ذلیله) وی.مثلاً د نئ توب پیشه، یا د جولاګرۍ، یاد رنګ سازۍ پیشه. نو په دې صورت کې به کفاءت معتبر وی..

**دليله**> پیشه لازم نه وی.د ادنی نه اعلی اړخ (طرف) ته منتقل کیدل ممکن وی.نو کوم شی (څیز) چې غیر لازم وی.د هغې اعتبار نشی کیدلې.خو په دې باندې دا اشکال کیږی.چه فسق او فقر هم غیر لازم دی.نو په دیانت اومالدارئ کې هم کفاءت معتبر کیدل پکار نه دی؟ والله اعلم بالصواب

**د مهرمثل نه په کم باندې د بالغې ښځې خپله نکاح کول**

| وَإِذَا تَزَوَّجَتْ الْمَرْأَةُ وَنَقَصَتْ مِنْ مَهْرِمِثْلِهَا فَلِلْأَوْلِيَاءِ الإِعْتِرَاضُ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله او هر کله چې وادۀ اوکړو ښځې او کم ئې کړو خپل مهر د مثل نه نو اولیاء ته حق دې په ښځه د اعتراض کولو د امام ابوحنيفه‌ رحمه الله په نزد حَتَّى يُتِمَّ لَهَا مَهْرَمِثْلِهَا أَوْيُفَرِّقَهَا () تر دې چې میړه (خاوند)، د دې مهر مثل پوره کړی او یا د دې نه جداشی |
|---|

**تشريح**> مسئله داده.چه يوې بالغې ښځې خپله نکاح د مهر مثل نه په کم باندې اوکړله.نود امام صاحب‌ رحمه الله په نيز باندې اولياؤ ته د اعتراض حق حاصل دې.چه میړه (خاوند) مهر مثل مکمل کړی.یا نې جدا کړی.ګنی قاضی به د مرافعه (قاضی ته فیصله اوړل) نه روسته تفريق کوی.

**دليله**> دلیل دادې.چه اولیاء د خپل خاندانی ښځو په مهرونو باندې فخرکوی.او په کمو مهرونو باندې شرم محسوسوی.نو په مهرکې کمې کول،د کفو نه کیدلو مشابه شو.اود کفو نه کیدلو په صورت کې اولیاء ته د اعتراض حق حاصل وی.نود مهر د کمی په صورت کې به هم د اعتراض حق حاصل وی.

**مسلك الصاحبين**> د صاحبينو رحمهما الله په نيز اولياؤ ته د اعتراض حق نشته.علامه مرغيناني‌ رحمه الله فرمائيلی دی.چه د مسئلې دا وضع په دې خبره باندې دلالت کوی.چه امام محمد‌ رحمه الله په ،نکاح بغیر الولی، کې د خپل قول نه رجوع کړې وه.د امام محمد‌ رحمه الله مذهب دا وو.چه نکاح بغیر د ولی نه نه منعقد کیږی.بیا ئې ددې نه رجوع کړې وه.او فرمائیلی ئې وو.چه بغیر د ولی نه نکاح منعقد کیږی.ددې وضع

---

[1] ) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في فتح القدير(١٩٣\٣) والخانية (١٦٣\١) ومجمع الأنهر(٣٤٢\١) والهندية (٢٩٢\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٦٤\١)—

[2] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١٦٤\١) نقلاً عن القول الراجح (٢٦٦\١)—

نه رجوع داسې معلومه شوه.چه صاحبينو رحمهما الله (چه په کې امام محمد رحمه الله هم دې)اوفرمائيل.چه اولياؤ ته د اعتراض حق نشته.ددې مطلب داشو.چه نکاح منعقد شوه.او په متن کې چې کوم صورت بيان شوې دې.هغه دادې.چه د ولی نه بغير ښځې نکاح کړې ده.نود مسئلې دا وضع د امام محمد رحمه الله په رجوع باندې رښتونې ګواهی ده.

**دليلهما**> دليل دادې.چه دلسو درهمو پورې مهر خود شريعت حق دې.او ددې نه زياتې د ښځې حق دې.نو ښځې په مهر مثل کې کمی اوکړه.نو خپل حق ئې. ساقط کړو .او کوم کس چې خپل حق ساقط کړې.نو په ده باندې هيڅ اعتراض نه وی.دغه ډول (دغه شان) دلته کې هم هيڅ اعتراض کول نه دی پکار.

**الجواب عنه**> او پاتې شو د نامداره کيدلو نه روسته بَرى کول،نو په دې کې اولياء شرم نه محسوسوی.خکه چې دا خوهبه ده.په دې سره د اولياؤ پزه (پوزه) اوچتيږی.کښته (ښکته) کيږی نه.(يعنی عزت دې شرم نه دې.

### پلار د صغيرې لوراوخوی نکاح د مهرمثل نه په کم اوپه زيات کولای (کولی) شی

| |
|---|
| وَإِذَا زَوَّجَ الْأَبُ بِنْتَهُ الصَّغِيرَةَ وَنَقَصَ مِنْ مَهْرِ مِثْلِهَا أَوْ ابْنَهُ الصَّغِيرَ وَزَادَ فِي مَهْرِ امْرَأَتِهِ جَازَ ذَلِكَ عَلَيْهِمَا او هر کله چې نکاح اوکړی. پلار دَ خپلې ورې لور او کم ئې کړو دَ مهر مثل دَ دې نه يائې وادهٔ اوکړو دَ خپل وړوکی خوئی او زيات ئې کړو دَ دهٔ دَ ښځې مهر نو دا جائز دی دَ دې دواړو په حق کې وَلَا يَجُوزُ ذَلِكَ لِغَيْرِ الْأَبِ وَالْجَدِّ او نه دی جائز دا دَ پلار نيکه نه دَ علاوه دَ پاره |

**تشريح**> صورت د مسئلې دادې.چه پلار د خپلې صغيرې لور نکاح اوکړه.او ددې مهر ئې د مهرمثل نه کم مقرر کړو.يا پلار دخپل صغير خوی نکاح اوکړه.او دده دښځې مهر ئې د مهرمثل نه زيات مقررکړو.اودا کمې زياتې معلوم نه دې.بلکه د غبن فاحش د قبيلې ځنې دې.نود امام صاحب رحمه الله په نيز به په صغير او صغيره دواړو باندې دا نکاح نافذ وی. ([1]) خوکه د پلار نيکه نه علاوه بل چا داسې اوکړل.نو نکاح به صحيح نه وی

**دليله**> دليل دادې.چه نظر او شفقت باطنی امر دې.په دې خو حکم لګول محال امر دې.نود شفقت په دليل اوعلامت به حکم لګولې شی.اود شفقت دليل دې قرب قرابت(يعنی نژدې (نيزدې) رشته داری)نو مونږ (مونږ) وايو.چه په پلار اونيکه کې د شفقت دليل موجود دې. نوپه دې به د نکاح د جواز حکم لګولې شی.اود پلار نيکه نه علاوه کې چونکه دليل نظر يعنی قرب قرابت موجود نه دې.په دې وجه به ددوی په ترلې شوې نکاح باندې دجواز حکم نشی لګولې.

**مسلک الصاحبين**> د صاحبينو رحمهما الله په نيز که کمې زياتې د غبن فاحش په طور وی.نو جائز نه دی.اوکه د غبن يسير په طور دې.نو نکاح جائز ده. د صاحبينو رحمهما الله د قول لايجوز يو مطلب خودا کيدلې شی.چه اصل نکاح درست وی.خو کمې زياتې درست نه وی.دا به د مهرمثل ارخ (طرف) ته واپس کولې شی.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلی دی.چه د صاحبينو رحمهما الله د قول مراد دادې.چه ددوی په نيز دده سره نکاح جائز نه ده.

**دليلهما**> د صاحبينو رحمهما الله د دليل حاصل دادې.چه ولايت د شفقت شرط سره مقيد دې.نود شفقت په فوت کيدلو سره به ولايت باقی نه پاتې کيږی.نو اوس به مطلب داوی.چه پلار بغير د ولايت نه نکاح

---

[1] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الهندية (٢٩٤\١) و البحرالرائق (٢٣٦\٣) والخانية (١٦٦\١) وتبيين الحقائق (١٣١\٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٦٧\١)-

اوکړه.او بغیر د ولایت نه نکاح باطل وی.نودا نکاح به هم باطل وی.او پاتې شوه داخبره چې شفقت څنګه فوت شو.نو عرض دادې.چه د صغیره په مهر کې د معمول (رواج) نه زیات کمې کول.یا د صغیر د ښځې په مهرمثل کې غیرمعمولی زیاتوالې کول،څنګه شفقت دې؟

**د مهر شرعي حيثيت**

| وَيَصِحُّ النِّكَاحُ اذَاسَمّي فيه مهراًاو صحيح کیږی نکاح کله چې مقرر شوی وی په دې کښې مهر وَيَصِحُّ النِّكَاحُ وَإِنْ لَمْ يُسَمِّ فِيهِ مَهْرًاصحیح ده نکاح اګر چې په دې کې دَ مهر ذکر نه وی |
|---|

**تشريح>** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه نکاح صحیح کیږی.که مهر مقرر وی او دغه شان صحیح کیږی اګرچه په دې کې مهر ذکر نه وی.

**دليله>** دلیل دادې.چه نکاح عقد انضمام او عقد ازدواج ته وائی.اودا معنی زوجین سره پوره کیږی.نود نکاح د صحت لپاره دمهر ذکر کول ضروری نه دی.

| وَأَقَلُّ الْمَهْرِ عَشَرَةُ دَرَاهِمَاو دَ مهر کم مقدار لس درهمه دی. |
|---|

**تشريح>** مصنف چې د نکاح د اراکانو اوشرائطو بیانولو نه فارغ شو.نو اوس د نکاح حکم بیانول غواړی.او حکم د نکاح وجوب د مهر دې.بعض وائی.چه مهر مال دې.او بعض وائی. چه مهر، صداق، دې. او صداق نوم دې. دهغه مال کوم چې په عقدنکاح کې ذکر کړې شی.

**اقل المهر>** د مهر لپاره د زیات مقدار هیڅ حد نشته.او اقل مقدار لس درهمه دی. (۱)

**دلائله>** ① دلیل د نبی کریم ﷺ حدیث دې.لَامَهْرَاَقَلَّ مِنْ عَشَرَةٍ(۲) چه، د لسو درهمو نه کم مهر نشته دې،

② دویم عقلی دلیل دادې.چه مهر د بضع شرافت ښکاره کولو لپاره د شریعت حق دې.نو دومره مقدار به مقررکولې شی.چه په هغې سره د محل شرافت،او شرافت د بضع ښکاره شی.مونږ (مونږ) اوکتل.چه نصاب د ،سرقه،لس درهمه دی.نو ګویا د لسو درهمو په غلا کولو باندې لاس کټ کولې شی.نو معلومه شوه.چه د انسان لپاره د یو اندام یعنی د لاس کم ازکم قیمت لس درهمه دی.نو هم په دې به قیاس کولې شی.اوپه نکاح کې به هم د ملك بضع قیمت کم ازکم لس درهمه مقرر کولې شی.

**په مهرکښې د لس درهمو مقررولوحکم**

| فَاِنْ سَمّٰى اَقَلَّ مِنْ عَشَرَةٍفَلَهَاعَشَرَةٌاو که ذکر یې کړو دَ لسو درهمو نه کم نو دَ ښځې دَ پاره به لس درهمه وی |
|---|

---

۱) **المذاهب الاخرى:-** ① امام مالك رحمه الله فرمائی.چه د مهر اقل مقدار، ربع دینار یا درې درهمه، دی.② ابن شبرمه رحمه الله فرمائی.چه کم ازکم پنځه درهمه دی.③ ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائی.چه د مهر اقل مقدار څلویښت درهمه دی.④ د سعید ابن جبیر رحمه الله په نیز لږترلږ (کم ازکم) پنځوس درهمه ضروری دی. ⑤ حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه کوم شی (څیز) په عقد بیع کې ثمن جوړیدلې شی.هغه په عقد نکاح کې مهر هم جوړیدلې شی.

۱۸) تقدم تخريجه من حديث جابربن عبدالله رضي الله عنه _

**تشريح**> مسئله داده.چه د نكاح د انعقاد په وخت د لسو درهمو نه كم مهر ذكر كړې شو.نو په دې صورت كې به زمونږ په نيز د ښځې لپاره لس درهم وى.([1])

**دليله**> دليل دادې.چه د لسو درهمو نه د كم مهر ذكر كولو فساد ،د شريعت د حق په وجه دې.اود شريعت حق پوره كيږى.په لسو درهمو سره.نو لس درهمه به پوره كولې شى.د زياتو ضرورت ‹ضرورت› نشته.

## د لس درهمونه زيات مهركښې د مباشرت نه روسته طلاق ياد مرګ په صورت كښې د مهرد وجوب حكم

| وَمَنْ سَمّٰى مَهْرًا عَشَرَةً فَمَا زَادَ فَعَلَيْهِ الْمُسَمّٰى اِنْ دَخَلَ بِهَا اَوْمَاتَ عَنْهَا او چا چې مقرر كړولس درهمه مهر او يا زيات نو په ده مسمى واجب ده كه دخول ئې د ښځې سره او كړو او يا ترې مړشو |
|---|

**تشريح**> صورت د مسئلې دا دې.چه ميړه ‹خاوند› دښځې مهر لس د رهمو نه كم يا زيات مقرر كړو.بيا ددې نه روسته دخول موجود شو.ياد ،احد الزوجين، انتقال اوشو.نو په دې دواړه صورتونوكې به ميړه ‹خاوند› باندې كل مسمى واجب وى.

**دليله**> دليل دادې.چه د دخول په وجه مبدل يعنى د بضع سپارل متحقق شو.اود مبدل په سپارلو سره بدل واجبيږى.نو په ميړه ‹خاوند› به بدل يعنى مهر واجب وى.او د مرګ په وجه شئ خپل انتهاء ته رسيږى.ددې نه روسته هيڅ شى ‹څيز› باقى نه پاتې كيږى.او شئ چې خپل انتهاء ته اورسى.نو مقرر اومؤكد كيږى.يعنى په دې كې هيڅ تبديلى نه راځى.نو نكاح د خپلو ټولو احكامو او واجباتو سره ثابت شوه.او حكم د نكاح مهر هم دې.نود مرګ په وجه به دا هم ثابت وى.

| فَاِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُوْلِ وَالْخَلْوَةِ فَلَهَا نِصْفُ الْمُسَمّٰى او كه طلاق ئې ورته وركړل مخكې دَ دخول يا دَ خلوت نه نو دَ ښځې نيم مهر به وى. |
|---|

**تشريح**> دويم صورت دادې.چه دې ښځې ته ئې د دخول او خلوت نه مخكې طلاق وركړو.نو په ميړه ‹خاوند› به د ښځې لپاره نصف مسمى واجب وى.

**دليله**> د الله تعالى ارشاد دې وَاِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ الْاٰيَة يعنى كه دجماع نه وړاندې تاسو طلاق وركړو.او مهردې مقرركړې وى.نو په مقررشوى كې نصف وركړه.د آيت نه معلوميږى.چه په ،طلاق قبل الدخول، سره نيم مهرواجبيږى.

## په مهرسكوت يا د مهرنه كيدلو په شرط سره د نكاح كولوحكم

| وَاِنْ تَزَوَّجَهَا وَلَمْ يُسَمِّ لَهَا مَهْرًا اَوْتَزَوَّجَهَا عَلٰى اَنْ لَامَهْرَلَهَا كه دَ ښځې سره ئې نكاح اوكړو او دې لره ئې مهر ذكر نه كړو يا ئې نكاح په دې شرط اوكړه چې دې لره به مهر نه وى فَلَهَا مَهْرُمِثْلِهَا اِنْ دَخَلَ بِهَا اَوْ مَاتَ عَنْهَا نو دَ ښځې دَ پاره به مهر مثل وى كه دَ خول ئې ورسره او كړو يا ترې مړشو |
|---|

**تشريح**> مصنف رحمه الله دوې ‹دوه› صورتونه بيان كړى دى. ①اول داچه نكاح ئې اوكړه.اود مهر په اړه ‹باره› كې ئې سكوت اوكړو.چه نه ئې ذكر كړو.او نه ئې نفى اوكړه. ② دويم صورت دادې.چه نكاح ئې اوكړه.اود مهر نه كيدلو شرط ئې اولګولو.په دې دواړه صورتونوكې به زمونږ په نيز مهرمثل واجب وى.په دې شرط چې ښځې سره ئې دخول كړې وى.ياد ميړه ‹خاوند› انتقال اوشى.([1])

[1] مسلك زفر:- د امام زفر رحمه الله په نيز به مهرمثل واجب وى.

**دليله** > دليل دادې.چه مهر وجوباً د شريعت حق دې.آيت [أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ...] او آيت [قَدْ عَلِمْنَا مَا فَرَضْنَا عَلَيْهِمْ....] په وجه سره.د دواړه آياتونو تفصيل د اصول فقه په كتابونوكي موجود دې.اودې كتلې شي.

| |
|---|
| وَإِن طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا والخلوة فَلَهَا الْمُتْعَةُ اوكه قبل دَ دخول نه يې طلاق وركړل اوكه د خلوة نه وړاندې ئې طلاق وركړو.نو ښځې لره متعه ده |

**تشريح** > او كه دې ښځې ته ئې طلاق قبل الدخول وركړو.نوددې ښځې لپاره به متعه واجب وي.

**دليله** > دليل آيت دې. [لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ مَا لَمْ تَمَسُّوهُنَّ أَوْ تَفْرِضُوا لَهُنَّ فَرِيضَةً ۚ وَمَتِّعُوهُنَّ] په آيت كي ،او، په معنى د ،واو،دې.يعني په تاسو هيڅ گناه نشته.كه تاسو طلاق وركړو.ښځو ته،تركومه پورې چې تاسومَس كړې نه وي.او مقرركړې مو نه وي مهر، او متعه وركړئ دوى ته.

**وجوب المتعة** > په مذكوره صورت كښې متعه وركول واجب دى (٢)

**دليله** > په قرآن پاك كښې الله تعالى فرمانيلى دى وَمَتِّعُوْ، د امر صيغه ده.چه د وجوب لپاره راځي. دويم لفظ ،حَقًّا، دې.داهم په وجوب باندې دلالت كوى .دريم لفظ ، عَلَى، چې د الزام لپاره راځي.

**د متعه حقيقت**

| |
|---|
| وَهِيَ ثَلَاثَةُ أَثْوَابٍ مِنْ كِسْوَةِ مِثْلِهَا وَهِيَ دِرْعٌ وَخِمَارٌ وَمِلْحَفَةٌ او متعه درې كپړې دى دَ دغې شان ښځې دَ كپړو نه او دغه قميص دې لوپټه ده او پټو (څادر) دې |

**حل اللغة** > ① **درع**: لوپټه ② **خمار**:څادر،پړوني

**تشريح** > د متعه حقيقت دا دې.چه دا درې كپړې دى.كرته، او پټو (څادر)

**دليله** > ددې درې كپړو تعين او اندازه د حضرت عائشه او ابن عباس رضي الله عنهم نه منقول ده

**النكتة** > د صاحب د قدورى رحمه الله د عبارت[من كسوة مثلها] نه اشاره دې ارخ (طرف) ته دې.چه په متعه كې به د ښځې د حال اعتبار كولې شى.په متعه واجبه كي د امام كرخى رحمه الله قول هم دادې.

**دليله** > دليل دادې.چه متعه د مهرمثل قائم مقام ده.او په مهرمثل كي د ښځو حال معتبر دې.نوكوم چې ددې قائم مقام وى.په هغې كي به هم د ښځې د حال اعتبار كولې شى.

**القول الصحيح** > صاحب د هدايه فرمانيلى دى چې صحيح قول دادې.چه د سړى د حال اعتبار به كولې شى.ددوى دليل د قرآن آيت [عَلَى الْمُوسِعِ قَدَرُهُ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهُ]دې.چه الله تعالى د سړى د حال اعتبار كړې دې.د ښځې ئې نه دې كړې.متعه په درې قسمه ده.

① ادنى ② اوسط ③ اعلى. ادنى خو داده.چه دا درې واړه كپړې سوچه وى.اوسط داده.چه تسرى وى.تسر يود كپړه ده.چه د ريښمو نه كمتره وى.اود سوت نه ښه وى. او اعلى درجه متعه داده.چه دا درې واړه كپړې د ريښمو وى.

---

[1] ، **مسلك الشافعي**:- امام شافعى رحمه الله فرمانى.چه د مرګ،قبل الدخول، په صورت كي په ميړه (خاوند) باندې هيڅ نه واجيبږى.او اكثر شوافع رحمهم الله فرمانى.چه د دخول په صورت كي به مهرمثل واجب وى.لكه څنګه چې زمونږ (مونږ) مذهب دې.

[2] ، **امام مالك** رحمه الله فرمانى چې په مذكوره صورت كښې متعه وركول مستحب دى

### په خمر او خنزیر باندې نکاح کول او ددې حکم

وَإِنْ تَزَوَّجَهَا الْمُسْلِمُ عَلَىٰ خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ که نکاح او کړه مسلمان په شرابو يا په خنزير فَالنِّكَاحُ جَائِزٌ وَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا نو نکاح جائز ده او ښځې لره مهر مثل دې

**تشریح**> مسلمان سړی د يوې ښځې سره نکاح اوکړه.او مهر ئې مقرر کړو.شراب يا خنزير.نو نکاح درست وی.او مهرمثل به واجب وی. (1)

**دلیله**> دليل دادې.چه ميړه (خاوند) اووئيل.ما ستاسره په شرابو باندې نکاح اوکړه.نو ګويا ميړه (خاوند) د خمر قبلولو شرط اولګولو.اود شرابو قبلولو شرط، شرط فاسد دې.او په ما قبل کې تير شو.چه نکاح په شروط فاسده سره نه باطليږي.بلکه پخپله شروط فاسده باطل وی.ځکه چې شرط فاسد د تسميه پريښولو (پريخودلو) نه زياته نه ده.او هرکله چې ترک د تسميه مبطل د نکاح نه دې.نوشرط فاسد به په درجه اولی مبطل د نکاح نه وی.زيات نه زيات دا ونيلی شو.چه د شرابو اوخنزير تسميه صحيح نه ده.ځکه چې خمر اوخنزير د مسلمان په حق کې مال متقوم نه دې.اود تسميه نه صحيح کيدلو په صورت کې مهرمثل واجب وی.نو په دې صورت کې به هم مهرمثل واجب وی.

### په رضامندئ سره د مهرمقررولوتفصيل

وَإِنْ تَزَوَّجَهَا وَلَمْ يُسَمِّ لَهَا مَهْرًا او که وادهئ او کړو دَ ښځې سره او مهر ئې ورته مقرر نه کړو ثُمَّ تَرَاضَيَا عَلَىٰ تَسْمِيَةِ مَهْرٍ بيا راضي شو دواړه دَ مهر په تسميه باندې فَهِيَ لَهَا إِنْ دَخَلَ بِهَا أَوْ مَاتَ عَنْهَا نو دَ هغې دَ پاره به دغه وی که دخول ئې ورسره اوکړو يا ترې مړشو

**تشریح**> صورت د مسئلې دادې.چه د نکاح په وخت کې مهر ذکر نکړې شو.بيا ښځې ميړه (خاوند) يو مقدار مقررکړو.نو اوس که ميړه (خاوند) د ښځې سره دخول اوکړو.يا مړ شو.نو په دواړه صورتونوکې به دا مقررشوی مقدار واجب وی.

**دلیله**> دليل دا دې چې هم د داسې صورت په باره کښې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائيلی دی «لها مثل صداق نسائها لاوکس ولا شطط» د دې دپاره به د دې د خاندان د ښځو پشان مهر وی نه به په کښې کمی وی اونه به زياتي وی.

وَإِنْ طَلَّقَهَا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا والخلوة فَلَهَا الْمُتْعَةُ او که طلاقه ئې کړه مخکښې دَ دخول نه او مخکښې د خلوة نه نوهغې لره به متعه وی

**تشریح**> او که ،طلاق قبل الدخول، دې.يا قبل د خلوة صحيحه نه وی نود طرفينو رحمهما الله په نيز به ښځې لپاره متعه واجب وی

**دلیله**> دليل دادې.چه د عقد نکاح په وخت که مهر ذکر نه کړې شی.نو مهرمثل به واجب وی.نو په دې صورت کې به هم د نکاح په وخت د مهر نه ذکر کولو په وجه مهرمثل واجب وی.روسته چې زوجينو په کوم مقدار باندې اتفاق کړې دې.نودا روسته متعين کړې مقدار په حقيقت کې تعين دې د هغه مقدار کوم چې د عقد په وجه واجب شوې وو.اود عقد په وجه مهرمثل واجب شوې وو.اود مهرمثل تنصيف نه کيږی.نو کوم چې ددې قائم مقام دې.يعنی ،مفروض بعد العقد، ددې به هم تنصيف نه کيږی.او هرکله چې تنصيف نشی کيدلې.نو متعه به واجب وی.

(1) د امام مالك رحمه الله په نيز به نکاح فاسد وی.

## د عقد له روسته په مهر کښې زیاتي کول

وَإِنْ زَادَ فِي الْمَهْرِ بَعْدَ الْعَقْدِ فَلَزِمَتْهُ الزِّيَادَةُ او که مهر ئې زیات کړو د عقد نه نو لازمه به وی په میره (خاوند) دغه اضافه

**تشريح>** د عقدنکاح نه روسته په مقررشوی مهر باندې میره (خاوند) زیاتوالي اوکړو.او ښځې هم په دغه مجلس کې قبول کړو.نو زمونږ په نیز به دا زیاتوالي په میره (خاوند) باندې لازم وی.

**دليله>** دلیل د قرآن آیت دې. [وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا تَرَاضَيْتُمْ بِهِ مِنْ بَعْدِ الْفَرِيضَةِ] او ګناه نشته په تاسو په دې خبره کې چې مقرر کړئ تاسو دواړه په خپله رضامندئ باندې د مقرر شوی نه پس[د آیت په تفسیر کې مولانا شبیراحمد رحمه الله لیکلی دی.که زوجین د مهرمقرر کولو نه روسته په څه خبره باندې راضی شی.مثلاً ښځه په خپله رضامندئ باندې څه کم کړی.یا دې په خپله رضامندئ سره د مهرمقرر نه څه زیات کړی.نودې اختیار مند دې. په دې کې هیڅ ګناه نشته. بهرحال که کموی اوکه زیاتوی.په خپل مینځ کې رضامندی ضروری ده.(1)

وَتَسْقُطُ الزِّيَادَةُ بِالطَّلَاقِ قَبْلَ الدُّخُولِ اوساقطیږی به په طلاقو قبل الدخول سره

**تشريح>** هرکله چې زمونږ په نیز په مهر کې زیاتوالي کول درست دې.نود ،طلاق قبل الدخول، په صورت کې به د اصل سره د زیاتوالي تنصیف کیږی.خود زیاتوالی به نه کیږی.

**دليله>** دلیل دادې.چه تنصیف د ،مفروض فی حالة العقد،سره مخصوص دې.نو کوم اصل مهر چې په حالت د عقد کې مقرر شوې وو.ددې تنصیف به کیږی.خوکوم چې روسته زیات شوې دې.ددې تنصیف به نه کیږی.

فَإِنْ حَطَّتْ مِنْ مَهْرِهَا صَحَّ الْحَطُّ او که ښځې میره (خاوند) په څۀ مهر کم کړو نو دا کول صحیح دې

**حل اللغة>** ① **الحط**: کموالي ]

**تشريح>** که ښځې د خپل مهر نه څه کم کړل.نو کمول درست دی.

**دليله>** ځکه چې مهر د ښځې حق دې.او کمول په حالت بقاء کې لاحق شو.کوم چې د ښځې په اختیار کې دی. لنډیز (خلاصه) داشوه.چه په ابتداء د عقد کې د شریعت د حق په وجه، د لسو درهمو نه نشی کمولې.اود مهرمثل نه د اولیاؤ د حق په وجه نشی کمولې.اود عقد نکاح نه روسته ترکومه پورې چې نکاح قائم وی.کمول به نافذ وی.د خپل حق په وجه.په دې شرط چې په مجلس کې سرې دا کمی قبوله هم کړی.

## د خلوت صحیحه له پس د طلاق په صورت کښې د مهرحکم

وَإِذَا خَلَا الرَّجُلُ بِامْرَأَتِهِ وَلَيْسَ هُنَاكَ مَانِعٌ مِنَ الْوَطْءِ ثُمَّ طَلَّقَهَا فَلَهَا كَمَالُ الْمَهْرِ هر کله چه یواځې شو خاوند د ښځې خپلې سره او هلته څوك مانع نه وه د وطئ نه بیا ئې دغه طلاقه کړه نو ښځې لره به پوره مهر وی

**حل اللغة>** ① **مانع**: رکاوټ

**تشريح>** مسئله داده.چه یوکس د خپلې ښځې سره خلوت صحیحه اوکړو.اود خلوت په وخت کښې د

(1) په زیر بحث مسئله کې امام زفر رحمه الله فرمائی.چه زیاتوالي صحیح نه دې.او امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دې.

وطی څه مانع هم نه وو.بیا خاوند خپلې ښځې ته طلاق ورکړو.نو زمونږ په نیز به د ښځې دپاره پوره مهر واجب وی.[1]

**دلیله**> دلیل دادې.چه ښځې د بضع منافع، یعنی مبدل د خاود حواله کړې دې.ځکه چه ښځې ټول موانع پورته کړی دی.اود ښځې په قدرت کښې صرف هم دومره وو.ددې نه زیاتی نه وو.نو هرکله چه ښځې مبدل اوسپارلو.نود ښځې حق بدل به هم ثابت وی.او هغه بدل مهر دې.نود ښځې دپاره به په دې صورت کښې کامل مهر واجب وی.او مونږ قیاس کوو. په بیع باندې هم. چه لکه څنګه بائع که د مبیع اومشتری په مینځ کښې تخلیه اوکړی.چه د مبیع په اخستلوکښې هیڅ مانع پاتې نشی.نود بائع د طرفه به دا د مبیع سپارل وی.او په مشتری به ثمن واجب وی.

**تائیده**> د دې تائید د خلفائې راشدینو په فیصلو سره هم کیږی.فیصله داده.چه[أن من غلق بابا اوارخی سترا فقد وجب المهر ووجبت العدة] یعنی کوم کس چه دروازه بنده کړه. یا ئې پرده زوړنده کړه.نو مهر به واجب وی.اوعدت به هم واجب وی.(عینی شرح هدایه)

## د خلوت فاسده صورتونه

وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا مَرِيضًا أَوْصَائِمًا فِي رَمَضَانَ که په دوی کې یو بیمار وو او یا ئې د رمضان روژه وه أَوْمُحْرِمًا بِحَجٍّ أَوْعُمْرَةٍ یا ئې د فرض حج احرام تړلې وو یا د نفل حج یا د عمرې أَوْكَانَتْ حَائِضًا فَلَيْسَتْ بِخَلْوَةٍ صَحِيحَةٍ یا وه ښځه حائضه نو داخلوت صحیح نه دې وَلَوْطَلَّقَهَا فَيَجِبُ نِصْفُ الْمَهْرِ اوکه دې ته طلاق ورکړی نو نیم مهر واجبیږی.

**تشریح**> وراندې معلومه شوه.چه د خلوت دوې (دوه) قسمه دی.خلوت صحیحه اوخلوت فاسده.چه د یوکس لپاره د وطی څه مانع موجود وی.نو په داسې صورت کې چې کوم خلوت وی.دابه خلوت فاسده شمارلې شی.اوکه د وطی څه مانع موجود نه وی.نوپه داسې صورت کې چې کوم خلوت وی.دابه خلوت صحیحه شمارلې شی.

**اقسام الموانع**> موانع په څلورقسمه دی.

① مانع حقیقی، د دې مثال ناروغی (ناروغی (بیماری)) ده.

② مانع طبعی، د دې مثال ارتقاء کیدل دی.یعنی د ښځې د شرم ګاه خوله بندیدل،یا دومره صغیره کیدل دی.چه د جماع قابله نه وی.

③ مانع شرعی، د مانع شرعی مثال د فرض حج احرام دې.ځکه چې شریعت په حالت احرام کښې صحبت کول حرام کړی دی

④ مانع حسی، د دې دا دی چه د زوجینو په مکان کې څوك دریم کس هم موجود وی.که بینا وی.اوکه نابینا(ړوند)،که بیدار وی.او که اوده کس وی.بالغ وی.اوکه ناپوهه ماشوم وی.

## د مقطوع الذکر د خلوت نه پس.طلاق ورکولو سره د مهر حکم

وَإِذَاخَلَاالْمَجْبُوبُ بِامْرَأَتِهِ ثُمَّ طَلَّقَهَا فَلَهَا كَمَالُ الْمَهْرِعِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ،[2] او کله چې خلوت اوکړو مقطوع الذکر د خپلې ښځې سره بیا ئې طلاقه کړه نو دې لره واره (ټول) مهر دې په نزد د ابوحنیفه رحمه الله

---

[1] مسلک الشافعي:- د امام شافعی رحمه الله په نیز به نصف مهر وی.

[2] القول الراجح هو قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٣١٨\٣) والكفاية (٢١٨\٣) والخانية (١٨٢\١) وردالمحتار(٣٧٠\٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٧١\١)-

**حل اللغة** ① **مجبوب**:مقطوع الذکر،چه ذکرئې کټ شوې وي

**تشریح** مسئله داده.چه دمقطوع الذکر خلوت صحیح دې.او که فاسد؟ امام صاحب رحمه الله فرمائي.که مقطوع الذکر خلوت اوکړو.او بیا ئې طلاق ورکړو.نود ښځې لپاره به کامل مهر واجب وي.اودا به خلوت صحیحه شمارلې شي.

**دلیله** دلیل دادې.چه په ښځه باندې تسلیم، یعنی بضع سپارل د موړلو په حق کې واجب دي.اودا د ښځې په قدرت کې دی.او داکار ښځې اوکړو.نو په سړي به کامل مهر واجب وي.اودا خلوت به خلوت صحیحه وي.

**مسلک الصاحبین** صاحبین رحمهما الله فرمائي.چه دا خلوت فاسده دې.نوکه طلاق ئې ورکړو.نیم مهر به واجب وي.

**دلیلهما** دلیل دادې.چه مقطوع الذکر د بیمار په مقابله کې زیات عاجز دې.ځکه چې کله په جماع قادر کیدلې شي.خو مقطوع الذکر بالکل د «عدم آله» په وجه په جماع قدرت نه لري.په خلاف د عنین،چه دده خلوت صحیح دې.ځکه چې حکم د آله په سلامتیا باندې لګولې شي. اود مقطوع الذکر دسره آله نشته.نو په عنین او مقطوع الذکر کې ښکاره توپیر(فرق) دې.نو ددوی په حکم کې به هم توپیر(فرق) وي.چه د عنین خلوت به خلوت صحیحه وي.اود مقطوع الذکر خلوت به خلوت فاسده وي.عنین هغه دې.چه دې د آله باوجود په مطلق جماع باندې قدرت نه لري.بعض وائي.(عنین هغه دې) چې ثیبه سره د جماع قدرت لرلې شي.د باکره سره نشي لرلې.

**د متعه د استحباب او وجوب صورتونه او اختلاف**

| وَتُسْتَحَبُّ الْمُتْعَةُ لِكُلِّ مُطَلَّقَةٍ إِلَّا لِمُطَلَّقَةٍ وَاحِدَةٍ او مستحب ده متعه دَ هرې طلاقې شوې دَ پاره سوا دَ یوې مطلقې نه وَهِيَ الَّتِي طَلَّقَهَا الزَّوْجُ قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا وَقَدْ لَمْ يُسَمِّ لَهَا مَهْرًا او دَغه هغه ښځه ده کومې لره چې میړه (خاوند) دَ دخول نه مخکې طلاق ورکړی دی او مهر ئې ورته نه وی مقرر کړی |
|---|

**تشریح الاشکال** د کلام په پیل (شروع) کې اشکال دادې.چه قدوري رحمه الله اوونیل.د هرمطلقه لپاره متعه مستحب ده.اوپه هره مطلقه کې «مطلقه غیر مدخول بها غیر مسمی لها» هم ګډ (شامل) ده.نو ددې لپاره به هم متعه مستحب وي.حالانکه داسې نه ده.بلکه ددې لپاره متعه واجب ده.په استثناء کې چې کوم اشکال وو.ددې خواب خودا دې.چه د قدوري رحمه الله په نیز په مستثنی صورت کې متعه متسحب نه ده.ځکه چې قدوري رحمه الله په خپله شرح کې ذکر کړی دی.چه متعه په بعضو صورتونوکې واجب او په بعضوکې مستحب ده.نود «مطلقه غیر مدخول بها غیرمسمی لها» لپاره واجب ده.اود هرمطلقه لپاره مستحب ده.علاوه د «مطلقه غیر مدخول بها غیر مسمی لها» نه.ځکه چې ددې لپاره مستحب نه ده.بلکه واجب ده.نو اوس په مستثنی او مستثنی منه کې تغایر پیدا شو.نو،استثناء عن نفسه، به نه لازمیږي.اودا استثناء درسته ده.په پیل (شروع) د کلام کې چې کوم اشکال وو.

**الجواب** د هغې خواب دادې.چه د هرمطلقه لپاره مستحب ده.علاوه د «مطاع غیر مدخول بها غیر مسمی لها» نه.ځکه چې ددې حکم وړاندې تیرشوې دې.چه ددې لپاره متعه مستحب نه ده.بلکه واجب ده.نو هرکله چې دوی د هر مطلقه د عموم نه دا مطلقه خارج کړله.نو اوس د کلام په پیل (شروع) کې هیڅ اشکال باقي نه پاتې کیږي.

**وجوب المتعة لغیرالمدخول بها** ①اول داچه،مطلقه غیرمدخول بها غیر مسمی لها، وي.ددې لپاره متعه واجب ده.② دویمه داچه،مطلقه مدخول بها غیرمسمی لها، وي.

③ دريمه داچه،مطلقه مدخول بها مسمى لها ، وى.ددې دوارو لپاره متعه مستحب ده.
④ څلورمه داچه،مطلقه غيرمدخول بها مسمى لها ، وى.ددې لپاره متعه نه واجب ده.اونه مستحب ده.هم داصورت په متن كښې مستثنى دې. [1]

**دلائله** ① دليل د ابن عمر رضي الله عنهما قول دې. [لكل مطلقة متعة إلا التي فرض لها ولم يدخل بها فحسبها نصف المهر] يعني د هرمطلقه لپاره متعه ده.مګرداچه ددې لپاره مهر مقرر شوې وى.او ددې سره دخول نه وى شوې.نو ددې لپاره نصف مهركافى دې.

② د دليل نه وړاندې دا په ذهن كې كينوئ.چه عقدنكاح د عوض نه خالى كيدې نشى.د [أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ] په وجه به يا عوض مسمى وى.يا به مهر مثل وى.دويمه خبره داچه خليفه اصل سره نشى جمع كيدلې.اونه د اصل د جزء سره جمع كيدلې شى.لكه چې تيمم د اودس سره نشى جمع كيدلې.اوس به د دليل حاصل داوى.چه د ،مطلقه غيرمدخول بها غير مسمى لها ، په حق كې متعه د مهرمثل خليفه ده.ځكه چې د ،طلاق قبل الدخول، په وجه سره مهرمثل ساقط شو.اود عقدنكاح لپاره عوض ضرورى وى.نود مهرمثل خليفه يعني متعه به واجب وى.او په باقى درې صورتونوكې به متعه ځكه نشى واجب كيدلې.چه مونږ (مونږ) قاعده بيان كړله.چه خليفه نه د اصل سره جمع كيدلې شى.نه ددې د څه جزء سره جمع كيدلې شى.نو،مطلقه مدخول بها مسمى لها ،او،مطلقه مدخول بها غيرمسمى لها ، لپاره كه متعه واجب كړې شوه.نود خليفه به د اصل يعنى د كل مسمى يا د مهرمثل سره جمع كيدل لازميږى.او كه،مطلقه غيرمدخول بها مسمى لها ، لپاره متعه واجب كړې شوه. نود خليفه د جزء اواصل يعنى د نيم مهر سره جمع كيدل به لازم شى.اودا واړه (ټول) صورتونه د قاعدې خلاف دى.په دې وجه به په دې درې واړه صورتونوكې متعه واجب نه وى.

## د نكاح شغار مفهوم اوحكم

| وَإِذَا زَوَّجَ الرَّجُلُ بِنْتَهُ عَلَى أَنْ يُزَوِّجَهُ الْآخَرُ بِنْتَهُ أَوْ أُخْتَهُ لِيَكُونَ أَحَدُ الْعَقْدَيْنِ عِوَضًا عَنِ الْآخَرِ هر كله چه وادا او كړو چا د خپلې لور په دې شرط چه هغه به خپله لور او يا خور دة ته وركوى چه شى يو د عقدينو نه عوض د بل فَالْعَقْدَانِ جَائِزَانِ، وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا مَهْرُ مِثْلِهَا نو دواړه عقدونه جائز دى او په دوى كښې به د هرې يوې د پاره مهر مثل وى |
|---|

**تشريح** صورت د مسئلې دادې.چه حامد د خپلې لور نكاح ماجد سره په دې شرط اوكړه.چه ماجد به د خپلې لور نكاح د حامد سره كوى.چه ،احد البضعين، د آخر دپاره مهر شى.يعنى د حامد د لور مهر به د ماجد د لور ملك بضع وى.اود ماجد د لور مهر به د حامد د لور ملك بضع وى.دې نكاح ته نكاح شغار وائى.شغار د ،شغور، نه ماخوذ دې.اود شغور معنى ده رفع او اخلاء، يعنى اوچتول او خالى كول.چه د رفع معنى واخستلې شى.نو وجه د تسميه به دا وى.چه زوجينو چونكه مهر د عقد نه اوچت كړلو.په دې وجه ددې نكاح نو شغار كيخودلې شو.او كه ددې معنى اخلاء وى. يعنى خالى كول.نو وجه د تسميه به داوى.چه دا نكاح چونكه د مهر نه خالى ده.په دې وجه دې نكاح ته نكاح شغار ونيلې شى.اود بعضو رائې داده.چه د شغار معنى ده، بعد ، يعنى لرې والې.په دې صورت كښې به وجه د

---

[1] ، **مسلک الشافعي**:- امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه د هرمطلقه لپاره متعه واجب ده.خود ،مطلقه غيرمدخول بها مسمى لها ، لپاره دقول جديد مطابق متعه واجب نه ده.اود قول قديم مطابق ددې لپاره هم متعه واجب ده. او په ،مطلقه غيرمدخول بها مسمى لها ،كې دواړه متفق دى.چه متعه واجب نه ده.او په باقى دوې (دوه) صورتونوكې احناف رحمهم الله د استحباب قائل دى.اوشوافع رحمهم الله دوجوب قائل دى.

تسمیه داوی.چه گویا زوجینو د مهر نفی اوکړه.نود حق نه لري شوی دی.په دې وجه ددې نوم نکاح شغار ایخودلی دې. نکاح شغار صحیح ده.خود دواړوښځو دپاره به مهر مثل واجب وی. (۱)

**دلیله>** دلیل دادې.چه په دې دواړه عقدونوکښې داسې څیز مهر جوړشوې دې.کوم چه د مهر جوړولو صلاحیت نه لری.او قاعده ده.چه کوم څیز د مهر صلاحیت نه لری.که دا مهرجوړ کړې شی.نو عقد د نکاح به صحیح وی.او مهر مثل به واجب وی.مثلاً خمر اوخنزیر مهر جوړ کړې شی.نو نکاح به صحیح وی.او مهر مثل به واجب وی.دغه شان دلته کښې هم وی.

## د قرآن تعلیم یا دبنځې خدمت څول مهرمقررکول

| وَإِنْ تَزَوَّجَ حُرٌّ امْرَأَةً عَلَى خِدْمَةِ سَنَةٍ أَوْعَلَى تَعْلِيمِ الْقُرْآنِ فَلَهَا مَهْرُمِثْلِهَا (۲)که وادهٔ او کړه آزاد سړی دَ یوې ښځې سره دَ یو کال په خدمت باندې دې لره او یا په تعلیم ور کولو دَ قران نو دې لره مهر مثل خپل دې |
|---|

**تشریح>** مسئله داده.چه آزاد سړی د یوې ښځې سره نکاح اوکړه.او مهر نې دا جوړکړو.چه زه به یوکال د ښځې خدمت کوم.یا نې د قرآن تعلیم مهر جوړکړو.یعنی دا نې اوونیل.چه زه به خپلې ښځې ته د قرآن پاک تعلیم ورکوم.زما د طرفه هم دا مهر دې.په دې دواړه صورتونوکې به د شیخینو رحمهما الله په نیز مهر مثل واجب وی. (۳)

**دلیله>** دلیل دادې.چه په عقد د نکاح کې ابتغاء بالمال مشروع ده.د [أَنْ تَبْتَغُوا بِأَمْوَالِكُمْ] په وجه. او تعلیم د قرآن مال نه دې.نود قرآن د تعلیم په عوض به ابتغاء مشروع نه وی.اوهم دغه ډول (دغه شان) منافع زمونږ په اصل باندې مال نه دې.ځکه چې د تمول(مال) لپاره ضروری دی.چه په دوې (دوه) زمانوکې باقی پاتې شی.او منافع د خدمت په دوې (دوه) زمانوکې باقی نه پاتې کیږی.په دې وجه مونږ (مونږ) وایو.چه خدمت هم مال نه دې.نو په خدمت سره به هم ابتغاء مشروع نه وی.

## دمجنونې په پلار،او بالغ ځوی کښې به مستحق د ولایت څوك وی!

| وَإِذَااجْتَمَعَ فِي الْمَجْنُونَةِ أَبُوهَا وَابْنُهَا فَالْوَلِيُّ فِي نِكَاحِهَا ابْنُهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله (۴) او هر کله چه جمع شی په مجنو نه کښې دَ دې پلار او ځوئ نو دَ دې نکاح کونکې ولی دَ دې ځوئ دې،په نیز دَ امام ابوحنیفه،او ابی یوسف کښې، |
|---|

**حل اللغة>** ① المجنونة: لیونۍ

**تشریح>** مسئله داده.چه یود مجنونه ښځې پلار دې.اود مخکښی خاوند نه نې بالغ ځوې دې.نو ددې مجنونه ښځې د ولایت حق به چاته حاصل وی.نو د شیخینو رحمهما الله مذهب دا دې.چه د ولایت حق ځوی ته حاصل دې.

---

[۱] ، **مسلک الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه دواړه عقدونه باطل دی.

[۲] ، القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا في الخانية (۱\۱۷٤) وردالمحتار(۲\۳٦۲) والهندية (۱\۳۰۲) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۷۳)-

[۳] ، **مسلک الشافعي**:- د امام شافعی رحمه الله مذهب دادې.چه تعلیم د قرآن اود آزاد اوغلام دواړو خدمت مهرجوړول صحیح دی.

[۴] ) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا فی فتح القدير(۳\۱۸۵) والخانية (۱\۱٦۵) وردالمحتار(۲\۳٤۳) والبناية (٤\٦۱۵) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۵۹)_

**دليلهما** ﴾ د شيخينو رحمهما الله دليل دادې.چه په عصبه کيدلو کښې خوې مقدم دې.لکه چه د خوې په موجودګۍ کښې پلار ته صرف شپږمه حصه ملاويږي.او خوې عصبه وی.اودا ولايت مبنی وی په عصبيت باندې.نو خوې به ولي وی.پلار به نه وی.اود شفقت د زياتوالي په باره کښې

| وَقَالَ مُحَمَّدٌ رحمه الله أَبُوهَا او امام محمد رحمه الله فرمائي چه پلار ئې دې |
|---|

**مسلك محمد** ﴾ اود امام محمد رحمه الله مذهب دادې.چه د ولايت حق پلار ته حاصل دې.

**دليله** ﴾ د امام محمد رحمه الله دليل دادې.چه په پلار کښې د خوی په مقابله شفقت زيات دې.او ددې ولايت مدار په شفقت باندې دې.نود شفقت د زياتوالي په وجه به پلار ته ولايت حاصل وی. خوی ته به حاصل نه وی.

**الجواب عنه** ﴾ د دې نه جواب دادې.چه په ولايت کښې نفس شفقت معتبر دې.د شفقت زياتوالې معتبر نه وی.مثلاً د يوکس د مورپلار(نيکه)دې.او تره ، ورارہ دی.نو په ولايت کښې به تره په ورارہ مقدم وی. حالانکه په نيکه(د مورپلار)کښې هم شفقت او محبت زيات وی.نو معلومه شوه.چه د شفقت د زياتوالي اعتبار نه کيږي.والله اعلم

### د غلام او وينځې نکاح لپاره د مولا اجازت

| لَايَجُوزُ نِكَاحُ الْعَبْدِ وَالْأَمَةِ إِلَّا بِإِذْنِ مَوْلَاهُمَا جائز نه دې دَ غلام او وينځې نکاح مګر دَ دوی دَ آقا په اجازت |
|---|

**تشريح** ﴾ د دې عبارت خوبومطلب دادې.چه بغير د مولا د اذن نه دغلام اود وينځې نکاح نه منعقد کيږي.حافظ الدين هم ددې قائل دې.خوصحيح مطلب دادې.چه بغير د اذن د مولانه د غلام اود وينځې نکاح جائز اوصحيح ده.خوغير نافذ ده.ددې نفاذ به د مولا په اجازت باندې موقوف وی.که مولا اجازت ورکړو.نو نافذ به وی.اوکه اجازت ئې ورنکړو.نو نافذ به نه وی.دسعيد ابن المسيب، حسن،او ابراهيم نخعی هم دا قول دې.[1]

**دليله** ﴾ خکه چې د وينځې د بضع منافع د مولا ملك دی.اود مولا په ملك کې دده د اجازت نه بغير هيڅ چاته د تصرف حق نشته.نود مولا داجازت نه بغير به د وينځې نکاح صحيح (نافذ) نه وی.

### د مولا په اجازت د غلام په نکاح سره د مهر وجوب

| وَإِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ بِإِذْنِ مَوْلَاهُ هر کله چې نکاح او کړه غلام دَ خپل آقا په اجازت سره فَالْمَهْرُ دَيْنٌ فِي رَقَبَتِهِ يُبَاعُ فِيهِ نو مهر به دَ غلام په رقبه کې دَين وی په کوم کې چې به دې خرڅولې شي |
|---|

**تشريح** ﴾ صورت د مسئلې دادې.که غلام د مولا په اجازت سره نکاح اوکړه.نومهر به په غلام باندې واجب وی.اوددې مهر ادا کولو لپاره به غلام خرڅولې شي.البته که ددې غلام په پوره ثمن سره پوره مهر ادانشو.نو دوباره به نشي خرڅولې.بلکه د باقي مهرمطالبه به د آزاديدلو نه روسته کولې شي.

**دليله** ﴾ دليل دا دې.چه دمهر دين واجب شوې دې.د غلام په رقبه باندې،او هرهغه دين چې د غلام په رقبه باندې واجب وی.غلام به په هغه دين کې خرڅولې شي.نودا غلام به هم د مهر دين ادا کولو لپاره خرڅولې شي.اود نفس وجوب دليل دادې.چه سبب د وجوب،يعنی نکاح د اهل (عاقل،بالغ) نه صادر شوې ده.اومانع د نکاح يعنی حق د مولا دده په اجازت سره منتفي شو.اود غلام په رقبه کې د واجبيدلو

---

[1] **مسلك مالك:** او پاتې شو غلام،نو امام مالك رحمه الله فرمائي.چه بغير د اذن د مولا نه د غلام نکاح جائز(نافذ) ده.

په وجه د مولا اجازت ورکول،د اصحاب ديون (قرضخواه)يعنى ښځې نه ضرر لرې كول دى.لكه څنګه چې د تجارت په ديون كې عبدماذون خرخولې شي.دغه ډول (دغه شان) د ښځې مهر ادا كولو لپاره به هم غلام خرخولې شي.

**د وينځې د نکاح نه روسته د مولا دخدمت حق**

| وَاذَازَوَّجَ المولى أَمَتَهُ اوهركله چې مالك دَ خپلې وينځې نكاح او كړه فَلَيْسَ عَلَيْهِ اَنْ يُبَوِّئَهَا بَيْتًا لِلزَّوْجِ نو په دهٔ لازم نه دى چې ميشته كړي دې لره دَ ميړه (خاوند) په كور كې وَلٰكِنَّهَا تَخْدُمُ الْمَوْلٰى ليكن وينځه به دَ خپل آقا خدمت كوى وَيُقَالُ لِلزَّوْجِ مَتٰى ظَفِرْتَ بِهَا وَطِئْتَهَا او ميړه (خاوند) ته به ئ وتيلې شي چې كله تهٔ په دې قابومومې وطئ كوه نې |
|---|

**حل اللغة**> ① **يبوا**:اوسوى،ستوګنه وركوى ② **ظفرت**:كامياب شوې ته،چه موقع درته ملاويده

**تشريح**> د ،تبوية، معنى داده.چه وينځه ميړه (خاوند) ته حواله كړې شي.اومولا د وينځې نه خدمت اخستل پريږدى. كه وينځه ميړه (خاوند) له ځي راځي.اود مولا خدمت هم كوى.نودا به تبويه نه وى.
صورت د مسئلې دادې.چه مولا د خپلې وينځې د يوكس سره نكاح اوكړله.نوپه مولا باندې وينځه ددې د ميړه (خاوند) په كوركې اوسول،اوخپل دخدمت حق پرېښول (پريخودل) واجب نه دى.بلكه وينځه به د مولا خدمت كوى.او ميړه (خاوند) ته به وئيلى شي.چه كله تاته موقع په لاس راځي.نو وينځې سره وطى كوه.

**دليله**> دليل دادې.چه په خدمت اخستلوكې دمولا حق باقى دې.دنكاح په اجازت وركولو سره د مولاحق نه ختميږى.اود ميړه (خاوند) په كور كې وينځه آبادولوسره د مولاحق باطلول دى.نو ددې تبويه په صورت كې د ادنى حق په وجه، د اعلى حق باطلول لازميږى.او دا صحيح نه ده.نو په مولا باندې به تبويه هم واجب نه وى.

**دشرط نه پوره كيدلو په صورت كښې د مهرمثل وجوب**

| وَاِنْ تَزَوَّجَ امْرَاَةً عَلٰى اَلْفٍ عَلٰى اَنْ لَّا يُخْرِجَهَا مِنَ الْبَلْدَةِ اَوْعَلٰى اَنْ لَّا يَتَزَوَّجَ عَلَيْهَا اُخْرٰى هر كله چې نكاح ئ او كړو دَ ښځې سره په زر درهمه په دې شرط چې دا به دَ ښار نه بهر نه بيائى يا دَ دې په موجود ګئ كې به دَ بلې ښځې سره نكاح نه كوى فَاِنْ وَفٰى بِالشَّرْطِ فَلَهَا الْمُسَمّٰى نو كه ميړه (خاوند) شرط پوره كړو نو دې لره به مسمى مهر وى |
|---|

**تشريح**> صورت د مسئلې دادې.كه يوكس د يوې ښځې سره نكاح اوكړه.او زر روشيدې (پې) مهر ئې مقرركړو.په دې شرط چې دا به د ښار نه نه اوباسى.يا داچه ددې په موجودګئ كې به دويمې ښځې سره نكاح نه كوى.نو دا نكاح صحيح ده.اګرچه دسفر نه كولو،اود دويم واده نه كولوشرط،شرط فاسد دې.اوشرط فاسد څكه دې.چه په دې كې د امرمشروع نه منع لازميږى.نوكه ميړه (خاوند) شرط پوره كړو.نود ښځې لپاره به مسمى يعنى زر روشيدې(پې) وى.

**دليله**> څكه چې مسمى يعنى زر روشيدې(پې) د مهر جوړيدلو صلاحيت هم لرى.اود ښځې په زر روپو باندې رضامندى هم پوره شوه.څكه چې په دې شرط كې د ښځې نفع ده.اوكه

| وَاِنْ تَزَوَّجَ عَلَيْهَا اَوْاَخْرَجَهَا مِنَ الْبَلَدِ فَلَهَا مَهْرُمِثْلِهَا او كه بل نكاح ئ پراو كړو يا ئ دَ ښار نه او ويسته نو دې لره به مهر مثل وى |
|---|

**تشريح>** ميره (خاوند) شرط پوره نکړو.نو اوس به دا کتلې شي.چه مهرمثل د مسمی نه کم دې.او که زيات يا برابر دې.که مهرمثل زيات وي.دمهرمسمی يعنی د زر روپو نه.نود ښځې لپاره به مهرمثل وي.

**دليله>** دليل دادې.چه ميره (خاوند) داسې شی (څيز) ذکر کړی دی.چه په هغې کې د ښځې فائده ده.اوهم ددې نفع په وجه ښځه مهرمسمی د مهر مثل نه په کموالی راضی شوه.نوګويا د مهر نقصان ددې نفع په مقابله کې دې.نو ددې نفع د فوت کيدلو په صورت کې په زرو باندې د ښځې رضامندی معدوم شوې ده.نو ددې مهرمثل به مکمل کولې شي.

**نظيره>** او دا داسې شوه.لکه چې داسې ئې وئيلی وی.چه په زر روپو به زه ستا اکرام هم کوم.ياد زر روپو سره به څه هديه هم درکوم.نوکه دا د کرامت اوهديه شرط ئې پوره نکړو.نو مهرمثل به واجب وی.دغه ډول (دغه شان) دلته کې هم ده.اوکه مهرمثل د مسمی يعنی د زر روپو نه کم دې.يا برابر دې.نود شرط نه پوره کولو په صورت کې به هم مسمی يعنی زر روشيدۍ(پې) واجب وی.اودا شرط به د ميره (خاوند) دطرفه تبرع(احسان) وی.

### په غيرموصوف څاروی باندې نکاح کول

| |
|---|
| وَإِنْ تَزَوَّجَهَا عَلَى حَيَوَانٍ غَيْرِمَوْصُوفٍ که نکاح ئې او کړه دَ ښځې سره په غير موصوف څاروی باندې صَحَّتِ التَّسْمِيَةُ وَلَهَا الْوَسَطُ مِنْهُ نو دا مقرر کول صحيح دی او ښځې لره به منځنی (درميانه) حيوان (څاروې) وی وَالزَّوْجُ مُخَيَّرٌ إِنْ شَاءَ أَعْطَاهَا ذَلِكَ وَإِنْ شَاءَ أَعْطَاهَا قِيمَتَهُ او ميره (خاوند) ته به اختيار وی چې که غواړی نو ښځې لره دهغه ورکړی او که غواړی نو قيمت دَ هغې دورکړی . |

**تشريح>** مسئله داده.که يوسړی د يوې ښځې سره نکاح اوکړه.او مهر ئې داسې حيوان (څاروې) مقررکړو.چه ددې صفت بيان نکړې شو.نو زمونږ په نيز به تسميه صحيح وی.اوپه ميره (خاوند) به واجب وی.چه دې ښځې ته منځنی (درميانه) حيوان (څاروې) ورکړی.او ميره (خاوند) ته داهم اختيار شته.چه دې دمنځنی (درميانه) ډول(قسم) څاروی قيمت ورکړی.

**مراد امام القدوری>** صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلی دی.چه د قدوری ددې مسئلې مراد دادې.چه دڅاروی جنس بيان کړې شو.خو وصف ئې بيان نکړې شو.مثلاً داچه نکاح ئې اوکړه.په اس باندې يا په خر باندې.نو دلته کې د څاروی جنس خو بيان شوې دې.خودا بيان نکړې شو.چه دا اس به ادنی درجې والا وی.اوکه د اعلی يا اوسط درجه والا.خو که د څاروی دسره جنس بيان نکړې شو.مثلاً په مطلق څاروی ئې نکاح اوکړه.نودا تسميه به صحيح نه وی.او
مهرمثل به واجب وی.([1])

**دليله>** دليل دادې.چه نکاح معاوضه د مال په غيرمال ده.نومونږ (مونږ) نکاح په پيل (شروع) کې التزام دمال اوګرځولو.يعنی ميره (خاوند) په خپل ځان بغير دڅه عوضه مال لازموی.او التزام د مال په اصل جهالت سره هم نه فاسديږي.لکه مثلاً په ديت کې شريعت سل اوښان غير موصوف مقررکړی دی. او يوکس د بل کس لپاره د څه شی (څيز) اقرار اوکړو.نودا اقرار درست دې.

[1] **مسلک الشافعي:-** امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه په دواړه صورتونوکې به مهرمثل واجب وی.که جنس بيان شوې وی.او که نه وی بيان شوې.

## په غیر موصوف کپړه باندې نکاح کول

| وَإِنْ تَزَوَّجَهَا عَلَى ثَوْبٍ غَيْرِ مَوْصُوفٍ که د ښځې سره يې نکاح او کړو په غیر موصوف کپړې فَلَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ نو ښځې لره به مهر مثل وي |
|---|

**تشریح**> مسئله داده.که په نکاح کښې کپړې مهر مقرر کړې شي.خود کپړې وصف ذکر نکړې شي. مثلاً دا اووائي.چه په مهر کښې به کپړه ورکوم.خو ددې نوع بیان نکړې.نو په داسې صورت کښې به د آیمه اربعه په نیز مهرمثل واجب وي.وجه ددې داده.چه په دې صورت کښې نوع مجهول ده.

**دلیله**> ځکه چه د کپړې ډیر زیات اقسام دی.مثلاً د مالوچوکپړه، د کتان د ریښمو وغیره.نود مسمی د جهالت په وجه به مهرمثل واجب وي.

## د نکاح متعه موقت حرمت

| وَنِكَاحُ الْمُتْعَةِ وَالموقت بَاطِلٌ او نکاح د متعې او نکاح موقته باطلې دی. |
|---|

**تشریح**> **تعریف المتعة**> متعه یوې ښځې ته [اتمتع بك كذا مدة بكذا من المال] ونیلو ته وائي.یعنی ،د مقرر مال په بدله کښې د مقررې مودې پورې نفع اخستل.تول آئمه د متعه د حرمت قائل دی.

**دلیله**> متعه د خیبر نه مخکښې حلال وه.خود خیبر په ورځ نبی کریم ﷺ د پاللې شوی خرو غوښه،او متعة النساء حرام کړله.بیا د فتح مکه په کال په یوم اوطاس کښې د درې ورځو دپاره حلال کړې شوه.بیا په څلورمه ورځ د قیامته پورې حرام کړې شوه.

**بطلان نکاح الموقت**> نکاح موقت دا ده.چه یوکس د دوه ګواهانو په موجودګۍ کښې د یومعلوم مودې پورې نکاح اوکړي.مثلاً د لسو ورځو دپاره،یو کال دپاره وغیره وغیره.[1]

**دلیله**> دلیل دادې.چه په نکاح موقت کښې د متعه معنی موجود ده.ځکه چه د نکاح موقت مطلب هم دادې.چه څو ورځې به نفع اخلم.او په عقودو کښې د معانو اعتبار کیږي.د الفاظو نه کیږي.مثلا یوکس بل کس ته اووئیل.چه ته زما د مرګ نه پس زماوکیل ئې.نو دې به وصی شي.او که اووائي.چه ته زما دمرګ نه پس زماوصی ئې.نو وکیل به وي.یا تاسو به ونیلې وي.چه کفاله،بشرط براءة اصیل، حواله وي.او حواله،بشرط عدم براءة اصیل، کفاله وي.نو هرکله چه په عقودو کښې دمعانیو اعتبار کیږي.او په نکاح موقت کښې د متعه معنی اوموندې شوه.او قاعده ده.چه په کوم متعه صادق راشي.هغه باطل ده.نو نکاح موقت به هم باطل وي.

**الفرق بین النكاح المتعة والموقت**> په نکاح موقت او نکاح متعه کښې فرق په دوه طریقو سره دې.اول داچه په نکاح موقت کښې لفظ د تزوج ذکر وي.په متع کښې ذکر نه وي.دویم داچه په موقت کښې دشاهدینو شهادت وي.په متعه کښې نه وي.عام فقهاء د نکاح موقت د حرمت قائل دی.

**عدم الفرق بین المدة الطويلة والقصيرة**> علامه مرغینانی رحمه الله په هدایه کښې فرمائي.چه په نکاح موقت کښې کومه موده ذکر کیږي.که هغه اوږده وي او که کمه وي.په دواړو صورتونوکښې به د بطلان حکم وي.ځکه چه وخت محدود کول.متعه متعین کونکې دې اودا اوموندې شو.

## د مولا د اجازت نه بغیر د غلام او وینځې نکاح

| وَتَزْوِيجُ الْعَبْدِ وَالْأَمَةِ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوْلَاهُمَا مَوْقُوفٌ فَإِنْ اذن الْمَوْلَى جَازَ وَإِنْ رَدَّهُ بَطَلَ د غلام او وینځې نکاح کول بغیر د اذن د مولی نه موقوف دې که اقاور ته اجازت ور کړو نو جائز دې او ردې کړو نو |
|---|

[1] مسلک زفر:- امام زفر رحمه الله دجواز قائل دی.

باطل به شي وَكَذٰلِكَ اِنْ زَوَّجَ رَجُلٌ اِمْرَأَةً بِغَيْرِ رِضَاهَا أَوْرَجُلًا بِغَيْرِ رِضَاهُ دارنګ که چا (فضولی) دَ يوې ښځې نکاح بغير دَ هغې دَ رضانه او کړه يا دَ يو سړي بغير دَ هغه دَ رضا نه او دا زمونږ په نيز ده

**تشریح>** مسئله داده.چه د غلام او وینځې د مولا د اجازت نه بغیر نکاح کول به موقوف وی.که مولا اجازت ورکړو.نو نافذ به وی.او که اجازت ئې ورنکړو.نو باطل به وی. دویم صورت دادې.چه یوسړی د بل کس نکاح بغیر دده د اجازته اوکړه.یاد یوې ښځې نکاح ئې بغیر ددې د اجازته اوکړه. نو زمونږ په نیز جائز ده.اود نکاح نفاذ به په اجازت باندې موقوف وی. زمونږ په نیز ضابطه داده.چه هرهغه عقد چې د فضولی نه صادرشي.او په مجلس کې څوك د ایجاب قبلولو والا موجود وی.که دا قبلونکې دویم فضولی وی.اوکه وکیل یا اصیل وی.نودا نکاح به په اجازت باندې موقوف وی. (۱)

**دلیله>** دلیل دادې.چه رکن د تصرف،یعنی ایجاب اوقبول دده د اهل نه صادر شوې دې.یعنی دعاقل بالغ نه، اومنسوب دې محل د عقد ارخ (طرف) ته.یعنی داسې ښځې ارخ (طرف) ته منسوب دې.چه دا دمحرماتو څنې نه ده.او ددې عقد په منعقد کولو کې څه نقصان هم نشته.څکه چې دا عقد به موقوفاً منعقد وی.که مناسب اوګڼړی.نو نافذ به ئې کړی.ګنې رد به ئې کړی.د امام شافعي رحمه الله دلیل چې فضولی دحکم په اثبات باندې قادر نه وی.ددې څواب دادې.چه دلته کې حکم معدوم نه دې.بلکه د اجازته پورې مؤخر شوې دې.اوحکم د عقد،عقد نه مؤخر کیدلې شی.لکه څنګه چې په بیع، بشرط الخیار، کې کیږی.څکه چې ددې بیع لزوم او نفاذ د خیار د سقوطه پورې مؤخر شو. والله اعلم بالصواب

## په نکاح کښې د وکالت حکم

وَيَجُوْزُ لِابْنِ الْعَمِّ أَنْ يُزَوِّجَ بِنْتَ عَمِّهِ مِنْ نَفْسِهِ جائز دی دَ اکا (تره) څوئی لره دا چې په نکاح کړی دَ خپل اکا (تره) لور دَ ځان سره

**تشریح>** صورت د مسئلې دادې.چه د تره (کاکا) څوې ولې جوړشو.اوخپله نکاح ئې د خپل اکا (تره) لور سره اوکړه.حالانکه دا جینئ صغیره ده.او دده نه علاوه بل څوك ولی هم نشته. مثلاً ده اوونیل.چه،ګواه اوسه،ما خپله نکاح فلانۍ جینۍ سره اوکړه. چې د فلانکی د څوی لورده، نو جائز ده. (۲)

**دلیله>** که څوئې ،پلار ،تره نه وی نو د تره څوې عصبهٔ دې.ددې وجې هغه ولی جوړ شو.اود خپل ځان د طرفه اصیل شو.اوپه نکاح کښې يو سړې د دواړو طرفونه وکیل جوړیدې شی.نوکه هغه د دوؤ ګواهانو په وړاندې ((نکحت)) اوونیل نو د دواړو طرفونو نه ایجاب او قبول صحیح شو.او نکاح اوشوه.

وَإِنْ أَذِنَتِ الْمَرْأَةُ لِلرَّجُلِ أَنْ يُزَوِّجَهَا مِنْ نَفْسِهِ فَعَقَدَ بِحَضْرَةِ شَاهِدَيْنِ جَازَ هر کله چې اجازت ورکړو يوې ښځې يو سړي ته چې دا ځانته په نکاح کړی نو دهٔ دَ دوؤ ګواهانو په حضور نکاح اوکړه نو جائز دي

**تشریح>** دویم صورت دادې.چه یوې ښځې یو سړې وکیل جوړکړو.چه زما نکاح د خپل ځان سره اوکړه.وکیل د دوې (دوه) ګواهانو په موجودګۍ کې عقد د نکاح اوکړو.نو دا صورت زمونږ په نیز جائز دې.(۳)

---

۱) **مسلك الشافعي:**- د امام شافعي رحمه الله مذهب دادې.چه د فضولي واړه (ټول) تصرفات باطل دی.

۲) **مسلك الشافعي وزفر:**- او امام شافعي رحمه الله هم دجواز قائل دې.خوامام زفر رحمه الله دې ته ناجائز وائی.

۳) **مسلك زفر والشافعي:**- د امام زفر اوامام شافعي رحمه الله په نيز ناجائز دې.

**دلیله>** دلیل دادې.چه په نکاح کي وکیل صرف تعبیرکونکي او سفیر وی.ذمه دار نه وی.او منافات په حقوقو کي وی.په تعبیر کي نه وی.په حقوقو کي منافات دادې.چه یوکس مطالب او مطالب دواړه وی.مملك اومتملك دواړه وی.مخاصم اومخاصم دواړه وی.خو په تعبیر کي منافات نشته.چه د ښځي د طرفه د مالك جوړولې والا الفاظ وائی.اود خپل طرفه د مالك جوړولو والا الفاظ وائی.

**د جینۍ د پلار یا ولی د مهرضمانت اخستل**

| وَإِذَاضَمِنَ الْوَلِيُّ الْمَهْرَلِلمراةصَحَّ ضَمَانُهُ هر کله چي ضامن شو ولی دَ مهر نو دَ دهٔ ضامن کیدل صحیح دي |
|---|

**تشریح>** صورت د مسئلې دادې.چه ولی(پلار)د خپلي بالغي لور نکاح اوکړه.اود لور لپاره ددې د میړه (خاوند) دطرفه ضامن شو.نودا ضامن کیدل شرعاً درست دی.

**دلیله>** ځکه چې ولی د التزام مال اهل دې.اود کوم شي (څیز) اړخ (طرف) ته نې چي التزام منسوب کړې دې.یعنی مهر،هغه قابل د التزام هم دې.ځکه چې مهر دین دې.او په دین کي کفاله اوضمان دواړه درست وی.نود ولي د بالغۀ لپاره د میړه (خاوند) دطرفه د مهرضامن کیدل صحیح دی.

| وَلِلْمَرْأَةِالْخِيَارُفِي مُطَالَبَتِهَازَوْجَهَا.ښځي ته اختیار دې په مطالبه کولو کي دَ خپل میړه (خاوند) نه أَوْوَلِيَّهَايا دَ خپل ولی نه |
|---|

**تشریح>** هرکله چي ضمان درست دې.نو ښځي ته اختیار دې.چه دا د مهرمطالبه د خپل میړه (خاوند) نه اوکړی.یا د خپل ولی نه.

**دلیله>** ځکه چې په ټولوکفالوکي هم دغه طریقه ده.چه رب المال د مدیون اووکیل دواړو نه مطالبه کولې شي.اوس که ولی مهرښځي ته اداکړو.نوکتلې به شي.چه داضمان د میړه (خاوند) په حکم سره وو.اوکه نه وو.که د میړه (خاوند) په حکم سره وو.نو ولی به ددې مال مهر میړه (خاوند) ته رجوع کولی شي.اوکه د حکم نه بغیر وو.نو ولی ته به میړه (خاوند) اړخ (طرف) ته د رجوع حق نه وی.بلکه دا مهرادا کول به د ولی دطرفه تبرع(احسان) وی.د کفاله هم دغه طریقه ده.اود ضمان د صحت داحکم هغه وخت دې.چه کله ولی د زوجه صغیره د پاره ضامن وی.

**په زوجینوکښي قبل الدخول د قاضي تفریق کول**

| وَإِذَافَرَّقَ الْقَاضِي بَيْنَ الزَّوْجَيْنِ فِي النِّكَاحِ الْفَاسِدِقَبْلَ الدُّخُولِ هر کله چه تفریق او کړو قاضی دَ زوجینو په مینځ کي په نکاح فاسد کي مخکي دَ دخول نه فَلَامَهْرَلَهَانو دَ ښځي دَ پاره مهر نه وی وَكَذَابَعْدَالْخَلْوَةِاو دَ غسي دَ خلوت نه نو ( نه واجبیږی |
|---|

**تشریح>** صورت د مسئلې دادې.چه قاضی د فاسد نکاح په صورت کي د زوجینو په مینځ کي تفریق اوکړو.حالانکه د اوسه پورې میړه (خاوند)، د ښځي سره جماع نه ده کړې.نو په دې صورت کي به مهرنه وی.نه به کل مهر وی.اونه به نصف وی.ددې په خلاف که نکاح صحیح وی.نود ،طلاق قبل الدخول، په صورت کي به نصف مهر واجب وی.نکاح فاسد مثلاً ،نکاح بلا شاهدین، نکاح الاخت فی عدت الاخت فی الطلاق البائن،نکاح الخامسة فی عدة الرابعه او نکاح الامة علی الحرة ، ده.په نکاح فاسد کي د ،تفریق قبل الدخول، په وجه د مهر.

**دلیله>** دعدم وجوب دلیل دادې.چه په نکاح فاسد کي د نفس عقد په وجه مهرنه واجبیږی.ځکه چي عقد فاسد دې.البته د بضع منافعو وصولولو سره مهر واجبیږی.او ددې دلیل چې د نفس عقد په وجه

مهر نه واجبیږي.د نبی کریم ﷺ ارشاد دي. [ایما امرأة نکحت بغیر اذن ولیها فنکاحها باطل فان دخل بها فلها المهر بما استحل من فرجها] ،کومې ښځې چې د ولی د اجازت نه بغیر نکاح اوکړه.نو ددې نکاح باطل ده.نوکه دې ښځې سره ئې دخول کړې وی.نو ددې لپاره به مهر وی.ددې دشرمګاه حلالوبه وجه، په دې حدیث کې رسول الله ﷺ بیان اوفرمائیل.چه په نکاح باطل کې د مهروجوب په دخول سره وی.په عقد اوخلوت سره نه وی.

| ●اذادَخَلَ بِهَا نو که دخول ئې ورسره او کړو فَلَهَامَهْرُمِثْلِهَاوَلَايُزَادُعَلَى الْمُسَمّٰى نو دَ دې دَ پاره به مهر مثل وی کوم چې به په مسمی نه شی زیاتولې |
|---|

**تشریح** که په نکاح فاسدکې دښځې سره خلوت اوشو.بیا به هم د ښځې لپاره مهر نه وی.څکه چې په نکاح صحیح کې دخلوت نه روسته مهر په دې وجه واجب وو.چه خلوت د وطی قائم مقام دې.او په نکاح فاسد کې چونکه شرعی مانع موجود دې.په دې وجه به دا خلوت فاسده وی.او خلوت فاسده د وطی قائم مقام نه وی.نو په نکاح فاسد کې به دخلوت نه روسته مهر واجب نه وی.خوکه دښځې سره دخول اوشو.نو ددې لپاره به مهرمثل وی.اودا مهرمثل به زمونږ په نیز د مسمی نه زیات نه وی. (۱)

**دلیله** دلیل دادې.چه د بضعې منافع کوم چې وصول شوی دی.هغه مال نه دې.البته د نکاح په وخت چې کله مهرذکر کړې شو.نود بضع دغه منافع متقوم شو.نو هرکله چې په مهرمثل باندې تسمیه زیاته شوه.نو زیاتوالې به واجب نه وی.څکه چې د مهرمثل نه د زیاتوالی تسمیه صحیح نه وی. اوکه تسمیه د مهرمثل نه کم وی.نود مسمی سره به (نه به) زیاتی واجب نه وی.څکه چې د مهرمسمی نه د زیاتوالی لپاره تسمیه موجود نه ده.او دویمه خبره داده.چه هرکله مسمی د مهرمثل نه کم ده.نوګویا ښځه پخپل حق کمولو باندې راضی شوه.او په ښځه هیڅ اعتراض نشته

| وَعَلَيْهَاالْعِدَّةُاوپه دې باندې عدت دې وَيَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِهَامِنْهُ او ثابتیږی دَ دې دَ بچی نسب دده نه. |
|---|

**تشریح** په نکاح فاسده کښې به د تفریق نه پس په دې باندې عدت واجب وی او د نکاح فاسد په نتیجه کې که بچې پیداشو.نو دده نسب به ثابت وی.

**دلیله** دلیل دادې.چه دنسب په ثابتولوکې احتیاط کولې شی.څکه که د بچی نسب ثابت نشی.او دده څوك معلوم پلار او پرورش کونکې نه وی.نودا به ضائع شی.او ډیرکرته مرګ واقع کیږی.نو ددې باوجود چې نکاح فاسد ،من وجه،ثابت ده.خود بچی ژوندی ساتلو لپاره به په ده باندې نسب مرتب کولې شی.

## په مهرمثل کښې د ښځې د خاندان اعتبار کول

| وَمَهْرُمِثْلِهَايُعْتَبَرُبِاَخَوَاتِهَاوَعَمَّاتِهَاوَبَنَاتِ عَمِّهَااو دَ ښځې دَ مهر مثل اعتبار به ددې دَ خویندو تروړانو او ترونو دَ لونړو سره وی |
|---|

**حل اللغة** ① **اخوات**:جمع د اخت،خور ② **عمات**:جمع د **عمة**، د پلار خور

**تشریح** مسئله داده.چه دښځې په مهرمثل کې ددې د خاندان د ښځو اعتبارکیږی.کومې ښځې چې ددې دپلار اړخ (طرف) ته منسوب دی.مثلاً خویندې،تروریانې، اود اکا (تره) لونړه.ابن ابی لیلی په

(۱) **مسلك زفر**:- د امام زفر رحمه الله رائې داده.چه مطلقاً به مهرمثل واجب وی.که دمسمی نه کم وی.او که زیات وی.

مهرمثل کې دښځې د مور،او کومې ښځې چې ددې د مور ارخ (طرف) ته منسوب دی.د هغوی اعتبار کوی.مثلاً د مورخويندې (ترورياني).د ابن ابی ليلی دليل دادې.چه مهر د ښځو د بضع قيمت دې.نود ښځې د طرفه چې کوم قرابتونه دی.په مهرمثل کې به هم دهغې اعتبار کولې شی.

**دليله>** دليل ① د ابن مسعود رضي الله عنه قول دې. [لها مهرمثل نسائها وهن اقارب الأب] (١) يعنی دښځو لپاره ددې د ښځو مهرمثل دې.او هغوی دپلار قرابت دار دی.په دې قول باندې دنساء اضافت د ښځې ارخ (طرف) ته شوې دې.يعنی ددې ښځې لنډيز (خلاصه) دا چې ښځې منسوب کړې شوی دی.دې ښځې ارخ (طرف) ته.او په نسب کې پلار معتبر دې.مور معتبر نه ده.

| وَلَا يُعْتَبَرُ بِأُمِّهَا وَخَالَتِهَا إِذَا لَمْ تَكُونَا مِنْ قَبِيلَتِهَا او دَ مهر مثل اعتبار به نه شی کولې دَدې دَ مورد خورپه مهرسره هرکله چې دَدې دَ خاندان نه نه وی په دې وجه چې مونږ (مونږ) بيان کړو |
|---|

**تشريح>** د مهرمثل په پيژندلوکې به ددې ښځې دپلار قرابت دارو ښځو اعتبارکولې شی. په نسب کې چونکه د پلار اعتبارکولې په دې وجه د وينځې خوې خليفه جوړول درست دی.

**دليله>** دليل وړاندې تير شو.يعنی د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قول دې.

| وَيُعْتَبَرُ فِي مَهْرِ الْمِثْلِ أَنْ يَتَسَاوَى الْمَرْأَتَانِ فِي السِّنِّ وَالْجَمَالِ وَالْمَالِ وَالْعَقْلِ وَالدِّينِ وَالْبَلَدِ وَالْعَصْرِ او اعتبار به کولې شی (کولې شی) په مهر مثل کې د دې چې دواړه ښځې مساوی وی په عمر کې او په ښاست کې او په مال او عقل او دين کې او په ښار کې او په زمانه کې |
|---|

**تشريح>** صاحب د قدوری رحمه الله فرمائی.چه په مهرمثل کې به ددې هم اعتبارکيږی.چه کله دوی (دوه) ښځې په عمرکې ، په جمال کې ،په مال کې ، په عقل او دين کې ، په ښار او زمانه کې برابر وی.

**دليله>** ځکه چې مهر مثل ددې اوصافو په اختلاف سره مختلف کيږی.دغه ډول (دغه شان) د ښاراود زمانه په اختلاف سره هم مهرمثل مختلف کيږی.بعض فقهاؤبکارت کې هم د مساوات اعتبار کړې دې. ځکه چې دبکارت او ثيوبت په وجه سره هم مهرمثل مختلف کيږی.لکه چې د باکره د بضع قيمت زيات وی.اود ثيبه د بضع قيمت کم وی.حاصل داچه مهرمثل د بضع قيمت دې.اود شئ قيمت معلوميږی ددې مثل ته په کتلوسره.نو کومې ښځې چې په مهرمثل کې معتبر دی.دوی په دې ذکرشوی څيزونوکې ددې ښځې برابر کيدل پکاردی.او په متن کې د سن نه د نکاح د وخت سن مراد دې.والله اعلم

## د وينځې سره دنکاح جواز اوعدم جواز

| تَجُوزُ تَزْوِيجُ الْأَمَةِ مُسْلِمَةً كَانَتْ أَوْ كِتَابِيَّةً او جائز دې دَ وينځې سره واده کول مسلمانه وی او که کتابيه وی، |
|---|

**تشريح>** د وينځې سره نکاح کول جائز دی.که هغه مسلمانه وی.اوکه کتابيه وی.(٢)

**دليله>** دليل دادې.چه دوينځې سره د نکاح جواز مطلق دې.په دې وجه چه د نکاح تقاضا مطلق ده.مثلاً [فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَاءِ] او [وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ] په دې آيتونوکښې

---

١) من الرابن عباس رضي الله عنه اخرجه ابوداود في النكاح باب ٣١ رقم ٢١١٤ والترمذي في النكاح باب ٤٣ رقم ١١٤٥ والنسائي في النكاح باب ٦٨ رقم ٣١٤٥ وابن ماجه في النكاح باب ١٨ رقم ١٨٩١

٢) **مسلک الشافعي:-** امام شافعی رحمه الله مذهب دادې.چه کتابيه وينځې سره نکاح جائز نه ده.امام مالک رحمه الله هم ددې قائل دې.او په يو روايت کښې امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.

مطلق ښځو سره د نکاح جواز عام خودلې شوې دې.ازادې سره وی.او که د وینځې سره وی.

## د آزادې په موجودګئ کښې . وینځې سره د نکاح حکم

| وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَتَزَوَّجَ أَمَةً عَلَى حُرَّةٍ او نکاح د نه کوی دَ وینځې سره په حُره باندې |
|---|

**تشریح** ﴿ که د رومبې نه آزاده ښځه په نکاح کښې موجود ده.نود وینځې سره نکاح ناجائزده.

**دلائله** ﴿ ① دلیل د نبی کریم ﷺ قول دې. لَا تُنْكَحُ الْأَمَةُ عَلَى الْحُرَّةِ[1] چه د آزادې ښځې په موجودګئ کښې وینځې سره نکاح مه کوئ.په دې حدیث کښې عموم دې.خاوند که آزاد وی. او که غلام وی.راضی وی اوکه ناراضه.

② دویم دلیل عقلی دادې.چه د رقیت په وجه ځنګه سزاګانې نیمې وی.دغه شان نعمتونه هم نیمګړی وی.مثلاً آزاد ته د زنا په حدکښې چه څومره کوړې لګولې شی.رقیق ته به د دې نیمې لګولې شی.دغه حال د نعمتونو هم دې.

## د وینځې په موجودګئ کښې آزادې ښځې سره د نکاح حکم

| وَيَجُوزُ تَزْوِيجُ الْحُرَّةِ عَلَيْهَا او جائز دې په وینځه دَ حُرې نکاح ، |
|---|

**تشریح** ﴿ دا مسئله د مخکنی صورت عکس دې.یعنی که د مخکښې نه وینځه په نکاح کښې موجود ده.نو آزادې ښځې سره نکاح کول جائز دی.په دې کښې هیڅ قباحت نشته.او آئمه اربعه په دې باندې متفق دی.چه د وینځې نکاح به هم باطل نه وی.

**دلائله** ﴿ ① د نبی کریم ﷺ ارشاد دې وَتُنْكَحُ الْحُرَّةُ عَلَى الْأَمَةِ[2] نکاح کولې شی دَ حرې سره په وینځه باندې② دویم عقلی دلیل دادې.چه حره د محللات ځنې ده.په ټولو حالتونو کښې،د انفراد په حالت کښې هم،اود انضمام په حالت کښې هم.ځکه چه د حره په حق کښې څه داسې څیز موجود نشو.چه دا حل محلیت (محل لره حلالول) نیم کړی.په خلاف د وینځې،چه ددې په حق کښې منصف یعنی رقیت موجود دې.

## تعدد ازواج

| وَلِلْحُرِّ أَنْ يَتَزَوَّجَ أَرْبَعًا مِنَ الْحَرَائِرِ وَالْإِمَاءِ آزاد سړې په آزادو ښځو او وینځو کښې دَ څلورو سره نکاح کولې شی. وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَ أَكْثَرَ مِنْ ذَٰلِكَ دَ دې نه دَ زیاتو سره نهٔ شی کولې. |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **الحرائر**:جمع د **حرة**: آزاده ښځه

**تشریح** ﴿ آزاد سړې په یووخت کښې څلورو ښځو سره نکاح کولې شی. که څلور واړه آزادې وی.او که څلور واړه وینځې وی.او که بعض آزادې وی.او بعض وینځې وی.

**دلیله** ﴿ دالله تعالی ارشاد دې فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ مَثْنَىٰ وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ دا آیت د تعداد(شمیر) په بیان کښې نص دې.اود تعداد صراحت زیاتوالی دپاره مانع وی.نود څلورو نه زیاتې ښځې به د یو آزاد سړی دپاره حلال نه وی.ددې حضراتو په نیز په آیت کښې لفظ د ،واؤ، د ،او، په معنی کښې دې.چه د تخییر دپاره دې.اوس به مطلب داوی.چه په دې تعداد کښې هر یو عدد اختیار کړه.دوه یا درې یا څلور، ټول ټیک دی.

---

[1] من حديث عائشة ﷺ أخرجه الدارقطني في سننه (٣٩/٤)۔

[2] تقدم تخريجه في الحديث السابق آنفاً۔

## د غلام دپاره تعدد ازواج

| وَلَايَتَزَوَّجُ العبدُ اَكْثَرَمِنْ اِثْنَتَيْنِ او جائز نه دی غلام لره دَ دوو نه دَ زياتو سره نكاح كول |
|---|

**تشريح**> په دې عبارت کښې د غلام دپاره د ازواجو د تعداد حُکم بيان شوې دې.د غلام دپاره د دوو ښځو سره نکاح جائز ده.زياتو سره اجازت نشته. ([1])

**دليله**> دليل دادې.چه په دې خبره د ټولو اتفاق دې.چه رقيت په نعمتونو کښې تنصيف کوی.اود ښځو حلال کيدل هم د الله د طرفه نعمت دې.نو په دې نعمت کښې به هم تنصيف وی.نو هرکله چه د آزاد دپاره په يو وخت کښې څلور ښځې حلالې دی.نو ددې نصف،يعنی دوه ښځې به غلام دپاره حلال وی.اوکه غور اوکړې شی.نو واقعی په شريعت کښې نعمتونه ،متفاوت الاخوال، دی. لکه د نبوت منصب د ټولو نه اشرف وو. نود نبی کريم ﷺ دپاره نهه بيبيانې حلال کړې شوې.اود آزاد حال د غلام نه اشرف دې.نود آزاد دپاره څلور ،اود غلام دپاره دوه حلال کړې شوې.چه د حريت شرف ښکاره کړې شی.

| فَاِنْ طَلَّقَ الْحُرُّاحْدَى الْاَرْبَعِ طَلَاقًابَائِنًالَمْ يَجُزْلَهُ اَنْ يَتَزَوَّجَ رَابِعَةً نو که طلاقه کړه حُر يوه په څلورو کښې په طلاق بائن سره جائز نه دی ورته نکاح کول دَ څلورمې سره حَتّٰى تَنْقَضِيَ عِدَّتُهَا تر څو پورې چه د هغې عدت نه وی تيرشوې. |
|---|

**تشريح**> ددې نه پس مصنف دا مسئله بيان کړې ده.چه آزاد سړی که خپلو څلور بيبيانو کښې کومې يوې ته طلاق بائن ورکړو.نو ترکومه پورې چه دا مطلقه بائنه خپل عدت پوره نکړی.د هغه وخته پورې به دا سړې څلورمې ښځې سره واده نه کوی.ګنی دده په نکاح کښې پنځمه ښځه جمع شی. ([2])

**دليله**> ترڅوچې د طلاقې شوې عدت پوره نه وی نو تر هغه وخته پورې دا من وجه د خاوند په نکاح کښې ده اودا مسئله ده چې کله څلور بيبيانې موجود وی نو د پنځمې سره نکاح جائز نه ده.

## د مالک په اجازت سره د وينځې نکاح کولو نه پس په آزاديدلو خيارفسخ

| وَاِذَازَوَّجَ الامةَ مَوْلَاهَا كله چې په نكاح وركړه وينځه مالك د هغې ثُمَّ اُعْتِقَتْ بيا دَغه آزاده شی فَلَهَا الْخِيَارُحُرًّاكَانَ زَوْجُهَا اَوْعَبْدًا نو دَ دې دَ پاره خيار دی دَ دې خاوند آزاد وی او كه غلام |
|---|

**تشريح**> صورت د مسئلې دادې.چه وينځې د خپل مولا په اجازت سره نکاح اوکړله.بيا دا وينځه آزده کړې شوه.نو ددې وينځې خاوند که آزاد وو.اوکه غلام په دواړه صورتونو کښې به ددې دپاره ختيارعتق ثابت وی.که غواړی نکاح دې باقی اوساتی.او که غواړی فسخ دې کړی

**دليله**> دليل د عائشه رضي الله عنها حديث دې.يعنی حضرت عائشه رضي الله عنها چه هرکله خپله وينځه حضرت بريره رضي الله عنها آزاده کړله.نو بريره رضي الله عنها ته نبی کريم ﷺ اوفرمائيل. {مَلَكْتِ بُضْعَكِ فَاخْتَارِي([3]) په دې حديث کښې نبی کريم ﷺ د خيار ثابتولوعلت ملك بضع ګرځولې دې.او په دې باره کښې ئې هيڅ فرق نه دې کړې.چه د بريره رضي الله عنها خاوند آزاد دې.او که غلام دې.نودا حديث به د خپل اطلاق په وجه دواړو ته شامل وی.يعنی که خاوند آزاد وی.او که غلام وی.په دواړه صورتونوکښې به معتقه وينځې ته خيارعتق

---

[1] ، **مسلک مالک**:- امام مالک رحمه الله د آزاد پشان غلام دپاره هم د څلور اجازت ورکوی.

[2] ، **مسلک الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه څلورمې سره نکاح کولې شی.

[3] ٢٢) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه الدارقطني في سننه (٣/٢٩٠) رقم ١٧٠_

حاصل وي.

| وَكَذَاالْمُكَاتَبَةُ دغه شان مكاتبه مالكه ده. |
|---|

**تشريح>** هم دا حكم د مكاتبه وينځې دې.چه دخپلې وينځې نكاح كولې شي.خو خپله نكاح د مولا د اجازت نه بغير نشي كولې.

**د مولا د اجازت نه بغير د وينځې نكاح كولونه پس آزاديدل اود نكاح حكم**

| وَإِنْ تَزَوَّجَتْ أَمَةٌ بِغَيْرِإِذْنِ مَوْلَاهَا او كه وينځې نكاح او كړه بغير دَ اجازت دَ مولى خپل نه ثُمَّ أُعْتِقَتْ صَحَّ النِّكَاحُ بيا آزاده شوه نو نكاح ئې صحيح ده |
|---|

**تشريح>** په عبارت كښې دوه خبرې دي.يوه داچه وينځې بغير د مولا د اجازت نه نكاح اوكړله.بيا دا وينځه آزاده كړې شوه.نودا نكاح به صحيح(نافذ) وي.دويمه داچه ددې وينځې دپاره به خيارعتق حاصل نه وي.

**دليله>** د نكاح د صحت دليل دادې.چه مقتضى د نكاح موجود دې.ځكه چه ركن د نكاح (ايجاب اوقبول)ددې د اهل نه صادر شوې دې.ځكه چه وينځه دعاقله بالغه كيدلو په وجه د تعبيركونكو د اهل څخې ده. او مانع د نكاح منتفى شو.ځكه چه نفاذ د نكاح د مولا د حق په وجه ممنوع وو.اوحق د مولا په آزاديدلو سره زائل شو.نو هركله چه مقتضى موجود او مانع منتفى دې.نونكاح صحيح شوه.

| وَلَاخِيَارَلَهَا او دې لره به خيار نه وي |
|---|

**تشريح>** اود دې اختيار نشته.

**دليله>** د خيار دعدم ثبوت وجه داده.چه نكاح د وينځې د آزاديدلو نه پس نافذ شوې ده.نو په آزادولو سره دملك زياتوالى نه دې متحقق شوې.نو هركله چه دخيارعلت موجود نشو.نو ددې معتقه وينځې دپاره به خيار هم ثابت نه وي.اودا داسې ده.لكه د آزاديدلو نه پس كه دې پخپله خپله نكاح كوله.نودې ته به خيارحاصل نه وي.دغه شان به دلته كښې هم حاصل نه وي.

**په عقد واحد كښې حلالې اوحرامې ښځې سره د نكاح حكم**

| وَمَنْ تَزَوَّجَ امْرَأَتَيْنِ فِي عُقْدَةٍ وَاحِدَةٍ او چا چه نكاح كړې دوه ښځې په يو عقد كښې وَإِحْدَاهُمَا لَايَحِلُّ لَهُ نِكَاحُهَا صَحَّ نِكَاحُ الَّتِي يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُهَا او حال دا وه چه په دغوكښې دَ يوې نكاح دَ دهٔ دَ پاره حلال نه وه نو دَ هغې نكاح به صحيح وي كومه چه دَ دهٔ دَ پاره حلاله ده وَبَطَلَ نِكَاحُ الْأُخْرَى اود بلې نكاح به باطل وي. |
|---|

**تشريح>** يو سړى په عقد واحدكښې دوه ښځو سره نكاح اوكړه.په دې دواړو كښې يوه دده دپاره حلال ده.او يوه د نسب د قرابت،يا د رضاعت،يا په بله څه وجه حرام ده.نوددې حكم دادې.چه كومه حلال وي.دهغې نكاح به درست وي.او كومه چه حرام وي.دهغې به باطل وي.

**دليله>** دليل دادې.چه بطلان په قدر د مبطل وي.او مبطل صرف په يوه كښې دې.په دويمه كښې نه دې.نو په كومه كښې چه مبطل د نكاح موجود وي.دهغې نكاح به باطل وي.او په كومه كښې چه مبطل د نكاح موجود نه وي.دهغې به درست وي.

## په ښځه کښې دعیب دصورت حکم

وَإِذَا كَانَ بِالزَّوْجَةِ عَيْبٌ اوکه په ښځه کښې څه عیب وی فَلَا خِيَارَ لِزَوْجِهَا .نو د هغې خاوند ته د نکاح فسخ کولو اختیار نشته

**تشریح>** مسئله دا ده.که په ښځه کښې څه عیب وی.نوزمونږ په نیزخاوند ته د نکاح فسخ کولو اختیارنشته [1]

**دلیله>** دلیل دا دې.چه د مرګ په وجه د وطی فوت کیدل د نکاح دفسخ سبب نه دی.که په ښځه خاوند کښې یومړ شی.نومهرنه ساقطیږی.نوکه ددې عیبونوپه وجه په وطی کښې خلل پیدا شی.نوپه خامخا به نکاح نه فسخ کیږی.

## په خاوند دجنون.برص اوجذام په صورت کښې دښځې داختیارحکم

وَإِذَا كَانَ بِالزَّوْجِ جُنُونٌ اوکله چه خاوند ته جنون وی أَوْجُذَامٌ یا جذام وی أَوْبَرَصٌ یا برګې وی. فَلَا خِيَارَ لَهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ [2] نود امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله په نیز ښځې ته ( د نکاح فسخ کولو) اختیارنشته.

**تشریح>** مسئله دا ده.که خاوندلیونې یا پرې برص مرض وی.یامجذوم وی.نودشیخینو رحمهما الله په نیزښځې ته دنکاح فسخ کولواختیارنشته.

**دلیلهما>** دلیل دا دې.چه اصل خودا دې.چه ښځې ته اختیارنه وی.ځکه که ښځې ته د نکاح فسخ کولواختیار ورکړې شی.نوپه دې صورت کښې دخاوندحق باطلیږی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ لَهَا الْخِيَارُ اوامام محمد فرمانیلی دی د دې دپاره اختیار شته

**تشریح> مسلک محمد>** امام محمد رحمه الله فرمانې.چه ښځې ته دنکاح فسخ کولواختیارشته.

**دلیله>** دلیل قیاس دې.یعنی امام محمد رحمه الله دخاوند دا مرض دده په مقطوع الذکراوعنین باندې قیاس کوی.او د دواړو په مینځ کښې علت مشترکه د ښځې نه ضرر لرې کول دی. یعنی لکه څنګه چه دمقطوع الذکراوعنین په صورت کښې دښځې نه ضرر لرې کولوپه وجه ښځې ته اختیارورکړې شوې دې.نودغه شان که خاوند په دې مرضونوکښې اخته وی.نو دښځې نه د ضرر لرې کولوپه وجه دې دې ته اختیارورکړې شی.ددې په خلاف کښې که د جذام وغیره مرضونه په ښځه کښې موجود شی.نوسړی ته اختیارنه دې ورکړې شوې.ځکه چه سړې د طلاق وغیره په ذریعه دځپل ځان نه د ضرر په لرې کولوباندې قادر دې.نوځکه ده ته د نکاح فسخ کولوداختیارضرورت نشته.

پاتې شود مقطوع الذکراوعنین په صورت کښې چه ښځې ته کوم اختیارملاؤ شوې دې.نوددې وجه دا ده.چه دا دواړه د نکاح مقصود اصلی یعنی وطی فوت کوی.اوبرص وغیره عیوب بیخی دا مقصود نه

[1] ) **مسلک الشافعی:**- امام شافعی رحمه الله فرمانی.چه د پنځوعیبونو په وجه نکاح فسخ کولې شی.هغه پنځه عیبونه دا دی.① جذام ②برص یعنی هغه سپین والې چه د بدن په بعضې حصه باندې ښکاره شی.اوپه بعضې نه.اوکله کله په ټول بدن باندې ښکاره شی. ③لیونتوب یعنی دعقل زوال.④رتق یعنی چه دښځې د متیازود لارې نه سوا بله لاره نه وی. ⑤قرن یعنی چه دښځې شرمګاه د هډوکی وغیره دوجې دومره تنګه وی.چه په هغې کښې دسړی د عضوتناسل داخلیدو لاره نه وی.

[2] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة وأبي يوسف رحمهما الله كذا في الخانية (١\١٨٩) وفتح القدير(٤\١٣٥) والكفاية (٤\١٣٥) ورد المحتار(٢\٦٤٨) والهندية (١\٥٢٦)نقلاً عن القول الراجح (١\٣٦٨)–

فوت کوی.نوبه مقیس یعنی لیونتوب وغیره پنځه عیبونه په مقیس علیه یعنی مقطوع الذکر اوعنین باندې قیاس کول کښې فرق شو.نویوبل باندې قیاس کول صحیح نه دی.والله اعلم بالصواب

## عنین ته د یوکال مهلت ورکول

| وَإِذَاكَانَ الزَّوْجُ عِنِّينًا اوکه خاوند نامرد وی أَجَّلَهُ الْحَاكِمُ حَوْلًا نو حاکم به ده ته دیوکال مهلت ورکوی. فَإِنْ وَصَلَ فِي هٰذِهِ الْمُدَّةِ نوکه دې ښځې ته اورسیدو( صحبت ئې اوکړې شو).په دې موده کښې فَلَاخِيَارَلَهَا نود دې دپاره اختیار نشته |
|---|

**تشریح** صورت د مسئلې دا دې.چه خاوند نامرده وی.اوښځه دهغه نه د جداوالی مطالبه کوی.نوحاکم به ورته دعلاج دپاره د یوکال مهلت ورکړی.اودیوکال ابتداء به دهغه وخت نه شروع کیږی.دکله نه چه ښځې دقاضی په عدالت کښې مقدمه درج کړې وی.اوپه دې باندې فتوی ده.نوکه په یوکال کښې دعلاج په ذریعه یا دالله تعالی په فضل دښځې سره په وطی کولوباندې قادرشو.نوالحمدلله په دې کښې څه کلام نشته.اوکه دکال نه پس هم نامرده وو.نوقاضی به دښځې په مطالبهٔ سره د دواړو په مینځ کښې بیلتون راولی.

**دلائل** ① امام محمدؒ په کتاب الآثار کښې روایت کړې دې. (عن عمربن الخطاب رضي الله عنه أن إمرأة أتته فقالت لزوجها لايصل إليها فأجله حولاً فلما إنقضى الحول فلم يصل إليها خيرها فاختارت نفسها ففرق عمر رضي الله عنه بينهما وجعلها تطليقة واحدة) یعنی یوه ښځه حضرت عمر رضي الله عنه ته راغله.اوعرض ئې اوکړلو.چه زما خاوند ماته نه نزدې کیږی.یعنی جماع راسره نه کوی.نونبی ﷺ ورته د یوکال مهلت ورکړلو.هرکله چه یوکال تیرشو.اوهغه کس خپلې ښځې ته نشو تلې.نوحضرت عمر رضي الله عنه دغه ښځې ته اختیار ورکړلو.نوهغه ښځې خپل ځان مختاره کړلو.نوحضرت عمر رضي الله عنه په دغه دواړو کښې تفریق اوکړلو.اودغه تفریق ئې طلاق بائن اوګرځولو.(عینی شرح هدایه)

② دحضرت علی رضي الله عنه نه روایت دې.چه (يؤجل العنين سنة فإن وصل إليها وإلا فرق بينهما) یعنی سړی ته به یوکال مهلت ورکولې شی.نوکه خاوند ښځې ته ورغلویعنی وطی ئې ورسره اوکړله.(نوډیره ښه ده) ګنی د دواړو په مینځ کښې به تفریق کوی.(عینی شرح هدایه) (۱)

③ عقلی دلیل دا دې.چه په وطی کښې د ښځې حق ثابت دې.اود خاوند وطی نه کول ددې وجې هم کیدې شی.چه څه وختی عارض راغلې وی.چه په علاج کولوسره لرې کیدې شی.اودا هم کیدې شی.چه په اصلی خلقت کښې خلل وی.چه دهغې په وجه په جماع باندې قادرنه وی.اونه ترې جماع کیدې شی.نوددې خبرې معلومولودپاره چه دا بیماری اصلی ده.که عارضی ده.یوه مودهٔ پکارده.اوموږ دا مودهٔ دمهلت ورکولویوکال مقرر کړله.ځکه چه په یوکال کښې څلور فصلونه وی.سپرلې،خزان ګرمی اویخنی.

| وَإِلَّا فَرَّقَ بَيْنَهُمَا ګنی حاکم به دې دواړو کښې تفریق اوکړی. إِن طَلَبَتِ الْمَرْأَةُ ذٰلِكَ په دې شرط چه ښځه ددې مطالبه اوکړی. |
|---|

---

(۱) اما الرواية عن عمر رضي الله عنه فاخرجه عبدالرزاق فى مصنفه وابن ماجه فى مصنفه والدارقطنى فى سننه (۳۰۵\۳) رقم۲۲۱) وأما الرواية عن على رضي الله عنه فاخرجه ابن ابى شيبة وأما الرواية عن ابن مسعود رضي الله عنه فاخرجه أيضاً ابن ابى شيبة(نصب الراية۳\۳۶۹)۔

**تشريح** > **حكم عدم القدرة علي الجماع بعد سنة** > هركله چه يوكال تيرشي.اوبيا هم دې په جماع كولوقادرنشي.نودامعلومه به شي.چه دا عجزد اصلي آفت د وجې دې.چه دهغې نه شفا موندل ناممكن دى.نودې كس امساك بالمعروف فوت كړلو.نوپه ده به د جدا كولوپه ذريعه تسريح بالاحسان واجب وى.خوچه هركله دا كس د تسريح بالاحسان نه منع شو.نوقاضي به دده قائم مقام شي.اوپه دواړوكښې به تفريق اوكړى.چه دښځې نه ظلم لرې كړې شي.ځكه چه دقاضي منصب دخلقونه ظلم لرې كولودپاره دې.

## فرقت به طلاق بائنه وى

| وَالْفُرْقَةُ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ اودا فرقت به يو طلاق بائن وى |
|---|

**تشريح** > مسئله دا ده.① چه د نامرده اودهغه دښځې په مينځ كښې چه قاضي كوم تفريق كړې وى.هغه طلاق بائن دې.امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې. ([1])

**دليله** > دليل دا دې.چه دقاضي فعل به خاوندته منسوب كولې شي.لكه چه خاوند ورته په خپله طلاق وركړې دې.

| وَلَهَا كَمَالُ الْمَهْرِ اود ښځې دپاره به ددې پوره مهر واجب وى إِنْ كَانَ قَدْ خَلَا بِهَا كه خاوند ددې سره خلوت كړې وى |
|---|

**تشريح** > كه دې نامرده سړى دښځې سره خلوت كړې وى.نودده دښځې دپاره پوره مهرواجب دې.

**دليله** > دليل دا دې.چه نامرده سړى خلوت صحيح كړې وى.نوچه ښځې د آله د وجود سره مبدل (بضع) ورته اوسپارله.نوپه خاوند باندې دهغې بدل (مهر) واجب شو.

اوكه خلوت ئې نه وى كړې.نونيم مهرواجب دې.اوچونكه دامام شافعي رحمه الله په نيزد قاضي دا تفريق فسخ دنكاح ده.نوځكه د ښځې دپاره نه مهرشته.اونه نفقه.

## دخاوند د مقطوع الذكرپه صورت كښې سمدستي تفريق كول

| وَإِنْ كَانَ مَجْبُوبًا اوكه خاوند مقطوع الذكر وى فُرِّقَ بَيْنَهُمَا فِي الْحَالِ نو په دواړوكښې به فى الحال ( فوراً) تفريق كولې شي وَلَمْ يُؤَجِّلْهُ اوهغه ته به مهلت نه شي وركولې |
|---|

**تشريح** > مسئله كه خاوند مقطوع الذكروى.نوقاضي به فى الحال د دواړو په مينځ كښې تفريق اوكړى.خوپه دې شرط چه ښځه دتفريق مطالبه كوى.

**دليله** > ځكه چه د مقطوع الذكرنه د وطى كول ممكن نه دى.نوځكه ده ته په مهلت وركولوكښې څه فائده نشته.

| وَالْخَصِيُّ يُؤَجَّلُ او خصى ته به هم مهلت وركولې شي. كَمَا يُؤَجَّلُ الْعِنِّينُ لكه څنګه چه عنين ته وركولې شي |
|---|

**حل اللغة** > ① **خصي**: چه هګۍ ترې ويستلې شوې وى

**تشريح** > آخته (چه اګۍ ئې وتلې شوى وى) ته به هم مهلت وركولې شي.لكه څنګه چه نامرده ته وركولې شي.

**دليله** > ځكه چه دده نه هم دوطى كولواميد كيدې شي.يعنى آله تناسل موجود ده.كيدې شي.چه په څه

[1] **مسلك الشافعي**:- امام شافعي رحمه الله فرماني.چه دا فرقت فسخ دنكاح ده.

وخت کښې په کښې د وطی کولو طاقت پیدا شي.

**کله ښځه مسلمانه شي اوخاوند په کفرپاتې شي**

| وَإِذَا أَسْلَمَتِ الْمَرْأَةُ وَزَوْجُهَا كَافِرٌ او هر کله چه ښځه مسلمانه شوه او خاوند ئې کافر وه عُرِضَ عَلَيْهِ الْقَاضِي الْإِسْلَامَ فَإِنْ أَسْلَمَ فَهِيَ امْرَأَتُهُ نو قاضي به ورته اسلام وړاندې کړي که هغه اسلام راوړو نو دغه ئې ښځه ده وَإِنْ أَبَى عَنِ الاسلام فَرَّقَ الْقَاضِي بَيْنَهُمَا او که انکارئې و کړو د اسلام قبلولو نه نو قاضي به دواړه جدا کړي |
|---|

**تشريح** ﴿ صورت د مسئلې دادې.چه ښځه مسلمانه شوه.او ددې خاوند کافر دې.که کتابي وی.او که غیرکتابي وی.نو اوس به قاضي په خاوند باندې اسلام پیش کوی.که د قاضي په اسلام پیش کولو باندې خاوند مسلمان شو.نو دا ښځه دده ښځه ده.او نکاح به هم هغه شان قائمه وی.او که خاوند د اسلام راوړلونه انکار اوکړو.نو قاضي به په دواړوکښې تفریق کوی.

**دليله** ﴿ په خاوند باندې د اسلام پیش کولو وجه دا ده چې د مسلمان نکاح د کافر سره جائز نه ده.د دې وجې دا دواړه په نکاح کښې نشي پاتې کیدې.

| وَكَانَ ذَلِكَ طَلَاقًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله او وی به دا طلاق په نزد دَ طرفینو رحمهما الله |
|---|

**تشريح** ﴿ دا تفریق د طرفینو په نیز د طلاق بائن په درجه کښې دې

**دليلهما** ﴿ د خاوند دایمان نه راوړو په وجه تفریق رالو.او د خاوند د رفـه تفریق د طلاق پـه درجه کښې دې.نو د دې وجې تفریق به د طلاق بائن په درجه کښې وی.

| وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ هُوَ الْفُرْقَةُ بِغَيْرِ طَلَاقٍ اوامام ابویوسف رحمه الله وائي چه دا ئې جدائي شوه بغیرد طلاق نه |
|---|

**تشريح** ﴿ **مسلک ابي يوسف** ﴿ او د امام ابویوسف په نیز د فرقت او فسخ په درجه کښې دې.

**دليله** ﴿ په دې تفریق کښې ښځه خاوند دواړه شریک دی.نودا طلاق نشو بلکه د نکاح فسخ ده.صحیح قول د طرفینو دې.

| وَإِنْ أَسْلَمَ الزَّوْجُ وَتَحْتَهُ مَجُوسِيَّةٌ او که اسلام راوړو خاوند او ښځه ئې مجوسی وه عَرَضَ عَلَيْهَا الْقَاضِي الْإِسْلَامَ فَإِنْ أَسْلَمَتْ پیش به کړي قاضي په دې باندې اسلام که مسلمانه شوه فَهِيَ امْرَأَتُهُ نو وی به د ده ښځه وَإِنْ أَبَتْ فَرَّقَ الْقَاضِي بَيْنَهُمَا او که انکار يې او کړو جدائي به راولی قاضي دَ دوی به مینځ کښې وَلَمْ تَكُنِ الْفُرْقَةُ طَلَاقًا ()او دا فراقت به طلاق نه وی دَ دوی په مینځ کښې |
|---|

**تشريح** ﴿ دویم صورت دادې.چه خاوند مسلمان شو.او دده په نکاح کښې مجوسیه ده.نو قاضي به په مجوسیه ښځه باندې اسلام پیش کوی.که دې اسلام راوړلو.نودا دده ښځه ده.نکاح به هم هغه شان باقي وی.او که د اسلام راوړلو نه ئې انکار اوکړلو.نو قاضي به په دواړوکښې تفریق کوی.اودا فرقت به طلاق نه وی.بلکه فسخ د نکاح به وی. اودا تفریق د طرفینو رحمهما الله په نیز طلاق دې.فسخ نه ده.

**دليلهما** ﴿ د طرفینو رحمهما الله دلیل اوپه دواړو صورتونوکښې وجه د فرق داده.چه د ،اباء عن الاسلام، په وجه خاوند د امساک بالمعروف نه منع شو.حالانکه په اسلام قبلولوسره دې په امساک بالمعروف باندې

[1] ) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في الخانية (٢\٢٦٨) ومجمع الأنهر(١\٣٧١) والدرالمختار (٢\٤٢٣) الهندية (١\٣٣٨) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٩٨)-

قادر وو.اود شریعت اصول دی.که خاوند د امساك بالمعروف نه منع شي.نو قاضي به ،تسريح بالاحسان،کښې دخاوند قائم مقام وي.او تسریح نوم دې.د طلاق.نود قاضي دا تفریق به طلاق وي.لکه څنګه چه د ،مقطوع الذكر،اود ،عنين، په صورت کښې د ښځې په مطالبه باندې قاضي تفريق کوي.اودا تفريق طلاق وي.دغه شان دلته کښې د سړي د طرفه تفریق طلاق دی.

**مسلك ابي يوسف** امام ابویوسف‌رحمه‌الله فرمائي.چه په دوارو صورتونوکښې به تفريق طلاق نه وي.(برابره خبره ده.که خاوند د اسلام راوړلو نه انکار اوکړي.او که ښځه انکار اوکړي)بلکه فسخ د نکاح به وي.

ددې تفريق به فسخ منلوکښې فائده داده.چه د تفریق نه پس به هم په شمير د طلاق کښې کمې نه راځي. تردې که د آخر د مسلمانيدلو نه پس ئې په دويم خلې نکاح اوکړله.نو خاوند به د درې طلاقو مالك وي.او دچا په نيز چه فرقت طلاق دې.د هغوي په نيز د دويم خلې نكاح نه پس به د دوه طلاقونو مالك وي.د فرقت په وجه سره به يوكم شي.

**دليله** څکه چه دوي فرمائيلي وو.چه تفريق په دواړه صورتونوكښې طلاق نه دې.بکله فسخ ده.د امام ابويوسف‌رحمه‌الله د قول وجه داده.چه فرقت په داسې سبب سره واقع شو.چه په هغې کښې زوجين دواړه شريك دي.يعني په دې دواړوکښې د هريو دطرفه متحقق دې.مطلب داچه يومسلمان شو.اوبل د اسلام راوړلو نه انکار اوكړلو.نو هله فرقت واقع شو.اوهر هغه فرقت چه په داسې سبب سره وو.چه په هغې کښې ښځه اوسړې دواړه شريك وي.طلاق نه وي.مثلاً ،احد الزوجين، د بل مالك شو.نو په دې وجه چه کوم فرقت وي.هغه به طلاق نه وي.بلکه فسخ د نکاح به وي.

| فَإِنْ كَانَ قَدْ دَخَلَ بِهَا فَلَهَا كَمَالُ الْمَهْرِ که چرې دخول ئې ورسره کړې وو نو ښځې لره به کامل مهر وي |
|---|

**تشريح** د ښځې د اسلام راوړلو نه د انکار کولو په وجه چه هرکله قاضي تفريق اوکړو. نو که دخول ئې کړې وو.نود ښځې دپاره به پوره مهرواجب وي.

**دليله** څکه چه د دخول په وجه مهرموکد شو.

| وَإِنْ لَمْ يَكُنْ دَخَلَ بِهَا او که دخول ئې ورسره نه وه کړې فَلَا مَهْرَ لَهَا او که دخول ئې نه وي کړې.نود ښځې دپاره به مهر نه وي. |
|---|

**تشريح، دليله** څکه چه فرقت د ښځې د طرفه واقع شو.اوعدم دخول په وجه مهرموکد شوې هم نه دې.نودا د ردت او،مطاوعت ابن زوج، مشابه شو.يعني ښځه مرتده شوه ..،العياذ بالله، يائې د خپل خاوند خوي ته پخپل خان باندې قدرت ورکړلو.نوکه دا ،بعد الدخول، وي.نود ښځې دپاره به کامل مهروي.څکه چه د دخول په وجه مهرموکد شوې دې.او که قبل الدخول وي.نوددې دپاره به مهرنه وي.والله اعلم

### هغه په دارحرب کښې ښځه مسلمانه شي.اوخاوند كافر وي

| وَإِذَا أَسْلَمَتِ الْمَرْأَةُ فِي دَارِ الْحَرْبِ او هر کله چه اسلام راوړو ښځې په دار الحرب کښې لَمْ تَقَعِ الْفُرْقَةُ عَلَيْهَا حَتَّى تَحِيضَ ثَلَاثَ حِيَضٍ نو فرقت نه واقع کيږي په دې باندې تر دې چه درې حيضونه ئې راشي فَإِذَا حَاضَتْ بَانَتْ مِنْ زَوْجِهَا بيا چې کله حائضه شي نو د خپل خاوند نه بائنه شي |
|---|

**تشريح** صورت د مسئلې دادې.چه په دارحرب کښې يوه ښځه مسلمانه شوه.اوددې خاوند کافردې.اودده په نكاح کښې مجوسيه ښځه ده.نو دزوجينو په مينځ کښې تفريق نشي کولې.تردې پورې چه دا ښځه درې حيضه تيرکړي.او که د ذوات الحيض څنې نه وي.نوچه درې مياشتې تيرې

کړی.بیا د درې حیضه یا درې میاشتې تیرېدلو نه پس به فرقت واقع شي.اودا ښځه به دځپل خاوند نه بائنه شي.داخبره په ذهن کښې ساتئ،چه دفرقت واقع کیدلونه پس دې بیادعدت دپاره نوردرې حیضه یادرې میاشتې تیرې کړی.(عینی شرح هدایه)

**دلیله** اسلام راوړل د فرقت سبب نشي کیدلې.لکه څنګه چه په مخکښې مسئله کښې معلومه شوه.اوچونکه په دارحرب کښې مسلمانانو ته ولایت هم حاصل نه دې.په دې وجه په دارحرب کښې کافر باندې اسلام پیش کول هم محال دی.اود فساد لرې کولودپاره فرقت کیدل هم ضروری دی.(فساد دادې.چه مسلمانه دکافر په نکاح کښې وی)نوهرکله چه د فرقت سبب،یعنی اباء عن الاسلام مقدر منل متعذر شو.نوموږ د فرقت شرط(یعنی درې حیضه تیرېدل،که د ذوات الحیض څخې وی.یا درې میاشتې تیرېدل،که د ذوات الحیض څخې نه وی)د فرقت د سبب قائم مقام جوړ کړلو.

**نظیره** لکه دکوهی په کنستلوکښې.صورت دادې.چه یوسړی په عامه لاره کښې ،یاد غیر په ملك کښې کوهې اوکنستلو.بیا په دې کښې سړې یا څاروې پریوتلو.او مړشو.نو کنستونکې ضامن دې.څکه چه په کوهی کښې د غورزیدلو علت،د غورزیدونکې دروندوالې اوبوجهه دې.څو دروندوالې سبب نه جوړیږی.څکه چه دا امرطبعی دې.په دې کښې هیڅ تعدی نشته.اود غورزیدلو سبب مشی( تلل) دی.څو مشی سبب جوړول هم محال دی.څکه چه په لاره کښې تلل مباح دی.نود غورزیدلو شرط(کوهې کنستل) به دسبب قائم مقام جوړولې شي.اوصاحب شرط، یعنی کوهې کنستونکې به ضامن ګرځولې شي.دغه شان دلته کښې هم د فرقت شرط د فرقت دسبب قائم مقام دې.

| وَإِذَاأَسْلَمَ زَوْجُ الْكِتَابِيَّةِ هر کله چه دَ کتابیه خاوند اسلام راوړو فَهُمَاعَلَى نِكَاحِهِمَا نو دغه دواړه به پخپل نکاح وی |
|---|

**تشریح** اوکه دکتابیه خاوندمسلمان شو.نودا دواړه به په خپله زړه نکاح باندې باقی پاتې وی.

**دلیله** څکه چه د مسلمان سړی اودکتابیه ښځې په مینځ کښې ابتداءً نکاح صحیح ده.نو بقاء به په درجه اولی صحیح وی.څکه چه بقاء د ابتداء نه آسانه ده.

## په زوجینوکښې د یوکس یا د دواړو د ګرفتارئ په صورت کښې دجدائی حکم

| وَإِذَا خَرَجَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ إِلَيْنَا مِنْ دَارِ الْحَرْبِ مُسْلِمًا هر کله چه یو دَ زوجینو دَ دارالحرب زموږطرف ته رااوځی مسلمان شوی وَقَعَتِ الْبَيْنُونَةُ بَيْنَهُمَا نو په دوی کښې بینونت واقع شو |
|---|

**تشریح** په دې عبارت کښې د مسئلې یو صورت بیان شوې دې
که ،احد الزوجین،مسلمان شو.اود دارحرب نه داراسلام ته راغلو.نو په دې دواړوکښې بینونت واقع شي. ([1])

| وَلَوْسُبِيَ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ اوکه ګر فتار کړې شو یو دَ زوجینو نه وَقَعَتِ الْبَيْنُونَةُ بَيْنَهُمَا نو په دوی کښې به بینونت واقع شي |
|---|

**تشریح** په دې عبارت کښې دویم صورت بیان شوې دې . چه ،احد الزوجین، ګرفتار کړې شو.نو په دې صورت کښې به بالاتفاق بینونت واقع شي.

| وَإِنْ سُبِيَامَعًا او که دواړه یو ځائ ګرفتار کړې شو لَمْ تَقَعْ نو بینونت به واقع نه وی |
|---|

**تشریح** دریم صورت دادې.چه زوجین دواړه ګرفتار کړې شو.نو په دې صورت کښې بینونت نه واقع

---

[1] د امام شافعی رحمه الله په نیز په دې صورت کښې بینونت نه واقع کیږی.

کیږي. (1) حاصل د کلام دادې.چه د بینونت سبب زمونږ په نیز د زوجینو په مینځ کښې حقیقتاً اوحکماً تباین دارین دې.گرفتاری نه ده. (2)

**دلیله** دلیل دادې.چه تباین د دارینو حقیقتاً اوحکماً د مصلحتونو د انتظام منافی دې.اوکوم څیز چه د مصلحتونو د انتظام منافی وی.هغه نکاح قطع کوی.لکه محرمیت شو.نو تباین د دارینو به نکاح قطع کوی.حقیقتاً تباین د دارینو دادې.چه په دې دواړوکښې شخصي تباعد اوموندې شي.یعني یو په دارحرب کښې وی.او بل په داراسلام کښې وی.اود تباین حکمی نه مراد دادې.چه کوم کور ته یوکس داخل شي. دهغې نه ئې د واپس کیدلو اراده نه وی.بلکه د اوسیدلو او ایساریدلو اراده ئې وی.تر دې پورې د مذهب اثبات دې.

## د مهاجرې ښځې داراسلام ته په راتللونکاح کول

| وَإِذَا خَرَجَتِ الْمَرْأَةُ إِلَيْنَا مُهَاجِرَةً هر کله چه راأووتله ښځه زمونږ طرف ته هجرت کوونکې جَازَ لَهَا أَنْ تَتَزَوَّجَ فِي الْحَالِ نو جائزدی د هغې دپاره في الحال چه هغه نکاح او کړی فَلَا عِدَّةَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (3) او په دې عدت نشته په نزد دَ امام ابوحنیفه رحمه الله |
|---|

**تشریح** صورت د مسئلې دادې.چه یوې ښځې د دارحرب نه داراسلام طرف ته هجرت اوکړو.او راغله.برابره خبره ده.چه دا ښځه مسلمانه وی.اوکه ذمیه وی.اود واپس کیدلو اراده هم نه لری.نودې مهاجرې ښځې سره د امام صاحب رحمه الله په نیزنکاح جائز ده.او په دې باندې عدت واجب نه دې.

**دلیله** دلیل دادې.چه عدت د تیرې نکاح اثر دې.چه دا د ملك نکاح د احترام ښکاره کولودپاره واجبیږي.اوحال دادې.چه د حربی سړی د نکاح د ملك هیڅ احترام نه وی.نو په دې مهاجرې باندې به هم عدت واجب نه وی.اوچونکه د حربی د ملك نکاح هیڅ احترام نه وی.په دې وجه به بالاتفاق په دې ښځه باندې عدت واجب نه وی.کومه چه گرفتاره شوې ده.

**مسلك الصاحبین** د صاحبینو رحمهما الله په نیز په دې باندې عدت واجب دې.

**دلیلهما** دلیل دادې.چه په داراسلام کښې داخلیدلو نه پس فرقت واقع شوې دې.اوهر هغه فرقت چه په داراسلام کښې واقع شي.په هغې باندې د اسلام احکام لازمیږي.اوعدت هم د اسلام د احکامو څخه دې.نو په دې مهاجرې ښځې باندې به عدت واجب وی.خوکه حربی په دارحرب کښې خپلې ښځې ته طلاق ورکړو.بیا دې ښځې داراسلام طرف ته هجرت اوکړو.نو بالاتفاق به په دې باندې عدت واجب نه وی.

| فَإِنْ كَانَتْ حَامِلًا او که دغه ښځه حامله وی لَمْ تَتَزَوَّجْ حَتَّى تَضَعَ حَمْلَهَا (4) نو نکاح به نه کوی تر دې چه حمل ئې پیداشی |
|---|

---

[1] مسلك الشافعي:- په دې دریم صورت کښې د امام شافعي رحمه الله په نیز بینونت نه واقع کیږي.

[2] د امام شافعي رحمه الله په نیز د بینونت سبب گرفتاری ده.تباین دارین نه دې.امام مالك او امام محمد رحمهما الله هم ددې قائل دی.

[3] القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١\١٦٩) وردالمحتار(٢\٤٢٥) والهندية (١\٣٣٨) وملتقى الأبحر(١\٣٧٢) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٠٠)-

[4] القول الراجح هو ظاهر الرواية كذا في فتح القدير(٣\٢٩٦) والعناية (٣\٢٩٦) وردالمحتار(٢\٤٢٥) ومجمع الأنهر(١\٣٧٢) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٠١)_

**تشریح**> **مسلک محمد**> که دامهاجره ښځه که حامله وی.نود وضع حمل نه به وراندې نکاح نه کوی.دا قول امام محمدرحمه الله د امام ابوحنیفه‌رحمه الله نه روایت کړې دې.

**دلیل الامام**> دلیل داده .چه حمل دغیر نه ثابت النسب دې.نود کوم نسب په حق کښې چه فراش ښکاره شو.نود نکاح نه د منع په حق کښې به هم احتیاطاً فراش کیدل ښکاره شی.یعنې دا مهاجره حامله د خپل کافرخاوند صحیح فراش دې.نو ددې سره وطی نشی کولې.اوچونکه احتیاطاً د نکاح نه د منع په حق کښې هم فراش کیدل ښکاره شو.نو ددې سره نکاح هم نشې کولې.

**روایة ابي یوسف**> او دویم قول چه دا امام ابویوسف‌رحمه الله اوحسن بن زیاد د امام صاحب‌رحمه الله نه روایت کړې دې.هغه دادې.چه دې مهاجرې حاملې سره نکاح درست ده.خود وضع حمل نه به وراندې وطی نه کوی..

**د ارتداد په صورت کښې د زوجین په مینځ کښې جدائی**

| وَإِذَا ارْتَدَّ أَحَدُ الزَّوْجَيْنِ عَنِ الْإِسْلَامِ او هر کله چه احد الزوجین مرتد شو (یعنې دَ اسلام نه اوګرځیدو) وَقَعَتِ الْبَيْنُونَةُ بَيْنَهُمَا نو جدا والې واقع شو په مینځ د دوارو کښې بِغَيْرِ طَلَاقٍ بغیر د طلاقه |
| --- |

**تشریح**> صورت د مسئلې دادې.که ،احد الزوجین، د اسلام نه مرتد شو ،العیاذ بالله،نو په دوارو کښې به فی الحال فرقت واقع شی.برابره خبره ده.که خاوند د ښځې سره دخول کړې وی.او که دخول ئې نه وی کړې.دا دَ امام ابوحنیفه‌رحمه الله او د ابویوسف رحمهما الله په نزد دی.[1]

**دلیل ابي یوسف**> دامام ابویوسف‌رحمه الله دلیل هغه دې.کوم چه په ،اباء عن الاسلام،کښې تیرشو.یعنی فرقت په داسې سبب سره واقع شو.چه په هغې کښې زوجین شریک دې.اوطلاق صرف د خاوند دطرفه وی.د ښځې په دې کښې څه دخل نه وی.نود ارتداد په وجه چه کوم تفریق وی.هغه به طلاق نه وی.بلکه فسخ د نکاح به وی.

**مسلک محمد**> د ردت په وجه چه کوم فرقت اوشو.د شیخینو رحمهما الله په نیز دا فرقت طلاق نه دې. بلکه فسخ ده.اود امام محمدرحمه الله په نیز که ردت د خاوند دطرفه وی.نودا فرقت به طلاق وی. کنی نه به وی.

**دلیله**> امام محمدرحمه الله مرتد کیدل،د خاوند په ،اباء عن الاسلام، باندې قیاس کوی.یعنی که ښځه مسلمانه شوه.اوخاوند د اسلام راوړلو نه انکار اوکړلو.نودا به دخاوند دطرفه طلاق وی.دغه شان د خاوند مرتد کیدل به هم د خاوند د طرفه طلاق وی.اود مقیس اومقیس علیه په مینځ کښې جامع هم دغه دې.کوم چه مونږ بیان کړلو.یعنی لکه څنګه چه خاوند د اسلام راوړلوته انکار کولو.په وجه د امساك بالمعروف نه منع شو.حالانکه دې په دې قادر وو.نو قاضی به په ،تسریح بالاحسان، کښې دده قائم مقام وی.او تفریق به کوی.اودا تفریق به طلاق وی.دغه شان د ردت په وجه خاوند د ،امساك بالمعروف، نه منع شو.نو قاضی به په ،تسریح بالاحسان،کښې دده قائم مقام وی.

**الفرق بینهما عند ابي حنیفة**> امام‌ابوحنیفه‌رحمه الله په،اباء عن الاسلام، او ارتداد کښې فرق کړې دې.څکه چه د خاوند د ،اباء عن الاسلام ، په وجه چه کوم فرقت دې.هغه ئې طلاق ګرځولې دې.اود ارتداد په وجه چه کوم فرقت دې.هغه ئې طلاق نه دې ګرځولې.په دې دوارو کښې وجه دفرق داده.چه ردت د نکاح منافی دې.څکه چه ردت د نفس اود مال د عصمت(حفاظت) منافی دې.څکه چه د مرتد ځان اومال

---

[1] القول الراجح هو قول الشیخین رحمهما الله كذا في فتح القدير(۲۹۷\۳) والكفاية (۲۹۷\۳) والدرالمختار (۴۲۵\۲) والبحرالرائق (۳۷۳\۳) والدرالمنتقی (۳۷۲\۱) نقلا عن القول الراجح (۳۰۲\۱)-

مباح دي.كه دي چا قتل كړلو.نو په قاتل به قصاص يا ديت واجب نه وي.اود مرتد ملك اونكاح باطليږي.او پاتې شو طلاق،نودا دنكاح منافي نه دې. ځكه چه طلاق د نكاح د تحقق نه پس نكاح اوچتونكې دې.هم دا وجه ده.كه خاوند د طلاق نه پس نكاح كول اوغواړي.نو نكاح كولې شي.نو حاصل داچه طلاق د نكاح منافي نه دې.او مرتد كيدل د نكاح منافي دی.نو ردت طلاق ګرځول محال دی.

| فَإِنْ كَانَ الزَّوْجُ هُوَ الْمُرْتَدَّ نو كه خاوند مر تد وو وَقَدْ دَخَلَ بِهَا او يقينا ده دخول كړې وو په هغې باندې فَلَهَا كَمَالُ الْمَهْرِ نو ښځې لره به ټول مهر وی كه دخول ئې ورسره كړې وو |
|---|

**تشريح>** كه زوج مرتد وی او ارتداد د دخول نه پس شوې وی نو په دې صورت كښې به د ښځې دپاره كامل مهر وی

**دليله>** ځكه چې د صحبت په وجه مهر مؤكد شوې دې كوم چې په هيڅ صورت كښې نشي ساقط كيدې.

| وَإِنْ لَمْ يَدْخُلْ بِهَا اوكه دخول ئې ورسره نه وو كړې فَلَهَا نِصْفُ الْمَهْرِ او كه دخول ئې نه وی كړې ورسره نو د دې دپاره نيم مهر دې |
|---|

**تشريح>** اوكه د ارتداد نه وړاندې ئې دخول نه وی كړې نو په دې صورت كښې به نيم مهر وی

**دليله>** په دې صورت كښې به ورته نيم مهر ځكه ملاويږی چې دا د فرقت د دخول نه وړاندې د طلاق سره مشابه شو.اوپه دغه صورت كښې نيم مهر دې نودغه شان به دلته هم نيم مهر وی.

| وَإِنْ كَانَتْ هِيَ الْمُرْتَدَّةُ او كه مرتده ښځه وه فَإِنْ كَانَ قَبْلَ الدُّخُولِ كه چرته د دخول نه وړاندې وی فَلَا مَهْرَ لَهَا نو د دې دپاره مهر نشته |
|---|

**تشريح>** اوكه ښځه مرتده شوې وی نوكه د ارتداد نه وړاندې دخول نه وو شوې نو دې دپاره مهر نشته.

**دليله>** هركله چې ښځه مرتده شوه نو د فرقت سبب د دې د طرفه موجود شوې دې او هغې مال هم نه دې وركړې نو ځكه به ورته نيم مهر هم نه ملاويږی.

| وَإِنْ كَانَ الرِّدَّةُ بَعْدَ الدُّخُولِ اوكه رددت د دخول نه پس وو فَلَهَا الْمَهْرُ نو د دې دپاره به ټول مهر وی |
|---|

**تشريح>** اوكه ارتداد د دخول نه پس وی نو په دې صورت كښې دې دپاره پوره مهر دې.

**دليله>** چونكه په دې صورت كښې دې مال حواله كړې دې نو ځكه به ورته پوره مهر ملاويږی.

### د زوجينو د يوځائې مرتد كيدلو نه پس بيا يوځائې مسلمانيدل

| وَإِذَا ارْتَدَّا مَعًا ثُمَّ أَسْلَمَا مَعًا او كله چه دواړه يو ځائې مرتد شو بيا دواړه يو ځائې مسلمانان شو فَهُمَا عَلَى نِكَاحِهِمَا نو دواړه پخپل نكاح دی استحساناً |
|---|

**تشريح>** زوجين يوځائې مرتد شول.بيا يوځائې مسلمانان شول.نودا دواړه به په خپله نكاح باقي پاتې وی.د نكاح د تجديد ضرورت به نه وی.دا قول استحساناً دې

**دليله>** دليل (اودا وجه د استحسان ده)حديث دې.حاصل داچه د بنوحنيفه(چه دا د مسيلمه كذاب د قوم يوه وړه شان قبيله ده)خلق د زكاة د انكار كولو په وجه مرتدشو.بيا خليفة المسلمين حضرت ابوبكرصديق رضي الله عنه دوی طرف ته د صحابه كرامو رضي الله عنهم يولښكر اوليګلو.نو دوی ټول مسلمانان شول.خوصحابو رضي الله عنهم دوی ته د نكاح د تجديد حكم ورنكړو.په دې باندې دټولوصحابو رضي الله عنهم اتفاق وو.نود صحابو رضي الله عنهم اجماع شوه.اود اجماع په وجه قياس پريخودلې شي.

**الاشکال** خو که څوك اشکال اوکړي.چه ددوی ارتداد په يو وخت نه وو.نوپه دې واقعه سره استدلال څنګه صحيح کيږي؟
**الجواب** جواب دادې.چه د تقدم او تاخر په باره کښې تاريخ مجهول شو.نوهم دا به ونيلې شي.چه په يو وخت کښې مرتد شوي وو.

## د مرتد مسلماني يا کافري سره نکاح کول

| وَلَايَجُوْزُاَنْ يَتَزَوَّجَ الْمُرْتَدُّمُسْلِمَةً وَلَامُرْتَدَّةً وَلَاکَافِرَةً او جائز نه دي دا چه نکاح او کړي مرتد دَ مسلمانې سره او نه دَ مرتدې سره او نه دَ کافرې سره |
|---|

**تشريح** صورت د مسئلې دادې.چه دمرتد دپاره اجازت نشته.چه دې مسلمانې ښځې، ياکافرې ښځې، يا مرتده ښځې سره نکاح اوکړي.
**دليله** دليل دادې.چه مرتد د نفس ردت په وجه واجب القتل دې. ځکه چه د نبی کريم ﷺ قول دې.[من بدل دينه فاقتلوه] يعنی کوم کس چه خپل دين بدل کړلو.دا قتل کړئ.

| وَکَذٰلِكَ الْمُرْتَدَّةُ لَايَتَزَوَّجُهَا مُسْلِمٌ وَلَاکَافِرٌ ولامرتد دَغه شان دَ مرتدې سره به نه مسلمان نکاح کوی او نه کافراونه مرتد |
|---|

**تشريح** اودغه شان مرتده سره به نه مسلمان نکاح کوی.نه کافراو نه مرتد.
**دلائله** ① دليل دادې.چه مرتده محبوس کولې شي.چه داغور اوفکر اوکړي.اوخپل شبهات لرې کړي.اود خاوند خدمت به دا دغور اوفکر نه غافله کړي.په دې وجه ددې په حق کښې نکاح مشروع نه کړې شوه.
② دويم دليل دادې.چه د نکاح مصالح ددوی دواړو په مينځ کښې نه حاصليږي.اونکاح لذاته نه ده مشروع شوې.بلکه د نکاح د مصلحتونو دپاره مشروع شوې ده.د نکاح مصلحتونه مثلاً سکنی، ازدواج، توالد اوتناسل وغيره.

## په ښځه خاوند کښې که يوکس مسلمان وي.نود بچي د دين حکم

| واذاکَانَ اَحَدُالزَّوْجَيْنِ مُسْلِمًا هرکله چې که يو په زوجينو کښې مسلمان وی فَالْوَلَدُعَلٰی دِيْنِهٖ نو بچې دَ ده په دين وی وَکَذٰلِكَ اِنْ اَسْلَمَ اَحَدُهُمَا او دارنګ که په دوی کښې يو مسلمان شو وَلَهُ وَلَدٌصَغِيْرٌ او دده ورکې بچې وو صَارَوَلَدُهٗ مُسْلِمًا بِاِسْلَامِهٖ نو بچې به دَ ده اسلام په وجه سره مسلمان وی |
|---|

**تشريح** صورت د مسئلې دادې.که ،احد الزوجين،مسلمان وي.نو بچې به په دين اسلام باندې وي.په دې باندې د ائمه اربعه ﷺ اجماع ده.ددې صورت دادې.چه زوجين کافران دی.بيا ښځه مسلمانه شوه.يا سړې مسلمان شو.ددې نه پس په آخر باندې د اسلام پيش کولونه وړاندې بچې پيدا شو.نو اوس به داماشوم په دين کښې د مسلمان تابع وي.په دې شرط چه ماشوم او په،احد الزوجين، کښې چه کوم يوکس مسلمان دې.دواړه په يوکور کښې وي.اوکه په کورونوکښې تباين وي.په دې طريقه چه مسلمان پلار په داراسلام کښې وي.او بچې په دارحرب کښې وي.يا ددې په عکس وي.نو بچې به د خپل پلار د اسلام په وجه مسلمان نشي شمارلې.دويم صورت دادې.چه احد الزوجين مسلمانان شو.او دده يوصغير بچې دې.نودا بچې به د احدالزوجين د اسلام په وجه مسلمان وي.
**دليله** دليل دادې.چه دا ماشوم د مسلمان تابع جوړولوکښې په ده باندې شفقت دې.په دنياکښې هم، او په آخرت کښې هم.په دنياکښې خودا چه دده سره به دکافرانو پشان سلوك نشي کولې.اود مرګ نه

پس به د مسلمانانو په قبرستان کښې دفن کولې شي.او په آخرت کښې داچه د جهنم د عذاب نه به نجات بيا مومي.

وَلَوْ كَانَ أَحَدُ الابوين كِتَابِيًّا وَالْآخَرُ مَجُوسِيًّا او که په دوی کښې يو کتابی وو او بل مجوسی وو فَالْوَلَدُ كِتَابِيٌّ نو بچې کتابی دې

**تشريح>** او که په زوجينوکښې يوکس کتابی او بل کس مجوسی يا بت پرست وی.نو بچې به د کتابی تابع وی.تردې چه دده ذبيحه به حلال وی.اود مسلمان سره به دده نکاح جائز وی. [1]

**دليله>** دليل دادې.چه بچې د کتابی په تابع جوړولوکښې هم په بچی باندې يوقسم شفقت دې.خکه چه مجوسی کيدل،د کتابی کيدلو نه زيات بدتر دی.لکه چه په دنياکښې د کتابی ذبيحه حلاله ده.اود کتابيه سره د مسلمان نکاح درست ده.اوپه آخرت کښې به د اهل کتابو عذاب دمجوسو نه کم وی.

**د متن تعريف**

وَإِذَا تَزَوَّجَ الْكَافِرُ بِغَيْرِ شُهُودٍ او هر کله چه نکاح او کړه کافر دَ گواهانو نه په غير أَوْفِي عِدَّةِ كَافِرٍ يا دَ کافر په عدت کښې وَذَلِكَ فِي دِينِهِمْ جَائِزٌ او دا دَ دوی په دين کښې جائز وه ثُمَّ أَسْلَمَا بيا دواړه مسلمانان شول أُقِرَّا عَلَيْهِ نو په دغې نکاح به ساتلې شي

**تشريح>** يوکافر د کافرې ښځې سره بغير د گواهانو نه نکاح اوکړله.يا د يوکافر په عدت کښې وه.دهغې سره ئې نکاح اوکړله.اودا ددوی په دين کښې جائز هم دی.بيا دواړه مسلمانان شو.نوپه دې باره کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دادې.چه دواړه به په تيرشوی مذهب باندې باقي ساتلې شي. [2]

**دليله>** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه دحرمت په وجه به حرمت د نکاح د شارع د حق په اعتبار سره ثابتيږي. يا به د ښځې حق په اعتبارسره.اودا دواړه صورتونه ممکن نه دی.د شارع حق جوړول، او ثابتول خوځکه ممکن نه دی.چه کافران د شرع د حقوقومخاطب نه دی.اود خاوند حق جوړول،او عدت واجبول خکه ممکن نه دی.چه خاوند دعدت د وجوب اعتقاد نه لري.

**مسلک الصاحبين>** صاحبين رحمهما الله فرمائی.چه په رومبی صورت يعنی بغير د گواهانو نه د نکاح په صورت کښې هغه حکم دې.کوم چه امام صاحب رحمه الله فرمائيلې دې.اوپه دويم صورت کښې يعنی د کافرې معتدة سره نکاح کولو په صورت کښې هغه حکم دې.کوم چه امام زفر رحمه الله فرمائيلې دی.

**دليلهما>** د صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه د معتق الغير د نکاح حرمت متفق عليه دې.اوحرمت د نکاح ،بغير شهود،مختلف فيه دې.خکه چه امام مالك او ابن ابی ليلی د نکاح بغيرشهود د جواز قائل دی.اوکافرانو ذميانو زمونږ د متفق عليه احکامو التزام کړې دې.خود مختلف فيه احکامو التزام ئې

---

[1] **مسلک الشافعي:-** حضرت امام شافعي رحمه الله بچې د کتابی په تابع جوړولوکښې زمونږ مخالف دې.که پلار کتابی وی.اومور مجوسيه وی.نود امام شافعي رحمه الله اصح قول دادې.چه بچې به مجوسی وی.امام محمد رحمه الله هم ددې قائل دې.او دويم قول دادې.چه بچې به د پلار تابع وی.او کتابی به وی.امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.اوکه مور کتابيه وی.او پلار مجوسی وی.نود امام شافعي رحمه الله صرف يو قول دې.چه بچې به د پلار تابع وی.او مجوسی به وی.نه به دده ذبيحه حلاله وی.او نه به دده سره د مسلمان نکاح درست وی.

[2] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في رد المحتار(٢\١٩٤) والهندية (١\٣٣٧) نقلاً عن القول الراجح (١\٢٩٦)

نه دي کړي.نود معتدة الغير نكاح حرمت چونكه متفق عليه دي.په دي وجه كافران ذميان په دې حکم کښې د مسلمانانو تابع دی.اوچونکه د معتدة الغير سره د مسلمانانونکاح فاسد ده.په دې وجه دکافرانو ذميانو نكاح به هم فاسد وی.اوپه مسلمانيدلو،یا د مرافعه نه پس به واجب التفريق وی.اود نکاح بغير شهود حرمت چونکه مختلف فيه دې.په دې وجه كافران ذميان به په دې حکم کښې د مسلمانانو تابع نه وی.بلکه ددوی د مذهب مطابق به معتدة الغير سره نكاح درست وی.اود اسلام قبلولو نه پس به په هم هغه تيره شوې نكاح باندې باقی ساتلې شی.

## د مجوسی خپلې مور یالور سره د نکاح کولو نه پس ایمان راوړل

| فَإِنْ تَزَوَّجَ الْمَجُوسِيُّ أُمَّهُ أَوْ اِبْنَتَهُ نو هر کله چه مجوسی دَ خپلې موریا لور سره نکاح او کړه ثُمَّ أَسْلَمَا بیائې اسلام راوړو فُرِّقَ بَيْنَهُمَا نو په دوی کښې به تفريق کولې شی |
|---|

**تشريح**﴿ صورت د مسئلې دادې.که يو آتش پرست دخپلې مور،یا لور يا په محارم ابديه کښې نې دکومې يوې کسې سره نکاح اوکړله.بیا دواړه مسلمانان شو.نوپه دې باره کښې د امام صاحب رحمه الله قول صحيح دادې.چه دا نكاح صحيح وه.

**دليله**﴿ د امام صاحب رحمه الله دليل دادې.چه د آتش پرست محارم الابديه سره نكاح خو په اصل کښې صحيح وه.او دصحت وجه هم داده.کومه چه وړاندې تيره شوه.چه حرمت به د شريعت د حق په وجه وی.یا د خاوند د حق په وجه.د شريعت دحق په وجه خوځکه نشی كيدلې.چه كافران د شريعت د حقوقو دسره مخاطب نه دی.نوګویا خطاب ددوی په حق کښې دسره نازل شوې نه دې.ځکه چه دوی د مبلغ تكذيب کوی.اود رسول صلى الله عليه وسلم درسالت انکار کوی.او پاتې شوه داخبره چه مونږ ته په کافرانو باندې ولايت د الزام حاصل وی.نودا په دې وجه نشی کیدلې.چه ولايت د الزام يا د توری په ذريعه حاصليږی.یا د محاجه په ذريعه.اودا دواړه څيزونه د عقدذمه په وجه منقطع شو.نومونږ ته په دوی باندې ولايت د الزام نشی حاصليدلې.بهرحال د شريعت دحق په وجه حرمت نه ثابتیږی.اود خاوند د حق په وجه ځکه نشی کیدلې.چه آتش پرست خاوند دسره ددې د حرمت اعتقاد نه لری.نود حرمت د ثبوت دوه صورتونه وو.او دواړه ممکن نه دی.په دې وجه مونږ وايو.چه ابتداءً د محارم ابديه سره د آتش پرست نكاح درست ده.

**مسلک الصاحبين**﴿ اود عراق مشائخو په قول باطل وه.هم دا دصاحبينو رحمهما الله قول دې.خو په دې باندې تول متفق دی.چه دمسلمانيدلونه پس به په دواړوکښې تفريق کولې شی.

**دليلهما**﴿ دصاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه د محرمات ابديه نكاح پخپله دكافرانوپه مينځ کښې د باطليدلو حکم لری.لکه څنګه چه مونږ په معتدة الغير کښې ذکرکړی دی.يعنی په ړومبۍ مسئله کښې اووئیلی شو.چه د بل کس د معتدة نكاح حرمت متفق عليه دې.نوکافران ذميان به هم ددې التزام کونکی وی.

دغه شان د مسلمانانو اجماع ده.چه دمحارم ابديه سره نكاح باطل ده.نو ذميان به هم ددې تابع وی.البته د عقد ذمه په وجه دوی سره تعارض نشوکیدلې.خوهرکله چه دوی دواړه مسلمانان شول.نو اوس به د اسلام په حکم کښې داخل وی.او اسلام چونکه د،محارم الابديه، دنكاح منافی دې. ځکه د اسلام راوړلو په وجه به تعارض واجب وی.نو حاکم به په دواړوکښې تفريق کوی.

## د دوه ښځو په صورت کښې دعدل وجوب

| وَإِذَا كَانَ لِلرَّجُلِ امْرَأَتَانِ حُرَّتَانِ هر کله چه دَ چا په نکاح کښې دوه ښځې وی ازادې فَعَلَيْهِ أَنْ يَعْدِلَ بَيْنَهُمَا فِي الْقَسْمِ بِكْرَيْنِ كَانَتَا أَوْ ثَيِّبَيْنِ نو په ده واجب دی چه دَ دوی په مينځ کښې په وار |
|---|

کښې برابرې کوی .دواړه پېغلې وی یا کونډې وی اَوْاَحَدُاهُمَا بِکْرًا وَالْاُخْرٰی ثَيِّبًا او یا یوه پیغله وی او بله کونډه وی

**تشریح** صورت د مسئلې دادې.چه دیوکس دوه یا زیاتې آزادې بیبیانې وی.که دواړه باکره وی.او که دواړه ثیبه وی.یا یوه باکره وی.او بله ثیبه وی.نو په دوی کښې په انصاف سره تقسیم کول واجب دی.په دلیل کښې

**دلائله** ① د نبی کریم ﷺ ارشاد دې مَنْ كَانَتْ لَهُ امْرَأَتَانِ وَمَالَ اِلٰی اِحْدَاهُمَا فِی الْقَسْمِ جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَشِقُّهُ مَائِلٌ(١)چه دَ نبی کریم ﷺ ارشاد دې دَ چا چه دوه ښځې وی او هغه په دوی کښې یوې طرف ته مائل شی نو دَ قیامت په ورځ به په داسې حال کښې راځی چه دَ دهٔ نیمه حصه به مفلوجه وی

② د حضرت عائشې ﷺ نه روایت دې أَنَّ النَّبِیَّ عَلَيْهِ الصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ كَانَ يَعْدِلُ فِی الْقَسْمِ بَيْنَ نِسَائِهٖ(٢)دَ حضرت عائشې ﷺ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ به دَ خپلو بیبیانو په مینځ کښې په واړ کښې برابرې کولو

③ اونبی کریم ﷺ به خپلو دعاګانو کښې فرمائيل وَكَانَ يَقُولُ:اَللّٰهُمَّ هٰذَا قَسْمِی فِيمَا أَمْلِكُ: فَلَا تُؤَاخِذْنِی فِيمَا لَا أَمْلِكُ(٣)او فرمائيل به ئې یا الله داخما تقسیم دې په هغې کار کښې چه زهٔ به ئې مالك یم نو خما مؤاخذه مه کوې په هغې کښې چه زهٔ ئې مالك نه یم

**الاستدلال** دا احادیث مطلق دی په دې کښې د باکره او ثیبه څه فرق نشته.

### په آزاده او وینځه ښځه کښې تقسیم

وَإِنْ كَانَتْ إِحْدَاهُمَا حُرَّةً وَالْاُخْرٰی أَمَةً اوکه یوه په دغو کښې آزاده وه او بله وینځه وه فَلِلْحُرَّةِ الثُّلُثَانِ نودَ آزادې دَ پاره به دوه ثلثه وی دَ وارنه وَلِلْأَمَةِ الثُّلُثُ او دَ وینځې دَ پاره یو ثلث

**تشریح** که د یوکس په نکاح کښې یوه آزاده ښځه وی.او یوه وینځه وی.نو په تقسیم کښې به په دریوکښې دوه حصې د آزادې وی.او یوه حصه به د وینځې وی.

**دلائله** ① علامه ابن الهمام ﷫ په فتح القدیر کښې لیکلی دی. چه هم دا فیصله صدیق اکبر اوحضرت علی ﷺ کړې ده.(٣)

② دلیل عقلی دادې.چه د وینځې حلت د آزادې ښځې د حلت نه کم وی.نو په حقوقوکښې هم نقصان ښکاره کول ضروری دی.

---

٢٥) من حديث أبي هريرة ﷺ اخرجه أبوداود في النكاح باب ٣٨ رقم ٢١٣٣ والترمذی في النكاح باب ٤١ رقم ١١٤١)_

[١] ) من حديث أبي هريرة رضی الله تعالى عنه اخرجه أبوداود فی النكاح باب ٣٨ رقم ٢١٣ والترمذی فی النكاح باب ٤١ رقم ١١٤١)

٢٦) اخرجه أبوداود في النكاح باب ٣٨ رقم ٢١٣٤ والترمذی في النكاح باب ٤١ رقم ١١٤٠ والنسائی في عشرة النساء باب ميل الرجل إلى بعض نسائه دون بعض)

[٤] ) عن علی ﷺ اخرجه ابن أبي شيبة وعبدالرزاق فی مصنفيهما والدارقطنی ثم البيهقی فی سننهما ( نصب الراية ٣ / ٢٨٣ ) .

## د سفر په صورت کښې په ښځو کښې دقرعه اندازئ استحباب

وَلَا حَقَّ لَهُنَّ فِي الْقَسْمِ فِي حَالَةِ السَّفَرِ او هيڅ حق نشته ښځو لره دَ وار په سفر کښې يُسَافِرُ الزَّوْجُ بِمَنْ شَاءَ مِنْهُنَّ نو خاوند به سفر کوی په دوی کښې دَ چا سره چه غواړی وَالْأَوْلَى أَنْ يَقْرَعَ بَيْنَهُنَّ او غوره دا ده چه خسنړی ورته اوکړی فَيُسَافِرُ بِمَنْ خَرَجَتْ قُرْعَتُهَا نو سفر دې کوی دَ هغې سره دَ کومې چه خسنړې او خيژی

**تشريح>** مسئله داده.که ديوکس ګڼړې بيبيانې وی.نود سفر په حالت کښې ددوی دپاره په تقسيم کښې هيڅ حق نشته.په دوی کښې چه د کومې سره غواړی.سفر کولې شی.غوره داده.چه په دوی کښې قرعه اندازی اوکړی.چه دکوم يوکس د نوم قرعه راوځی.هغې سره دې سفر اوکړی..([1])

**الاشکال>** په حديث کښې خو راځی چې نبی کريم ﷺ خو به د سفر په موقع قرعه اندازی کوله چې د چا نوم به په کښې راوختلو نو هغه به ئې ځان سره بوتله ([2])

**الجواب>** نبی کريم ﷺ چې کومه خسنړه اچوله هغه صرف ددوی د زړه خوشحالولو دپاره وو.نودا قرعه اندازی به استحباباً وی.وجوباً به نه وی.دويمه خبره داده.چه په نبی کريم ﷺ باندې قسم(نمبر مقررکول) دسره واجب نه وو.لکه چه د الله تعالی ارشاد دې. [تُرْجِي مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِي إِلَيْكَ مَنْ تَشَاءُ]يعنی په دوی کښې چه تاسو(ﷺ) خوك غواړئ.د ځان نه ئې جدا ساتئ.او خوك چه غواړې.نيزدې ئې ساته.(بيان القرآن) ددې آيت نه معلوميږی.چه نبی کريم ﷺ د قسم(نمبر) پابند نه وو.حافظ عبد العظيم منذری ذکر کړی دی.چه نبی کريم ﷺ سوده، جويريه، ام حبيبه، صفيه،او ميمونه ﷺ جدا اوساتلې.او عائشه ﷺ او نورې بيبيانې ئې نيزدې اوساتلې.نو هرکله چه په نبی کريم ﷺ باندې قسم د سره واجب نه دې.نو قرعه اندازی به څنګه واجب وی.

وَإِذَا رَضِيَتْ إِحْدَى الزَّوْجَاتِ بِتَرْكِ قَسْمِهَا لِصَاحِبَتِهَا جَازَ اوکه راضی شوه يوه بی بی په ښځو کښې په پريخودو دَ خپل وار خپلې بنې ته نو دا جائز دی

**تشريح>** که په منکوحاتوکښې يوې کسې خپل نمبر خپلې يوې بنې ته ورکړو.نودا شرعاً جائز دی.

**دليله>** دليل دادې.چه د حضرت سوده ﷺ نه روايت دې.چه رسول الله ﷺ سوده بنت زمعه ته طلاق ورکړو.هرکله چه نبی کريم ﷺ د مونځ دپاره اووتلو.نوحضرت سوده ﷺ ددوی ﷺ کپړه اونيوله.او وې ونيل.چه په خدائې ماته د سړو هيڅ حاجت نشته.خو زما مراد دادې.چه زما حشر ستا په بيبيانوکښې وی.او درخواست ئې اوکړو.چه ای د الله رسوله ﷺ ا تاسو سوده ﷺ ته رجعت اوکړئ.او سوده ﷺ به د خپل نمبر ورځ د عائشه ﷺ دپاره مقرر کړی.

وَلَهَا أَنْ تَرْجِعَ فِي ذَٰلِكَ او دې بی بی ته دا اختيار دې چه خپل وار کښې رجوع او کړی

---

[1] ) **مسلك الشافعي:**- دامام شافعیؒ مذهب دادې.چه قرعه اندازی کول واجب دی.تردې که بغير د قرعه اندازئ ئې د يوې کسې سره سفر اوکړو.نود سفر دا موده به محبوسه وی.يعنی هم دومره موده به د هغه ښځې سره قيام کوی.چه د هغې سره ئې سفر نه وی کړې.

[2] ) من حديث عائشة ﷺاخرجه البخاري في الهبة باب ۱۵ ومسلم في فضائل الصحابة رقم ۸۸ وابوداود في النكاح باب ۳۸ رقم ۲۱۳۸ وابن ماجه في النكاح باب ٤۷ والأحكام باب ۲۰ والدارمي في الجهاد باب ۳۰ واحمد في المسند ( ٦ / ۱۱٤

**تشریح>** کومې ښځې چه د خپل نمبر ورځ خپلې بنې ته ورکړه.هغې لـه دا جائز دی.چه خپل حق واپس واخلي.

**دليله>** ځکه چه دې خپل داسې حق ساقط کړو.چه تر اوسه پورې واجب نه وو.نودا به ساقط کیږي هم نه.نودا رجوع به دخپل نمبر نه منع کول وي.د يوساقط شوي څيز واپس اخستل به نه وي.

# كِتَابُ الرَّضَاعِ

**ترجمه>** دا کتاب په بيان د رضاعت کښې دې.

**تعريف الرضاعة لغة>** رضاع بفتح الراء اصل دې.اوبکسرالراء يولغت دې.په فصيح لغت کښې د باب سمع نه دې.اواهل نجد وائي.چه د باب ضرب نه دې.رضاعت په لغت کښې د سينې نه پئ رولو ته وائي.

**تعريف الرضاعة شرعا>** اوپه شريعت کښې د رضيع د ښځې د سينې نه په خاص خاص وخت کښې پئ رودلوته وائي.د ښځې د سينې قيد لګولوسره د ځناورد سينې نه احتراز راغلو.اود نوکه د چيلئ وغيره پئ اوڅکي.نوپه دې سره رضاعت نه ثابتيږي.اود مخصوص وخت نه د رضاع موده مراد ده.ددې په تحديد کښې د عالمانواختلاف دې.کوم چه به انشاء الله وړاندې بيانولې شي.

**په رضاعت سره د حرمت ثبوت**

| قَلِيلُ الرَّضَاعِ وَكَثِيرُهُ إِذَا حَصَلَ فِي مُدَّةِ الرَّضَاعِ دَ رضاعت قليل او کثير هر کله چه دا حاصل شي په موده دَ رضاعت کښې تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيمُ نو تحريم به ورپورې متعلق شي |
|---|

**تشريح> قدر الرضاع الثابت للحرمة>** په مطلق پئ ورکولو يا رودلوسره حرمت رضاعت ثابتيږي.که کم وي اوکه زيات وي.خوپه دې شرط چه د رضاعت په موده کښې وي.حسن بصري ،سعيدبن المسيب،وکيع،عبدالله بن مبارك او زيات جمهورفقهاء ﷭ ددې قائلين دی. ([1])

**دليله>** دليل دالله تعالى ارشاد دې. ﴿وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي﴾ يعنى اوحرام کړې شوې دي په تاسو ستاسوميانده چاچه تاسوته پئ درکړي وي.اود نبي ﷺ حديث چه [يحرم من الرضاع مايحرم من النسب] يعنى په رضاعت هغه څه حراميږي.څه چه په نسب حراميږي.آيت اوحديث دواړه مطلق دی.د قليل اوکثيرڅه تفصيل په کښې نشته.نوپه مطلق رضاع سره به حرمت ثابتيږي.

**ثبوت الرضاعة إذا كانت في مدتها>** صاحب دهدايه ﷫ په هدايه کښې فرمائيلي.چه د رضاعت حکم به په هغه وخت کښې ثابتيږي.چه رضاعت په مودهٔ د رضاعت کښې شوې وي.ددې تفصيل به روستوراشي.

**د رضاعت په موده کښې اختلاف**

| مُدَّةُ الرَّضَاعِ ثَلَاثُونَ شَهْرًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ موده دَ رضاعت ديرش مياشتې ده دَ امام ابوحنيفه ﷫ په نزد |
|---|

**تشريح> مدة الرضاع>** دامام ابوحنيفه ﷫ په نيزمودهٔ د رضاعت دوه نيم کاله دی.

---

[1] **مسلك الشافعي:-** امام شافعي ﷫ فرمائي.چه په پنځه خله پئ رودلوسره رضاعت ثابتيږي.په دې طريقه چه ماشوم په دې کښې په هريوباندې موړشي.اوپه ظاهرروايت کښې امام احمد ﷫ هم ددې قائل دی.اودامام احمد ﷫ نه دويم روايت ددرې خله پيو څکلو منقول دې.

**دلائله** ① دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل هغه آيت دي.كوم چه صاحبينو رحمهما الله بيان كړلو.وجه د استدلال دا ده.چه الله تعالى د حمل اوفصال دواړو دپاره يوه موده ذكركړي ده.نودا موده به په دواړوكښې د هريودپاره وي.دا چه په دواړو به تقسيمولې شي.

**الإستدلال** نودغه شان په آيت كښې به هم د حمل اوفصال هريودپاره پوره ديرش ديرش مياشتې وي.دا نه چه دا موده په دوو تقسيم كړې شي. البته دومره ده.چه په دې دواړوكښې د يوې مودې (حمل كمونكې دليل موجود دې.اوهغه دليل د حضرت عائشې رضي الله عنها قول دې.چه [الولد لايبقى في بطن أمه أكثر من سنتين ولو بقدر فلكة مغزل] يعنې ماشوم د مور په خيټه كښې د دوو كالونه زيات نه پاتې كيږي.اګركه هغه د ،ودك دغټې څانې په مقدار ولې نه وي.(فتح القدير،الكفايه) نود الله تعالى دويم قول چه فصال دې.هغه به خپل ظاهر پاتې شو.اوهغه ديرش مياشتې دې.نوثابته شوه.چه د پيو وركولو موده دوه نيم كاله دي.

② دويم عقلي دليل دا دې.چه د پيو د مودې پوره كيدو نه پس د ماشوم دپاره دومره موده ضروري ده.چه دې په كښې د پيو نه علاوه دبل څيز په خوراك عادت شي.اود پيو په ځانې هغه دده د بدن د غټولوكار شروع كړي.نوامام ابوحنيفه رحمه الله دغه موده د حمل د ادنى مودې نه اخستې ده.ځكه چه دا موده د خوراك بدلونكې ده.ځكه چه د رضيع خوراك د جنين د خوراك نه جدا وي.ځكه چه د جنين خوراك هغه څه وو.كوم چه دده د مور خوراك وو.بيا د پيدا كيدو نه پس د ده خوراك خالص پيو شو.دغه شان د رضيع خوراك د فطيم د خوراك نه جدا وي.ځكه چه د رضيع خوراك صرف پيو وي.اود فطيم خوراك كله پيو اوكله نور څيزونه.حاصل دا چه د خوراك بدلول ضروري دي.اودخوراك بدلولودپاره كمه موده شپږ مياشتې دي.نوماشوم چه هم په نور خوراك بلدولې شي.دې دپاره زياتې شپږ مياشتې ضروري دي.

| وعندهما سنتان([1])او د صاحبينو رحمهما الله په نيز دوه كاله دي |
|---|

**تشريح** **مسلك الصاحبين** دصاحبينو په نيزدوه كاله دي.دا د امام شافعي امام مالك اوامام احمد رحمهم الله قول دې.

**دلائلهما** دصاحبينو رحمهما الله دليل د الله تعالى ارشاد چه ﴿وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ﴾ دې.په دې كښې د حمل اوپيو نه پريكولوموده ديرش مياشتې خودلې شوي دي.اوادنى موده د حمل شپږمياشتې ده.نود پيو وركولوموده دوه كاله پاتې شوه.لهذا د رضاعت موده دوه كاله شول.

② دويم دليل د نبي ﷺ حديث دې.چه د دوو كالونه پس رضاعت نشته.اوپه يوبل روايت كښې دي.[لا رضاع إلا في الحولين] رضاعت نشته مګرپه دوو كالوكښې.اوابن عدي رحمه الله په روايت كښې دي.چه [لايحرم من الرضاع إلا ماكان في الحولين] يعنې نه ثابتيږي.مګرپه هغه پيو وركولوچه په دووكالوودننه وي.

**الجواب عن دلائلهما** علامه مرغيناني رحمه الله د صاحبينو رحمهما الله د پيش كړي حديث نه جواب وركړي دي [لا رضاع بعد حولين] چه په دې حديث كښې د رضاعت نفي نه ده.بلكه د اجرت نفي ده.مطلب دا كه مطلقه ښځه خپل ماشوم ته پيو وركوي.نودا تر دوو كالوپورې د اجرت مستحقه ده.چه د ماشوم د پلار يعنې

---

[1] ) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في فتح القدير(۳\۳۰۹) والدرالمختار(۲\۴۳۷) ومجمع الأنهر(۱\۳۷۵) والبحرالرائق (۳\۳۸۹) نقلاً عن القول الراجح (۱\۳۰۳)-

خپل سابقه خاوند نه اجرت واخلي.اوپه اتفاق سره مطلقه د دووکالونه پس د اجرت اخستلومستحقه نه ده.اوهم په دې استحقاق اجرت باندې هغه نص محمول دې.کوم چه د حولين په قيد سره مقيد دې.يعنى ﴿وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ﴾ دليل دا دې.چه د دې نه پس الله تعالى فرمانيلى دى. ﴿فَإِنْ أَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا﴾ يعنى كه دواړه غواړي.نوپي: په خپل مينځ كښې په رضا سره پرې كولې شي.په دې آيت كښې د پيو پريكول په خپل مينځ كښې په رضا مندئ پورې تړلې دى.نوكه د دووكالونه پس د پيو وركول حرام وو.نو په خپل مينځ كښې په رضامندئ پورې به نې ولې معلق كولو.نوثابته شوه.چه په آيت كښې د رضاعت د مودې بيان نه دې.بلكه په پلاريانديې د بچي د پي وركولود استحقاق اجرت بيان دې.نود صاحبينو ﷺ دا آيت اوحديث د خپلې مدعى په تائيد كښې پيش كول صحيح نه دى.

**درضاعت د مودې نه پس د حرمت رضاعت نه ثابتيدل**

| وَإِذَا مَضَتْ مُدَّةُ الرَّضَاعِ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِالرَّضَاعِ تَحْرِيمٌ او هر كله چه دَ رضاعت موده تيره شوه نو په دې سره به تحريم متعلق نه وى |
|---|

**حل اللغة** < ① **تحريم**:حرامول]

**تشريح**> **عدم ثبوت الحرمة بعدالمدة**> مسئله دا ده.كه د رضاعت د مودې تيريدونه ماشوم ته پي: وركړى. نوپه دې رضاعت سره حرمت نه ثابتيږى.

**دلائله**> ① دليل د نبى ﷺ حديث دې. {لَا رَضَاعَ بَعْدَ الْفِصَالِ ()[1]}چه د پي: پريكولو نه پس رضاعت نشته.

② عقلى دليل دا دې.چه د رضاعت د مودې نه پس رضاعت څكه حرمت نه ثابتوى.چه د پيو په ذريعه د ماشوم لويدنه كيږى.اودا لويدنه د رضاعت په موده كښې كيږى.د رضاعت د مودې نه پس په پيو د ماشوم لويدنه نه كيږى.بلكه ددې لوندنې ذريعه نور خوراكونه وى.نوهركله چه د حرمت حكم د لويدلوپه وجه وو.اود رضاعت د مودې نه پس په پيو لويدنه نه كيږى.نود رضاعت د مودې نه پس به په رضاعت حرمت نه ثابتيږى.

**په رضاعت سره حرمت نسب**

| وَيَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ اوحراميږى په رضاعت سره هغه ټولې رشتې كومې چه حراميږى په نسب سره إِلَّا أُمَّ أُخْتِهِ مِنَ الرَّضَاعِ فَإِنَّهُ يَجُوزُ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا مگر مورد رضاعى خور چه دَ دې سره نكاح جائز دې |
|---|

**تشريح**> د رضاعت درې صورتونه دى.اولنې صورت[إلا أم أخته من الرضاع]سره بيانوى. خودا عبارت درې واړه صورتونوته شامل دې.① څكه كه د رضاعت تعلق به د اخت او ام دواړو سره وى په دې صورت كښې به مطلب دا وى.چه د رضاعى خور د رضاعى مورسره نكاح جائزده.ددې صورت به دا وى.چه خالد او زينب دواړو د هندې پي: اورودل.بيا زينت د ام سلمې پي: اورول.نواوس د خالد نكاح د ام سلمې سره كيږى.ددې باوجود چه ام سلمه د خالد د رضاعى خور زينت رضاعى مور ده②اوكه صرف داخت سره وى د دې صورت مطلب به دا وى.چه د رضاعى خور د نسبى مورسره نكاح

---

[1] – من حديث على ﷺ اخرجه الطبرانى فى معجمه الصغير ورواه البيهقى فى السنن الكبرى ( ۷ / ۵۲۴ ) .

جائزده.ددې صورت به دا وی.چه زید اود ساجدې د یوې اجنبی ښځې پې اوروول. خو زید د ساجدې د خپلې سکه مور پې نه دی رودلې.نواوس په دې صورت کښې د زید دخپلې رضاعي خور ساجدې د نسبی مور سره نکاح کیږي. ③اوکه صرف د ام سره وی. په دې صورت کښې به مطلب دا وی.چه د نسبي خور د رضاعي مورسره نکاح جائزده.ددې صورت به دا وی.چه د زید نسبي خورده.اود هغې رضاعي مور ده.خو زید د خپلې نسبي خور د رضاعي مور پې نه دی رودلې.په دې صورت کښې د زید دخپلې نسبي خور د رضاعي مورسره نکاح کیږي.

| وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَتَزَوَّجَ أُمَّ أُخْتِهِ مِنَ النَّسَبِ حال دا دی چه دَ خپلې نسبي خور دَ مورسره نکاح جائز نه دی |
|---|

**تشریح> حرمة النكاح في الصور المذكورة في النسب>** البته د هلك د نسبي خورد نسبي مورسره نکاح جائزنه ده.

**دلیله>** خکه چه دنسبي خور نسبي مورخو به یا دده هم سکه مور وی.اویا به دده میرنۍ مور وی.یعنی د دده د پلار موطوء به وی.اوکه د دواړو پلار یواو میاندې جدا وی.نوپه دې دواړو صورتونوکښې د نسبي مورسره نکاح ناجائزده.البته د رضاع په صورت کښې نکاح جائزده.اوپه دې کښې څه قباحت نشته.

### د مسئلې دویم صورت

| وَأُخْتَ ابْنِهِ مِنَ الرَّضَاعِ او دَ خپل رضاعي خوئي دَ خور سره يجوزان يتزوجها جائز دی چې نکاح اوکړي |
|---|

**تشریح> إستثناء الصورة الثانية>** دویم صورت د کوم چه د ذکرشوې قاعدې نه استثناء شوې ده.صاحب دقدوری ﷫ ددې دویم صورت بیانوی.خوپه دې دویم صورت کښې هم درې احتمالات دی.① د رضاعي خوئي رضاعي خور② د رضاعي خوئي نسبي خور③ د نسبي خوئي رضاعي خور.په دې درې واړه احتمالاتوکښې نکاح کول جائزده.په اولنی صورت کښې چه کوم درې صورتونه بیان شوی دی.چه په هغې قیاس اوشی.نوپه دې دویم صورت کښې هم هغه درې صورتونه اواحتمالات راویستل څه ګران نه دی.

| وَلَا يَجُوزُ أَنْ يتزوج أُخْتَ ابْنِهِ مِنَ النَّسَبِ او دا جائز نه دی چه نکاح اوکړي د ورور د لور سره چې د نسب نه وي |
|---|

**تشریح> عدم جوازالنكاح في الصورة المذكورة من النسب>** خوکه په دې دواړوکښې نسبي رشته وی. یعنی د نسبي خوئي د نسبي خورسره نکاح کول جائزنه ده.

**دلیله>** وجه دا ده.که دده د نسبي خوئي خورده د نطفې نه پیدا وی.نودا دده لورشوه.اود لور سره نکاح جائزنه ده.اوکه دده د نطفې نه پیدا نه وی.بلکه دخوئي صرف د مور د طرفه خور وی.نودا پرکتۍ شوه.اود پرکتۍ په مورکښې دخول اوکړې شی.نونکاح ورسره حرامیږي.هم دا صورت علامه مرغیناني ﷫ بیان کړې دې.چه کله که د خوئي د خور د مورسره وطی اوکړي.نوهغه خور په دې پلار باندې حرامه شوه.بهرحال چه څه هم وی.خوپه دې دواړو صورتونوکښې (که لور وی اوکه پرکتۍ وی) ددې نسبي خوئي دخورسره نکاح جائزنه ده.اوکه د رضاعت په باب کښې په دې دواړو صورتونوکښې یوصورت هم موجود شو.نونکاح جائزده.

## د رضاعي پلار د بنځې او د رضاعي ځوی د ښځې سره د نکاح حرمت

وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَتَزَوَّجَ امْرَأَةَ ابْنِهِ مِنَ الرَّضَاعِ او جائز نه دی چې د خپل رضاعی ځوئی د ښځې سره نکاح جائز او کړی كَمَا لَا يَجُوزُ ذٰلِكَ مِنَ النَّسَبِ لکه څنګه چې جائز نه دی دا په نسب کښې

**تشریح﴾ حرمة النكاح مع إمرأة إبنه الرضاعي﴾** د رضاعی ځوئې د ښځې سره نکاح حرامه ده.

**دلیله﴾** دلیل د نبی ﷺ حدیث دې.چه [يحرم من الرضاع ما يحرم من النسب]

## د مرضعې د لوردهغې په خاوند باندې حرمت

وَلَبَنُ الْفَحْلِ يَتَعَلَّقُ بِهِ التَّحْرِيمُ او دَ سړی دَ پیو سره متعلق کبری حرمت وَهُوَ أَنْ تُرْضِعَ الْمَرْأَةُ صَبِيَّةً او هغه دا ده چه ښځه چا بچی ته پئ ورکړی فَتَحْرُمُ هٰذِهِ الصَّبِيَّةُ عَلَى زَوْجِهَا وَعَلَى آبَائِهِ وَأَبْنَائِهِ نو حرامیږی دَ ابچې دَ مرضعې په خاوند او دَ دې په پلار انو باند او په خامنو باند وَيَصِيرُ الزَّوْجُ الَّذِي نَزَلَ لَهَا مِنْهُ اللَّبَنُ أَبًا لِلْمُرْضَعَةِ او شی به دَ غه خاوند دکوم نه چه دغه پئ راغلی دی پلار دَ پاره دَتی خوړونکی

**حل اللغة﴾** ① **الفحل**:خوان ]

**تشریح﴾ الحرمة بسبب لبن الفحل﴾** په لبن الفحل کښې اضافت د ځیزخپل سبب ته دې.ځکه چه د پیؤ سبب سړې دې.اوپه لبن فحل سره د تحریم صورت دا دې.چه مرضعې یوې ماشومې ته پئ ورکړل.نود دغه مرضعې په خاوند باندې دا ماشومه حرامه شوه.اودهغې ددې خاوند په پلار نیکه،اوپه خوئی اونمسی باندې دا ماشومه حرامه شوه.اود مرضعې دا خاوند چه دهغه په سبب ددې مرضعې دا پئ راغلی دی.د دغه ماشومې رضاعی پلار شو.

**دلائله﴾** ① دلیل دا حدیث دې.① چه [يحرم من الرضاع ما يحرم من النسب] اود نسب په وجه حرمت په سړې اوښځې دواړو د طرفه وی.نودغه شان به د رضاعت په وجه هم د دواړوطرفونه وی. ②دویم دلیل د حضرت عائشې رضي الله عنها حدیث دې. حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.چه افلح بن ابی قیس راغلو.نوافلح اوونیل.چه ته زما نه پرده کوې.حالانکه زه ستا تره یم.حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.ما ورته اونیل.څنګه؟ نوهغه اوونیل.چه زما د رور ښځې تاته پئ درکړې دی.حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی.ماورته اوونیل.ماته ښځې پئ راکړې دی.سړی نه دی راکړی.په دې کښې رسول الله ﷺ تشریف راوړلو.نوماورته ټوله واقعه بیان کړه.نبی ﷺ اوفرمائیل.لِيَلِجْ عَلَيْكِ أَفْلَحُ فَإِنَّهُ عَمُّكِ مِنَ الرَّضَاعَةِ ()افلح ستا تره دې.دې به بغیر پردې تاته تشریف راوړی.په دې حدیث کښې نبی ﷺ افلح ته د حضرت عائشې رضي الله عنها رضاعی تره ونیلې دې. او رضاعی تره ددې نه بغیرنشی کیدې.چه د مرضعې خاوند د حضرت عائشې رضي الله عنها رضاعی پلار وی. نوهرکله چه رضاعی تره سره تحریم ثابتیږی.نود رضاعی پلار سره خوبه خامخا ثابتیږی.

---

[1] ) أخرجه البخارى فى النكاح باب ١١٧ ومسلم فى الرضاع رقم ٧ وأبوداود فى النكاح باب ٧ والترمذى فى الرضاع باب ٢ والنسائى فى النكاح باب ٥٢ وابن ماجه فى النكاح باب ٣٨ والدارمى فى النكاح باب ٤٨ ومالک فى الرضاع رقم ٢ واحمد فى المسند ( ٦ / ١٩٤ )

③ عقلي دليل دا ذكر كوى چه خاوند دَ مرضعې نه دَ پيوراكوزيدلو سبب دې نو په موضع دَ حرمت كښې به احتياطاً دَ دهٔ طرف ته ئې نسبت كولې شي نو حرمت به پرې ثابتيږي.

**د رضاعي رور د خورسره دنكاح جواز**

| |
|---|
| وَيَجُوزُأَنْ يَتَزَوَّجَ الرَّجُلُ بِأُخْتِ أَخِيهِ مِنَ الرَّضَاعِ او جا ئز دى چه نكاح اوكړى سړې دَ خپل رضاعى رور دَ خور سره |

**تشريح** ﴿ مسئله دا ده.چه خالد د ماجد د مورېئ اورودل.نوماجد د خالد د نسبي خورسره نكاح كولې شي. حالانكه دا جينئ د ماجد د رضاعي رور خالد نسبي خورده.

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه د نسبي رور د نسبي خورسره نكاح جائزده.

| |
|---|
| كَمَا يَجُوزُ لكه څنګه چې جائز ده چې أَنْ يَتَزَوَّجَ بِأُخْتِ أَخِيهِ مِنَ النَّسَبِ چې نكاح اوكړى د خپل نسبي ورور خور سره وَذَلِكَ مِثْلُ الْأَخِ مِنَ الْأَبِ إِذَا كَانَتْ لَهُ أُخْتٌ مِنْ أُمِّهِ او دا مثلاً پلار شريك رور هر كله چه دَ ده مور شريكه خور و ى جَازَ لِأَخِيهِ مِنْ أَبِيهِ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا نو دَ پلار شريك رور دَ پاره دَ دې سره نكاح كول جائز دى |

**تشريح** ﴿ ددې صورت به دا وى.چه د شاهد دوه (خالد اوبكر)خامن دى.اود دواړو ميندې جدا جدا دى.(د خالد مور كلثوم وى اود بكر مور عائشه وى) نودا دواړه علاتي (ميرني) رونړه (چه پلار ئې يو وى) شول.اوس شاهد په دغه دووښځوكښې يوې (كلثوم) ته طلاق وركړلو.هغې دعدت تيرولونه پس د بل خاوند سره نكاح اوكړله.اودهغې نه ئې لور(زينب) پيدا شوه.نودغه جينئ (زينب) دشاهد په دوو خامنو كښې د يو (خالد) خورده.اودبل (بكر)په حق كښې اجنبي ده.نود كوم (بكر)په حق كښې چه اجنبي ده.دهغه سره ددې جينئ (زينب) نكاح صحيح كيږي.حالانكه د دغه جينئ خاوند (خالد) ددې (زينب) د نسبي رورر(بكر) رور دې.(څكه چه د دواړو پلاريو دې)

**په يوه سينه د جمع كيدو په وجه ثبوت د حرمت**

| |
|---|
| وَكُلُّ صَبِيَّيْنِ اجْتَمَعَا عَلَى ثَدْيٍ وَاحِدَةٍ او هر هغه دوه بچى چه دَ يوې ښځې په تى جمع شوى وى په دغو كښې لَمْ يَجُزْ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَتَزَوَّجَ الْأُخْرَ دَ يو دَ پاره جائز نه دى چه دَ بل سره نكاح او كړى |

**حل اللغة** ﴿ ① **ثدي**: سينه،تې ]

**تشريح** ﴿ دواړوماشومانويعني هلك اوجينئ د يوې ښځې پئ اورودلو،په يوخل يا وراندې روسته،نودا دواړه به رضاعي ورور اوخور وى.اوددوى به په خپل مينځ كښې نكاح صحيح نه وى.لكه څنګه چه نسبي ورور خور په خپل مينځ كښې نكاح نشي كولې.په ،باب الحرمة، كښې هم دا ضابطه ده.

**د مرضعه دپاره د مرضعه د بچوسره د نكاح حرمت**

| |
|---|
| وَلَا يجوزان يَتَزَوَّجَ الْمُرْضَعَةُ أَحَدًا مِنْ وَلَدِ الَّتِي أَرْضَعَتْ او جائز نه ده چې په نكاح وركړى مرضعه هغه بچې ته كوم لره چه پئ ور كړې وى وَلَا يَتَزَوَّجُ الصَّبِيُّ الْمُرْضَعُ أُخْتَ زَوْجِ الْمُرْضَعَةِ اونكاح به نه كوى هغه ماشوم چه پئ ورته وركړې شوې وى.د رضاعي مورد خاوند خور سره |

**تشريح** ﴿ **الاحتمالان في اعراب المرضعة** ﴿ په المرضعة كښې دتركيب په اعتبارسره دوه احتمالات دى.

①اول دا چه مرضعه بفتح الضاد اسم مفعول وى.اود [يتزوج] د فاعل په وجه مرفوع وى.او [أحداً]

منصوب وی. د مفعولیت په بناء.په دې صورت کښې به ترجمه دا وی.په دې صورت کښې مطلب دا دې.چه صبیه ماشومه به د پئ ورکونکې مرضعې په بچوکښې چاسره نکاح نه کوی.

② دویم احتمال دا دې.چه [مرضعة] په صیغه اسم مفعول منصوب وی.او[أحد] د فاعلیت په بناء مرفوع وی.په دې صورت کښې به ترجمه دا وی.چه د پئ ورکونکې دائنړې په بچوکښې به د چا د مرضعه ماشوم سره نکاح نه کیږی.حاصل د دواړو یودې.د مسئلې صورت ښکاره دې.د وضاحت محتاج نه دې.

### په اوبوکښې ګډ شوو پيو د حرمت رضاعت حکم

| وَإِذَااخْتَلَطَ اللَّبَنُ بِالْمَاءِ او هرکله چه خلط شو پئ دَ اوبو سره وَاللَّبَنُ هُوَالْغَالِبُ او پئ غالب وو يَتَعَلَّقُ بِهِ التَّحْرِيمُ نو په دې سره تحر یم متعلق وی فَإِنْ غَلَبَ الْمَاءُ او که أوبه غالبې وې لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ نو په دې پورې به تحريم متعلق نه وی |
|---|

**حل اللغة>** ① **اللبن:** پئ ② **الماء:** اوبهٔ ③ **التحريم:** حراموالې]

**تشریح> ثبوت الرضاعة باللبن الغالب المخلوط مع الماء>** مسئله دا ده.که د مرضعې پئ د اوبوسره ګډ شی. او بیا دغه پئ یوماشوم اوڅکی.نوپه دې کښې دوه صورتونه دی.یودا چه پئ غالب وی.اواوبهٔ مغلوبې.په دې صورت کښې حرمت رضاعت ثابتیږی.

**ثبوت الرضاعة باللبن المغلوب>** اوبل صورت دا دې.چه پئ مغلوب اواوبهٔ زیاتې وی.په دې صورت کښې زمونږ د احنافو رحمهم الله په نیزحرمت رضاعت نه ثابتیږی [1]

**دلیله>** دلیل دا دې.چه پئ مغلوب دی.نودا د حکم په اعتبارسره غیرموجود شو.اود مغلوب حکم د غالب په مقابله کښې نه ښکاره کیږی.مثلاً یوکس قسم اوخوړلو.چه پئ به نه څکی.اوبیا ئې په اوبوکښې ګډ شوې پئ اوڅکل.اوهغه پئ مغلوب وو.نودې نه حانثیږی.لکه چه احنافو رحمهم الله دا مسئله په مسئله د یمین باندې قیاس کړې ده.

**ضعف الدلیل>** خو دا دلیل مغلوب دې.څکه چه دقسم بناء په عرف باندې وی.اوبه عرف کښې مغلوب پیو ته پئ نشی وئیلې.نوددې وجې نه نه حانثیږی.اوحرمت د رضاعت موقوف دې.په وجود د پیو اوهغه موجود دی.نوحرمت به هم ثابت وی.خلاصه دا چه دا قیاس قیاس مع الفارق دې.

**الدلیل القوی>** ددې نه قوی دلیل دا دې.چه د رضاعت په باب کښې حرمت ثابتیږی.په دې وجه چه پئ دماشوم دپاره غذا جوړیږی.اود دغه پیو په ذریعه د هډوکواوغوښې پالنه کیږی.اوچه پئ مغلوب وی.نودا ذریعه د هډوکې اوغوښې د پالنه اونشونما نه ګرځی.اوچه ذریعه د نشونما اوپالنې نشوه.نوحرمت رضاعت هم ثابت نشو.(عینی شرح عنایه)

### د خوراک سره په ګډ شوو پيو باندې درضاعت حکم

| وَإِذَااخْتَلَطَ بِالطَّعَامِ که ملاؤ شو پئ دَ خوراك سره لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ وَإِنْ كَانَ اللَّبَنُ غَالِبًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ [1] نو په دې پورې به تحريم متعلق نه وی اګر که وی پئ غالب په نزد دَ امام صاحب. |
|---|

---

[1] ، مسلك الشافعي:- امام شافعي رحمه الله فرمائی.که په اوبوکښې ګډ شوی پئ پنځوګوټوته رسی.نوحرمت ثابتیږی.اګرکه اوبه زیاتې او پئ کم وی.

**تشریح> حکم ثبوت الرضاعة باللبن المخلوط مع الطعام>** صورت د مسئلې دا دې.که پئ دخوراك دځيزسره يوځائې شو.اوهغه پئ په اوربانديې پښيدلې نه وی. نوداامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزپرې حرمت نه ثابتيږی.که پئ غالب وی اوکه مغلوب.د مغلوبيت په صورت کښې خوخبره ښکاره ده.اوکه غالب وی.نوچونکه دا د خوراك دځيزسره ګډشوی اوپخ شوی دی.نودا د خوراك د ځيزتابع شو.نودې پيو ته اوس مطلق پئ نشی وئيلې.

**دليله>** دليل دا دې.چه مقصود يعنی غذا حاصلولوکښې خوراك اصل دې اوپئ تابع دی. نو په مقصود يعنی عذا کښې پئ مغلوب شو.اګرچه په حقيقت کښې غالب دی.نوځکه وړپورې تحريم نه متعلق کيږی.

| وَقَالَا يَتَعَلَّقُ بِهِ التَّحْرِيمُ او صاحبين فرمائی چې په دې پورې تحريم متعلق کيږی |
|---|

**تشریح> مسلک الصاحبين>** صاحبين رحمهما الله فرمائی.که پئ غالب وی.نوحرمت رضاعت پرې ثابتيږی.ګنی نه ثابتيږی.صاحب دهدايه په هدايه کښې فرمائيلی دی چه دَ صاحبينو رحمهما الله قول په دې صورت کښې دې چه لَه دې لره اُور مسه نه کړی تر دې چه که په اور پوخ شو نو په دې پورې به تحريم متعلق نه وی دَ ټولو په قول باندې

**دليلهما>** په اصل مسئله کښې د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه اعتبارغالب لره دې.لکه پئ چه د اوبوسره ګډشی.نو غالب لره اعتبار وی.خوپه دې شرط چه دغه بل ځيزپئ دخپل حالت نه بدل کړې نه وی..

### په دوائي کښې ګډ شوو پيو حرمت رضاعت

| وَإِذَا اخْتَلَطَ بِالدَّوَاءِ وَاللَّبَنُ غَالِبٌ،او که ملاؤ شو پئ دَ دوايئ سره او پئ غالب وو تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيمُ نو متعلق به وی ور سره تحريم |
|---|

**حل اللغة >** ① **اختلط:**ګډ شو ② **الدواء:** دوائی

**تشریح> الصورتان في ثبوت الحرمة باللبن المخلوط مع الدواء>** ①که د دوائې سره پئ ګډ کړې شی.نوکه پئ غالب وو.په دې صورت کښې پرې حرمت رضاعت ثابتيږی.

**دليله>** دليل دا دې.چه په غذا حاصلولوکښې پئ مقصود دی.دوائی خوصرف د پئ رسولوتقويت پيدا کوی. ②اوکه پئ مغلوب اودوائی غالبه وی.نوحرمت رضاعت پرې نه ثابتيږی.

### د مړې ښځې په پيو سره حرمت رضاعت

| وَإِذَا حُلِبَ اللَّبَنُ مِنَ الْمَرْأَةِ بَعْدَ مَوْتِهَا هر کله چه ئې او لوشل دَ ښځې پئ روسته دَ دې دَ مرګ نه فَأُوجِرَ بِهِ الصَّبِيُّ نو بيا ئې دَ بچی په خولې کښې او څڅول تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيمُ نو په دې سره حرمت متعلق وی رحمه الله |
|---|

**حل اللغة >** ① **حلب:**لوشل ]

**تشریح> حکم ثبوت الحرمة بلبن المرأة الميت>** صورت د مسئلې دا دې.چه يوه ښځه مړه شوه.اود مرګ نه پس دهغې پيئ اولوشلې شو.اويوماشوم ته ورکړې شو.نوداحنافو رحمهم الله په نيز په دې باندې حرمت

---

[1] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٣١٦\٣) والعناية (٣١٦\٣) والخانية (١٩١\١) وردالمحتار(٤٤٤\٢) نقلاً عن القول الراجح ( ٣٠٥\١)-

رضاعت ثابتيږي.دا دامام مالك اوامام احمد رحمهما الله قول هم دي (۱)

**دليله>** دليل دا دي.چه په حرمت رضاعت کښې دحرمت سبب شبه د جزئيت دي.يعنې د پيو په وجه د ماشوم په غوښه اوهډوکې کښې زيادت راځي.نوځکه مونږوايو.چه د پې ځکلوپه صورت کښې شبه د جزئيت موجود ده.اوهرکله چه د حرمت رضاعت سبب شبه د جزئيت ده.نوددې مرې ښځې په پيو ځکلوبه حرمت ثابتيږي.

**د چيلۍ دپيو سره د ښځې د پيو ګډېدل**

وَإِذَا اخْتَلَطَ لَبَنُ الْمَرْأَةِ بِلَبَنِ شَاةٍ وَلَبَنُ الْمَرْأَةِ هُوَ الْغَالِبُ.او هر کله چه ملاوشو پې د ښځې د پيو سره او د ښځې پې غالب وو تَعَلَّقَ بِهِ التَّحْرِيمُ نو تحريم به ور پورې متعلق وي وَإِنْ غَلَبَ لَبَنُ الشَّاةِ او که غالب وو پې د چيلۍ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ نو په دې پورې تحريم نه متعلق کيږي.

**تشريح>** که د ښځې او ګډ ب پې ګډ شو او يوې ماشومې اوڅکل نو که د ښځې پې د ګډې د پيو نه زيات وو.نو حرمت پرې واقع کيږي.اوکه د ګډې پې د ښځې په پيو باندې زيات وو.نو حرمت پرې نه واقع کيږي.

**دليله>** دليل دا دې چې د اکثر دپاره حکم د کل وي.نوچې زياته حصه د پيو ده.تحريم به ورپورې متعلق کيږي.

**د يو ماشوم د دوو ښځو ګډ شوي پې څکل**

وَإِذَا اخْتَلَطَ لَبَنُ امْرَأَتَيْنِ هر کله چه د دوو ښځو پې مخلوط شو يَتَعَلَّقُ التَّحْرِيمُ بِأَكْثَرِهِمَا عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُ اللَّهُ نو تحريم به متعلق وي په دوی کښې د اغلبې سره د امام ابويوسف رحمه الله په نزد

**تشريح> مسلک ابي يوسف >** صورت د مسئلې دا دي.چه د دوو ښځوپې ګډ شي. او يو ماشوم هغه اوڅکي.نوامام ابويوسف رحمه الله فرمائي.چه د کومې پې غالب وي.هغې سره به حرمت ثابتيږي.دا قول دامام شافعي هم دي

**دليله >** دامام ابي يوسف رحمه الله دليل دا دي.چه دواړه پې ګډ شو.نوپښان د يوڅيزشو.نوپه دې د رضاعت حکم مبني کولوکښې به اقل د اکثرتابع کولې شي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ تَعَلَّقَ بِهِمَا التَّحْرِيمُ (۲) امام محمد رحمه الله او زفر وئيلي دي چه تحريم به د دې دواړو سره متعلق وي

**تشريح> مسلک محمد>** په زير بحث مسئله کښې امام محمد رحمه الله فرمائي. چه د دواړو سره حرمت ثابتيږي.اودامام ابوحنيفه رحمه الله نه دوه روايتونه منقول دي.په يوروايت کښې دامام ابويوسف رحمه الله سره دي.اوپه بل روايت کښې دامام محمد سره دي.

**دليله>** دامام محمد دليل دا دي.چه هيڅ کله يوڅيزپه خپل جنس نه غالب کيږي. ځکه چه غلبه په هغه وخت کښې متحقق کيږي.چه مغلوب څيزمعدوم شي.اوچه يوڅيزدخپل جنس سره ملاو شي.نومعدوم کيږي نه.بلکه په هغې کښې زيادت راځي.ځکه چه د دواړو مقصود يو دي.نوچه يوڅيزپه خپل جنس

---

۱) **مسلک الشافعي:-** اوامام شافعي رحمه الله فرمائي.چه حرمت رضاعت پرې نه ثابتيږي.

۲) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا في فتح القدير(۳۱۷\۲) وردالمحتار(۴۴۴\۳) والهندية (۳۴۴\۱) والبحرالرائق (۳۹۸\۳) نقلاً عن القول الراجح (۳۰۷\۱)-

کښې ګډ شي.نو په دې کښې به یود بل تابع نه وي.اوچه کله یود بل تابع نه وي. نو تحریم د دواړو سره متعلق کیږي.د یوسره به نه متعلق کیږي.

### دباکرې په پیو د حرمت رضاعت ثبوت

| وَإِذَا نَزَلَ لِلْبِكْرِ لَبَنٌ هر کله چه دَ باکرې ئې راکوز شو فَأَرْضَعَتْ صَبِيًّا نو یو بچی او خوړل يَتَعَلَّقُ بِهِ التَّحْرِيمُ په دې باندې حرمت رضاعت ثابتیږي. |
|---|

**تشریح** ﴿ **ثبوت الحرمة بلبن الباكرة** ﴾ که دباکرې پیٔ پیدا شو.اوباکرې دغه پیٔ یوماشوم ته ورکړلو.نود عالمانو رحمهم الله په اتفاق سره په دې باندې حرمت رضاعت ثابتیږي.

**دلائله** ﴾ ① ځکه چه نص مطلق ﴿وَأُمَّهَاتُكُمُ الَّتِي أَرْضَعْنَكُمْ﴾ دې.په باکره اوثیبه کښې څه فرق نه کوي.② دویم دلیل دا دی.چه د باکرې پیٔ هم د نشونما سبب دې.نو په دې کښې شبه د بعضیت پیدا شوه.اوچه شبه د جزئیت په کښې پیدا شوه.نواحتیاط هم په دې کښې دې.چه حرمت رضاعت پرې ثابت شي.

**رواية عدم ثبوت الحرمة عن محمد** ﴾ البته دامام محمد نه یوروایت دا هم دې.چه د باکرې په پیو سره حرمت رضاعت نه ثابتیږي.ځکه چه د باکرې پیٔ نادرالوقوع دی.نودا د سړی د پیو سره مشابه شو.اود سړی په پیو حرمت نه ثابتیږي.دغه شان به په دې پیو هم نه ثابتیږي.

### د سړي په پیو د رضاعت عدم ثبوت

| وَإِذَا نَزَلَ لِلرَّجُلِ لَبَنٌ فَأَرْضَعَ بِهِ صَبِيًّا هر کله چه دَ سړي ئې راکوز شواو چا بچی له ئې ورکړل لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ التَّحْرِيمُ نو په دې سره تحریم نه متعلق کیږي |
|---|

**تشریح** ﴾ **عدم ثبوت الرضاعة بلبن الرجل** ﴾ که د سړی د سینې نه پیٔ راووتل.اوهغه یوماشوم ته ورکړل.نود څلورواړه امامانوپه نیزبه دې حرمت رضاعت نه ثابتیږي.

**دلیله** ﴾ ځکه چه دا په حقیقت کښې پیٔ نه دې.لکه څنګه چه د کب وینه په حقیقت کښې وینه نه وي.نو په دې باندې نشونما هم کیږي.اودا خبره چه د سړی پیٔ په حقیقت کښې پیٔ نه دی.ددې دلیل دا دې.چه پیٔ د هغه چا کیدې شي.چه دهغه نه ولادت متصور کیدې شي.اود سړی نه ولادت نه متصور کیږي.نودده پیٔ هم پیٔ نه دی.اوچه دده پیٔ، پیٔ نه دی.نوحرمت رضاعت پرې هم نه ثابتیږي.

### د څناور په پیو سره عدم تحریم

| وَإِذَا شَرِبَ صَبِيَّانِ مِنْ لَبَنِ شَاةٍ او هر کله چه دوو بچو دَ یوې بیزې ئې او سکل فَلَا رِضَاعَ بَيْنَهُمَا نو د دوی دواړو په مینځ کښې رضاعت نه ثابتیږي |
|---|

**تشریح** ﴾ صورت د مسئلې ښکاره دې.

**دلیله** ﴾ ځکه چه دَ بنی آدم او څاروی په منځ کښې څه جزئیت نشته او حرمت دَ جزئیت په اعتبار سره وي.

**الملحوظة** ﴾ په دې مقام کښې صاحب د اشرف الهدایه مولانا جمیل احمد صاحب یوه واقعه ذکر کړې ده چه محمد بن اسماعیل بخاري رحمه الله به فرمائیل.چه په دې باندې حرمت ثابتیږي. حضرت امام بخاري رحمه الله دامام ابوحفص الکبیر رحمه الله په زمانه کښې بخارا ته تشریف اوړې وو.اوفتاوی ورکول ئې شروع کړل.شیخ امام بخاري رحمه الله ته اوفرمائیل.چه دا کار مه کوه.خو امام بخاري رحمه الله د شیخ نصیحت قبول نکړلو.تردې چه یوځل ترې د دې په باره کښې استفتاء طلب شوه.که دوو ماشومانود یوې چیلۍ پیٔ اوڅکل.نوڅه حکم دې.حضرت امام بخاري رحمه الله د ثبوت حرمت فتوی ورکړله.ددې نه پس خلق

راجع شول.اوامام بخاری نې د بخارا نه اوویستل.خو په شرح د بخاری کشف الباری کښې ددې واقعه په سختو الفاظو سره تردید شوې دې چه د امام بخاری رحمه الله غوندې جلیل القدر محدث ته د یوې داسې واقعه نسبت کول انصاف نه دې هغوی په تفصیل سره د دې تردید کړې دې.والله اعلم بالصواب

**د بالغې ښځې ماشومې ښځې ته پئ ورکول اوپه خاوند باندې دواړه حرامیدل**

وَإِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ صَغِيرَةً وَكَبِيرَةً او هر کله چه سړی د وړې او لوئې سره نکاح او کړه فَأَرْضَعَتِ الْكَبِيرَةُ الصَّغِيرَةَ او هغې لوئې وړې له تې ور کړو حُرِّمَتَا عَلَى الزَّوْجِ نو دواړه په خاوند حرامې شوې

**تشریح**﴿ **حرمة الزوجة الكبيرة بإرضاعها الزوجة الصغيرة**﴿صورت د مسئلې دا دې.چه د یوکس (زید) په نکاح کښې یوه غټه (زینب) اوبل وړه (خالده) پئ رودونکې ماشومه ده.کبیرې دغې ماشومې (رضیعې) ته خپل پئ ورکړل.نودې خاوند باندې به دواړه حرامې شی.امام شافعی اوامام مالك رحمهما الله هم ددې قائلین دی.

**دلیله**﴿ دکبیرې په حق کښې خوحرمت موبده څکه ثابت شو.چه هغه دخپل خاوند رضاعی خواښې شوه.اود صغیرې په باره کښې لږ غوندې تفصیل دې.هغه دا چه ددې خاوند(زید) د کبیرې سره وطی شوی وی.او دهغه وطی نه ددې کبیرې ماشوم پیدا شی.اوبیا دغه کبیره د خپل خاوند ښځې ته پئ ورکړی.نوبه دې صورت کښې دا ماشومه په دې خاوند باندې په حرمت مؤبده سره حرامه شوه.څکه چه دا دده رضاعی لور شوه.اودې ئې رضاعی پلار شو.

**دلیله الاجتماعي**﴿ بهرحال د صغیرې اوکبیرې دواړو دحرمت وجه دا ده.چه دا دواړه رضاعی مورااولور شوې.اود رضاعی مور اولور په نکاح کښې جمع کول داسې حرام دی.لکه څنګه چه د نسبی مورااولور په نکاح کښې جمع کول حرام دی.

فَإِنْ كَانَ لَمْ يَدْخُلْ بِالْكَبِيرَةِ فَلَا مَهْرَ لَهَا بیا که دخول ئې د لوئې سره نه وه کړې نو مهر ورته نشته

**تشریح**﴿ په دې عبارت سره د مهرحکم بیانوی.که خاوند په کبیره باندې دخول نه وی کړې.نوپه خاوند باندې دهغې مهرنه لازمیږی.که هغې په پئ ورکولوکښې د نکاح د فسخ کولواراده کړې وی اوکه نه.

**دلیله**﴿ دلیل دا دې.چه قبل الدخول بیلتون راشی.نوکه دا بیلتون د ښځې د طرفه راغلې وی.نودا د نیم مهرمستحق نه ده.اوچونکه په دې صورت کښې صغیرې ته پئ کبیرې ورکړې دی.اوبیلتون د دې په وجه راغلې دې.نوځکه دا مستحقه د نیم مهر هم نه ده.

**وجوب جميع المهر بعد الدخول**﴿اوکه خاوند په دې کبیره باندې دخول کړې وی.نوددې دپاره پوره مهر واجب دې.خودا ده.چه په خاوند به د عدت خرچه نه وی.څکه چه جنایت د کبیرې د طرفه شوې دې.

وَلِلصَّغِيرَةِ نِصْفُ الْمَهْرِ او د وړې د پاره به نیم مهر وی

**تشریح**﴿ **حكم وجوب نصف المهر للصغيرة**﴿پاتې شوه دا خبره چه د صغیرې دپاره به مهر وی.اوکه نه. ① نو داحنافو رحمهم الله د صغیرې دپاره نیم مهرواجب دې.([1])

**دلائله**﴿ دلیل دا دې.① چه د صغیرې دطرفه بیلتون نه دې واقع شوې.اوکه څوك دا اعتراض اوکړی.چه پئ څکل خود صغیرې فعل دې.اوهم د دې فعل په وجه بیلتون واقع شو.نومونږ جواب ورکوو.چه مونږدا منو.چه پئ څکل د صغیرې فعل دې.اوهم په دې فعل باندې بیلتون واقع شو.خودا ده.چه د صغیرې فعل ددې د حق په ساقط کولوکښې معتبر نه دې.څکه چه دا د شریعت په

[1] ) امام مالك رحمه الله فرمائی.چه مهر واجب نه دې.

احکامومکلفه نه ده.نوځکه به ددې په فعل د شریعت حکم نه مرتب کیږی.اودا داسې شوه.لکه چه صغیره خپل مورث قتل کړی.نوددې قتل په وجه دا د خپل میراث نه نه محرومه کیږی .اګرچه قتل ددې فعل دې.او شریعت د مورث قاتل د میرات نه محرومه کړې دې.ځکه چه د صغیرفعل د خپل حق په ساقطولو کښې معتبر نه وی.

وَيَرْجِعُ بِهِ الزَّوْجُ عَلَى الْكَبِيرَةِ إِنْ كَانَتْ تَعَمَّدَتْ بِهِ الْفَسَادَ او اخلی به نیم مهر خاوند ذ کبیرې نه که دې اراده کړې وه دَ فساد دَ نکاح وَإِنْ لَمْ تَتَعَمَّدْ فَلَا شَيْءَ عَلَيْهَا او که اراده يې نه وه کړې نو په کبیره به هیڅ نه وی اګر که دا پوهه وه چه صغیره دَ هغه ښځه ده

**تشریح** خاوند چه کوم نیم مهر صغیرې ته ورکړی.که کبیرې په پئ ورکولوکښې د نکاح د فسخ کولواراده وه.چه زه دې ته پئ ورکړم.نوددې نکاح به ورسره ختمه شی.نوخاوند به په کبیره باندې د هغه نیم مهررجوع کوی.کوم چه ده صغیرې ته ادا کړی وی.اوکه دنکاح د فسخې اراده ئې نه وی.بلکه د صغیرې نه لوږه او هلاکت لرې کولواراده ئې وی.نوپه دې صورت کښې به په کبیره باندې د نیم مهررجوع نه کوی.اګرچه کبیرې ته دا علم وی.چه صغیره دده ښځه ده.

## د رضاعت د ثبوت دپاره د ګواهانواعتبار

وَلَا تُقْبَلُ فِي الرَّضَاعِ شَهَادَةُ النِّسَاءِ مُنْفَرِدَاتٍ او نه به شی قبلولې په رضاعت کښې یواځې دَ ښځو ګواهی وَإِنَّمَا تَثْبُتُ بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ بلکه دَ رضاعت ثبوت دَ دوو سړو یا یو سړی او دوو ښځو په ګواهی سره به وی

**تشریح** **الشهادة لثبوت الرضاعة** صورت د مسئلې دادې.چه رضاعت به د کومو کسانو په شهادت سره ثابتیږی. نود رضاعت د ثبوت دپاره صرف د ښځوګواهی نه کافی کیږی.یا به دوه سړی اویا یو سړې اودوه ښځې وی [1]

**دلیل** دلیل دا دې.چه د نکاح په باب کښې ثبوت د حرمت د ملك د زوال نه جدا کیږی نه.یعنی دا نشی کیدې چه د رضاعت په وجه حرمت نکاح ثابته شی.اوملك نکاح باقی وی.ځکه چه د حرمت مؤبده سره بقاء ممکن نه ده.نوهرکله چه د رضاعت په سبب حرمت ثابت شی.نونکاح به هم سړی به ګواهی ورکوی.اویا یو سړې اودوه ښځې.

# كِتَابُ الطَّلَاقِ

**ترجمه** دا باب د طلاق پر(په)بیان کښې دې .(او) دا باب د سنت طلاق پر(په)بیان کښې دې .

**تشریح** **الربط بما قبله** مصنف رحمه الله چې د نکاح داحکامونه فارغ شو.نواوس د طلاق قسمونه اواحکام بیانوی. چونکه نکاح په وجود کې مقدم وی.اوطلاق لاحق وی.نوځکه ئې په ذکرکې هم اول د نکاح او وریسې د طلاق بیان اوکړلو.اوطلاق ئې د رضاعت نه روسته ځکه ذکرکړل.چه په دې کې هریود حرمت موجب دې.خودومره ده چې رضاعت د حرمت مؤبده موجب دې.اوطلاق دغیرمؤبده.نوچونکه د رضاعت حرمت اشد وو.هغه ئې ځکه مقدم کړلو.اود طلاق حرمت اخف وو.نودا ئې په هغې پسې ذکرکړلو.

[1] **مسلک مالک**:- امام مالك رحمه الله په نیز ددې ښځې په ګواهئ رضاعت ثابتیږی.خوپه دې شرط چه د عدالت په صفت موصوف وی.

**معني الطلاق لغة وشرعا>** په لویدیخ (مغرب) کتاب کي دی.چه طلاق مصدر دې د تطلیق په معنی.لکه څنګه چې سلام د تسلیم په معنی کې دې.اوکلام د تکلیم په معنی کې .په لغت کي طلاق مطلق قید پورته کولو او ختمولو ته واني.اود شریعت په اصطلاح کي د نکاح قید په مخصوص الفاظوسره پورته کولو اوختمولوته واني.

**أقسام الطلاق >** بیاطلاق په دوې (دوه) قسمه دې.① طلاق سنی ②اوطلاق بدعی.بیا طلاق سنی په دوې (دوه) قسمه دې.① سنی من حیث العدد ②اوسنی من حیث الوقت.بیا د سنی من حیث العدد دوې (دوه) قسمونه دی.① حسن ②اواحسن.اود طلاق بدعی هم دوې (دوه) قسمونه دی.① بدعی من حیث العدد ②اوبدعی من حیث الوقت.علامه مرغینانی رحمه الله په مختلفوطریقوددې ټولو انواعو او قسمونو احکامو ذکر کړی دی.

**د احسن طلاق تعریف**

| |
|---|
| الطَّلَاقُ عَلَى ثَلَاثَةِ أَوْجُهٍ: احسن الطلاق، وطلاق السنة، وطلاق البدعة طلاق په درې قسمه دی أحسن الطلاق ، طلاق سنت اوطلاق بدعی فَأَحْسَنُ أَنْ يُطَلِّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ تَطْلِيقَةً وَاحِدَةً فِي طُهْرٍ وَاحِدٍ لَمْ يُجَامِعْهَا فِيهِ نو احسن طلاق دا دی چې طلاق ورکړی سړې خپلې ښځې ته یو طلاق په داسې طهر کې چې په دې کې ئې ورسره وطی نه وی کړی وَيَتْرُكَهَا حَتَّى تَنْقَضِيَ عِدَّتُهَا بیانې پریږدی تردې چې عدت ئې تیر شی |

**تشریح> تعریف الطلاق الأحسن>** صاحب دقدوری رحمه الله د طلاق د قسمونوبیانولونه روسته د طلاق احسن تعریف کوی.نوفرمانی.چه طلاق احسن دا دې.چه سړې خپلې ښځې ته په داسې طهرکي طلاق ورکړی .چه ده ورسره صحبت نه وی کړې.اوبیا ئې پریږدی.تردې چې عدت ئې پوره شی

**دلائله>** ① دلیل دا دې.چه صحابه کرامو رضی الله عنهم به دا خبره خوښوله.چه دیوطلاق نه زیات ورنکړې شی. تر دې چې عدت تیرشی.()اودا دهغوی په نیزبهتروو.

② دویم عقلی دلیل دا دې.چه دا طلاق پښیمانتیا لرې کولوته هم نزدې دې.اوښځې ته هم کم تکلیف رسی.دپښیمانتیا نه خوخکه لرې دې.چه د یوطلاق نه روسته که دی اوغواړی. نوپه عدت کي ورته رجوع کولې شی.چه رجوع ورته اوکړی.صرف تجدید دنکاح به اوکړی.حلالي ته هم څه ضرورت (ضرورت) نشته.اوداسې کارکول چې په هغې کي د تدارك ګنجائش موجود وی. دالله تعالی په نیزهم ښه دې.الله تعالی فرمانیلی دی. ﴿لَعَلَّ اللهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذٰلِكَ أَمْرًا﴾ اوپه ښځه باندې ضرر هم کم څکه دې.چه په دې صورت کي په ښځه باندې عدت نه اوږدیږی.اوچه د یوطلاق نه زیات ورکړی.نوبعضې وخت عدت اوږدیږی. هغه داسې چې طلاق ورکړی اورجوع ورته اوکړی.بیا طلاق ورکړی اورجوع ورته اوکړی.

**دطلاق حسن اوسنت تعریف**

| |
|---|
| وَطَلَاقُ السُّنَّةِ او طلاق سنت دې أَنْ تُطَلِّقَ الْمَدْخُولَ بِهَا ثَلَاثًا فِي ثَلَاثَةِ أَطْهَارٍ او هغه دا دی چې مدخول بها ته درې طلاقه ورکړې شی په درې طهر ونو کي |

[1] – من أثر ابرهیم النخعی رحمه الله اخرجه ابن ابی شیبة فی مصنفه ( نصب الرایة ۳ / ۲۹۲ ) .

**تشریح>** **وجه إطلاق السنة علي الطلاق>** طلاق في نفسه عبادت نه دې.چه په دې باندې ثواب ملاو شي.نوبیا د مسنون معنی دا شوه.چه دا طلاق په سنت سره ثابت دې.اوددې مرتکب مستحق د ملامتیا نه دې.

**تعریف الطلاق السنة>** د طلاق سنت تعریف دا دې.چه میړه (خاوند) خپلې ښځې ته په درې طهرونوکې درې طلاق ورکړی. ([1])

**دلائله>** ① دلیل دحضرت عبدالله بن عمررضی‌الله‌عنهما حدیث دې. دوی فرمائي.چه ماخپلې بی بی ته په حالت حیض کې یوطلاق ورکړلو.اوبیا مې اراده اوکړله.چه په حالت د طهرکې ورته دوې (دوه) طلاقه ورکړم.ددې خبرې پته نبی ﷺ ته اولګیدله.نونبی ﷺ راته اوفرمائیل.إِنَّ مِنَ السُّنَّةِ أَنْ تَسْتَقْبِلَ الطُّهْرَ اسْتِقْبَالًا فَتُطَلِّقَهَا لِكُلِّ قُرْءٍ تَطْلِيقَةً([2]) ای ابن عمر الله تعالی تاته ددې طریقې حکم نه دې کړې.تاسنت طریقه پریخودله.سنت دا دې.چه تاانتظارکړې وو.تردې چې په طهرکې دې طلاق ورکړې وو.تاسنت طریقه پریخودله.بیا راته نبی ﷺ حکم اوکړلو.نوماورته رجوع اوکړه.بیا نې راته حکم اوکړلو. چې کله طهر راشي.نوبیا ورته طلاق ورکړه.اوبیا ئې خان سره اوساته.دوی فرمائي.ماعرض اوکړلو.یارسول الله که زه دې ته درې طلاقه ورکړم.نوآیا زما لپاره دې ته رجوع کول حلال دي؟نونبی ﷺ اوفرمائیل.نه هغه خوبائینه شوه.اوګناه شوه.دا حدیث دارقطني نقل کړې دې.ددې نه معلومه شوه.چه جدا جدا② عقلي دلیل دا دې.(چه طلاق خوفي نفسه قبیح څیزدې.خکه چې عقد د نکاح په کې کټ کولې شي.خوبیا هم دا جائزشو.خکه) چې طلاق ته چې کوم حاجت پیښیږي.هغه باطني څیزدې.(بعضې وخت د طبیعتونواختلاف وي.یابل څه وجه وي.چه دهغې ښکاره کول سرې مناسب نه ګڼرې)اوپه هغې باندې پوهیدل ګران وي.نوحکم به ددې په دلیل لګولې شي. (یعنی چې کله د طلاق ورکولوته حاجت پیښ شي.اوپه دغه حاجت پیښیدوباندې دلیل هم څرګندشي) او دلیل (دحاجت دطلاق) نوې والې د رغبت دې یعنی د طهرپه زمانه کې د طلاق ورکولواقدام (دا د ددې خبرې دلیل دې.چه دده طلاق ورکولوته حاجت پیښ شوې دې.خکه چې په طهرکې د ښځې سره جماع کول هم جائزوي.دغه ډول (دغه شان) طبیعت ترې هم نفرت نه کوي.خوددې باوجود چې دې په طهرکې ښځې ته طلاق ورکوي. نو معلومیږي.چه داسې څه خبره په مینځ کې شته.چه دهغې د وجې دې مجبوره دې.چه ښځې ته طلاق ورکړي)اوکله چې هم د حاجت په دلیل کې تکرار راشي.نولکه چې د طلاق تکرارته به هم حاجت وي.اوچه د طلاق حاجت پریخودوکې تکرار وي.نوبه طلاق کې تکرار به هم مباح وي.نوخکه زمونږ رائې ده.چه جدا جدا په درې طهرونوکې درې طلاقونه ورکول مباح دی بدعت نه دې.

**طلاق بدعت**

| وَطَلَاقُ الْبِدْعَةِ أَنْ يُطَلِّقَهَا ثَلَاثًا بِكَلِمَةٍ وَاحِدَةٍ او طلاق بدعت دادې چې طلاق ور کړی ښځې ته درې په یو لفظ سره أَوْ ثَلَاثًا فِي طُهْرٍ وَاحِدٍ یا درې په یو طهر کې فَإِذَا فَعَلَ ذَلِكَ وَقَعَ الطَّلَاقُ کله چې ئې دا او کړل نو طلاق به واقع شي .وبانت امراته منه او بائنه شوه ښځه دده په ده باندې وَكَانَ عَاصِيًا او وی به ګناه ګار |
|---|

[1] ) امام مالک ﷫ فرمائي.چه دا طلاق بدعت دې.
[2] ) من حدیث ابن عمر رضی الله تعالی عنهما أخرجه الدارقطنی فی سننه ( ٤ / ٣١ ) رقم ٨٤ ) .

**تشريح> الطلاق البدعي>** طلاق بدعت دا دې چه په يوخل درې طلاقه ورکړي. يا په يو طهر کې درې طلاقه ورکړي. زمونږ په نيزدا طلاق ورکول حرام دی. خوکه چا ورکړلو. نوطلاق واقع کيږي. اوحرمت غليظه پرې ثابتيږي. اوطلاق ورکونکې ګناهګار دې. [1]

**دليله>** دليل دا دې چه په طلاق کې اصل ممانعت دې. ځکه چې په طلاق سره هغه عقدنکاح ماتيږي. کوم سره چې د پردينی اودنياوی مصلحتونه تړلی شوی دی. دينی مصلحت خو دا دې. چه د نکاح په وجه شرمګاه د زنانه بچ شي. اوزناداسې يوقبيح فعل دې. چه په ټولو دينونو کې حرام ګرځولې شوې ده. اودنياوی مصلحتونه ئې دا دی. چه د ښځې لپاره د سکنی اونفقې بندوبست د ميړه (خاوند) په ذمه شي. او ميړه (خاوند) د اولاد مالك شي. داسې نورډيرمصلحتونه دی. نوچه دې ته ګورې پکاردا وه. چه طلاق په شريعت کې ناجائز وو. خوچونکه د ښځې نه د ځان خلاصولوپه ضرورت (ضرورت) طلاق مباح کړې شو. اود درې طلاقوجمع کولوځه ضرورت (ضرورت) نشته. ځکه چې دا مقصود د دې نه په کم عدد سره هم حاصليږي. نوځکه زمونږ په نيز د درې طلاقو جمع کول حرام دی.

**په طلاق کښې د سنت تقسيم**

| |
|---|
| وَالسُّنَّةُ فِي الطَّلَاقِ مِنْ وَجْهَيْنِ او سنت په طلاق کې په دوې (دوه) طريقې سره دی سُنَّةٌ فِي الْوَقْتِ سنت فی الوقت وَسُنَّةٌ فِي الْعَدَدِ او سنت فی العدد فَالسُّنَّةُ فِي الْعَدَدِ يَسْتَوِي فِيهَا الْمَدْخُولُ بِهَا وَغَيْرُ الْمَدْخُولِ بِهَا نو په سنت فی العدد کې خومدخول بها او غير مدخول بها برابر دی |

**تشريح> تقسيم الطلاق السنة إلي قسمين>** مصنف رحمه الله د سنت طلاق ويش (تقسيم) کوی. چه سنت طلاق په دوې (دوه) قسمه دې. ① سنت في العدد ② اوسنت في الوقت.

① سنت في العدد دا دې. چه په يوطهرکې ورته يوطلاق ورکړی. لکه څنګه چې د باب په اول کې تيرشوی دی. په دې کې مدخول بها اوغيرمدخول بها دواړه برابر دی.

| |
|---|
| وَالسُّنَّةُ فِي الْوَقْتِ تَثْبُتُ فِي حَقِّ الْمَدْخُولِ بِهَا خَاصَّةً او سنت فی الوقت په خاص طور سره دَ مدخول بها په حق کې ثابت دې وَهُوَ أَنْ يُطَلِّقَهَا وَاحِدَةً فِي طُهْرٍ لَمْ يُجَامِعْهَا فِيهِ او هغه دا ده چې ښځې لره په داسې طهر کې يو طلاق ورکړی چې جماع ئې پکې ور سره نه وی کړی |

**تشريح>** اوسنت في الوقت خاص کرد مدخول بها په حق کې ثابتيږي. سنت في الوقت دا دې. چه سړې ښځې ته په داسې طهرکې طلاق ورکړی. چه هغه د جماع نه خالی وی.

**دليله>** دليل دا دې. چه د طلاق مشروعيت د حاجت د وجې دې. اوخيال به ساتلې شی د دليل حاجت ،اودليل دحاجت د تجدد اورغبت په زمانه کې طلاق ورکول دی. اود تجدد اورغبت وخت هغه طهر وی. کوم چې د جماع نه خالی وی. اوپاتې شوه د حيض زمانه، نودا د نفرت زمانه ده. اوپه طهرکې په يوخل جماع کولوسره رغبت کميږي. نوپه حالت د حيض اوهغه طهرچه جماع په کې شوې وی. دليل دحاجت موجود نه دې. دې لپاره چې دا قائم مقام د حاجت اوګرځولې شی. اوطلاق مشروع اوګرځولې شی. نوځکه مونږ (مونږ) وايو. چه سنت في الوقت صرف دا دې. چه طلاق په داسې طهرکې ورکړې شی. چه هغه د جماع نه خالی وی. اوپه حالت د حيض کې هم طلاق نه وی ورکړې شوی.

| |
|---|
| وَغَيْرُ الْمَدْخُولِ بِهَا أَنْ يُطَلِّقَهَا فِي حَالِ الطُّهْرِ وَالْحَيْضِ او غير مدخول بها له دې طلاق ور کوی په |

[1] امام شافعي رحمه الله فرمائي. چه هرطلاق مباح دې.

حالت دَ طهر کي او په حالت د حیض کي

**تشریح> جواز طلاق غیرالمدخول بها في الحیض>** پاتې شوه غیرمدخول بها نوهغې ته په حالت دطهراوحیض دواړوکي طلاق ورکولې شي (١)

**دلیله>** دلیل دا دې.چه په غیرمدخول بها کي رغبت ښه پوره وی.دحیض په وجه نه کمیږی.ترڅوچه ترې مقصود حاصل کړې شوې نه وی.نوپه حالت دحیض کي غیرمدخول بها ته طلاق ورکول به د حاجت د وجې وی.د هغې نه د نفرت په وجه به نه وی.اوپه مدخول بها کي د طهرد وجې ځکه چې دحیض نه روسته طهرراشی.نود سړی رغبت اوشوق تازه شی.نوځکه هغه طهرچه هغه د جماع نه خالی وی.په هغې کي مدخول بها ته طلاق ورکول مباح دی.

**الإشکال>** دلته یواشکال دې.هغه دا چې مصنف رحمه الله فرمانی.چه غیرمدخول بها ته په حالت د حیض کي طلاق ورکول صحیح دی.حالانکه په حدیث د ابن عمررضی الله عنهما کي دی.چه [إنما السنة أن تستقبل الطهر] یعنی سنت دا دی.چه د طهرانتظاراوکړې.اودا حدیث دخپل اطلاق په وجه مدخول بها اوغیرمدخول بها ټولوته ګډ (شامل) دې.

**الجواب>** خواب هم په دې حدیث کي یورروایت دې.چه [فتلك العدة التی أمرالله تعالى أن یطلق لها النساء] یعنی دا هغه عدت دې.چه په دې باندې الله تعالى حکم کړې دې.چه په دې وخت کي ښځو ته طلاق ورکړې شی.اوعدت صرف د مدخول بها لپاره وی.دغیرمدخول بها لپاره نه وی.نومعلومه شوه.چه دا حدیث صرف د مدخول بها سره خاص دې.ددې حدیث په وجه اعتراض نشی کولې.

**د حیض نه راتلوپه صورت کښې د سنت طلاق طریقه**

وَإِذَا كَانَتِ الْمَرْأَةُ لَا تَحِيضُ مِنْ صِغَرٍ أَوْ كِبَرٍ، کله چې ښځې ته حیض نه راتلو دَ ورکوټوالی یا دَ زوړوالی په وجه فَأَرَادَ أَنْ يُطَلِّقَهَا لِلسُّنَّةِ او دې له طلاق ورکول او غواړی دَ سنت په وخت کي طَلَّقَهَا وَاحِدَةً نو یو طلاق دې ورکړی فَإِذَا مَضَى شَهْرٌ طَلَّقَهَا أُخْرَى نو کله چې میاشت تیره شی نو بل دې ورکړی فَإِذَا مَضَى شَهْرٌ طَلَّقَهَا أُخْرَى نو کله چې میاشت تیره شی نو بل دې ورکړی

**تشریح> عدة عدم الحیض>** مسئله دا ده.که د یوې ښځې د ماشوموالی یا د زوړوالی د وجې حیض نه راځی.اوددې میړه (خاوند) په سنت طریقه دې ته طلاق ورکول غواړی.نودرې طلاقه دې په درې میاشتوکي ورکړی.

**عام الحیض>** د حیض کال (یعنی چې په کوم کال حیض پیل (شروع) کیږی) ①دمختارمذهب په بناء نهم کال دې. ②اوچا ونیلی دی اتم کال دې ③اوچا اووم کال ونیلې دې.اوسن ایاس (یعنی د کوم عمر کي چې حیض بندیږی.اوبیا نه راځی)د اظهرقول په بناء ۵۵ کاله دی.(فتح القدیر، کفایه)

**دلیله>** دلیل دا دې.چه هره یوه میاشت د صغیرې اوکبیرې دواړو په حق کي د حیض قائم مقام ده.ځکه چې الله تعالى فرمانیلی دی ﴿وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ﴾ مطلب دا دې.که په تاسوکي ددې دواړه قسم ښځود عدت حکم مشتبه شی. نود دوی حکم دا دې.چه درې میاشتې دې تیرې کړی.ددې آیت نه معلومه شوه.چه د ښځو حیض راځی. نو درې

[1] ) **مسلك زفر:-** امام زفررحمه الله فرمانی.چه په حالت د حیض کښې ورته طلاق ورکول هم مکروه تحریمی دی. حضرت امام زفررحمه الله غیرمدخول بها په مدخول بها باندې قیاس کوی.

حیض نې عدت دې.اوکه حیض نه وي.نودرې میاشتې به ئې عدت وي.نومعلومه شوه.چه میاشت د حیض قائم مقام ده.

وَيَجُوزُأَنْ يُطَلِّقَهَا اوجائز ده چې دې ته طلاق ورکړي وَلَا يَفْصِلَ بَيْنَ وَطْيِهَا وَطَلَاقِهَا بِزَمَانٍ اود دې د وطی او طلاق په مینځ کښې په څه زمانه سره جدا والې اونکړي.

**تشریح>** د کومې ښځې چې د ماشوموالی د وجې حیض نه راځي یا آئسه وي او حیض ئې نه راځی که دې سره وطی اوکړي او سمدستی طلاق ورکول غواړي نو دا جائز ده او د ذوات الحیض پشان دې ته ضرورت نشته چې د صحبت کولو نه پس ئې حیض راشي او بیا طهر راشي نو په دغه طهر کښې به ورته طلاق ورکوي.

**دلیله>** د راروان طهر انتظار خو د دې دپاره کولې شي چې د حیض په وجه رحم پاك شي او د دې ښځې خو حیض راځي نه اود بچی پیدا کیدو احتمال هډو شته نه نو د دې وجې د صحبت نه پس سمدستي طلاق ورکولې شي.

**حاملې ښځې ته د مباشرت نه روسته طلاق ورکول**

وَطَلَاقُ الْحَامِلِ يَجُوزُعَقِيبَ الْجِمَاعِ حاملې له طلاق ور کول جائز دی دَ جماع نه روسته

**تشریح>** مسئله، د حاملې ښځې د طلاق او وطی په مینځ کې فصل ضروری نه دې.بلکه حاملې ښځې ته د جماع نه روسته هم طلاق ورکول جائزدی.

**دلیله>** وجه دا ده.چه دحاملې ښځې سره په وطی کولو سره عدت نه مشبه کیږي.ځکه چې په حامله کې د عدت طریقه وضع د حمل متعین ده.

**د حاملې د طلاق سنت طریقه**

وَيُطَلِّقُهَا لِلسُّنَّةِ ثَلَاثًا او حاملې ته به په سنت وخت کې درې طلاقه ور کړي يَفْصِلُ بَيْنَ كُلِّ تَطْلِيقَتَيْنِ بِشَهْرٍ عِنْدَأَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهما الله[1]فصل به کوی دَ هرو دوو طلاقو په مینځ کې په میاشت سره په نزد دَ شیخینو

**تشریح>** ① مسئله دا ده.چه آئسې اوصغیرې ته په داسې حال کې طلاق ورکول چې د طلاق اووطی په مینځ کې فصل اونشي.نودا جائزدې.هم دا دامام مالك امام شافعي اوامام احمد رحمهم الله قول هم دې.

**دلیلهما>** دلیل دا دې.چه د طلاق اباحت د حاجت په وجه دې.او میاشت د حاجت دلیل دې.لکه څنګه چې د آئسه اوصغیره په حق کې میاشت دلیل د حاجت ده.ځکه چې په میاشت کې په فطرت سلیمه کې شوق اورغبت پیدا کیږي.نوثابته شوه.چه میاشت د حامله په حق کې هم دلیل د حاجت دې.او وراندې تیرشوی دی.چه حکم د حاجت په دلیل باندې مرتب کیږي.په حقیقي حاجت باندې نه.اوچونکه د حامله په حق کې دلیل د حاجت (میاشت) موجود دې.نوددې په حق کې به هم په درې میاشتوکې جدا جدا د طلاق حکم مرتب کړې شي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ لَا يُطَلِّقُهَا لِلسُّنَّةِ إِلَّا وَاحِدَةً امام محمد رحمه الله وائی چه د سنت په وخت به طلاق نه ورکوی

---

[1]) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا في فتح القدير(٣\٣٣٨) والعناية (٣\٣٣٧) والدرالمختار (٢\٤٥٤) والهندية (١\٣٤٩) والبحرالرائق (٣\٣٦٢) نقلاً عن القول الراجح (١\٣١٠)–

مګر یو طلاق.

**مسلک محمد** امام محمد رحمه الله فرمائی.چه د حاملې ښځې لپاره سنت طلاق صرف یو طلاق دې.هم دا قول د امام زفر،امام مالك امام شافعي اوامام احمد رحمهم الله هم دې.

**دلیله** دلیل دا دې.چه اصل په طلاق کې ممانعت دې.اوشریعت په دې وارد شوې دې.چه طلاق د عدت په فصلونوباندې متفرق کړې شي.یعنی په ذوات الحیض کې دې درې طلاقونه په درېو طهرونوباندې متفرق واقع کړې شي.اوچونکه شریعت په دې باندې هم وارد شوې دې.چه میاشت د حیض قائم مقام ده.د ائسې اوصغیرې په حق کې.نوطلاقونه چې په میاشتومتفرق کولې شي.په دې کې به آئسه اوصغیره په ذوات الحیض پورې ملحق کولې شي.اودحاملې په حق کې میاشت د عدت په فصلونوکې نه ده.بلکه د طهرپه پوره مودهٔ کې په سنت طریقه صرف یوطلاق ورکولې شي.دغه ړول (دغه شان) که حاملې ښځې ته په سنت طریقه باندې طلاق ورکول غواړې.نوددې طلاق به په درېومیاشتو نشي متفرق کولې.بلکه په مسنون طریقه به د حمل په ټوله مودهٔ کې صرف یوطلاق ورکوي.

**الجواب عنه** د دې ځواب دا دې.چه حامله ښځه په هغه ښځه قیاس کول چې طهرنې اوږد شوې وي.خلاف قیاس دې.ځکه چې په دې دواړوکې توپیر(فرق) دې.فرق دا دې.چه د ممتدة الطهر په حق کې دلیل د حاجت طهر یعنی تجدید دطهردې.اوددې په اړه (باره) کې په هره زمانه کې امید کیدې شي.ځکه چې ممکن ده.چه په دې د حیض وینه راشي.اوددې نه روسته بیا طهرموجود شي.اودحمل سره دطهردتجدید امید نشي کیدې.ځکه چې د حاملې ښځې د حمل د وضع نه وړاندې حیض نه راځي.نوهرکله چې په دې دواړوکې دومره توپیر(فرق) دې.نود یوپه بل باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دې.

## په حالت دحیض کښې طلاق ورکول

| |
|---|
| وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ فِي حَالَ الْحَيْضِ وَقَعَ الطَّلَاقُ او که طلاقه کړه یو سړی خپله ښځه په حالت د حیض کې نو واقع شو طلاق |

**تشریح** مسئله،که یوسړی په حالت د حیض کې خپلې ښځې ته طلاق ورکړلو.نو طلاق واقع شو.اوپه اجماع سره طلاق ورکونکې ګناهګاردې.

**دلیله** دطلاق د واقع کیدو دلیل دا دې.چه په حالت د حیض کې طلاق ممنوع لغیره دې.(یعنی د طلاق نه منع خو په طلاق کې د څه وجې نه ده.بلکه د یوبل خارجي شي (څیز) د وجې ده)اوهغه غیره د عدت اوږدیدل دي.یعنی په حیض کې د طلاق ورکولوپه وجه به عدت اوږدشي.ځکه چې په کوم حیض کې چې طلاق ورکړې.هغه په عدت کې نشي شمارلې.اودغه شان چې په دې پسې کوم طهروي.هغه په کې هم نشي شمارلې.حاصل دا چې په حالت د حیض کې نهی د طلاق نه نهی لغیره ده.اودنهی لغیره سره مشروع لذاته باقي پاتې کیږي.ددې وجې مونږ (مونږ) وایو.چه په حالت د حیض کې د طلاق في نفسه مشروعیت نه ختمیږي.

| |
|---|
| وَيُسْتَحَبُّ لَهُ أَنْ يُرَاجِعَهَا او مستحب دی ورته چې ښځې ته مراجعت او کړی |

**حل اللغة** ① **الرجعة**:رجوع کول]

**تشریح** صاحب دقدوري رحمه الله فرمائی.چه ددې سړی لپاره خپلې ښځې ته رجوع کول مستحب دی.

**دلیله** دلیل دا دي.چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما خپلې ښځې ته په حالت د حیض کې طلاق ورکړې وو.نو حضرت عمر رضی الله عنه د نبي ﷺ نه په دې اړه (باره) کې پوښتنه (تپوس) اوکړه نبي ﷺ ورته اوفرمائيل. {فَلْيُرَاجِعْهَا} (¹)خپل خونې ته اووايه چه ښځې ته رجوع اوړکړي.

**الاستدلال** ددې حديث نه دوې (دوه) خبرې معلومې شوې.① يوه دا چې په حالت د حيض كې طلاق واقع كيږي.ځكه كه په حالت د حيض كې طلاق نه واقع كيدلو.نو حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ته چې نې د رجوع حكم كړې وو.د دې بيا څه مطلب وو؟ ②دويمه خبره دا چې په دې حديث كې په رجوع كولو ياندې اماده كړې شوې دې.

**د دويم طلاق د طهارت نه روسته خاوندته د رجوع كولواختيار**

| فَإِذَاطَهُرَتْ وَحَاضَتْ وَطَهُرَتْ بيا چې كله دغه پاكه شي او حائضه شي او بيا پاكه شي فَهُوَمُخَيَّرٌ نو ده ته اختيار دې فَإِنْ شَاءَ طَلَّقَهَا وَإِنْ شَاءَ أَمْسَكَهَا نو كه غواړي طلاق دې وركړي او كه غواړي او دې ساتي |
|---|

**تشريح** صورت د مسئلې دا دې.چه په كوم حيض كې ښځې ته طلاق وركړي.نوهغه حيض د ختميدو نه روسته چې طهر راشي.اووروسې بل حيض راشي.اود دويم حيض نه پاكه شي.نو ددې نه روسته ميړه (خاوند) ته دا اختيار حاصل دې.كه دا ايساروي.اوكه طلاق ورته وركوي.

**دليله** عقلي وجه دا ده.چه د دوو طلاقو په مينځ كې په كامل حيض سره فصل كول مسنون دې.اودلته چونكه هم په حيض كې طلاق واقع شوې دې.اوبيا هغې ته رجوع شوې ده.اوس كه په دې پسې چې كوم طهرراځي.په هغې كې طلاق وركړې شي.نود دوو طلاقونوپه مينځ كې كامل حيض فاصل نشو.بلكه د حيض څه برخه (حصه) فاصله شوه.نودا اول حيض به په دويم حيض باندې كامل كولې شي.اوپه حيض كې چونكه ويش (تقسيم) نشي كيدې. نو ښځه به دويم حيض هم پوره تيروي.نوهركله چې دويم حيض پوره شي.اوپه هغې پسې كوم طهر راشي.هغه د سنت طلاق وخت دې.او په دغه طهركې په مسنون طريقه وركول ممكن دي.

**د چا طلاق واقع كيږي اودچا نه**

| وَيَقَعُ طَلَاقُ كُلِّ زَوْجٍ إِذَا كَانَ عَاقِلًا بَالِغًا (فصل) واقع كيږي طلاق دَ هر ميړه (خاوند) كله چې دې بالغ او عاقل وي وَلَا يَقَعُ طَلَاقُ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ وَالنَّائِمِ او نه واقع كيږي طلاق دَ صبي (ماشوم) او مجنون او د اوده |
|---|

**تشريح** په دې ځاني كې دا مسئله بيان شوې ده.چه د چا طلاق واقع كيږي اوكه د چا نه واقع كيږي. فرماني.كه ميړه (خاوند) عاقل بالغ وي.اوده خپلې ښځې ته طلاق وركړلو.نوطلاق واقع كيږي.اوكه ماشوم يا ليونې يا اوده وي.نوطلاق نه واقع كيږي.

**دلائله** ① ځكه چې نبي ﷺ فرمائيلي دي. كُلُّ طَلَاقٍ جَائِزٌ إِلَّا طَلَاقَ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ (²) هريوطلاق واقع كيږي سوا د ماشوم او ليونې د طلاقه.

¹ - من حديث ابن عمر رضی الله عنهما اخرجه البخاري في الطلاق باب ١ رقم ٥٢٥١ ومسلم في الطلاق رقم ١ وابوداود في الطلاق باب ٤ رقم ٢١٧٩ والترمذي في الطلاق باب ١ رقم ١١٧٥ والنسائي في الطلاق رقم ٣١٧٥ وابن ماجه ى الطلاق باب ٢ رقم ٢٠١٩ ) .

② دویم دلیل دا دې.چه د تصرف اهلیت په عقل ممیزباندې راځي.(یعنی دهغه چاتصرف قبلیږي.چه په چا کې عقل وی.اود ښه اوبد تمیزکولې شي)اوماشوم اولیوني دواړو کې عقل ممیز نشته.نومعلومه شوه.چه په دوی دواړوکي د طلاق اهلیت نشته.اوچه د طلاق اهلیت په کې نشته.نود دوی طلاق به واقع کیږی هم نه.اوځوك چې اوده وی.نوپه ده کې اختیارنشته.حالانکه په تصرف کې اختیارشرط دې.

**د غلام په ښځه د مالك طلاق نه واقع کیږی**

| وَإِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ بِإِذْنِ مَوْلَاهُ وَطَلَّقَهَا کله چې غلام دَ یوې ښځې سره نکاح اوکړه په اجازت دَ مولی خپل او طلاقه يې کړه وَقَعَ طَلَاقُهُ واقع شو طلاق دَ ده وَلَا يَقَعُ طَلَاقُ مَوْلَاهُ عَلَى امْرَأَتِهِ او دَ ده په ښځه دَ ده د مولی طلاق نه واقع کیږی |
|---|

**تشریح>** صورت د مسئلې ښکاره دې.(وضاحت ته ضرورت (ضرورت) نشته)

**دلیله>** ځکه چې ملك دَ نکاح دَ غلام حق دې نو دَ دې ساقط کول به دَده حق وی نه چې دَ مولی دَ ده.

**صریحی اوکنائی طلاق**

| وَالطَّلَاقُ عَلَى ضَرْبَيْنِ: صَرِيحٌ، وَكِنَايَةٌ طلاق په دوې (دوه) قسمه دې.صریح او کنایه. فَالصَّرِيحُ قَوْلُهُ: أَنْتِ طَالِقٌ وَمُطَلَّقَةٌ وَطَلَّقْتُكِ نو طلاق صریح لکه دده قول [أنت طالق،او مطلقة، او طلقتك] فَهَذَا يَقَعُ بِهِ الطَّلَاقُ الرَّجْعِيُّ نو( دا داسې الفاظ دی) چې په دې سره طلاق رجعی واقع کیږی. |
|---|

**تشریح>** په عبارت کې طلاق په معنی د تطلیق دې.بهرحال د طلاق دوې (دوه) قسمونه دی.صریحی او کنایه.صریحی دې ته وائی.چه د هغې مراد بغیرد بیان نه ښکاره وی.اوکنایه هغې ته وائی.چه د هغې مراد د بیان نه بغیرښکاره نه وی.صریحی طلاق دا دې.چه خپلې ښځې ته اووائی.[أنت طالق، أنت مطلقة،یا طلقتك] په دې الفاظو سره طلاق رجعی واقع کیږی.

**دلیله>** دلیل دا دې.چه دا الفاظ د طلاق په معنی کې استعمالیږی.په بله معنی کې نه استعمالیږی.نودا الفاظ د طلاق صریحې په معنی کې دی.اود طلاق صریحی نه روسته د دې آیت مطابق ﴿وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ﴾ رجعت ثابتیږی. اوطلاق صریحی د نیت محتاج هم نه وی.ځکه چې د طلاق په معنی کې دا الفاظ د زیات استعمال د وجې صریحی دی.حاصل دا چې نیت وی د مبهم د تعین دپاره.اود دې الفاظو په دلالت کې څه ابهام نشته.نودا الفاظ په خپله معنی باندې په دلالت کولوکې د نیت محتاج نه دی.

**په [انت طالق،طلقتك، یا مطلقة] سره طلاق ورکول**

| وَلَا يَقَعُ بِهِ إِلَّا وَاحِدَةٌ وَإِنْ نَوَى أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ او نه واقع کیږی.( په ذکر شوی درې واړه لفظونوکې په هر یو) مګر یو( طلاق) اګرچه ددې نه نې د زیاتی نیت کړې وی |
|---|

**تشریح>** د [لايقع به إلا واحدة] تعلق د وراندینی عبارت [فهذا يقع به الطلاق الرجعي] سره دې.① اوس

---

۳۷) غريبه الزيلعي رحمه الله ثم أخرج من حديث ابي هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم كل طلاق جائز إلا طلاق المعتوه المغلوب على عقله أخرجه الترمذي في الطلاق باب ۱۵ رقم ۱۱۹۱)۔

حاصل د مسئلې دا شو.چه په دې الفاظو [أنت طالق، مطلقة، طلقتك] سره به طلاق رجعي واقع کيږي.اوپه دې درې واړه الفاظوکې به په هريوسره صرف يو طلاق واقع کيږي.اګرچه د يو نه د زياتو نيت ئې کړې وی.دا خو زمونږ مذهب دې. (۱)

**دليله>** دليل دا دې.چه لفظ د طالق لغت فرد دې.ځکه چې دا د يوې ښځې صفت دې.هم دا وجه ده چې د دوو لپاره طالقان اود دريو لپاره طوالق وئيلی شی.اوهرهغه لفظ چې لغت فرد وی.هغه د عدد احتمال نه لری.ځکه چې عدد د فرد ضد دې.اويوځيزد خپل ضد احتمال نه لری.نوپه [أنت طالق] سره به د دوو يا د دريوطلاقونو نيت کول صحيح نه وی.

| وَلَايَفْتَقِرُ بِهٰذِهِ الالفاظ إِلَى النِّيَّةِ اوپه دې الفاظو کښې دا (صريح طلاق) د نيت محتاج نه وی. |
|---|

**تشريح>** دا وړاندې چې کوم الفاظ ذکرشو.دا د طلاق په معنی کښې صريحی دی.د نيت څه ضرورت نشته بس چې په دې الفاظو سره ئې طلاق ورکړو.طلاق واقع شو که نيت ئې کړې وی اوکه نه وی.

**دليله>** دليل دا دې.چه دا الفاظ د طلاق په معنی کې استعماليږی.په بله معنی کې نه استعماليږی.نودا الفاظ د طلاق صريحی په معنی کې دی.اود طلاق صريحی نه روسته د دې آيت مطابق ﴿وَبُعُوْلَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ﴾ رجعت ثابتيږی. اوطلاق صريحی د نيت محتاج هم نه وی.ځکه چې د طلاق په معنی کې دا الفاظ د زيات استعمال د وجې صريحی دی.حاصل دا چې نيت وی د مبهم د تعين دپاره.اود دې الفاظو په دلالت کې څه ابهام نشته.نودا الفاظ په خپله معنی باندې په دلالت کولوکې د نيت محتاج نه دی.

**د طلاق د مختلفوالفاظو ذکر**

| وَقَوله أَنْتِ الطَّلَاقُ أَوأَنْتِ طَالِقٌ الطَّلَاقَ أَوأَنْتِ طَالِقٌ طَلَاقًا،اوکه وې وئيل.[أنت الطلاق، ياأنت طالق الطلاق، ياأنت طالق طلاقا] فَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ نوکه دده هيڅ نيت نه وی. فَهِيَ وَاحِدَةٌ رَجْعِيَّةٌ نو دا يو (طلاق) رجعي دې.وَإِنْ نَوى بِه ثَلَاثًا فَثَلَاثٌ اوکه د دريو نيت ئې پرې کړې وی.نو درې دی |
|---|

**تشريح>** په عبارت کې د طلاق درې الفاظ ذکردی.په دې درې واړه صورتونوکې که ئې د څه نيت نه وی کړې.يا ئې د يويا د دوو طلاقو نيت کړې وی.نوطلاق رجعي به واقع کيږی.اوکه د دريونيت ئې کړې وی.نودرې به واقع کيږی.

**دليل لفظ الثاني والثالث>** په دويم لفظ چې [أنت طالق الطلاق] اوپه دريم لفظ [أنت طالق طلاقا] باندې د طلاق واقع کيدل ښکاره دی.ځکه که دې کس صرف صيغه د صفت [طالق] ذکرکړې وه.نوهم به يوطلاق واقع کيدلو.خوچه ده ورسره هم ذکرکړلوحالانکه مصدر د صفت تاکيد کوی.نوپه دې صورت کې خوبه خامخا طلاق واقع کيږی.

**دليل لفظ الاول>** اوپه اولنی لفظ يعنی [أنت طلاق] باندې طلاق ځکه واقع کيږی.چه بعضې وخت ذکرمصدر اوشی.اومراد ترې اسم وی.لکه په [رجل عدل] کې د عدل نه مراد عادل دې.دغه ډول (دغه

---

(۱) **مسلک الشافعي**:- دامام شافعي رحمه الله مذهب دا دې.چه د څومره طلاقونو نيت ئې کړې وی.که دوې (دوه) وی اوکه درې.هم هغه هومره به واقع کيږی.هم دا قول دامام مالك اوامام زفراو په يو قول کې دامام احمد رحمه الله هم دې.

شان، دلته د طلاق مصدر نه طالق مراد اخستلې شي.نو [أنت الطلاق] د [أنت طالق] پشان شو. اوچونکه په [أنت طالق] باندې طلاق واقع کیږي.نوپه [أنت الطلاق] باندې به هم واقع کیږي.

**دکنایه طلاق بیان**

وَالضَّرْبُ الثَّانِي الْكِنَايَاتُ وَلَا يَقَعُ بِهَا الطَّلَاقُ إِلَّا بِالنِّيَّةِ أَوْبِدَلَالَةِ حَالٍ او دوهم (قسم) ثاني هغه کنايات دي.چه ددې په ذريعه طلاق نه واقع کيږي.خو په نيت سره.يا دلالتِ حال سره

**تشریح** > مصنف رحمه الله چې کله د طلاق د اولنی دول (قسم) یعنی صریحی طلاق نه فارغ شو. نو اوس په دویم دول (قسم) یعنی کنایه طلاق باندې پیل (شروع) کوی.کنایه هغه دې.چه دهغې مراد پټ اومخفی وی.اودکنایه حکم دا دې.چه په دې به عمل واجب نه وی.البته دا چې نیت موجود وی.یاد نیت قائم مقام یعنی دلالت حال وی.

**دلیله** > دلیل دا دې.چه دکنایه الفاظ صرف د طلاق لپاره نه دی مقرر.بلکه په طلاق اوغیرطلاق دواړواحتمال لری.نوپه نیت سره یوه معنی متعین کول ضروری شو.یاکم ازکم د معنی د تعین لپاره دلالت ضروری دې.

**دکنایاتو قسمونه**

وَهِيَ عَلَى ضَرْبَيْنِ اوکنايات په دوې (دوه) قسمه دی مِنْهَا ثَلَاثَةُ أَلْفَاظٍ يَقَعُ بِهَا الطَّلَاقُ الرَّجْعِيُّ په دې کې درې الفاظ داسې دی.چه په دې سره طلاق رجعی واقع کيږي وَلَا يَقَعُ بِهَا إِلَّا وَاحِدَةٌ او په دې کې به صرف يو واقع کيږي وَهِيَ قَوْلُهُ: اِعْتَدِّي وَاسْتَبْرِئِي رَحِمَكِ وَأَنْتِ وَاحِدَةٌ او هغه دده قول،اعتدی و استبرئی رحمك، او انت واحدة، دی

**تشریح** > فرمائی.چه د کنایاتو دوې (دوه) قسمونه دی.① یوهغه چې په هغې باندې یوطلاق رجعی واقع کیږي. ②اوبل هغه چې په هغې باندې یوطلاق بائن واقع کیږي.

**دلیل الكلمة الاولی** > داولنی دول (قسم) درې الفاظ دی. [① إعتدی②إستبرئ رحمك③أنت واحدة] په دې درې واړه الفاظوکې هریود دوو دوو معانیواحتمال لری.نوپه نیت یا دلالت سره د یوې معنی تعین کیدې شی. ړومبۍ کلمه [إعتدی] کې دوې (دوه) احتماله دی.هغه داسې چې یوه معنی ئې ده.ته شمارکړه ورځې د عدت خپلې.اودویمه معنی دا ده.چه ته دالله ﷻ نعمتونه شمارکړه.نوکه میړه (خاوند) د ړومبۍ معنی نیت کړې وی.نودده په نیت سره به ړومبۍ معنی متعین شی.اودا معنی د طلاق د وراندیوالی تقاضا کوی.ځکه چې د عدت تیرولو حکم دطلاق واقع کیدو نه وراندې نه کیږي.نودا به منل ضروری شی.چه طلاق وراندې واقع شوې دې.

**دلیل الكلمة الثانیة** > اودویمه کلمه [إستبرئ رحمك] دا هم د دوو معانیواحتمال لری.یوه معنی دا چې عدت تیرکړه.اود عدت تیرولو نه مقصود دا دې.چه رحم پاك کړه.نولکه چې د عدت مقصود ئې ښکاره ذکرکړلو .نو [إستبرئ رحمك] د [إعتدی] په درجه کې شو.اودویمه معنی دا ده.چه دحیض نه خپل رحم پاك کړه.چه په سنت طریقه درته طلاق درکړې شم.په دې صورت کې هم که د ړومبۍ معنی نیت اوکړی.نو ړومبۍ معنی به متعین شی.اودا معنی دا تقاضا کوی.چه طلاق وراندې واقع شوې دې.

**دلیل الكلمة الثالثة** > اوپاتې شوه دریمه کلمه د [أنت واحدة] نوپه دې کې هم د دوو معانیواحتمال دې.یوه دا چې واحدة د محذوف مصدر صفت اوګرځولې شی.یعنی [تطلیقة واحدة] اودویمه معنی دا ده.چه

ميړه (خاوند) ددې تعريف کوي.چه ته زما په نيزبه زمانه کې بيمثاله نې.يا ته زما په قوم کې بيمثاله نې.يعنې ستاپشان بله ښځه نشته.نوپه دې صورت کې نې هم که د ړومبې معنی نيت کړې وي.نولکه چې ده [أنت تطليقة واحدة] اووئيل.اوپه دې کلام سره به طلاق رجعی واقع کيږي.نوپه [أنت واحدة] سره به هم يوطلاق رجعی واقع کيږي.

**دکنايه د الفاظو قسمونه**

| وَبَقِيَّةُ الْكِنَايَاتِ إِذَا نَوَى بِهَا الطَّلَاقَ او باقي کنايات کله چې په دې سره د طلاق نيت اوکړي. كَانَتْ وَاحِدَةً بَائِنَةً نو يو بائن به وي وَإِنْ نَوَى ثَلَاثًا اوکه د دريو نيت نې اوکړو كَانَتْ ثَلَاثًا نو درې به وي وَإِنْ نَوَى ثِنْتَيْنِ كَانَتْ وَاحِدَةً اوکه د دوې (دوه) نيت نې اوکړو.نو يو بائن به وي |
|---|

**تشريح>** دلته مصنف رحمه الله دکناياتو دويم دول (قسم) بيان کوي.يعنې د ذکرشوو درې الفاظونه علاوه چې باقي کوم الفاظ دی.په هغې باندې يوطلاق بائن واقع کيږي.که د يو نيت نې کړې وي.اودوې (دوه) که د دوو اودرې که دريونيت نې کړې وي.

| وَهٰذِهٖ مِثْلُ قَوْلِهٖ: أَنْتِ بَائِنٌ وَبَتَّةٌ وَبَتْلَةٌ اودا مثلاً دده قول، انت بائن، وبتة، وبتلة ....الخ، ته بائنه نې.ته قطع شوې نې وَحَرَامٌ وَحَبْلُكِ عَلٰى غَارِبِكِ.ته حرام نې.او ستا رسۍ ستا په سټ کې ده. وَالْحَقِي بِأَهْلِكِ اوته خپل کور والا خلقو سره ملاؤ شه. وَخَلِيَّةٌ وَبَرِيَّةٌ او ته خالي نې او ته برى نې. وَوَهَبْتُكِ لِأَهْلِكِ وَسَرَّحْتُكِ او ماته ستا کور والا ته هبه کړې.او ما ته پريخودلې وَفَارَقْتُكِ او ما ستا سره مفارقت اوکړو. وَأَنْتِ حُرَّةٌ اوته آزاده يې وَتَقَنَّعِي وَتَخَمَّرِي وَاسْتَتِرِي.ته په مخ واچوه.ته لوپټه واچوه.ته پرده اوکړه. وَاغْرُبِي وَابْتَغِي الْأَزْوَاجَ ته لرې شه.ته اوځه، او ته ځان له خاوندان اولټوه |
|---|

**تشريح>** په عبارت کې چې د کنايه کوم الفاظ ذکرشوي دي.په ټولو کې د طلاق اوغيرطلاق دواړو احتمال شته.نود يومتعين کولو لپاره نيت ضروري دې.اودهريولفظ نه دوې (دوه) معانی راويستل څه ګران نه دي.مثلاً آخرى کلمه [وابتغي الأزواج] ددې يوه معنی دا ده.چه ته همسيال ښځې اولټوه.چه زړه دې خوشحاله شي.دويمه معنی دا ده.چه ته خاوندان اولټوه.ځکه چې ته زما نه بائنه شوې نې.على هذا القياس

**دليل>** ځکه چه دا الفاظ د طلاق او غير طلاق احتمال لري. نو نيت ضروري دي.

**په طلاق کښې د حالاتو او کناياتو بيان**

| فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ نِيَّةُ الطَّلَاقِ که چرته د ده نيت د طلاق نه وي لَمْ يَقَعْ بِهٰذِهِ الْأَلْفَاظِ طَلَاقٌ نو نه واقع کيږي په دې الفاظ سره طلاق إِلَّا أَنْ يَكُونَا فِي مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ فرمائي.مګر داچه مذاکره د طلاق په حالت کښې وي فَيَقَعُ بِهَا الطَّلَاقُ فِي الْقَضَاءِ نو په دې الفاظو سره به طلاق واقع کيږي قضاءً وَلَا يَقَعُ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ اللّٰهِ تَعَالٰى إِلَّا أَنْ يَنْوِيَهُ او فيما بينه وبين الله به نه واقع کيږي.خودا چه د طلاق نيت اوکړي.( نو بيا به واقع کيږي) |
|---|

**تشريح>** په وړانديني مسئله کښې تيرشو.چه د کنايه په الفاظوکښې د طلاق د نيت نه بغيرطلاق نه واقع کيږي.البته دا چه د طلاق د خبروکولوپه دوران کښې وي.دقدوري د عبارت خلاصه دا ده.چه د کنايه په الفاظود نيت نه بغيرطلاق نه واقع کيږي.البته که ښځه اوخاوند دواړه د طلاق خبرې

کوی.اوهم په دغه وخت کښې خاوند د کنایه په څه لفظ سره مخاطبه کړله.نوپه دې صورت کښې د طلاق نیت ضروری نه دې.بلکه د نیت نه بغیرقضاءً طلاق واقع کیږی.اګرچه دیانةً د الله اوبنده په مینځ کښې طلاق نه واقع کیږی.

| وَاِنْ لَمْ يَكُوْنَا فِيْ مُذَاكَرَةِ الطَّلَاقِ اوکه چرته دواړه په حالت د مذاکره د طلاق کښې نه وو وَكَانَا فِيْ غَضَبٍ أَوْخُصُوْمَةٍ اودواړه په غصه کښې وو یا په جګړه کښې وو وَقَعَ الطَّلَاقُ بِكُلِّ لَفْظَةٍ نو واقع کیږی طلاق په هر هغه لفظ سره لَايُقْصَدُ بِهَا السَّبُّ وَالشَّتِيْمَةُ چې نشی قصد کولې په هغې سره کنځل او سپیرتوب وَلَمْ يَقَعْ اونه واقع کیږی طلاق بِمَا يُقْصَدُ بِهَا السَّبُّ وَالشَّتِيْمَةُ په هغه الفاظو سره چې قصد کولې شی په هغې سره کنځل او سپرتوب الاان ینویه مګر دا چې نیت نې کړې وی |
|---|

**تشریح> تسامح صاحب القدوری>** علامه مرغینانی رحمه الله په هدایه کښې فرمائیلی دی.چه امام قدوری رحمه الله د کنایه په الفاظوکښې ټول د نیت په ضرورت کښې برابر کړل. حالانکه دا حکم مطلق نه دې.بلکه صرف په هغه الفاظوکښې دې.چه هغه د رد صلاحیت نه لری.

**اقسام الاحوال>** ددې تفصیل دا دې.چه حالات درې دی.① حالت مطلقه یعنی د رضا حالت
② حالت مذاکره طلاق مثلاً ښځه د خاوند نه د طلاق سوال کوی.یا ترې بل څوك د طلاق سوال کوی.
③ حالت د غصې یعنی د دواړوطرفونونه د غصې خبرې کیږی.

**اقسام الکنایات>** دغه شان د کنایاتوهم درې قسمونه دی.① دکنایه هغه الفاظ چه هغه رد اوجواب دواړه کیدې شی.یعنی د ښځې دطرفه چه دطلاق کوم سوال شوې وی.دهغې جواب هم کیدې شی.اورد هم.
② دویم هغه الفاظ چه هغه جواب خوکیدې شی.اورد نشی کیدې.
③دریم هغه الفاظ کوم چه رد اوجواب هم کیدې شی.او کنزلې (بد رد ونیل) هم.

**حکم حالة الرضا>** [۱]چه په حالت د رضا کښې په دې الفاظوکښې هیڅ یولفظ د نیت نه بغیرطلاق نه واقع کیږی.اوکه خاوندد طلاق دَ نیت نه انکارکوی.نودده خبره به معتبره وی.

**دلیله>** ځکه چه دا ټول الفاظ د طلاق اوغیرطلاق دواړو احتمال لری.نودیوې معنی د متعین کولودپاره نیت ضروری دې.

**حکم حالة مذاکرة الطلاق>** [۲]په حالت د مذاکره د طلاق کښې د خاوند دا قول چه [لم أنوالطلاق] ما د طلاق نیت نه ووکړې.نوپه دې الفاظوکښې چه کوم جواب کیدې شی.اورد کیدې نشی.په هغې کښې به نې قضاءً تصدیق نشی کولې.اودا اته الفاظ دی.① خلیه② بریة③ بائن④ بتة⑤ حرام⑥ إعتدی⑦ أمرك بیدك⑧ إختاری.

**دلیله>** دلیل دا دې.چه کله ښځې د طلاق سوال اوکړلو.اوخاوند ورته په دې اته الفاظوکښې یواوئیل. نو ظاهره هم دا ده.چه ددې نه مراد هم طلاق دې.اوحاکم په ظاهرباندې دعمل کولوپابند دې په باطن نه.

**الاستثناء>** البته هغه الفاظ کوم چه رد اوجواب دواړه کیدې شی.نوپه هغې کښې به د خاوند د قول [لم أنوالطلاق] تصدیق کولې شی.اوهغه اووهٔ الفاظ دی.

①إذهبی②أخرجی③قومی④ تقنعی⑤تخمری⑥إغربی⑦إستبرئی .دلیل دا دې. چه دا الفاظ د طلاق نه سوا د نوروومعانیواحتمال هم لری.

**حکم حالة الغضب>** په حالت دغصه کښې د کنایه په ټولوالفاظوکښې به دده د قول چه [لم أنوالطلاق] تصدیق کولې شی.

**دلیله>** خکه چه په دې الفاظوکښې د رد احتمال دې یا د کنځلو.خوکوم الفاظ چه صرف طلاق کیدې شی.رد اوکنځل نشی کیدې.نوپه هغې کښې به د خاوند د قول چه [لم أنوالطلاق] تصدیق نشی کولې.اوهغه درې الفاظ دی.[① إعتدی② إختاری③ أمرك بيدك] دلیل دا دې.چه غصه په طلاق مراد اخستلوباندې دلالت کوی.نود ده تصدیق به په دې کښې نشی کولې.چه زما نیت د طلاق نه وو.

## طلاق په شدت یا زیادت سره موصوف کول

| وإذاوَصَفَ الطَّلاَقَ بِضَرْبٍ مِنْ الشِّدَّةِأَوْالزِّيَادَةِكَـانَ بَائِنًا اوکله نې چه طلاق په وصف زیادت او شدت سره متصف کړو.نو بائن به وی مِثْلُ أَنْ يَقُولَ:أَنْتِ طَـالِقٌ بَائِنٌ مثلاً وې ونیل.[أنت طالق بائن،] أَنْتِ طَـالِقٌ أَشَدَّ الطَّلاَقِ اویا نې ښځې ته اوونیل.[أنت طالق أشد الطلاق اوأَفْحَشَ الطَّلاَقِ،او هم دغه شان ( طلاق بائن به واقع کیږی) کله چه اووانی.[أنت طالق أفحش الطلاق] اوطَلاَقَ الشَّيْطَانِ أَوْطَلاَقَ الْبِدْعَةِ .او اووانی.،طلاق الشیطان، یا ،طلاق البدعة أَوْكَالْجَبَلِ أَوْمَلاَءِالْبَيْتِ یا پشان د رسی؛ یا د زمکې په دکوالی |
|---|

**تشریح>** ①مسئله که طلاق د شدت یا زیادت په صفت سره متصف کړی. مثلاً چه اووانی.[أنت طالق بائن] الخ نوپه دې صورت کښې به طلاق بائن واقع کیږی [1] نو په دې ټولو صورتونوکښې به یوطلاق بائن واقع کیږی اوکه د دریو نیت ئې کړې وو.نودرې به واقع کیږی.

## ښځې یاد هغې یواندام ته د طلاق نسبت کول

| وَإِذَاأَضَافَ الطَّلاَقَ إِلَى جُمْلَتِهَا او کله چه ( سړی) طلاق منسوب کړو.کُل ښځې طرف ته أَوْإِلَى مَايُعَبَّرُ بِهِ عَنْ الْجُمْلَةِ یا هغه جزء طرف ته په کوم سره چه کُل تعبیر کولې شی وَقَعَ الطَّلاَقُ نو طلاق به واقع کیږی مِثْلَ أَنْ يَقُولَ أَنْتِ طَالِقٌ اودا مثلاً اووانی.،انت طالق، أَوْرَقَبَتُكِ طَالِقٌ أَوْعُنُقُك طَـالِقٌ أَوْ رُوحُك أَوْبَدَنُك أَوْجَسَدُك أَوْفَرْجُك أَوْوَجْهُك.یا اووانی.ستا سټ طلاق والا دې.یا ستا عُنق (مرئ) طلاق والا دې.یا ستا سر طلاق والا دې.یا ستا روح، یا ستا بدن، یا ستا جسد( جسم) یا ستا شرمګاه یا ستا مخ ( طلاق والا دې). |
|---|

**تشریح>** صاحب دقدوری رحمه الله یوه ضابطه ذکرکړې ده.هغه دا که دطلاق نسبت ټولې ښځې یا د هغې داسې یواندام ته اوکړې شی.چه د هغې په ټول بدن برې اطلاق کیدې شی.نوپه دې باندې طلاق واقع کیږی.

**دلیله>** خکه چه په دې صورت کښې طلاق خپل محل یعنی ښځې طرف ته منسوب شوې دې.خکه چې ضمیر د مخاطب په کښې استعمال شوې دې اومخاطبه نې ښخه ده.دغه شان که د ښځې یو جزء ته طلاق منسوب کړی نو هم دا حکم دې.مثلا رقبتك طالق وغیره شو.خکه چه په دې اندامونوکښې په هریواندام سره دټول بدن نه تعبیرکولې شی.نودښځې ددې اندامونوته نسبت کول داسې دی.لکه چه ښځې ته نسبت اوشی

[1] مسلک الشافعي:- امام شافعی رحمه الله فرمانی.چه که د دخول نه پس وی.نوطلاق رجعی واقع کیږی.

وکذلك ان طلق جزاء شائعاً منها مثل ان يقول نصفك اوثلثك طالق دغه شان حکم دې يعنی طلاق واقع کيږی چې يو شائع جزء ته نسبت اوکړی لکه چې اووائی ستا نيم بدن يا ستا دريمې حصې ته طلاق دې

**تشريح>** چې د بدن يو داسې حصې ته نسبت د طلاق اوشی چې هغه په ټول بدن کښې خور وی معين نه وی لکه نيم بدن يا دريمه شوه په دې کښې دا پته نه لګی د چې بدن کومه حصه څکه چې مطلق بدن نې ياد کړې دې نو طلاق واقع کيږی.

**دليله>** دليل دا دې.چه جزء شائع دټولو تصرفاتو(بيع اوشراء وغيره) محل دې.اوچونکه طلاق هم يو تصرف دې.ددې به هم محل وی.خوچونکه طلاق تقسيم اوتجزی نه قبلوی.يعنی داسې نشی کيدې.چه طلاق دې د بدن په يوه حصه واقع شی.اوپه څه دې واقع نشی.نوځکه د ضرورت په وجه به په ټول بدن کښې واقع کيږی.

**جزء معين ته طلاق منسوب کول**

وَلَوْقَالَ: يَدُكِ طَالِقٌ أَوْرِجْلُكِ طَالِقٌ او که وې وئيل.،يدك طالق، يا رجلك طالق لَمْ يَقَعْ الطَّلَاقُ نو طلاق به نه واقع کيږی

**تشريح>** که دطلاق نسبت د بدن هغه معين جز ته اوشی په کوم سره چې د ښځې د ټول بدن نه تعبير نشی کولې نو هيڅ طلاق نه واقع کيږی.

**دليله>** څکه چې په دې صورت کښې طلاق غير محل ته منسوب شوې دې نو طلاق به لغو وی صاحب د هدائې فرمائيلی دی چې طلاق د قيد ختمول دی او قيد په هغه وخت کښې ختميږی چې د وراندې نه قيد وی اوپه لاس وغيره کښې قيد نشته نوکه دې ته طلاق منسوب شی نو نه به واقع کيږی.

وَإِنْ طَلَّقَهَا نِصْفَ تَطْلِيقَةٍ أَوْثُلُثَ تطليقة اوکه طلاق ئې ورکړو( ښځې ته) د يو طلاق نصف، يا دريم ( حصه). كَانَتْ تَطْلِيقَةً وَاحِدَةً نودا به يو طلاق وی

**تشريح>** مسئله دا ده.که يوکس خپلې ښځې ته نيم طلاق يا دريمه حصه طلاق ورکړلو.نودا به پوره طلاق شمارلې شی.اوښځه به په يوطلاق طلاقيږی.

**دليله>** طلاق تجزی نه قبلوی.يعنی نه تقسيميږی.اوقاعده دا ده.چه د بعضې [مالايتجزیٰ] ذکر د کل د ذکرپشان دې.نولکه د نيم يا دريمې حصې طلاق ذکرد ټول طلاق ذکردې.نو څکه به په دې ټولو الفاظو پوره يوطلاق واقع کيږی.

**په زورد طلاق ورکولوحکم**

وَطَلَاقُ الْمُكْرَهِ وَالسَّكْرَانِ وَاقِعٌ او طلاق دَ مکره اود بې هوشه واقع دې

**تشريح> حکم طلاق المکره>** مکره د کاف په فتح سره هغه کس ته وائی.چاته چه د بادشاه دطرفه د ده د بدن يا يواندام ته د تکليف رسولودهمکی ملاؤ شوې وی.ياورته د داسې کس نه دهمکی ملاؤ شوې وی.چه دهغه نه د دغه ضرر رسول متصور(اوممکن) وی.

مسئله دا ده.که يوکس مجبوره کړې شی.چه ته خپلې ښځې ته طلاق ورکړه.اودې طلاق ورکړی. نودده طلاق واقع کيږی. ([1])

[1] دامام شافعی رحمه الله په نيزنه واقع کيږی.امام مالك اوامام احمد رحمهما الله هم ددې قائلين دی.

**دلیله**> دلیل دا دي.چه مجبور کس خپلې بی بی ته د طلاق ورکولواراده کړې ده.اوپه ده کښې دخپلې ارادې نافذ کولواهلیت هم شته.نودا په قصد سره طلاق ورکول به د خپلې مقتضا اوحکم نه خالی نه وی.

دې دپاره چه دعلت نه د حکم روستووالي رانشي.اوچه د مجبورکړې شوی کس حاجت پوره شی.چه د کوم څیزنه ویرولې شوې دې.دهغې نه ورته خلاصې ملاؤ شي.اوځوك چه مجبوره کړې شوي وی.دې په هغه کس باندې قیاس کولې شی.ځوك چه په خپله خوښه طلاق ورکړی.(اودهغه طلاق واقع کیږی.نودده به هم واقع کیږی)

**تعريف السكران**> په عبارت کښې د سکران نه مراد هغه کس دې.چه د نشې په آخری حالت کښې وی.تردې چه په زمکه اوآسمان کښې هم فرق نشي کولې.

**حكم طلاق السكران**> مسئله دا ده.که یوکس په حالت د نشه کښې خپلې ښځې ته طلاق ورکړلو. نوزمونږ طلاق واقع کیږی. ([1])

**دلیله**> دلیل دا دې.چه ددې کس عقل په داسې سبب سره زائله شوې دې.چه هغه معصیت اوګناه ده.یعنی د شرابووغیره څکل.نودې کس ته د زورنې ورکولوپاره دده عقل حکماً باقی پریخودې شو.اوهرکله چه حکماً دده عقل باقي پریخودې شو.نوچه دې طلاق ورکړی.هغه به واقع کیږی.

هم دا وجه ده.که یوکس شراب اوڅکل.بیا دهغې د وجې دهغه په سرباندې درد شو.اود سرد درد په وجه ئې عقل زائله شو.اوده خپلې ښځې ته طلاق ورکړلو.نومونږ هم دا وایو.چه دده ورکړې شوې طلاق نه واقع کیږی.ځکه چه په دې صورت کښې د عقل زوال د ګناه د وجې نه نه دې شوې.بلکه د سرد درد په وجه شوې دې.

| وَيَقَعُ الطَّلَاقُ اوواقع کیږی طلاق د مکره او د سکران إِذَاقَالَ چې دې اووائی نَوَيْتُ بِهِ الطَّلَاقَ ما په دې سره د طلاق نیت کړې وو. |
|---|

**تشريح**> دعامو فقهاؤ په نیز د مکره او سکران صریح طلاق بغیر د نیت نه هم واقع کیږی د دې وجې دا عبارت د کاتبانو نه په سهوه سره لیکلې شوې دې البته په بعضې نسخو کښې دا عبارت داسې دې «ويقع الطلاق بالكنايات اذا قال نويت به الطلاق» او د دې عبارت مطلب دا دې چې په کنائی الفاظو سره طلاق واقع کیږی چې د طلاق نیت ئې هم کړې وی دا عبارت اګرچې د مضمون په لحاظ سره صحیح دې خو دلته په دې ځائې کښې بې محله دې ([2])

**دګونګا د طلاق حکم**

| وَيَقَعُ طَلَاقُ الْأَخْرَسِ بِالْإِشَارَةِ اودګونګې طلاق به واقع وی په اشاره سره |
|---|

**حل اللغة**> ① **اخرس**: ګونګاه]

**تشريح**> مسئله دا ده.چه د ګونګا طلاق په اشاره سره واقع کیږی.

**دلیله**> دلیل دا دې.چه د ګونګا اشاره معروفه اومشهوره ده.نودا به په دلالت کښې دعبارت پشان وی.نو دده په اشاره به دده نکاح،طلاق ،عتاق خرڅول اواخستل ټول صحیح وی.برابره ده که دغه ګونګا په لیکلو قادر وی اوکه نه وی.

[1] **مسلك الكرخي والطحاوي**:- دامام کرخی اوامام طحاوی ﷫ خوښ مذهب دا دې.چه طلاق نه واقع کیږی.دا دامام شافعی ﷫ قول هم دې.

[2] الجوهرة النيرة (۱۰۹/۲)۔

## طلاق په نکاح پورې معلق کول

| وَإِذَا أَضَافَ الطَّلَاقَ إِلَى النِّكَاحِ اوکله ئې چه طلاق منسوب کړو.نکاح طرف ته وَقَعَ عَقِيبَ النِّكَاحِ نو طلاق به د نکاح نه پس واقع کیږی مِثْلُ أَنْ يَقُولَ مثلاً یو( اجنبي يعنى پردئ) ښځې ته اووائی إِنْ تَزَوَّجْتُكِ فَأَنْتِ طَالِقٌ که ما دتا سره نکاح اوکړله.نو ته مطلقه ئې أَوْقَالَ كُلُّ امْرَأَةٍ أَتَزَوَّجُهَا فَهِيَ طَالِقٌ يا( وي وئیل) هر هغه ښځه چه زه د هغې سره نکاح اوکړم.هغه طالقه ده |
|---|

**تشریح**﴾ مسئله دا ده.که یوکس طلاق په نکاح پورې معلق کړلو.مثلاً یوې پردئ ښځې ته ئې اووئیل.[إن تزوجتك فأنت طالق] یا ئې داسې اوونیل.[كل إمرأة أتزوجها فهي طالق] ① نوزمونږ په نیزیه دې صورت کښې د نکاح نه پس طلاق واقع کیږی ([1])

**دلیله**﴾ دلیل دا دې.چه په یوځیزپورې معلق کول دحالف دطرفه تصرف یمین دې.خکه چه شرط اوجزاء دواړه موجود دی.اوهم ددې نوم تعلیق دې.پاتې شوه دا خبره چه د تعلیق په وخت کښې دحالف ملك نشته.ددې جواب دا دې.چه دتعلیق په وخت کښې د ملك وجود شرط نه دې.بلکه دجزاء د وجود په وخت کښې دملك وجود شرط دې.اودلته د جزاء دوجود په وخت کښې یقیناً ملك موجود دې.نود طلاق واقع کیدل یعنی ترتب دجزاء به هم وی.اود شرط د وجود نه وړاندې د یمین اثرمنع ده.یعنی دمحلوف نه بچ کیدل.اودا منع د متصرف یعنی حالف پورې قائمه ده.نوپه دې وخت کښې د طلاق دمحل څه حاجت نشته.بلکه د حالف ذمه واری کافی ده

## په شرط پورې دطلاق معلق کول

| وَإِذَا أَضَافَهُ إِلَى شَرْطٍ اوکله ئې چه طلاق د شرط طرف ته منسوب کړو وَقَعَ عَقِيبَ الشَّرْطِ نو طلاق به د شرط نه پس واقع کیږی مِثْلُ أَنْ يَقُولَ لِامْرَأَتِهِ مثلاً خپلې ښځې ته اووائی إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ که ته خپل کور ته داخله شوې نو ته طالقه ئې |
|---|

**تشریح**﴾ مسئله دا ده.که یوکس د خپلې ښځې طلاق په دخول دار پورې معلق کړلو.مثلاً وې وئیل.[إن دخلت الدار فأنت طالق]که ته کورته داخله شوې.نو ته دې طلاقه یې، نود شرط په وجود یعنی د دخول دار نه پس به طلاق واقع کیږی.اودا حکم بالاتفاق دې.

**دلیله**﴾ خکه چې فی الحال ملك موجود دې.اوپه آئنده کښې هم غالب گمان دا دې.چه ملك به موجود وی. خکه چه په هرثابت شوی ځیزکښې اصل دا دې.چه هغه همیشه دپاره وی. خاص کرنکاح خکه چه دا د تول ژوند دپاره وی.نود ملك د زوال یووهمی احتمال ته به توجه نشي ورکولې.نوهرکله چه دا ثابته شوه.چه فی الحال هم ملك موجود دې.اوپه آئنده کښې به هم دغالب گمان په اعتبارسره ملك موجود وی.نودده کلام معلق زمونږ په نیزیمین صحیح وی.نو طلاق به واقع کیږی.

## قاعده کلیه

| وَلَا يَصِحُّ إِضَافَةُ الطَّلَاقِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْحَالِفُ مَالِكًا اود طلاق نسبت کول صحیح نه دی.مگر داچه قسم خوړونکې ( بالفعل) مالك وی أَوْيُضِيفَهُ إِلَى مِلْكِهِ یا طلاق ملك طرف ته منسوب کړی |
|---|

[1] امام شافعی رحمه الله فرمانی.چه طلاق نه واقع کیږی.

**تشریح>** په دې عبارت کښې صاحب دکتاب یوه قاعده ذکرکړې ده.هغه دا چه شرط طرف ته د طلاق منسوب کول به په هغه وخت کښې صحیح وی.چه حالف د محلوف علیه بالفعل مالك وی.مثلاً خپلې ښځې ته اووائی.[إن دخلت الدار فأنت طالق] یا طلاق خپل ملك ته منسوب کړی.مثلاً اووائی.[إن نكحتك فأنت طالق]

**دلیله>** دلیل دا دې.چه د جزاء د وقوع وجود ضروری دې.ددې دپاره چه د جزاء واقع کیدوپه ذریعه مخاطب سره ویره شی.اودیمین معنی متحقق شی.دیمین معنی قوت دې.اودقوت ظهورپه دې دوو کارونوکښې په یوسره کیږی.یعنی چه حالف بالفعل مالك وی.یا ملك طرف ته منسوب شوې وی.اود ملك سبب طرف ته منسوب کول داسې دی.لکه ملك طرف ته منسوب کول.مثلاً د [إن إشتريتك فأنت حر،یا إن ملكتك فأنت حر] په منزله دی.(عنایه)

**پردۍ ته د [إن دخلت الدار فأنت طالق] ویلوحکم**

| فَإِنْ قَالَ لِأَجْنَبِيَّةٍ نوکه وې ونیل.یوې اجنبیه ( پردۍ ښځې) ته إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ که ته کورته داخله شوې.نو ته طالقه ئې ثُمَّ تَزَوَّجَهَا فَدَخَلَتِ الدَّارَ بیا ئې د هغې سره نکاح اوکړله.بیا کورته داخله شوه لَمْ تُطَلَّقْ نو طلاق به نه واقع کیږی |
|---|

**تشریح>** صورت د مسئلې دا دې.چه یوسړی پردۍ ښځې ته اووئیل.[إن دخلت الدار فأنت طالق] بیا ئې د هغې سره نکاح اوکړله.اودنکاح نه پس هغه کورته داخله شوه.نوپه دې صورت کښې طلاق نه واقع کیږی.

**دلیله>** دلیل دا دې.چه حالف نه د طلاق مالك دې.اونه ئې طلاق ملك اود ملك سبب ته منسوب کړې دې.حالانکه د طلاق داضافت دپاره په دې دواړوکښې د یو وجود ضروری دې.

**د شرط الفاظ**

| وَأَلْفَاظُ الشَّرْطِ إِنْ وَإِذَا وَإِذَا مَا وَكُلُّ وَكُلَّمَا وَمَتَى وَمَتَى مَا او الفاظ د شرط،ان، اذا، اذا ما، كل، كلما، متى، اومتى ما، دی |
|---|

**تشریح>** صاحب د قدوریؒ د کلمات شرط نه په الفاظود شرط سره تعبیراوکړلو.په حروفو سره ئې ترې تعبیر اونکړلو.ځکه چه په دې کلماتوکښې زیات اسماء دی.حروف نه دی.نوځکه ئې د حروفوپه ځائې په الفاظو سره تعبیراوکړلو.چه اسماء اوحروفوټولوته شامل شی.اوکلمه د [إن] په کلماتود شرط کښې اصل ده.او باقی ټول ددې فرع دی.

**کون کلمة ان للشرط>** کلمه د [إن] صرف د شرط دپاره ده.اوپه باب د شرط کښې هم دا اصل ده.ځکه چه په کلمه د [إن] کښې د وخت وغیره معنی نشته.اوددې نه سوا باقی ټول کلمات د کلمه [إن] سره لاحق دی.د [إن] کلمې لره د متضمن کولوپه وجه

**کون کلمة ان للشرط>** اوکلمه د [کل] په حقیقت کښې شرط نه دې.ځکه چه کلمه د [کل] سره چه څه متصل دې.هغه اسم دې.اوشرط هغه وی.چه هغې پورې جزاء متعلق وی.اوجزاء د فعل پورې متعلق کیږی. اسم سره نه.خوکلمه د [کل] د شرط سره لاحقه کړې شوې ده.ځکه چه فعل ددې اسم سره متصل

دي.کوم اسم چه د کلمه [کل] د اسم سره ملاؤ شوې دې.يعنې فعل دهغه اسم دپاره لازم دې.کوم اسم چه د کلمه کل سره متصل دې.مثلاً ستا وينا چه [کل عبد اشتريته فهو حر] شو.

**د شرط په وجود سره دیمین ختمیدل**

فَفِي هٰذِهِ الْأَلْفَاظِ إِذَا وُجِدَ الشَّرْطُ په دې الفاظوکښې چه کله شرط اوموندې شو انْحَلَّتِ الْيَمِينُ نو قسم منحل ( کلاؤ) شو.او ختم شو ووقع الطلاق او واقع کيږي طلاق

**تشریح** دکلمه [کلما] نه سوا د شرط د باقي ټولو الفاظوحکم دا دې.چه شرط موجود شي.نويمين به منحل شي.اوختم به شي.

**دليله** دليل دا دې.چه د [کلما] نه سوا باقي د شرط ټول الفاظ دعموم اوتکرارتقاضا نه کوي.نوچه يوځل فعل موجود شي.شرط پوره کيږي.اوبغيرشرطه يمين باقي نه پاتې کيږي

إِلَّا فِي كَلِمَةِ كُلَّمَا.خو په کلمه د،کلما،کښې فَإِنَّ الطَّلَاقَ يَتَكَرَّرُ بِتَكَرُّرِ الشَّرْطِ ځکه چې په تکرار دشرط سره تکرار د طلاق راځي حَتّٰى يَقَعَ ثَلَاثُ تَطْلِيقَاتٍ تر دې چې درې طلاقه واقع کيږي.

**تشریح استثناء کلمة کلما** اوباتې شوه کلمه د [کلما] نوچونکه دا په افعالوکښې دتعميم اوتکرارتقاضا کوي.لکه چه دالله ﷻ ارشاد دې [كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُودُهُمْ] اود تعميم دپاره تکرارلازم وي.نوځکه په کلمه د [كُلَّمَا] کښې د شرط موجوديدو نه پس هم يمين باقي پاتې کيږي.نوکه يوکس دا اووئيل «کلما تزوجت امرة فهي طالق» نو په هر ځل به طلاق واقع کيږي.

**د[کلما دخلت الدار فانت طالق] حکم**

فَإِنْ تَزَوَّجَهَا بَعْدَ ذٰلِكَ نوکه ددې نه پس ئې دغه ښځې سره نکاح اوکړله. وَتَكَرَّرَ الشَّرْطُ او شرط مکرر اوموندې شو لَمْ يَقَعْ شَيْءٌ نو هيڅ څيز به نه واقع کيږي

**تشریح** دا مسئله په کلمه د [كُلَّمَا] متفرع ده.که سړی ښځې ته اووئيل.[کلما دخلت الدار فانت طالق] اوښځه پرله پسې درې ځله کورته داخله شوه.نودرې طلاقه واقع کيږي.نوکه د دويم د حلاله نه پس دا دوباره د اولنې خاوند په نکاح کښې راغله.اوشرط مکرر موجود شو.يعنې دا ښځه بيا کورته داخله شوه.نوطلاق نه واقع کيږي.

**دليله** دليل دا دې.چه دا خاوند په سابقه نکاح کښې دکومودرې طلاقومالك وو.هغه پوره شول.نوجزاء باقي پاتې نشوه.ځکه چه جزاء دهغه ملك درې طلاقه وو.نوچه جزاء منتفي شوه.قسم هم منتفي شو.ځکه چه قسم د شرط اوجزاء د ذکرنوم دې.اوهرکله چه قسم ختم شو.نودخول دارنه پس د طلاق واقع کيدوڅه معنی ده؟ ددې وجې مونږوايو.چه په دې صورت کښې طلاق نه واقع کيږي.

**دیمین نه پس د ملك زوال هغه نه ختموي**

وَزَوَالُ الْمِلْكِ بَعْدَ الْيَمِينِ لَا يُبْطِلُهَا اود ملك زائل کيدل د قسم نه پس قسم نه باطلوي

**تشریح** صاحب دقدوري رحمه الله يواصول ذکرکړې دې.هغه داکه د قسم نه پس د سړي ملك زائله شي.نوقسم نه باطليږي. ددې صورت دا دې.چه سړی خپلې ښځې ته اووئيل.[ان دخلت الدار فانت طالق] بيا د دخول نه وړاندې ښځه بائنه شوه.دملك په زوال سره به يمين نه باطليږي.

**دليله** دليل دا دې چه د يمين بقاء په شرط او جزاء سره وي. او مفروض دا دی چه شرط موجود شوې نه دې. نو چونکه شرط باقي دې. او دمحل د بقاء د وجې به جزاء هم باقي وي. نو هر کله چه شرط او جزاء دواړه باقي وي. نو يمين به هم باقي وي.

| |
|---|
| فَإِنْ وُجِدَ الشَّرْطُ فِي مِلْكِهِ نو که د سړي په ملك کښې شرط اوموندې شو انْحَلَّتِ الْيَمِينُ وَوَقَعَ الطَّلَاقُ نو قسم نازل ( واقع) شو. او طلاق واقع شو |

**تشريح** که شرط په ملك کښې واقع شي. مثلاً دا کس چه دې ښځې سره دوباره نکاح اوکړي. اوبيا شرط موجود شي نو په دې اول صورت کښې به طلاق واقع کيږي. او يمين به پوره شي.
**دليله** طلاق خو به ځکه واقع کيږي. چه شرط (دخول دار) په ملك کښې موجود شو. نو د طلاق جزاء کومه چه دې سره متعلق ده. هغه به هم واقع کيږي. او د يمين پوره کيدل ددې دپاره دی چه په کلام کښې د [اِن] کوم لفظ دې. هغه په تکرار باندې دلالت نه کوي. نو چه يو ځل شرط موجود شي. يمين به پوره شي.

| |
|---|
| وَإِنْ وُجِدَ فِي غَيْرِ الْمِلْكِ اوکه په غير ملك کښې شرط اوموندې شو انْحَلَّتِ الْيَمِينُ لِوُجُودِ الشَّرْطِ نو يمين نازل شو. د شرط موجود کيدلو په وجه وَلَمْ يَقَعْ شَيْءٌ او هيڅ ( طلاق ) به نه واقع کيږي. (د محل معدوم کيدلو په وجه.) |

**تشريح** اوکه شرط په غير ملك کښې موجود شو. نو يمين پوره شو. او طلاق واقع نشو.
**دليله** ځکه چه شرط موجود شوې دې. خو طلاق نه دې واقع شوې. ځکه چه محل د طلاق معدوم دې.

### په شرط کښې د زوجينو د اختلاف حکم

| |
|---|
| وَإِذَا اخْتَلَفَا فِي وُجُودِ الشَّرْطِ اوکه دواړو ( ښځې خاوند ) په شرط کښې اختلاف اوکړو فَالْقَوْلُ قَوْلُ الزَّوْجِ فِيهِ إِلَّا أَنْ تُقِيمَ الْمَرْأَةُ الْبَيِّنَةَ نو د خاوند قول به ( معتبر) وي. خو دا چه ښځه ګواهان قائم کړي. ( نو بيا به د ښځې ګواه قبلولې شي). |

**تشريح** صورت د مسئلې دا دې. چه د ښځې او خاوند د شرط په وجود کښې اختلاف شي. مثلاً سړې وائي. چه شرط نه دې موجود شوې او طلاق نه دې واقع شوې. او ښځه وائي. چه شرط موجود شوې دې. او طلاق واقع شوې دې. په دې صورت کښې که ښځې سره ګواهان موجود نه وي. نو د خاوند قول به معتبر وي. او که ښځې سره ګواهان موجود وي. نو ګواهي به قبلولې شي.
**دلائله** ① دليل دا دې. چه د خاوند قول د اصل موافق دې. ځکه چه اصل عدم شرط دې. او چه د چا قول د اصل سره موافق وي. هغه ته مدعی عليه وائي. نو ښځه مدعی او خاوند مدعی عليه شو. او په حديث کښې دی. که مدعی سره ګواهان موجود نه وي. نو د مدعی عليه قول به معتبر وي.
② دويم دليل دا دې. چه خاوند د وقوع طلاق او زوال ملك منکر دې. او ښځه ددې دواړو ځيزونو مدعيه ده. او چه ګواهان نه وي. نو د منکر قول معتبر وي. نو ځکه په دې مسئله کښې که ښځې سره ګواهان موجود نه وي. نو د خاوند قول به معتبر وي.

### داسې شرط چه هم د ښځې نه معلوميږي

| |
|---|
| فَإِنْ كَانَ الشَّرْطُ لَا يُعْلَمُ إِلَّا مِنْ جِهَتِهَا بيا که شرط ( داسې ځيز وي) چه نه معلوميږي. خو د ښځې د طرفه فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا فِي حَقِّ نَفْسِهَا نو د ښځې قول به ددې د ذات په حق کښې ( معتبر) وي مِثْلُ أَنْ |

يَقُولُ: إِنْ حِضْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ مثلاً دا اووائي. كه ته حائضه شوې.نو ته طالقه ئې فَقَالَتْ: قَدْ حِضْتُ طَلُقَتْ هغې اووئيل. زه حائضه يم.نودا طلاقه شوه

**تشريح>** مسئله كه شرط د داسې څيزوي.چه هغه صرف د ښځې نه معلوميږي.نوپه داسې صورت كښې به دخپل ذات په حق كښې د ښځې قول معتبروي.دبل په حق كښې به نه معتبر نه وي.دا قول دامام شافعي امام مالك اوامام احمد(رحمهم الله) هم دې.مثلاً خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.[إن حضت فأنت طالق] او ښځې اووئيل.چه زما حيض راغلې دې.نودا به مطلقه وي.اودا استحسان دې.

**دليله>** داستحسان دليل دا دې.چه ښځې د خپل ذات په حق كښې امانتدارې وي.څكه چه ښځې دهغه څيزپه ظاهركولوكښې امانداري وي.كوم چه په رحمونوكښې وي.اوددې د صحيح ښكاره كولوحكم ورته هم شوې دې.دالله ﷻ ارشاد دې. ﴿وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَن يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللَّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ﴾ اوددې وجې هم ښځه امانت داره ده.چه حيض داسې شرط دې.چه ددې علم صرف دې ته كيدې شي.بل چاته نشي.اوقاعده دا ده.چه دامين قول دهغه د خپل خان په حق كښې قابل قبول وي.نوددې وجې به د ښځې قول چه په مابانډې حيض راغلې دې.دا به قبلولې شي.

## داسې شرط چه هم د ښځې نه معلوميږي

فَإِنْ كَانَ الشَّرْطُ لَا يُعْلَمُ إِلَّا مِنْ جِهَتِهَا بيا كه شرط ( داسې څيز وي) چه نه معلوميږي.خود ښځې د طرفه فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا فِي حَقِّ نَفْسِهَا نود ښځې قول به ددې د ذات په حق كښې ( معتبر) وي وإن قَالَ لَهَا اوكه چرته اووائي هغې ته إِذَا حِضْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَفُلَانَةُ كله چې ته حائضه شوې.نو ته او فلانئ ( ښخه ) طالقه دى فَقَالَتْ: قَدْ حِضْتُ طَلُقَتْ هِيَ هغې اووئيل. زه حائضه يم.نودا پخپله طالقه شوه وَلَمْ تَطْلُقْ فُلَانَةُ او فلانئ ( ښځه) به طالقه نه وي

**تشريح>** دا مسئله او سابقه مسئله يو شان ده صرف دومره ده چې دې كښې ورسره د بن ذكر هم شته.نو كله چې تا اووائي زه حائضه شوې يم.د دې قول به د دې په حق كښې معتبر وي يعنى دا به طلاقيږي.خو د دې د بن په كښې به معتبر نه وي.اوهغه به نه طلاقيږي.

وَإِذَا قَالَ لَهَا اوكله ئې چه ښځې ته اووئيل إِذَا حِضْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ چه كله ته حائضه شې.نو ته طالقه ئې فَرَأَتِ الدَّمَ بيا هغې وينه اوكتله لَمْ يَقَعِ الطَّلَاقُ حَتَّى يَسْتَمِرَّ الدَّمُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ نو طلاق به نه واقع كيږي.تردې چه درې ورځو پورې برابر جارى پاتې شي

**تشريح>** كه خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.[إن حضت فأنت طالق] اوښځې وينه اوليدله.نوصرف په وينې ليدو سره طلاق نه واقع كيږي.ترڅوچه په دې درې ورځې تيرې شوې نه وي.

**دليله>** دليل دا دې.چه زمونږ په نيزد حيض كمه مودهٔ درې ورځې اودرې شپې دى.اوكومه وينه چه ددې مودې نه په كم وخت كښې اودريږي.نوهغه به حيض نه وي.بلكه استحاضه به وي.

فَإِذَا تَمَّتْ ثَلَاثَةُ أَيَّامٍ نو كله چه درې ورځې پوره شي حَكَمْنَا بِوُقُوعِ الطَّلَاقِ مِنْ حِينِ حَاضَتْ نود هغه وخت نه به هغه حائضه وى.د هغه وخت نه به د طلاق حكم وركوو

**تشريح>** كله چې درې ورځې پوره شي نو د كوم وخت نه چې دا حائضه شوې ده د هغه وخت نه به د طلاق حكم په دې كولې شي.

**دليله>** ځکه چې د وينې راتلو په تسلسل سره معلومه شوه چې دا وينه د رحم نه ده او حيض دي.استحاض نه دي.

**په [إذا حضت حيضة] سره د طلاق واقع کېدو حکم**

| وَاِنْ قَالَ لَهَا او که ښځې ته ئې اوونيل إِذَا حِضْتِ حَيْضَةً فَأَنْتِ طَالِقٌ چه کله ته حائضه شې.يو حيض سره.نو ته طالقه ئې لَمْ تُطَلَّقْ حَتّٰى تَطْهُرَ مِنْ حَيْضَتِهَا نودا (ښځه) به طالقه نه وی.تردې چه ددې حيض نه پاکه شي |
|---|

**تشريح>** مسئله دا ده.چه يوکس خپلې ښځې ته اووائي.[إذا حضت حيضة فأنت طالق] نودا ښځه به مطلقه نه وي.ترڅوچه د حيض نه پاکه شوې نه وي.

**دليله>** دليل دا دې.چه حيضة په تاء سره حيض کامل ته وائي.اود حيض کمال به دهغې په ختميدوسره حاصلېږي.اوختميدل په طهرسره راځي.ددې وجې مونږ وايو.چه دطهرپه شروع کېدو به طلاق واقع کېږي. ددې نه وړاندې نه.هم ددې وجې نه په حديث استبراء کښې هم حيضة په حيض کامل باندې حمل شوې دې.دحديث استبراء نه مراددا حديث دې.[لاتوطأ الحبالى حتى يضعن حملهن ولا الحبالى حتى يستبرأن بحيضة، رواه ابوداؤد في سننه] ()نبی ﷺ فرمائيلي دی.چه حامله ښځوسره به وطی نشي کولې.تردې چه هغوی خپل حمل اوزيږوی.اووطی به نشي کولې غيرحامله ښځوسره تردې چه يوکامل حيض سره ئې استبراء د رحم راشي.په دې حديث کښې د حيضة نه مراد کامل حيض دې.(عنايه شرح هدايه)

**د وينزې اواصيلې د طلاق شمار**

| طَلَاقُ الْأَمَةِ تَطْلِيقَتَانِ اود وينځې طلاق دوه دی وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ اوعدت ئې دوه حيضه دی حُرًّا كَانَ زَوْجُهَا أَوْعَبْدًا خاوند ئې ازاد وي او که غلام وی وَطَلَاقُ الْحُرَّةِ ثَلَاثٌ حُرًّا كَانَ زَوْجُهَا أَوْعَبْدًا د آزاد ې ښځې طلاق درې دی خاوند ئې آزاد وی اوکه غلام وی |
|---|

**تشريح>** د طلاق په باب کښې د ښځو اعتبار دې.يعنی د وينزې دوه طلاقه دی.که ددې خاوند آزاد وی اوکه غلام.اود اصيلې درې طلاقه دی.که خاوند ئې آزاد وی اوکه غلام.حاصل دا چه وينزه به په دوه طلاقه مغلظه کېږی اواصيلې په دريو.([2])

**دلائله>** ① د نبی ﷺ ارشاد دې. {طَلَاقُ الْأَمَةِ ثِنْتَانِ وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ}([3]) په حديث کښې په [الأمة] کښې الف لام دپاره د جنس دی.نومعنی دا شوه.چه د جنس وينزې طلاق دوه دی.اوددې عدت دوه حيضه دی. (اګرکه خاوند ئې آزاد وی)ددې حديث نه معلومه شوه.چه د طلاق په شمارکښې ښځې

[1] - من حديث ابي سعيد الخدري رضي الله عنه اخرجه ابوداود في سننه في النكاح باب ٤٣ رقم ٢١٥٧).

[2] ) **مسلک الشافعي:**- امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه د طلاق په شمارکښې به سړو لره اعتباروی.يعنی سړې که آزاد وی.نودې به خپلې بی بی ته درې طلاقه ورکوی.که ښځه ئې آزاده وی اوکه وينزه،اوکه سړې غلام وی.نودې خپلې ښځې ته د طلاق ورکولو مجاز دې.چه خپلې ښځې ته به دوه طلاقه ورکوی.که ښځه ئې آزاده وی اوکه وينزه وی.دا مذهب دامام مالك اوامام احمد رحمهما الله هم دې.

[3] ) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه ابوداود في الطلاق باب ٦ رقم ٢١٨٩ والترمذي في الطلاق باب ٧ رقم ١١٨٢ وابن ماجه في الطلاق باب ٣٠ رقم ٢٠٨٠ والحاكم في المستدرک ( ٢ / ٢٥ ).

معتبر دی.سړی نه دی.

② عقلي دليل دا دې.چه ښځه دنكاح محل دې.نودا ددې په حق كښې نعمت دې.ځكه چه دا د نان نفقې او استوګنې وغيره مستحقه شي.اود نعمتونوپه نيم كولوكښې د غلامۍ اثر دې. نود قياس تقاضا خو دا وه.چه وينځې ته صرف يونيم طلاق وركول كافي وو.كوم چه د آزادې ښځې د طلاق نيمه ده.خوچونكه طلاق تقسيم نه قبلوي.نوځكه دا نيم طلاق پوره كړې شو.اودوه طلاقونه مقرر كړې شول.

**غيرمدخول بها ښځې ته د طلاق وركولوحكم**

| وَإِذَا طَلَّقَ رَجُلٌ امْرَأَتَهُ ثَلَاثًا قَبْلَ الدُّخُولِ بِهَا او كله چه سړى خپلې ښځې ته طلاق وركړو.ددې سره د دخول نه وړاندې وَقَعْنَ عَلَيْهَا نو په دې به ټول واقع كيږي |
|---|

**تشريح>** چونكه نكاح ددخول دپاره وي.نوځكه طلاق بعدالدخول اصل دې.اوقبل الدخول خلاف اصل دې. امام قدوري رحمه الله اصل اول بيان كړلو.اوخلاف الاصل وروستو بيانوي.

**حكم الطلاق قبل الدخول>** مسئله دا ده.كه يوكس خپلې ښځې ته د قبل الدخول نه وړاندې[أنت طالق ثلاثاً] اووئيل.نودرې واړه طلاقه واقع كيږي.

**دليله>** دليل دا دې.چه وړاندې تيرشوى دى.كله چه وصف دطلاق د عدد سره يوځاى شي.نوطلاق به په عدد سره واقع كيږي.ځكه چه واقع كيدل د طلاق په اصل كښې په محذوف مصدره سره كيږي.اودا عدد د هغې صفت وي.نود [أنت طالق ثلاثاً] معنى دا شوه. چه [أنت طالق طلاقاً ثلاثاً] نوپه [أنت طالق] سره به جدا طلاق نه واقع كيږي.بلكه [طلاقاً ثلاثاً] سره به په يوځل درې طلاقه واقع كيږي.

**غيرمدخول بها ته درې طلاقه جدا جدا وركول**

| وإِنْ فَرَّقَ الطَّلَاقَ بَانَتْ بِالْأُولَى نوكه ده طلاق متفرق كړو.نو په ړومبى سره به بائنه وى. وَلَمْ تَقَعِ الثَّانِيَةُ وَالثَّالِثَةُ او دويم او دريم طلاق به نه واقع كيږي |
|---|

**تشريح>** مسئله دا ده.كه درې طلاقه ئې جدا جدا كړل.مثلاً ونې وئيل.چه [أنت طالق طالق طالق] ئې اووئيل. نوپه اولنى لفظ سره به ښځه بائنه شي.اوپه دويم اودريم سره طلاق نه واقع كيږي.ځكه چه ددې دواړو د واقع كيدو دپاره ښځه محل پاتې نشو.نودا دواړه لغو شول.

**دليله>** د دليل نه وړاندې دا خبره ښه په ذهن كښې كينوئ.چه كه درې طلاقه جدا جدا كړې شي.اودكلام په آخر كښې استثناء وغيره داسې څيزوي.چه هغه د كلام اول بدلوي.نوپه دې صورت كښې به په غيرمدخول بها باندې هم درې طلاقه په يووخت واقع كيږي.

ددې مقدمې نه پس د دليل حاصل دا دې.چه [أنت طالق طالق طالق] كښې هريوطلاق جدا جدااواقع كول د طلاق دى.ځكه چه د كلام په آخر كښې داسې څه څيزنشته.چه اول د كلام بدل كړي.اوپه كوم چه اول د كلام موقوف وي.نواولنې طلاق به في الحال واقع شي.اوددې نه پس دويم اودريم چونكه په داسې حالت كښې واقع كيږي.چه ښځه په اولنى طلاق سره بائنه شوې ده.اوداسې بائنه چه عدت پرې هم واجب نه دې.نودا محل د طلاق پاتې نشوه.

**غيرمدخول بها ته يوطلاق وركول اوعدد نه وړاندې دهغې مره كيدل**

| وَكَذَا إِذَا قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً اوهم دغه شان كه وې وئيل ښځې ته ،انت طالق واحدة و واحدة وَقَعَتْ عليها وَاحِدَةٌ نو يو به واقع كيږي. |
|---|

**تشریح**> که خاوند خپلې غیرمدخول بها ښځې ته اووئیل. [أنت طالق واحدة أو واحدة] نو په دې صورت کښې یو طلاق بائن واقع کیږی.

**دلیله**> وړاندې دلیل تیرشوې دې.چه دا په اولنی واحدة سره بائنه شوه.نودویم واحدة لغو شو.

**غیرمدخول بها ته یوطلاق ورکول اوعدد نه وړاندې دهغې مره کیدل**

| وَان قَالَ لَهَا: أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قبل وَاحِدَةً اوکه اووائی هغې ته انت طالق واحدة و واحدة وَقَعَتْ علیها وَاحِدَةٌ نو یو طلاق واقع کیږی. |
|---|

**تشریح**> که خاوند خپلې غیرمدخول بها ښځې ته اووئیل. [أنت طالق واحدة أو واحدة] نو په دې صورت کښې یو طلاق بائن واقع کیږی.

**دلیله**> وړاندې دلیل تیرشوې دې.چه دا په اولنی واحدة سره بائنه شوه.نودویم واحدة لغو شو.

**په [أنت طلاق واحدة مع واحدة] باندې وقوع دطلاق**

| وَان قَالَ: لَهَا أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً بعد واحدة او مَعَ وَاحِدَةٍ أَوْمَعَهَا وَاحِدَةٌ وقعت ثِنْتَانِ () اوکه وې وئیل.تاته یو طلاق دې پس د یو طلاق نه او سره د یو طلاق نه یا د هغې سره یو بل نو دوه به واقع کیږی |
|---|

**تشریح**> مسئله دا ده.که یوکس اووئیل.① [أنت طالق واحدة مع واحدة] ②یا [أنت طالق واحدة معها واحدة] نو دوه طلاقه واقع کیږی. ([2])

**دلیله**> دلیل دا دې.چه کلمه د ،مع،د اقتران اواتصال دپاره ده.نوحاصل دا شو.چه دواړه طلاقه په یوځائې واقع شول.

| وَان قَالَ لَهَا أَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً قَبْلَهَا وَاحِدَةٌ تَقَعُ ثِنْتَانِ اوکه وې وئیل دې ته ،،انت طالق واحدة قبلها واحدة، نو دوه به واقع وی |
|---|

**تشریح**> دا صورتونه په دوو اصولوباندې موقوف دی.کوم چه مصنف رحمه الله په کتاب کښې ذکرکړی دی.

**الاصل الاول**> اول دا چه ظرف یعنی لفظ د قبل اوبعد په هاء کنایه سره مقید کړې شی.نوظرف به د روستوکلام دپاره صفت وی.اوکه هاء کنایه سره مقید نه وی.نود وړاندینی کلام صفت به وی.(دلته د صفت نه معنوی صفت مراد دې.نحو صفت مراد نه دې)

ددې اصل وضاحت به په دې دوو مثالونه سره اوشی.① [جاءنی زید قبله عمرو] ②او [جاءنی زید قبل عمرو] په اولنی مثال کښې قبلیت د (مابعد یعنی عمرصفت دې.مطلب دا چه عمرنه وړاندې راغلې وو.او زید روسته.اوپه دویم مثال کښې قبلیت د ماقبل یعنی زید صفت دې.یعنی زید وړاندې راغلې وو.اوعمر روسته.

---

[1] ) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في فتح القدير(٣٧٢\٢) وردالمحتار(٤٦٩\٢) والهندية (٣٧٣\١) نقلاً عن القول الراجح (٣٢٥\١)-

[2] ) **مسلک ابي يوسف**:- دامام ابويوسف رحمه الله نه يوروايت دا دې.چه د [معها واحدة] په صورت کښې به يوواقع کیږی.

**الاصل الثاني**> دويم اصل دا دي.چه [إيقاع في الماضي إيقاع في الحال] وي.يعنى كه ماضى زمانې ته د طلاق نسبت اوشى.اوواقع كړې شي.نوپه زمانه حال كښې به واقع كيږي.په ماضى كښې نه.ځكه چه ماضى ته د طلاق نسبت كول اوهغه واقع كول د انسان په وس كښې نه دى.يعنى دا ناممكن ده.چه يوكس نن اووائى.[أنت طالق أمس] اوهغه طلاق په تيرشوى صبا كښې واقع شي.ددې دواړو اصولونه علاوه يوه بله خبره په ذهن كښې واچوئ.هغه دا چه غيرمدخول بها ښځه په يوطلاق سره بائنه كيږي.اوپه دې به عدت واجب نه وى.اونه د يوطلاق نه پس هغه محل د طلاق پاتې كيږي.

①اوس كه يوكس خپلې غيرمدخول بها ښځې ته اووئيل.چه [أنت طالق واحدة قبل واحدة] تاته دې يوطلاق وى.چه دهغې نه پس يوبل هم وى.نوپه دې صورت كښې به لفظ د قبل د وړاندېنى كلام صفت وى.اومعنى به دا وى.چه اول واحده اول اودويم واحدة وروستو دې.نو هركله چه اولنې واحده واقع شو . نو غيرمدخول بها ښځه بائنه شوه.اود دويم واحدة دپاره محل باقى پاتې نشو.ددې وجې دويم واحدة عبث شو.نوثابته شوه.چه يوطلاق واقع شو.

②اوكه وئې وئيل.چه [أنت طالق واحدة بعدها واحدة] تاته دې د يوطلاق نه پس يوطلاق وى.په دې صورت كښې لفظ د بعد د ماقبل صفت دې.معنى دا شوه.چه تاته دې يوطلاق وى.چه دهغې نه پس بل طلاق وى.يعنى په اولنى واحدة باندې غيرمدخول بها بائنه شوه.اوددې نه پس د دويم واحدة دپاره د محل نه پاتې كيدو دوجې هغه طلاق عبث شو.نوپه دې صورت كښې هم يوطلاق واقع كيږي.

③اوكه وئې وئيل.چه [أنت طالق واحدة قبلها واحدة] نوپه دې صورت كښې به لفظ د ،قبل،د ما بعد صفت وى.يعنى تاته يوطلاق دې چه د هغې نه پس يووى.دا كلام تقاضا كوى.چه اولنې طلاق دې په ماضى كښې اودويم دې في الحال واقع شي.اوچونكه [إيقاع في الماضي إيقاع في الحال] وى.نودواړه طلاقونه به په زمانه حال په يوځائې واقع شي.اوغيرمدخول بها ښځې ته په يوځال دوه طلاقه وركولې شي.نوځكه به په دې صورت كښې دوه طلاقه واقع شي.

| وَإِنْ قَالَ وَاحِدَةً بَعْدَهَا وَاحِدَةٌ اوكه وې وئيل انت طالق واحدة بعدها واحدة،نو دوه به واقع كيږي |
|---|

**تشريح**> اوكه وئې وئيل.[أنت طالق واحدة بعدها واحدة] يعنى تاته دې يوطلاق وى پس د يو نه. نو دوه طلاقه به واقع كيږي

**دليله**> په دې صورت كښې لفظ د ،بعد،د ماقبل دپاره صفت دې.اودا كلام تقاضا كوى.چه اولنې طلاق په زمانه حال اودويم په زمانه ماضى كښې واقع شي.اوښكاره ده چه د اولنى د واقع كيدو نه وړاندې زمانه ماضى ده.نولكه چه دويم طلاق په زمانه ماضى كښې واقع كيږي.اوچونكه [إيقاع في الماضي إيقاع في الحال] وى.نودا دواړه طلاقه به په زمانه حال كښې واقع وى.ددې وجې په دې صورت كښې هم په غيرمدخول بها باندې دوه طلاقه واقع كيږي.

### ذكر شوو صورتونوكښې د مدخول بها حكم

| وَإِنْ قَالَ لَهَا اوكه غيرمدخول بها ته ئې اووئيل إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَأَنْتِ طَالِقٌ وَاحِدَةً وَوَاحِدَةً كه ته كور ته داخل شوې.نو تاته يو طلاق دې.او يو فَدَخَلَتْ الدار وَقَعَتْ عَلَيْهَا وَاحِدَةٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نوداخله شوه كور ته .نو په دې به د امام صاحب رحمه الله په نيز يو واقع كيږي، |
|---|

**تشریح** > صورت د مسئلې دا دې.که ذکرشوې صورتونه د شرط پورې معلق کړې شي.اوبیا بل باندې د واو په ذریعه عطف کړی.نوددې دوه صورتونه دی.① شرط به یا مقدم وی②اویا به مؤخروی.

①مثلاً [أنت طالق واحدة وواحدة إن دخلت الدار] ني اووئیل.بیابنځه کورته داخله شوه.نوبه اتفاق سره دوه طلاقه واقع شول. ②اوکه شرط مقدم وی.اومثلاً داسې اووائی.چه [إن دخلت الدار فأنت طالق واحدة وواحدة] اوغیرمدخول بها کورته ورداخله شوه.نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزیوواقع کیږی.

**دلیله** > دلیل دا دې.چه واو مطلقاً جمع د اتصال اوترتیب احتمال لری.نوکه داتصال د معنی خیال اوساتلې شي.نوپکارده چه دوه واقع شي.اوکه د ترتیب دمعنی خیال اوساتلې شي.نو پکارده چه یوواقع شي.لکه څنګه چه په [أنت طالق واحدة وواحدة] طلاق منجزکښې صرف یوواقع کیږی.نومعلومه شوه.چه دیونه د زیاتی طلاق په واقع کیدو کښې شك دې.اودشك په وجه طلاق نه واقع کیږی.نوځکه به د یونه زیات نه واقع کیږی.

| وَقَالَا: تَقَعُ ثِنْتَانِ ([1]) او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه دوه به واقع کیږی |
|---|

**مسلک الصاحبین** > اودصاحبینو رحمهما الله په نیزبه دې صورت کښې دوه واقع کیږی.

**دلیلهما** > دلیل دا دې.چه واود مطلق جمعې دپاره راځی.نودواړه طلاقه به معلق شي.اوبه یوځل به واقع شي.لکه څنګه چه په [إن دخلت الدار فأنت طالق ثنتين] صورت کښې دوه واقع کیږی.ځکه چه واو حرف په ذریعه باندې جمع داسې ده.لکه څنګه چه دجمعې په ذریعه ده.اولکه څنګه چه د شرط د تاخیرپه صورت کښې په اتفاق سره دوه طلاقه واقع کیږی.دغه شان به د تقدیم په صورت کښې هم دوه واقع کیږی.

**الجواب عنه** > صاحبینو رحمهما الله دتقدیم شرط صورت په تاخیرشرط باندې قیاس کړې دې.خو مونږ وایو.چه دا قیاس صحیح نه دې.ځکه چه د شرط دتاخیرپه صورت کښې شرط دکلام اول بدلوی.نواول دکلام به په شرط باندې موقوف وی.چه شرط څنګه موجود شي.نودوه طلاقونه به په یوځل واقع کیږی.اودتقدیم په صورت کښې د کلام د اول بدلونکې څه څیزنشته.نواول د کلام په آخردکلام موقوف نشو.نوځکه به دواړه طلاقونه په ترتیب سره واقع کیږی.اوبنځه چونکه غیرمدخول بها ده.نواولنی طلاق سره هغه بائنه شوه.اودویم به نه واقع کیږی.

### د [أنت طالق فی مکة] په لفظ سره د طلاق حکم

| وَإِنْ قَالَ: لَهَا أَنْتِ طَالِقٌ بِمَكَّةَ اوکه هغې ته ني ووئیل.ته طلاق والا ني.مکې سره. فَهِيَ طَالِقٌ فِي الْحَالِ فِي كُلِّ الْبِلَادِ نودا به فی الحال په ټولو ښارونو کښې طلاق والا وی وَكَذٰلِكَ إِنْ قَالَ: لَهَا أَنْتِ طَالِقٌ فِي الدَّارِ اوهم دغه شان که وې وئیل. [أنت طالق فی الدار] |
|---|

**تشریح** > مسئله یوکس خپلې بنځې ته اووئیل. [أنت طالق بمكة یا فی مكة یا أنت طالق فی الدار] نو طلاق به فی الحال واقع وی.اودا بنځه به د دنیا په ټوول ښارونو او په ټوله زمکه کښې مطلقه وی.

**دلیله** > ځکه چه طلاق په یوځائې پورې خاص نه وی.بلکه چه کله هم واقع کیږی.نو په هرځائې کښې

[1] ) القول الراجح هو قول الصاحبين رحمهما الله كذا في فتح القدير(٣\٢٩٦) وردالمحتار(٢\٤٩٦) والبناية (٥\١٠٢) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٢٧)-

واقع کیږي.اوکه دې سرې د [بمکة أوفي مکة] نه [أذا أتيت مکة] اراده کړې وه.نويعنې د طلاق واقع کيدو دپاره ئې مکې ته د تلو اراده چه يو پټ څيز دې ددې اراده کړې وه.کوم چه د ظاهر نه خلاف دې.نو وړاندې تيرشوې دی.چه د خلاف ظاهر خبرې ديانة تصديق کولې شی.قضاء نشی کولې.

**د [أنت طالق إذا دخلت مکة] په لفظ سره د طلاق حکم**

وَاِنْ قَالَ: لَهَا أَنْتِ طَالِقٌ إِذَا دَخَلْتِ مَكَّةَ اوکه هغې ته ئې ووئيل. [أنت طالق إذا دخلت مکة] لَمْ تَطْلُقْ حَتّٰى تَدْخُلَ مَكَّةَ نو طلاق به نه واقع کيږي.تردې چه مکې ته داخله شی

**تشريح**﴾ اوکه وې وئيل. [أنت طالق إذا دخلت مکة] نوطلاق نه واقع کيږي.تردې چه مکة ته داخله شی.

**دليله**﴾ ځکه چه طلاق د مکة په داخليدو پورې معلق شوې دې.اوکه [في دخولك الدار] ئې وئيلي وی.

وَاِنْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ غَدًا اوکه وې وئيل.چه ته صباله طلاق شوې ئې وَقَعَ عَلَيْهَا الطَّلَاقُ بِطُلُوْعِ الْفَجْرِ الثَّانِي نو صباله د فجرثاني په راختلو به ( فوراً) په دې باندې طلاق واقع کيږي

**تشريح**﴾ د دنيا په هره ژبه کښې ورځ دپاره يولفظ استعماليږي.اود دنيا په ژبوکښې عربي يوه ژبه ده.چه د نورو ژبولوژبو په مقابله کښې وسعت لری(ذخيره الفاظ په کښې ډيرزيات دی)په عربئ کښې د ورځ دپاره د[نهار] لفظ استماليږي.مثلاً [يوم القيامة] د قيامت ورځ، [يوم العيد] د اختر ورځ،د يوم جمع ايام ده.دا لفظ د قرآن مجيد په ډيرو آياتونوکښې راغلي دي.کله چه د ورځ لفظ په ژبه باندې راشی.نوپه ذهن کښې د ورځې په باره کښې د اول نه تر آخره پورې د ټولواجزاؤ تصور راپورته شی.دې نه معلوميږي.چه د ورځ نه مراد څه خاص لمحه يا وخت (گنټه ،منټ ،سيکن وغيره مراد نه دی.ورځ (يوم ،نهار اطلاق د صبا راختو نه تر نمر پريوتو پورې په ټولو اجزاؤ او لمحاتو باندې مستحق (ثابت) دې.لکه ايام بيض، ايام تشريق،ايام صيام نه ښکاره دی.په سورة القدر کښې د [مطلع الفجر] نه د ورځ اولنې جزء اولمحه مراد ده.اوپه ﴿ثُمَّ أَتِمُّوا الصِّيَامَ إِلَى اللَّيْلِ﴾ کښې د ورځ آخرې جزء اولمحه مراد ده.

دا پيژندل پکار دی.چه لفظ د [أمس] د تيرې شوې ورځ اولفظ د [غداً] د راروانې ورځې دپاره استعماليږي. لفظ د [غد] په قرآن پاك کښې ذکردې.مثلاً ﴿وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَّا قَدَّمَتْ لِغَدٍ﴾او ﴿وَمَا تَدْرِيْ نَفْسٌ مَّاذَا تَكْسِبُ غَدًا﴾ په دواړه آياتونوکښې د راروانې ورځې دپاره د [غد] لفظ استعمال شوې دې.

د قدورئ په متن کښې چه کومه مسئله بيان شوې ده.په دې کښې هم د [أنت طالق غدا] ذکردې.يعنی چه يوکس خپلې ښځې ته اووئيل.چه په راتلونکی صبا کښې دې ته طلاقه ئې.نو راروان صبا به کله مستحق د ثبوت وی.نودهغه صبا تحقق اوثبوت به د صبا د راختو په اولنی جزء اواولنئ لمحې سره وی.يعنی چه کله راروان صبا راوخيژی.نوصبا (غد) به ثابت شی.نود صبا د راختوسره سمدستی به د دغه متکلم قول چه [أنت طالق غدا] په ښځه باندې مستحق (ثابت) شی.اوطلاق به واقع شی.

**دليله**﴾ ځکه چه د [غدا] لفظ د راروان صبا دپاره موصوف دې.

**د اختيار بيان**

وَاِنْ قَالَ لِاِمْرَأَتِهِ: اِخْتَارِيْ نفسك يَنْوِيْ بِذٰلِكَ الطَّلَاقَ اوکله ئې چه خپلې ښځې ته اووئيل، اختاری، په داسې حال کښې چه ددې نه ئې د طلاق نيت کړې دې أَوْقَالَ لَهَا: طَلِّقِيْ نَفْسَكِ يا ئې دې ته

اوونيل، طلقي نفسك، فَلَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا مَا دَامَتْ فِي مَجْلِسِهَا ذٰلِكَ نود ښځې دپاره جائز دي.چه دا خپل ځان ته طلاق ورکړي.ترکومه پورې چه دا په دې مجلس کښې موجود ده فَإِنْ قَامَتْ مِنْهُ أَوْ أَخَذَتْ فِي عَمَلٍ آخَرَ نوکه ددې مجلس نه پاسيدله.يا په بل څه کارکښې لګيا شوه خَرَجَ الْأَمْرُ مِنْ يَدِهَا نو اختيار ددې د لاس نه اووتلو

**تشريح** صورت د مسئلې ښکاره دې.اود منقول دليل حاصل دادې.چه دقياس تقاضا خودا ده.چه په دې لفظ د [اختاري] سره د نيت باوجود طلاق واقع نشي.ځکه چه خاوند په دې لفظ سره دطلاق واقع کولو مالك نه دې.که ده چرته [اخترتك من نفسي يا اخترت نفسي منك] اوونيل.نوطلاق نه واقع کيږي. او انسان چه په خپله د يوځيز مالك نه وي.نوبل په څه دهغې مالك کړي.

**دليله** دصحابو رضي الله عنهم داجماع په وجه قياس پريخودې شوې دې.ځکه چه دحضرت عمر،عثمان،علي،ابن مسعود ،ابن عمر،جابر،زيدبن ثابت،اوعائشي رضي الله عنهم نه منقول دي.چه کله سړی ښځې ته اختيار ورکړلو .نو دښځې دپاره ترهغه وخته پورې اختيارشته.ترڅوچه هغه د خپل مجلس نه پاسيدلې نه وي.اوچه کله پاسيدله.نواختيارئې ختم شو.اوددې خلاف منقول نه دې.نوځکه دا د اجماع قائم مقام شو.په اجماع سره د ښځې دپاره خيارثابت شو.اودا هم ثابت شوه.چه دا خيارد مجلس سره خاص دې[1]

**صورتونه تبديل المجلس** البته د مجلس په بدليدوکښې دوه صورتونه دي.① يودا چه دمجلس نه پاسي.اولاړشي. ② دويم دا چه هم په مجلس کښې ناست وي.اوبل کارشروع کړي.مثلاً د خوراك څکاك مجلس شروع وي.اوهم په دغه مجلس کښې دخوراك څکاك د فراغت نه پس دمناظرې مجلس شروع شي.نودا هم د مجلس بدليدل دي.[اللهم اغفر لكاتبه ولوالديه ولمن سعى فيه]

**د [اختاري] په جواب کښې د ښځې ځان مختاره کول**

وَإِنِ اخْتَارَتْ نَفْسَهَا فِي قَوْلِهِ اخْتَارِي نوکه دغه ښځې خپل ځان مختاره کړلو. د ده د قول اختاري په صورت کښې كَانَتْ وَاحِدَةً بَائِنَةً نوبائنه به شي.

**تشريح** مسئله دا ده.چه د خاوند د [اختاري] لفظ وئيلو نه پس ښځې هم په دغه مجلس کښې ځان مختاره کړلو.نوپه يوطلاق سره به بائنه شي.هم دا قول د حضرت علي رضي الله عنه دې.

**دلائله** ①د صحابو رضي الله عنهم داجماع په وجه استحساناً دا جائزشو.

② دويم دليل دا دې.چه خاوندته دا اختيار حاصل دې.چه هغه دخپلې ښځې نکاح قائمه کړي.يا هغه جدا کړي.نوهغه په دې اختيارکښې خپله ښځه خپل قائم مقام هم جوړولې شي.

**وقوع البائن** په [اختاري] لفظ سره ښځه په يوطلاق بائنه کيږي.

**دليله** ځکه چه دښځې خپل ځان مختاره کول به په هغه وخت کښې ثابتيږي.چه دنفس سره دښځې اختصاص ثابت شي.يعنې د خاوند ملك زائل شي.اوښځه دخپل ځان مالکه شي.او ښکاره ده.چه دا خبره په طلاق بائن سره حاصليږي.

---

[1] قال الزيلعي رحمه الله فيه عن ابن مسعود وجابر،وعمر،وعثمان وعبدالله بن عمروبن العاص رضي الله عنهم ثم ذكررواياتهم رضي الله عنهم (نصب الراية ٣/٣١٥)_

وَلَایَکُونُ ثَلَاثًا اودرې به پرې نه واقع کیږی.وَاِنْ نَوَی الزَّوْجُ ذٰلِكَ اګرچه خاوند ددې نیت کړې وی.

**عدم وقوع الثلاث** > که خاوند د درې طلاقو نیت کړې وی.نودرې طلاقه نه واقع کیږی.

**دلیله** > ځکه چه اختیارنه تقسیمیږی.البته بینونت غلیظه اوخفیفه ته تقسیم کیدې شی.ددې وجې په [انت بائن] کښې د درې طلاقونیت صحیح دې. خود اختیارپه صورت کښې د درې طلاقو نیت صحیح نه دې.

## د زوجینوپه کلام کښې د نفس د لفظ حیثیت

وَلَابُدَّ مِنْ ذِکْرِ النَّفْسِ فِی کَلَامِهٖ اَوْفِی کَلَامِهَا،اود نفس ذکر ضروری دې.د خاوند په کلام کښې،یا د ښځې په کلام کښې

**تشریح** > مسئله دا ده.چه د اختیارپه لفظ سره په طلاق واقع کولوکښې دا ضروری ده.چه د ښځې یا خاوند په کلام کښې لفظ د نفس یا کوم چه ددې قائم مقام وی.هغه ذکروی.[دنفس قائم مقام لفظ د اختارۃ اوتطلیقۃ] دی.نوکه خاوند [اختاری]اووئیل.اوښځې [اخترت] اووئیل.نوطلاق نه واقع کیږی.

**دلائله** > ① دلیل دا دې.چه د [اختار] په لفظ سره د طلاق واقع کیدل د صحابوﷺ په اجماع سره ثابت دې.اود صحابوﷺ اجماع په هغه صورت کښې ده.چه د ښځې خاوند نه د یوپه کلام کښې لفظ د ،نفس، یا ددې قائم مقام ذکروی.نواجماع چه څنګه واقع شوې وی.دهغې پورې به خاص وی.ځکه چه دا اجماع خلاف القیاس ده.

②دویم دلیل دا دې.چه دلته د خاوند قول [اختاری] مبهم دې.اود ښځې قول کوم چه ددې تفسیردې. نوهغه هم مبهم دې.اویومبهم د بل مبهم تفسیرنشی واقع کیدې.نوددې وجې به هم دا کلام باطل وی.اوکه ته دا اعتراض اوکړې.چه خاوند دطلاق نیت اوکړلو.اوطلاق ئې متعین کړلو.نوجواب دا دې.چه دواړو طرفونوته ابهام موجود وی.نوتعین نشی کیدې.

## د مشیت بیان

وَاِن طلقت نفسها فی قوله اوکه دې خپل خان ته د خاوند په دې قول سره طلاق ورکړو طَلِّقِی نَفْسَكِ چې ته خپل خان ته طلاق ورکړه فَهِیَ وَاحِدَۃٌ رَجْعِیَّۃٌ نو دا به یو رجعی وی،وَاِنْ طَلَّقَتْ نَفْسَهَا ثَلَاثًا وَقَدْ اَرَادَ الزَّوْجُ ذٰلِكَ اوکه دې خپل خان ته درې ( طلاقه) ورکړل.حالانکه خاوند ددې اراده هم کړې ده وَقَعْنَ عَلَیْهَا نو په دې به ( درې واړه) واقع کیږی

**تشریح** > که سړی خپلې ښځې ته [طلقی نفسك] اووئیل.اوسړی څه نیت نه وی کړې.یا ئې د یوطلاق نیت کړې وی.بیا ښځې په جواب کښې اووئیل.[طلقت نفسی] نویوطلاق واقع کیږی.اوکه ښځې په خان باندې درې طلاقه واقع کړلو.اوخاوند هم د دریونیت کړې وی.نوپه دې باندې (درې) واقع کیږی.

**دلیل الصورتین** > د دې دواړو صورتونودلیل دا دې.چه د [طلقی نفسك] معنی دا ده.چه [افعلی فعل الطلاق] یعنی صیغه دامر مصدر لره متضمن ده.اومصدر اسم جنس دې.په ادنی یعنی فرد حقیقی باندې صادقیږی.اود کل یعنی فرد حکمی احتمال لری.دا حکم د ټولواسماء اجناس دې.هم دا وجه ده.چه په [طلقی] کښې د د ریونیت صحیح کیږی.اوکه نیت ئې نه وی کړې.نوفرد حقیقی یعنی

بوطرف ته به راجع وی.اودا یوطلاق به رجعي وی.ددې دلیل دا دې چه ښځې ته صریحی طلاق حواله شوې دې.اوپه صریحی طلاق سره طلاق رجعي واقع کیږی.

**د [طلقی نفسك متی شئت] حکم**

وَإِنْ قَالَ لَهَا: طَلِّقِي نَفْسَكِ مَتَى شِئْتِ اوکه ښځې ته ئې اووئیل.چه ته خپل نفس ته طلاق ورکړه.کوم وخت چه ته غواړې فَلَهَا أَنْ تُطَلِّقَ نَفْسَهَا فِي الْمَجْلِسِ وَبَعْدَهُ نو ښځې ته اختیار دې.چه خپل نفس ته طلاق ورکړی.په مجلس کښې،اود مجلس نه پس.

**تشریح**> مسئله دا ده.که خاوند خپلې ښځې ته اووئیل.چه [طلقی نفسك متی شئت] نوښځې ته اختیاردې.که په مجلس کښې خان ته طلاق ورکوی اوکه د مجلس نه پس.

**دلیله**> دلیل دا دې.چه کلمه د متی ټولو وختونوته عامه ده.نودا داسې شوه.لکه چه خاوند خپلې ښځې ته اووائی.چه [طلقی نفسك فی أی وقت شئت] د وخت دعموم دوجې ښځې ته په هروخت کښې اختیارحاصل دې.که په مجلس کښې طلاق ورکوی اوکه دمجلس نه پس.

وَإِذَا قَالَ لِرَجُلٍ: طَلِّقْ امْرَأَتِي اوکله چه اووائی.یو کس ته. زما ښځې ته طلاق ورکړه فَلَهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا فِي الْمَجْلِسِ وَبَعْدَهُ نو هغه ته اختیار دې.چه دې هغې ته په مجلس کښې اود مجلس نه پس طلاق ورکړی

**تشریح**> دویمه مسئله دا ده.چه یوسړی بل کس ته اووئیل.[طلق امرأتی]نودغه وکیل ته اختیاردې.چه دده ښځې ته په دغه مجلس کښې طلاق ورکوی اوکه د مجلس نه پس.

**دلیله**> دلیل دا دې.چه دې کس دخپل ښځې طلاق ورکولوپاره بل کس وکیل جوړ کړلو.اودهغه نه ئې مدد اوغوښتلو.اووکالت نه لازمونکې وی.اونه په مجلس پورې منحصروی.نوځکه د طلاق وکیل ته اختیاردې.که په مجلس کښې طلاق ورکوی اوکه پس.اوخاوندته درجوع کولواختیارحاصل دې.ددې په خلاف که خاوند خپلې ښځې ته [طلقی نفسك] اووئیل.نودښځې دا اختیارد مجلس پورې خاص دې.اوخاوند ته د خپل قول نه د رجوع کولوحق هم نشته.

**وجه الفرق**> وجه دفرق دا ده.چه دخاوند قول [طلقی نفسك] تملیك دې.ځکه چه ښځه دخپل ځان دپاره عمل کوی. اووکیل هغه وی.چه د بل دپاره عمل کوی.اودا وراندې تیرشوی دی.چه د تملیك په ټولو صورتونو کښې خاوند ته د رجوع کولواختیارنشته.اوتملیك دمجلس پورې خاص وی.

وَإِنْ قَالَ طَلِّقْهَا إِنْ شِئْتَ اوکه سړی یو بل سړی ته اووئیل.چه ته دې ( زما ښځې ) ته طلاق ورکړه.که ته غواړې فَلَهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا فِي الْمَجْلِسِ خَاصَّةً نو دده دپاره جائز دی.چه هغه دې ته خاص طور باندې په مجلس کښې طلاق ورکړی

**تشریح**> دریمه مسئله دا ده.چه سړې بل کس ته اووائی.که ته غواړې نوزما ښځې ته طلاق ورکړه.
①نوپه دې صورت کښې هغه لره صرف په دغه مجلس کښې د طلاق ورکولواختیاردې.

**مسلك زفر**> امام زفر رحمه الله فرمائی.چه دا قول [طلق امرأتی ان شئت] اواولنې قول [طلق امرأتی] دواړه په حکم کښې برابردی.

**دلیله**> دلیل دا دې.چه قول ثانی [طلقها ان شئت] داسې تملیك دې.چه په دې کښې دتعلیق معنی موجود ده.نودتملیك اعتبارچه کولې شی.نودا اختیاربه د مجلس پورې خاص وی.اودتعلیق (یمین) د معنی

اعتبارچه کولې شي.نودا تصرف به لازم وي.اوخاوندته به دخپل قول نه د رجوع کولواختیارحاصل نه وي.

وَاِنْ قَالَ لَهَا اوکه خاوند هغې ته اووئیل اِنْ كُنْتِ تُحِبِّيْنِيْ که چرته ته ما سره محبت کوې أَوْ تُبْغِضِيْنِيْ یا ته ما سره بغض کوې فَأَنْتِ طَالِقٌ نو ته دې طلاقه یې فَقَالَتْ أَنَا أُحِبُّكَ نو هغه اووائی زه تا سره محبت کوم أَوْ أَبْغَضُكَ یا تا سره بغض کوم وَقَعَ الطَّلَاقُ طلاق واقع شو وَاِنْ كَانَ فِيْ قَلْبِهَا اګرچې په زړه د هغې کښې خِلَافُ مَا أَظْهَرَتْ خلاف دهغه څه کوم چې هغې ظاهر کړې وي.

**تشریح>** نفس مسئله آسانه ده

**دلیله>** طلاق ځکه واقع کیږي.چې په زړه کښې دننه څه وي په هغې به فیصله نه کیږي.بلکه څه چې په ژبه وي په هغې به فیصله کیږي.مشهوره قاعده ده چې شریعت ظاهر ته ګوري.

## په مرض الموت کښې د طلاق ورکولوحکم

وَاِنْ طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ فِيْ مَرَضِ مَوْتِهِ طَلَاقًا بَائِنًا او که چا طلاق ورکړو.سړي خپلې ښځې ته په مرض د وفات خپل کښې،طلاق بائن فَمَاتَ فَهِيَ فِي الْعِدَّةِ بیا مړشو.په داسې حال کښې چه دا( ښځه دده) په عدت کښې ده وَرِثَتْ مِنْهُ، نو( ښځه به) میراث اوړي د هغه نه وَاِنْ مَاتَ بَعْدَ انْقِضَاءِ عِدَّتِهَا اوکه دې مړشو.روسته د تیریدلو د عدت دښځې نه فَلَا مِيْرَاثَ لَهَا نو ددې ( ښځې) دپاره به میراث نه وي

**تشریح>** صورت دمسئلې دا دې.چه خاوند خپلې ښځې ته په مرض الموت کښې طلاق بائن ورکړې بغیر د ښځې د رضامندئ نه.بیا دا خاوند مړشي.حالانکه دده دا ښځه لاپه عدت کښې وي.اودمیراث مستحقه وي.نودا ښځه به دخپل خاوند نه میراث اوړي.

**القیودات في المسئلة>** په دې مسئله کښې څوقیودات دي.دا اوګورئ.① دا چه مرګ دعدت سره مقید دې.ځکه که د عدت پوره کیدو نه پس مړ شوې وي.نوپه دې صورت کښې به هم وارثه نه وي. ② دا چه د میراث داستحقاق قید نې اولګولو.ځکه که دا ښځه کتابیه وي.یا وینځه وي.نوپه دې صورت کښې به هم میراث نه اوړي.

③ دا چه طلاق نې دښځې دعدم رضا پورې مقید کړلو.ځکه که طلاق نې ددې په رضا سره ورکړې وي.نوبیا هم دا دمیراث مستحقه نه ده.

④دا چه طلاق بائن نې په مرض الموت باندې مقید کړلو.ځکه که دې سړي په حالت دمرض کښې طلاق ورکړلو.اوبیا روغ شو.اوبیا مړ شو.نوپه دې صورت کښې ښځه دمیراث مستحقه نه ده

⑤ داچه طلاق بائن نې ورکړې وي.ځکه که طلاق رجعی نې ورته ورکړې وي.نودا ښځه د نکاح د وجې دمیراث حقداره نه ده دفرارد وجې .ځکه چه په طلاق رجعی کښې دعدت په دوران کښې نکاح من كل وجوه باقي وي.

صاحب دعنایه فرماني.چه دخاوند په خپل مرض الوفات کښې طلاق ورکول،دې ته طلاق فار وائي. او د فار حکم لکه څنګه چه دسړي د طرفه ثابتیږي.دغه شان دښځې دطرفه هم ثابتیږي.مثلاً چه ښځه په خپل مرض الموت کښې مرتده شي.والعیاذبالله نوخاوند به میراث اوړي.

حاصل دا چې که خاوند په زمانه دعدت کښې مړ شی.نوښځه به وارثه وی.اوکه د عدت تیریدو نه پس مړ شی.نوښځه به وارثه نه وی. (۱)

**دلائلها** ① دفارد ښځې دمیراث اوړل دصحابو رضي الله عنهم په اجماع سره ثابت دی.تفصیل دا دې.چه حضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه خپلې ښځې تماضرته په خپل مرض الوفات کښې طلاق بائن ورکړلو .او د عبدالرحمن به عوف وفات اوشو.حالانکه ددوی بی بی تماضرپه خپل عدت کښې وه.نوحضرت عثمان رضي الله عنه تماضردحضرت عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه دمیراث وارثه جوړه کړه.حالانکه دا کاردصحابو رضي الله عنهم په وجود کښې شوې وو.خوهیڅ چا پرې انکاراونکړلو.نوځکه دا اجماع سکوتی شوه.دحضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دې. (ان امرأة الفار ترث) بیشکه د فارښځه به میراث اوړی.ددې نه علاوه دحضرت عمر،عثمان،علی ،ابن مسعود رضي الله عنهم نه هم دا مروی دی.اودهیڅ یوصحابی نه ددې خلاف منقول نه دې.نواجماع سکوتی متحقق شوه. اودا کوم چه د حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنهما نه روایت کولې شی.چه که معامله ماته راغلې وه.نومابه تماضرد میراث حقداره نه وه جوړه کړې.څه نقصان نه رسوی.ځکه چه په کوم وخت کښې چه اجماع منعقد کیدله .نوپه هغه وخت کښې حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنهما ماشوم وو.اودا خبره د روستووخت ده.اوروستنې اختلاف د وړاندینۍ اجماع سره معارض نشی کیدې.

② دلیل عقلی دا دې.چه په مرض الوفات کښې دښځې ښځه توب د میراث اوړلوسبب دې.ځکه چه د خاوند په وفات سره د ښځې حق د هغه په میراث پورې متعلق کیږی.نوچه په دې حالت کښې خاوند ښځې ته طلاق ورکړی.نودې دښځې دحق وراثت باطلول غواړی.نودده دا غلطه اراده به هم ده ته واپس کولې شی.په دې طریقه چه د طلاق عمل به دعدت دتیریدو زمانې پورې اوږد کړې شی.چه ښځه دمیراث دمحرومتیا نه بچ شی.

**په طلاق کښې د انشاء الله وئیلو حکم**

| وَاِذَاقَالَ لِامْرَأَتِهٖ او کله نې چه اووئیل.خپلې ښځې ته اَنْتِ طَالِقٌ اِنْ شَاءَاللّٰهُ تَعَالٰی مُتَّصِلًا انت طالق انشاءالله تعالی،متصل لَمْ يَقَعِ الطَّلَاقُ علیها نو طلاق به نه واقع کیږی. |
|---|

**تشریح** د استثناء معنی ده.[تکلم بالباقی بعدالثنیاء] یعنی د استثناء نه پس په باقی کلام تکلم کول.چونکه تعلیق د کل کلام دپاره مانع وو.اواستثناء دبعضې کلام دپاره.نوتعلیق اقوی شود استثناء نه. اواقوی مقدم وی په قوی باندې.نوځکه نې تعلیق وړاندې بیان کړلو.اواستثناء پس.

صورت د مسئلې سری خپلې ښځې ته اووئیل.[انت طالق ان شاء الله تعالی] اولفظ دانشاء الله نې د [انت طالق] سره متصل اووئیل.نوطلاق نه واقع کیږی.

**دلیله** دلیل دا دې.چه نبی ﷺ فرمائیلی دی. مَنْ حَلَفَ بِطَلَاقٍ اَوْعَتَاقٍ وَقَالَ: اِنْ شَاءَاللّٰهُ تَعَالٰی مُتَّصِلًا بِهٖ فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ(۲) کوم کس چه په طلاق سره قسم اوخوړلو.اویا په آزادولو کښې. او بیا نې وریسې سمدستی اووئیل.انشاء الله نودې نه حانثیږی.یعنی دده قسم نه ماتیږی.چه طلاق یا عتاق

---

(۱) **مسلک الشافعي**:- دامام شافعی رحمه الله په نیزبه په دواړوصورتونوکښې وارثه وی.که مرګ نې په عدت کښې وی.اوکه د عدت تیریدو نه پس وی.

(۲) غربه الزیلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل عن ابن عمر رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ قال من حلف علی یمین فقال إن شاءالله فلا حنث علیه

واقع شي.

### د [أنت طالق ثلاثا إلا واحدة] حكم

وَإِنْ قَالَ: أَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا إِلَّا وَاحِدَةً، اوكه وې ونيل.ته په دريو طلاقو طلاقه ئې.مگر په يو طَلَقَتْ ثِنْتَيْنِ نو په دوه طلاقو سره به طلاقه وي وَإِنْ قَالَ ثَلَاثًا إِلَّا ثِنْتَيْنِ اوكه وې ونيل. ته په دريو طلاقو طالقه ئې.سوا د دوو نه طَلُقَتْ وَاحِدَةً نو په يو سره به مطلقه وي

**تشريح**> صورت دمسئلې دا دې.كه يوكس خپلې ښځې ته اوونيل.[أنت طالق ثلاثا إلا واحدة] نوپه دې صورت كښې دوه طلاقه واقع كيږي.اوكه ونې ونيل.چه [أنت طالق ثلاثا إلا اثنتين] نوپه دې صورت كښې يوطلاق واقع كيږي.

مصنفؒ دوه مثالونه ذكركړل،دې طرفته داشارې كولودپاره چه استثناء د قليل او كثير دواړو جائز ده. اگرچه امام فراء نحوى ددې اجازت نه دې وركړې.

**القاعدة**> داستثناء اصل دا دې.چه داستثناء نه پس كوم مقدارباقى پاتې شي.دهغې تكلم كول استثناء ده.حاصل دا چه د مستثنى منه كوم مقدارچه باقى پاتې شي.په هغې باندې تكلم كولوته استثناء وائي.نود يوكس دا وينا چه دفلانى په ما باندې يوه روپئ ده.اودا چه دفلانى په ما باندې لس روپئ سوا د نهو نه دى.په دې دواړو قولونوكښې څه فرق نشته. نوحاصل دا چه د بعضى دكل نه استثناء كول جائزدى.اودكل د كل نه استثناء كول جائز نه دى.څكه چه دكل نه د كل استثناء كولونه پس باقى څه نه پاتې كيږي.چه په هغې باندې تكلم كونكې شي.اوداستثناء د صحت دپاره دا هم ضرورى دى.چه استثناء د اصل كلام سره متصله وى.

بهرحال هركله چه دا اصول معلوم شو.نوپه اولنى صورت كښې د مستثنى منه نه پس باقى مانده دوه دى.نو دوه طلاقه به واقع كيږي.اوپه دويم صورت كښې د مستثنى منه نه پس باقى يو دې.نويوطلاق به واقع كيږي.

### د سړي د خپلې ښځې دڅه حصې مالك جوړيدل اوددې په عكس كښې تفريق

وَإِذَا مَلَكَ الزَّوْجُ امْرَأَتَهُ اوكلهرچه خاوند د خپلې ښځې مالك شو أَوْ شِقْصًا مِنْهَا يا ددې د يوې حصې، أَوْ مَلَكَتْ الْمَرْأَةُ زَوْجَهَا أَوْ شِقْصًا مِنْهُ يا ښځه د خپل خاوند مالكه شوه.يا دده د يوې حصې ( مالكه شوه). وَقَعَتْ الْفُرْقَةُ نو فرقت واقع كيږي

**حل اللغة** > ① **شقص**؛ حصه ② **الفرقة**؛ جدائي]

**تشريح**> مسئله،كه سړې دخپلې ښځې د اخستلو يا ورارثت يا هبې يا صدقې په ذريعه مالك شو.يا ددې د څه حصې مالك جوړ شو.يا په ذكر شوو وجوهوكښې په څه وجه ښځه د خاوند مالكه جوړه شي.نوپه دواړو صورتونوكښې به د دواړو په مينځ كښې بيلتون واقع كيږي.يعنى نكاح به پورته كيږي.

**دليله**> څكه چه په ملك نكاح اوملك يمين كښې منافات دې.ددې تفصيل دا دې.كه ښځه د خاوند مالكه شي.نود مالكيت اومملوكيت اجتماع راغله.څكه چه ملك نكاح تقاضا كوي.چه ښځه دې مملوكه وى.اوملك يمين تقاضا كوي.چه ښځه دې مالكه وى.اود ملكين اجتماع ناممكن ده.نوځكه به بيلتون واقع كيږي.

اوكه خاوند د خپلې ښځې مالك جوړ شو.نووجه د فرقت دا ده.چه ملك نكاح د ضرورت په وجه ثابتيږي.څكه چه هرملك نكاح اثبات دې په آزاده ښځه باندې.اوپه آزاده ښځه باندې اثبات د ملكيت خلاف قياس دې.اوچه كوم څيز خلاف قياس ثابت شي.نوهغه د ضرورت په وجه ثابتيږي.نوثابته

شوه.چه ملك نكاح د ضرورت په وجه ثابتيږي.اوچه ملك يمين وي.نوځه ضرورت پاتې نشو.نوچه ملك يمين ثابت شو.نوملك نكاح زائل شو.

## بَابُ الرَّجْعَةِ

**تشريح>** چونكه رجعت طبعاً د طلاق نه پس وي.نوځكه ئې په ذكركولوكښې هم روستوكړلو.چه وضع د طبع سره موافق شي.

رجعت د راء په زور اوزيردواړو سره جائزدي.خوپه زور سره لوستل زيات فصيح دي. (رجع يرجع) د باب ضرب يضرب ځنې دي.معنى ئې واپس كيدل دي.

**شروط الرجعة>** په شريعت كښې رجعت وائي.دنكاح ملك برابرباقي ساتل.اودرجعت دپاره څوشرطونه دي.هغه هم زده كړئ.

① په صريحى لفظ سره طلاق وركول يا په بعضې كنائي الفاظوسره،دكوم ذكرچه وړاندې تيرشوې دي.يعني (اعتدى،إستبرئ رحمك، أنت واحدة)

②چه د طلاق په عوض كښې مال نه وي.

③درې طلاقه نه وي واقع شوې.

④ښځه مدخول بها وي.

⑤عدت موجود وي.

**ثبوتها>** درجعت ثبوت دكتاب لله سنت اواجماع درې واړو نه شوې دي.ځكه ددې په مشروعيت كښې د چا خلاف نشته.① دكتاب الله نه د ثبوت مثال دالله تعالى ارشاد ﴿وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ﴾

② اود حديث نه ئې د ثبوت مثال دنبى ﷺ ارشاد (مرابنك فليراجعها) اونبى ﷺ حضرت سودة ته رجعت كړې وو.

③اودرجعت په صحت باندې اجماع هم منعقده ده.(عيني شرح هدايه)

### د يويا دوه طلاق رجعي نه پس خاوند ته د رجوع اختيار

| وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ تَطْلِيقَةً رَجْعِيَّةً أَوْتَطْلِيقَتَيْنِ اوكله چه سړى خپلې ښځې ته يوطلاق رجعي يادوه طلاقه وركړل فَلَهُ أَنْ يُرَاجِعَهَا فِي عِدَّتِهَا رَضِيَتْ بِذٰلِكَ أَوْلَمْ تَرْضَ نو سړى ته اختيار دې.چه په عدت كښې ښځې سره مراجعت اوكړي.(كه) په دې باندې ښځه راضي وي اوكه نه وي |
|---|

**تشريح>** مسئله دا ده.چه كله يوكس خپلې مدخول بها ښځې ته يو يا دوه طلاق رجعي وركړي.نوسړي ته اختياردې.چه دې ته په عدت كښې رجعت اوكړي.كه ښځه پرې راضي وي اوكه نه وي.

**دليله>** دليل دالله تعالى ارشاد دې. ﴿فَإِذَا بَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ أَوْفَارِقُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ﴾ يعنى كله چه د ښځوعدت ختميدوته نزدې شي.نوتاسوته اختيار دې.كه رجعت خوښوئ.نودضرر رسولونه بغيردوى ځان سره اوساتئ.اوكه د جدا كولواراده لرئ.نوبغيرد ضرر رسولونه دوى جدا كړئ.په دې آيت كښې مطلقاً د رجعت ذكردې.چه ښځې د رضا اوعدم رضا بيان په كښې نشته.ددې وجې د رجعت حكم مطلق پريخودې شو.

### قولي اوفعلي رجوع

| وَالرَّجْعَةُ أَنْ يَقُولَ رَاجَعْتُكِ أَوْرَاجَعْتُ امْرَأَتِي او رجعت دادې.چه ښځې ته خطاب اوكړي.او دا |
|---|

اووانی.چه ما تاسره رجعت اوکړو.یاد خلقو په وړاندې اووانی.چه ما خپلې ښځې سره رجعت اوکړو

**تشریح**> رجعت دا دې.چه خپلې ښځې ته خطاب کوی.اوورته اووانی.چه ماتاته رجوع اوکړله.یا ګواهان مخاطب کړی.اوورته اووانی.چه ماخپلې ښځې ته رجوع اوکړله.برابره ده که دغه ښځه په دغه وخت کښې موجوده وی اوکه یا ورته څوک خبر ورکړی.

**دلیله**> اودا طریقه په رجعت کښې صریح ده.اوپه څلورو واړو امامانوکښې په دې مسئله کښې څه اختلاف نشته.

**عدم شرطیة الشهادة**> اوقول صحیح دا دې.چه دچا په نیزهم ګواه شرط نه دې.البته د ګواه مقرر کولوفائده دا ده.که ښځه دا دعوی اوکړی.چه ده ماته رجوع نه ده کړې.نوداسرې د ګواهانوپه ذریعه دا ثابتولې شی.الحاصل دا رجعت دا قول بغیراختلافه صریحی دې.

أَوْيَطَأَهَا أَوْيُقَبِّلَهَا أَوْيَلْمِسَهَا بِشَهْوَةٍ أَوْيَنْظُرَإِلَى فَرْجِهَا بِشَهْوَةٍ یاددې سره صحبت اوکړی.یا ددې نه کوکی واخلی.یا په شهوت سره دې ته لاس یوسی.یا ددې شرمګاه طرف ته په شهوت سره اوګوری

**حل اللغة** > ① **یطاء**: وطی کوی ② **یقبل**: ښکلوی ③ **یلمس**: مس کوی ]

**تشریح**> درجعت عملی صورت دا دې. چه دې ښځې سره وطی اوکړی.یا نې ښکل کړی.یا دې ښځې ته په شهوت سره لاس وراوړی.یا نې مس کړی.یا په شهوت سره ددې شرمګاه ته اوګوری.یعنی دننه ګول خانې ته،اوعلامه عینی د ښکلولو سره هم د شهوت قید لګولې دې.په مبسوط ،ذهیر او خلاصه کښې خونې دا قید په صراحت سره ذکر کړې دې.شیخ محقق ابن همامؒ فرمائیلی دی.چه فعل هم د رجعت دلیل دې.خورجعت به په داسې افعالوسره کیږی.کوم چه دنکاح سره خاص وی.په دې کښې دا دلیل مفید دې.چه په ښکلولوکښې دشهوت قید نه دی لګول پکار،لکه څنګه چه د کتاب په عبارت کښې ښکاره ده.څکه چه ښکلول مطلقاً داسې فعل دې.چه دنکاح سره خاص دې.په خلاف د مس کولواوکتلو،څکه چه دا کارونه د نکاح سره خاص نه دی.البته په هغه صورت کښې چه په شهوت سره وی. (١)

**دلیله**> زمونږ په نیزد رجعت معنی ده.نکاح د وړاندې پشان باقی ساتل.لکه څنګه چه مونږ وړاندې بیان کړی دی.اوروستوبه هم انشاء الله ددې وضاحت اوکړو.

### په رجوع باندې دوه ګواهان قائمول

وَيُسْتَحَبُّ لَهُ أَنْ يُشْهِدَ عَلَى الرَّجْعَةِ شَاهِدَيْنِ او مستحب دی.چه په رجعت باندې دوه ګواهان جوړکړی وَإِنْ لَمْ يُشْهِدْ نوکه ګواهان نې مقررنکړل صَحَّتِ الرَّجْعَةُ نو بیاهم رجعت صحیح دې

**تشریح**> صاحب دقدوریؒ فرمائی. په رجعت باندې دوه ګواهان قائمول مستحب دی.یعنی چه دې مسلمانانوسرو ته اووانی.چه تاسوګواه شی:چه ماخپلې بی بی ته رجوع اوکړله.اوکه ګواهان جوړ نکړی.نوهم رجعت ثابتیږی. (٢)

---

[١] ، **مسلک الشافعي**:- امام شافعیؒ فرمائی.که سړې په ژبه باندې ونیلې شی.نوبغیرد کولو نه صرف په حرکت سره رجعت نه ثابتیږی.البته د ګونګاه رجعت کوم چه په اشاره سره وی.نوهغه صحیح دې.

[٢] ، **مسلک الشافعي**:- دامام شافعیؒ په نیزبغیرد دوو ګواهانونه رجعت نه ثابتیږی.اوهم دا دامام مالکؒ صحیح قول دې.صاحب دفتح القدیربیان کړې دې.چه دمالکیانوپه کتابونوکښې ذکردی.چه

**دلائله**> ① دليل دا دي.چه درجعت په باره کښې چه څومره نصوص منقول دی.هغه ټول د ګواهانو مقرر کولونه خالي دی.مثلاً (۱) فَأَمْسِكُوهُنَّ بِمَعْرُوفٍ (۲) ﴿الطَّلَاقُ مَرَّتَانِ فَإِمْسَاكٌ بِمَعْرُوفٍ﴾ (۳) ﴿وَبُعُولَتُهُنَّ أَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ﴾ ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَنْ يَتَرَاجَعَا﴾ اونبی ﷺ ② فرمائيلي دی. (مرابنك فليراجعها)اوکه په رجعت باندې دشهادت د وجوب اضافه اوشو.نوبه دې دې نصوص مطلقو کښې به زيادت راشي.اودا جائزنه دی.

② عقلي دليل دا دي.چه رجعت د نکاح باقي کولونوم دي.اودنکاح باقي ساتلودپاره شهادت شرط نه دی. نودرجعت دپاره به هم شهادت شرط نه وی.لکه څنګه چه په ايلاء کولوکښې شهادت شرط نه دی. ځکه چه دا هم د نکاح دحالت باقي والي دی.البته د زيادت احتياط دپاره په رجعت کښې شهادت مستحب دي.چه د عدت تيريدونه پس د لاعلمئ د وجې په خلقوکښې بدګماني پيدا نشي.چه فلانی خپلې ښځې ته طلاق ورکړي وو.اوبيا د عدت تيريدونه پس ئې هم خان سره ساتي.

## دعدت تيريدونه پس په عدت کښې د رجوع کولوحکم

وَإِذَا انْقَضَتِ الْعِدَّةُ اوکه عدت تير شو فَقَالَ الزَّوْجُ قَدْ كُنْتُ رَاجَعْتُهَا فِي الْعِدَّةِ نوسړی اووئيل.ما ددې په عدت کښې رجوع کړې وه فَصَدَّقَتْهُ نو ښځې ددې تصديق اوکړو فَهِيَ رَجْعَةٌ نودا رجعت دی وَإِنْ كَذَّبَتْهُ اوکه ښځې ددې تکذيب اوکړو فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا نود ښځې قول به (معتبر) وی وَلَا يَمِينَ عَلَيْهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ اود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په ښځه باندې قسم نشته

**تشريح**> مسئله دا ده.که خاوند ښځې ته اووئيل.چه ماتاته په عدت کښې رجوع کړې وه.اوښځې ئې تصديق اوکړلو.نودا رجعت دی.اوکه ښځې ئې تکذيب اوکړلو.نودهغې قول به معتبر وی.

**دليله**> ځکه چه خاوند دداسې څيزدعوی اوکړله.چه دې هغه فی الحال پيدا کولې نشي.نودې به په هغې کښې متهم وی.اوچه په کوم صورت کښې ئې ښځه تصديق اوکړی.نوپه هغه صورت کښې چونکه په ده باندې تهمت نشته.نوځکه ئې قول معتبردی.

## د سړی د رجوع اودښځې دعدت تيريدودعوی کول

وَإِذَا قَالَ الزَّوْجُ قَدْ رَاجَعْتُكِ اوکه خاوند اووئيل.چه ما تاسره رجعت کړې دې فَقَالَتْ مُجِيبَةً لَهُ نوښځې ده ته په جواب ورکولو کښې اوفرمائيل قَدِ انْقَضَتْ عِدَّتِي چه زما عدت خو تيرشوې دې لَمْ تَصِحَّ الرَّجْعَةُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (۱) د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز رجعت صحيح نه دې

**تشريح**> صورت دمسئلې دا دي.چه خاوند خپلې ښځې ته اووئيل.ماتاته په عدت کښې رجوع کړې ده.اوښځې ورته سمدستي اووئيل.زما خوعدت تيرشوې هم دې.① نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزرجعت نه ثابتيږی.دا دامام شافعي اوامام احمد رحمه الله قول هم دې

**دليله**> دليل دادې.چه درجعت قول د عدت ختميدونه پس واقع شوې دې.کوم چه دهغې په رحم کښې

---

بغيرد دووګواهانونه هم رجعت صحيح کيږی.خوګواهان جوړول مستحب دی.دغه شان په شرح طحاوی کښې هم دی.

[1] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الهندية (۱\۴۷۰) وفتح القدير (۴\۲۰) والدرالمختار (۲\۵۷۷) نقلاً عن القول الراجح (۱\۳۳۸)_

دي.اوکوم ځيزچه په رحم کښې وي.دهغې خبر ورکونکې امين وي.دالله تعالی ارشاد دي﴿وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ أَنْ يَكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللَّهُ فِي أَرْحَامِهِنَّ﴾ يعنی دښځودپاره حلال نه دی.چه پټ کړی هغه ځيزکوم چه الله تعالی د دوی په رحمونوکښې پيدا کړې دي.بهرحال هرکله چه ښځې دعدت تيريدوخبر ورکړلو.نودا خبرورکول په دې دلالت کوی.چه دعدت تيريدل د خبرورکولونه وړاندې دی.

اوس پاتې شوه دا خبره چه ځومره وړاندې دې.نوجواب دا دې.چه د عدت ختميدوپه حالاتوکښې دتولونه نزد.دخاوند قول دې.نود ښځې خبرورکول به دخاوند دخبرورکولونه چه (راجعتك) نه وړاندې وی.نوحاصل دا شو.چه عدت وړاندې تيرشوې دې.اورجعت روستو شوې.اوکوم رجعت چه د عدت تيريدونه پس وی.هغه صحيح نه وی.نوځکه امام ابوحنيفه‌رحمه‌الله فرمائی.چه دا رجعت صحيح نه دې.

**مسلک الصاحبين**> صاحبينو رحمهماالله فرمائيلی دی.چه رجعت صحيح کيږی.

**دليلهما**> دليل دا دې.چه رجعت د عدت په زمانه کښې موجود شوې دې.ځکه چه په استصحاب حال باندې عمل کولوباندې په ظاهره عدت باقی دې.ترڅوچه دې دعدت تيريدوخبرنه وی ورکړې.نومعلومه شوه.چه د رجعت قول وړاندې دې.اود عدت تيريدو قول روستودې.اودعدت په زمانه کښې رجعت کول صحيح دی.ددې وجې مونږ وايو.چه رجعت صحيح دې.اوچونکه درجعت قول د عدت ختميدود قول نه وړاندې دې.ددې وجې که خاوندخپلې ښځې ته اووئيل.چه ما تاته طلاق درکړې دې.اوښځې ورته اووئيل.چه زما عدت خوتيرشوې دې.نوپه دې صورت کښې طلاق واقع کيږی.ځکه چه طلاق قول دعدت ختميدود خبرورکولو نه وړاندې واقع شوې دې.

**الجواب عنه**> د طلاق مسئله هم د رجعت د مسئلې پشان مختلف فيه ده.نوپه دې باندې قياس کول به ځنګه صحيح شی.اوکه دا اومنلې شی.چه د طلاق مسئله متفق عليه ده.نوجواب دا دې.چه دعدت تيريدونه پس به د خاوند په اقرارباندې طلاق واقع شی.خودعدت نه پس دخاوند په اقرار باندې رجعت نه ثابتيږی.ځکه چه په دې کښې دبل په حق کښې دتصرف کولوتهمت پيدا کيږی.نومعلومه شوه.چه په دې دواړومسئلوکښې فارق موجود دې.اوقياس مع الفارق صحيح نه وی.نوځکه امام ابوحنيفه‌رحمه‌الله فرمائی.چه دا رجعت صحيح نه دې.

### دعدت تيريدونه پس د وينځې د خاوند د رجعت دعوی او د مالک تصديق اود وينځې تکذيب

| وَإِذَا قَالَ زَوْجُ الْأَمَةِ بَعْدَ انْقِضَاءِ عِدَّتِهَا او هرکله چه د وينځې خاوند ددې د عدت تيريدلو نه پس اووئيل قَدْ كُنْتُ رَاجَعْتُهَا چه مادې ته (په عدت کښې) رجوع کړې ده وَصَدَّقَهُ الْمَوْلَى او مولا ددې تصديق اوکړو وَكَذَّبَتْهُ الْأَمَةُ او وينځې دا دروغ کړله فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ (۱) امام ابوحنيفه رحمه‌الله په نيز به د وينځې قول (معتبر) وی |
|---|

**تشريح**> که د وينځې خاونددعدت تيريدو نه پس اووئيل.چه ما تاته په عدت کښې رجوع کړې ده.نوددې څلور صورتونه دی.① مولی اووينځه دواړه دده تصديق کوی. ②يا ئې دواړه تکذيب کوی. ③مولی ئې تصديق کوی اوښځه ئې تکذيب④مولی ئې تکذيب کوی اوښځه ئې تصديق کوی. په اول صورت کښې په اتفاق سره رجعت صحيح دې.اوپه دويم صورت کښې په اتفاق سره رجعت

[1]) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه‌الله كذا في الهندية (۱\۴۷۱) والدرالمختار(۲\۵۷۸) نقلاً عن القول الراجح (۱\۳۴۰)-

صحيح نه دي.البته دا چه خاوند گواهان پیش کړي.اوپه دریم صورت کښې که دخاوند سره گواهان نه وي. نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد وینځې قول معتبردې.اوامام شافعي امام مالك اوامام احمد رحمهم الله هم ددې قائلین دي.

**مسلك الصاحبين** اودصاحبینو رحمهما الله په نیزد مولی قول معتبردې.

**دليلهما** دلیل دا دی.چه دعدت تیریدونه پس دبضع منافع د مولی مملوك دی.نودخاوند دپاره د بضع دمنافعو اقرارکول خالص دخپل حق اقرار کول دی.نودابه نشي رد کولی.اودا داسې شوه.چه دوینځې په نکاح کښې د مولی قول معتبردې.یعنی چه مولی دا اقراراوکړي.چه ما خپله وینځه فلانی کس ته په نکاح ورکړې ده.نوپه دې اقرارکښې دمولی قول معتبردې.نودغه شان په دې صورت کښې به هم د مولی قول معتبروي.

دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد رجعت حکم د عدت په بقاء اودعدت په تیریدو باندې مبنی دې.(یعنی که عدت باقي وي.نورجعت به ثابت وي.اوکه عدت باقي نه وي.نورجعت نه ثابتیږي)اودعدت په بقاء اوعدم بقاء کښې دبنځې قول معتبردې.نوکوم ځیزچه په عدت باندې مبنی وي.یعنی رجعت نوپه هغې کښې به هم د ښځې قول معتبروي.

اوخلورم صورت دا دې.دکوم چه مصنف رحمه الله په (ولوكان على القلب) سره تعبیرکړې دې.یعنی چه وینځې د خاوند تصدیق اوکړلو.اومولی ئې تکذیب اوکړلو.نوپه دې صورت کښې دصاحبینو رحمهما الله په نیز د مولی قول معتبردې.دلیل دا چه دبضع منافع دمولی حق دې.اوخاوندپه مولی باندې ددې مدعی دې. اوصورت د مسئلې دا دې.چه دمدعی سره گواهان موجود نه دی.نودمنکر یعنی مولی قول به معتبروي.

**دليل الرواية الصحيحة** دامام ابوحنیفه رحمه الله نه هم صحیح روایت دا دې.چه دمولی قول معتبردې.دلیل دا دې.چه فی الحال دا وینځه په داسې حالت کښې ده.چه د عدت ورځې تیرې شوې دی.اود وینځې نه د مولی دپاره د فائدې حاصلولودپاره د ملك په ظاهره ثابت شوې دی.نوکه د وینځې اودهغې دخاوند په اقرارسره رجعت ثابت کړې شي.نودمولی ملك تمتع به باطل شي.حالانکه صرف دیوکس په اقرارکولوسره دبل چا حق نه باطلیږي.نودلته به هم د وینځې قول د مولی دحق باطلولود وجې قابل قبول نه وي.

**درجوع دحق ختمیدووخت**

وَإِذَا انْقَطَعَ الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ الثَّالِثَةِ لِعَشَرَةِ أَيَّامٍ اوهرکله چه د دریم حیض نه وینه بنده شوه.په پوره لس ورځو باندې لَمْ انْقَطَعَتِ الرَّجْعَةُ وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا وَإِنْ لَمْ تَغْتَسِلْ نو رجعت نه منقطع کیږي تردې چې غسل اوکړي وَإِنِ انْقَطَعَ الدَّمُ لِأَقَلَّ مِنْ عَشَرَةِ أَيَّامٍ اود لس ورځو نه په کمو کښې ( وینه) منقطع شوې لَمْ تَنْقَطِعِ الرَّجْعَةُ حَتَّى تَغْتَسِلَ نو رجعت به منقطع نه وي.تردې چه ښځه غسل اوکړي أَوْ يَمْضِيَ عَلَيْهَا وَقْتُ صَلَاةٍ كَامِلٍ او یا تیر شي په ده باندې د پوره کامل مونځ وخت أَوْ تَيَمَّمَ وَتُصَلِّيَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ یا په دې باندې د مونځ پوره وخت تیرشي په نیز د امام ابوحنیفه

**تشريح** صورت دمسئلې دا دې.چه په پوره لسمه ورځ دحیض وینه اودریدله.نوعدت تیرشو.اګرچه ښځې لاغسل نه وي کړې.اوکه دلسو ورځونه په کمه مودۀ باندې وینه اودریدله.نوعدت نه ختمیږي.تردې چه هغه ښځه غسل اوکړي.اویا پرې د یوکامل مونځ وخت تیرشي.

**دليله** دلیل دا دې.چه رجعت منقطع کیدل موقوف دی.دعدت په تیریدوپورې.اودعدت تیریدل

موقوف دی. ددریم حیض په دریدو پورې.اود دریم حیض تیریدل موقوف دی دطهارت په حاصلولوپورې.نوکه دوینې اودریدل په پوره لسمه ورځ وی.نوصرف د وینې په اودریدو به عدت ختمیږی.ځکه چه په لسوروځوباندې حیض نه زیاتیږی.نوچه ځنګه لس ورځې پوره شی.نوداوینې په اودریدو به دابنځه د حیض نه فارغه شی.اوددې عدت به هم تیرشی.اود رجعت حکم به هم منقطع شی.برابره ده که دې ښځې غسل کړې وی اوکه نه.

**دليلهما**> دلیل دا دې.چه په حقیقت کښې تیمم ککړکونکې دې.خوشریعت د ضرورت په وجه ددې د مطهریت اعتبارکړې دې.ضرورت دا دې.که څو ورځې په اوبوباندې قدرت نه وی.اودشریعت د طرفه دتیمم اجازت هم نه وی.نودده په ذمه به فرائض اوواجبات په څوچنده شی.اودهغې ادا کول به دده دپاره ګران شی.نوددې ضرورت د وجې تیمم جائزاوګرځولې شو.اوضرورت ادا کول د مونځ دی.اوضرورت د مانځه دوخت په داخلیدوسره متحقق کیږی.دهغې نه وړاندې نه،نومعلومه شوه.چه دتیمم نه پس نې مونځ اوکړلو.نوطهارت به حاصل شی.ګنی نه حاصلیږی.ددې وجې مونږوایو.که دتیمم نه پس نې مونځ اوکړلو.نودطهارت دحاصلیدو په وجه به درجعت حکم منقطع شی.اوکه مونځ نې اونکړلو.نودطهارت دعدم حصول د وجې به درجعت حکم نه منقطع کیږی.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ: إِذَا تَيَمَّمَتِ الْمَرْأَةُ او امام محمد رحمه الله فرمائی.چه کله ښځه تیمم اوکړی انْقَطَعَتْ الرَّجْعَةُ ()نو عدت او رجعت منقطع شو.وَإِنْ لَمْ تُصَلِّ اګرچه مونځ نې نه وی کړې.

**تشريح**> امام محمد رحمه الله فرمائی.که تیمم اوکړی.نوصرف په تیمم کولوسره رجعت ختم شو.امام زفراوامام احمد رحمهما الله هم ددې قائلین دی.اودا قیاس هم دې.

**دليله**> دلیل دا دې.چه اوبه نه وی.نوتیمم طهارت مطلقه دې.هم دا وجه ده.چه په تیمم باندې هغه ټول احکامات جائز کیږی.کوم چه په غسل باندې جائزکیږی.لکه جمات ته داخلیدل، دقرآن پاک تلاوت کول،قرآن ته ګوتې وراوړل،مونځ کول،سجده دتلاوت کول،نوتیمم دغسل په مرتبه کښې شو.نوچه کوم حکم د غسل وو.هم هغه حکم به د تیمم هم وی.

**الجواب عنه**>د دې نه جواب دا دې.چه په تیمم باندې ددې احکامو ثبوت د مونځ ادا کولودضرورت دوجې دې.په مانځه کښې د قرات کول ددې وجې ضرورت دی.چه قراءت د مانځه رکن دې.اودجمات ځکه چه دا د مانځه ځائې دې.اوسجده دتلاوت ددې وجې چه دا د قراءت د توابعوځنی ده.ځکه چه ممکن دی.چه قاری په مانځه کښې د سجدې د آیت تلاوت اوکړی.اوقران ته د ګوتو وراوړلو ضرورت ددې وجې دې.که په دومره مقدارباندې نې قراءت نه وی کړې.چه مونځ پرې جائزکیږی.اوقراءت ترې هیرشی.نودا کس به قرآن راخلی اوبیرته به کوی به نې .اودقرآن قراءت ته به محتاج وی.اوښکاره خبره ده.چه دا کارمحصف مس کولونه بغیرنه کیږی.

**الاشكال**> بعضې حضراتود شیخینو رحمهما الله په دلیل باندې اشکال کړې دې.اشکال دا دې.چه تیمم طهارت ضروریه دې.اوضرورت پیښیږی.د مانځه د وخت په داخلیدوباندې،ددې نه وړاندې نه،اودا خبره هم په اصولوکښې ثابته شوې ده.چه (الثابت بالضرورة لايتعدى موضعه) یعنی کوم څیزچه د ضرورت په وجه ثابت شی.نوهغه به دځپل ضرورت د ځائې نه تجاوز نه کوی.نوددې اصولوتقاضا څو دا ده.چه په تیمم سره د رجعت حکم منقطع نشی.اګرچه هغه ښځه د تیمم نه پس مونځ هم

[1] ) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا في فتح القدير(٤\٢٣٢) والكفاية (٤\٢٣٢) والدرالمنتقى (١\٤٣٥) ورد المحتار(٢\٥٧٩) والبحرالرائق (٤\٥٣) نقلا عن القول الراجح (١\٣٤٠)-

اوکړی.ترڅوچه ئې غسل نه وی کړې.اود مونځ وخت پرې نه وی تیرشوې.

**الجواب**> جواب بیشکه چه (الثابت بالضرورة لایتعدی عن موضعه) اصول دی.خودا هم اصول دی.چه (الضروری متی ماثبت،ثبت لجمیع لوازمه) یعنی چه کوم څیزدضرورت د وجې ثابت شی.نوهغه چه کله ثابتیږی. د خپلو ټولو لوازماتو سره به ثابتیږی.اود مونځ ادا کولوپه وخت کښې د طهارت د ثبوت د لوازماتوځنې دحیض منقطع کیدل دی.اودعدت د مودې د لوازماتوځنې د رجعت منقطع کیدل دی.اوقاعده ده.چه (لازم،لازم،لازم) یعنی دلازم لازم لازمیږی.نوځکه به د مونځ ادا کولوپه وخت کښې دطهارت د ثبوت دپاره د انقطاع رجعت حکم ثابتیږی.(عنایه ،عینی شرح هدایه)

**په غسل کښې د بدن بعضې حصې ته اوبه نه رسول**

وَإِنِ اغْتَسَلَتْ وَنَسِيَتْ شَيْئًا مِنْ بَدَنِهَا لَمْ يُصِبْهُ الْمَاءُ او که ښځې غسل اوکړو.حالانکه په خپل بدن کښې څه داسې حصه هیره کړله.چه دې ته اوبه نه دی رسیدلی فَإِنْ كَانَ عُضْوًا فَمَا فَوْقَهُ نوکه دا حصه یو اندام وی.یا ددې نه زیات وی لَمْ تَنْقَطِعِ الرَّجْعَةُ نو رجعت به نه مقطع کیږی وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ مِنْ عُضْوٍ اوکه د یو اندام نه کم پاتې شوې وی انْقَطَعَتِ الرجعةنو رجعت به منقطع وی

**تشریح**> صورت د مسئلې دا دې.چه د لسو ورځونه په کمه مودهٔ باندې د وینې په اودریدو ښځې غسل اوکړلو.خوپه بدن کښې ترې داسې یوه حصه باقی پاتې شوې وی.چه هغې ته اوبه رسول ضروری وی.نوکه هغه جزء یواندام یا ددې نه زیات وی.نورجعت نه منقطع کیږی.یعنی دغسل نه کیدو په وجه به عدت باقی وی.نوکه په داسې حالت کښې مراجعت اوکړی.هغه به صحیح وی.اوکه هغه جزء د یواندام نه کم وی.نورجعت به منقطع شی.یعنی په داسې حالت کښې رجعت نه ثابتیږی. صاحب دهدایه‌ رحمه الله فرمائی.چه دا حکم استحساناً دې.

**وجه الاستحسان**> وجه د استحسان دا ده.اوهم دا د پوره اندام اود اندام د کمې حصې په مینځ کښې وجه دفرق دهٔ.چه د یواندام نه کم د خپل کموالی د وجې ډیرزروچیږی.نودغه حصې ته د اوبونه رسید و یقین نشی کولی.ځکه چه کیدې شی.دغه حصه ئې وینځلې وی.خوزروچه شوې وی.نوځکه مونږ په احتیاط باندې عمل کوو.اووایو.چه د رجعت حکم منقطع شو.اود احتیاط په وجه دا حکم دې.چه دا ښځه دې په داسې حالت کښې بل خاوند سره نکاح نه کوی.اوکه وې کړله.نوحلاله به نه وی.ځکه چه کیدې شی.دغه حصې ته په حقیقت کښې اوبه نه وی رسیدلې.اودحدث باقی پاتې کیدو په وجه عدت باقی وی.نوپه داسې حالت کښې به دا نکاح د غیرد معتده سره وی.اودا جائزنه ده.(چه یوه ښځه دچا په عدت کښې ناسته وی.اوهغې سره بل څوك نکاح اوکړی)

**په طلاق رجعی سره طلاقې شوې دپاره زیب اوزینت**

وَالْمُطَلَّقَةُ الرَّجْعِيَّةُ تَتَشَوَّفُ وَتَتَزَيَّنُ او مطلقه رجعیه به ( د خپل خان میك اپ) ډول کوی او( خان به) ښائسته کوی

**حل اللغة**> ① **تتشوف:** خان ښائسته کوی ② **تتزین:** زیب وزینت کوی ]

**تشریح**> صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.چه کومې ښځې ته طلاق رجعی ورکړې شوې وی.نو هغې دپاره مستحب دی.چه خپل خان ښائسته کوی.یعنی خپل مخ اوانګی ښائسته ساتی.

**دلیله**> دلیل دا دې.چه مطلقه رجعیه دخپل خاوند دپاره حلاله ده.ځکه چه په دوارو کښې نکاح قائمه ده.هم دا وجه ده.چه دطلاق رجعی په دوران کښې د نکاح ټول احکام میراث وغیره ټول باقی وی.هم

ددې وجې که یوکس اوونیل. (کل امرأة لي طالق) نوپه دې حکم کښې دا مطلقه هم داخله ده.اوپه دې به طلاق واقع کیږي.

**الاشکال**> په دې باندې اشکال کیږي.چه هرکله نکاح موجود ده.نوپکارده چه دې سره سفرجائزوې.لکه څنګه د منکوحه غیرمطلقه سره سفر کول جائزدي.حالانکه تاسود سفرد جواز قائل نه ئې.

**الجواب**> جواب دا دې.چه د مطلقه رجعیه سره د سفرممانعت په نص سره ثابت دې.ارشاد دې.

(لاتخرجوهن من بیوتهن) یعنی مطلقات رجعیه د دوی دکورونو نه مه اوباسې:ودا آیت د مطلقه رجعیه په باره کښې نازل شوې دې.نوددې آیت په وجه د مطلقه رجعیه سره سفرکولوممانعت شوې دې.

خوکه یوکس اعتراض اوکړي.چه نفس سفرئې د رجعت دلیل ولې نه دې ګرځولې.نوددې جواب دا دې.چه اخراج من البیت یعنی دمطلقه رجعیه دکور نه ویستل منهی عنه دی.او رجعت مندوب الیها دی.اوپه دې دواړو کښې منافات دې.اودکومودووځیزونوپه مینځ کښې چه منافات وی.په هغې کښې یو د بل دپاره دلیل نشي جوړیدې.نوځکه نفس مسافرت د رجعت دلیل نشي جوړیدې.

| وَيُسْتَحَبُّ لِزَوْجِهَا أَنْ لَا يَدْخُلَ عَلَيْهَا او ددې د خاوند دپاره مستحب دی.چه دې له ( نیزدې) نه راخی حَتَّى يُؤْذِنَهَا أَوْ يُسْمِعَهَا خَفْقَ نَعْلَيْهِ تردې چه دا خبرکړي.یا دې ته د خپل پیزار کشار واوروی |
|---|

**حل اللغة** > ① **خفق**: کشار

**تشریح**> فرمائی.چه رجعت مستحب دې.اوښائست خاوندلره په رجعت کولوباندې اماده کونکې دې.اوخان ښائسته کول مشروع دی.اودمطلقه رجعیه دخاوند دپاره دا مستحب دی.چه هغه بغیرد خبرورکولونه هغې ته نه ورځی.خودا حکم په هغه وخت کښې دې.چه دده اراده د رجعت کولونه وی.

**دلیله**> دلیل دا دې.چه بعضې وخت ښځه په کور کښې برینده وی.نوچه بغیرد خبرورکولونه کورته داخل شی.نو بعضې وخت دخاوند نظرپه داسې اندام باندې پریوتې شی.چه په هغې باندې رجعت ثابتیږي.اوچونکه د دې کس اراده د رجعت کولونه ده.نودې به ورته طلاق ورکوی.اود طلاق ورکولوپه صورت کښې خامخا په ښځه باندې عدت اوږدیږي.ددې وجې حکم ورکړې شوې دې.چه خاونددې د خبرورکولونه بغیرنه ورځی. یا دې د پیزار په کشاری خبر ورکوی.

### په طلاق رجعی د وطی عدم حرمت

| وَالطَّلَاقُ الرَّجْعِيُّ لَا يُحَرِّمُ الْوَطْءَ او طلاق رجعی وطی نه حراموی |
|---|

**تشریح**> په دې حکم کښې اختلاف دې.چه طلاق رجعی د ښځې سره وطی حراموی که نه؟نود احنافو رحمهم الله په نیزطلاق رجعی دښځې سره وطی کول نه حراموی [1]

**دلیله**> دلیل دا دې.چه دطلاق رجعی نه پس هم زوجیت قائم دې.اوهم دا وجه ده.چه د ښځې د رضا نه بغیر خاوندته د رجعت کولواختیارشته.اوکه زوجیت ختم شوې وو.نودا ښځه به پردئ وه.او پردئ ښځې ته دهغې درضا نه بغیررجعت کول صحیح نه دي.

### په دری طلاقه بائنې سره دعدت نه پس تجدیدنکاح

| وَإِذَا كَانَ الطَّلَاقُ بَائِنًا دُونَ الثَّلَاثِ او چه کله ددرې نه کم طلاق بائن وی فَلَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا فِي عِدَّتِهَا وَبَعْدَ انْقِضَاءِ عِدَّتِهَا نو خاوند ته اختیار دې.چه دې ښځې سره په عدت کښې اود عدت تیریدلو |
|---|

[1] مسلک الشافعي:- دامام شافعی رحمه الله په نیزباندې حراموی.اوهم دا دامام احمد رحمه الله نه یوروایت دې.

نه پس نکاح اوکړي

**تشریح**> مصنف رحمه الله په وړاندیني دهغه صورتونوبیان اوکړل.چه په هغې کښې د طلاق رجعي تدارك کیدې شو.اواوس په دې ځائې کښې دهغه صورتونوبیان کوي.چه دهغې په ذریعه دطلاق رجعي نه سوا د نورو طلاقونوتدارك کیدې شي.

①اولنې صورت دا دې.چه مطلقه په یوطلاق سره بائنه وي یا په دوو طلاقوسره،نوخاوندته اختیاردې.چه هغه خپلې معتدې سره په عدت کښې نکاح اوکړي یا دعدت نه پس ورسره نکاح اوکړي.دواړه صورتونه صحیح دي.

**دلیله**> دلیل دا دې.چه محل (چه ښځه د آدم علیه السلام په اولاد کښې ده.اوپه محرماتوکښې نه ده)حلالوالي باقي دې.ځکه چه د حلت زوال په دریم طلاق پورې معلق کړې دې.دالله تعالی د ارشاد ﴿فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ﴾د وجې.اومعلق په شرط پورې د شرط د وجود نه وړاندې معدوم وي.نود دریم طلاق د وجود نه وړاندې به د حلت زوال معدوم وي.نوچه دمحل حلالوالي ثابت شو.نود خاوند دپاره په عدت کښې نکاح کول هم حلال دي.

**دطلاق مغلظ نه پس د زوج اول دپاره بغیردحلالې نه د نکاح حرمت**

| وَإِنْ كَانَ الطَّلَاقُ ثَلَاثًا فِي الْحُرَّةِ اوکه په آزاده ښځه کښې درې طلاقه دي أَوْ ثِنْتَيْنِ فِي الْأَمَةِ یا په وینځه کښې دوه دي لَمْ تَحِلَّ لَهُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ نِكَاحًا صَحِيحًا نود خاوند دپاره حلال نه دي.تردې چه دویم خاوند سره نکاح صحیحه اوکړي وَيَدْخُلَ بِهَا او ددې سره دا دخول هم اوکړي ثُمَّ يُطَلِّقَهَا یا دې ته طلاق ورکړي أَوْ يَمُوتَ عَنْهَا یا( دا پرېږدي او) مړ شي |
|---|

**تشریح**> مسئله دا ده.که یوکس خپلې اصیلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل.یا نې وینځې ته دوه طلاقه ورکړل.نودا دده دپاره حلاله پاتې نشوه.تردې چه هغه د بل خاوند سره صحیح نکاح اوکړي.اوهغه پرې دخول هم اوکړي.اوبیا ورته یا طلاق ورکړي.یا هغه مړ شي.

**دلیله**> دلیل دقرآن پاك آیت ﴿فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ دې. او په دې آیت کښې د زیاتومفسرینو رحمهم الله په نیزدریم طلاق مراد دې.اودوینځې په حق کښې دوه طلاقه داسې دي.لکه ځنګه چه د آزادې دپاره درې طلاقه دي.یعني لکه ځنګه چه د آزدې په حق کښې د درې طلاقوسره حرمت غلیظه ثابتیږي.دغه شان د وینځې په حق کښې په دوو طلاقو سره حرمت غلیظه ثابتیږي.

دلیل دا دې.چه د رقیت په وجه عذاب نیم پاتې کیږي.دالله تعالی ارشاد دې. ﴿فَإِنْ أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ﴾ یعني که وینځې زنا اوکړي.نوپه دوي باندې به دهغه عذاب یعني سزا په نیمه باندې وي.کومه چه په آزدو ښځو وي.نولکه ځنګه چه رقیت د عذاب اوسزا نیمولو سبب دې.دغه شان د نعمت نیمولو سبب هم دې.اودمحل حلالوالي نعمت دې.نود وینځې دپاره پکار دا وه.چه په یونیم طلاق باندې حرمت غلیظه ثابتیدل.خوچونکه طلاق تقسیم نه قبلوي.نوځکه هغه نیم به هم پوره حسابیږي.اود وینځې مالك به د دوو طلاقو مالك وي.

**په تحلیل کښې د مراهق هلك حکم**

| وَالصَّبِيُّ الْمُرَاهِقُ فِي التَّحْلِيلِ كَالْبَالِغِ اوکوم ماشوم چه قریب البلوغ وي.دا په حلاله کولوکښې د بالغ پشان دې. |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **الصبي**: ماشوم ② **المراهق**: قريب البلوغ ، يعنى بلوغ ته نزدې شوې وى ]

**تشريح** ﴿ فرمائي.چه مراهق هلك چه مطلقه ثلاثه د اول خاوند دپاره حلالوى.نودا د بالغ پشان دې. (١)

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه په صحيح نكاح كښې دخول موجود شو.اود تحليل دپاره په نص يعنى ﴿حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ كښې هم دا شرط دې.

**تفسير المراهق** ﴿ په جامع صغير كښې امام محمد رحمه الله دمراهق تفسير دا كړې دې.هغه هلك چه لا تراوسه پورې بلوغ ته نه وى رسيدلې.حالانكه دده پشان هلك جماع كولې شى.

صاحب دهدايه رحمه الله فرمائيلى دى.كه مراهق د يوې ښځې سره جماع اوكړله.نوپه هغې باندې غسل واجبږى.اوكه هغه د يوكس مطلقه ثلاثه وه.نودمراهق دجماع نه پس اولنى خاوند دپاره حلاليږى.خوپه دې شرط چه دمراهق دطرفه ورته طلاق وركړې شى.اودا ښځه عدت پوره كړى.

## دتحليل دپاره د مولى خپله وينځه وطى كول

| |
|---|
| **وَوَطْءُ الْمَوْلَىٰ أَمَتَهُ لَا يُحِلُّهَا** چه د مولا خپلې وينځې سره وطى كول دانښى حلالولې |

**تشريح** ﴿ صورت د مسئلې دا دې.چه يوخاوند خپلې ښځې ته (كومه چه د بل وينځه وى) طلاق وركړلو .اوعدت تيريدونه پس خپل مولى هغې سره وطى اوكړله.نودا ښځه داولنى خاونددپاره حلاله نه ده.

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه په آيت ﴿حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ كښې دحرمت غايت انتهاء د زوج ده. اومولى ته زوج نشى وئيلې.ددې وجې د مولى وطى د زوج اول دپاره حلت نشى پيدا كولې.په يوروايت كښې بيان شوى دى.يوځل دحضرت عثمان رضي الله عنه نه ددې په باره كښې تپوس اوشو.چه د يومولى خپلې وينځې سره وطى كول د اولنى خاوند دپاره حلت ثابتولې شى كه نه؟اود حضرت عثمان رضي الله عنه سره حضرت زيد بن ثابت اوحضرت على رضي الله عنه هم وو.نوحضرت عثمان اوزيدبن ثابت رضي الله عنهما ددې اجازت وركړلو.اودا ئې اووئيل.چه مولى هم د زوج پشان دې.نوحضرت على رضي الله عنه ددې دواړو حضراتوپه خبره باندې خفه شو.او پاسيدلو. او خفگان اظهارئې داسې اوكړلو. (ليس بزوج) يعنى مولى زوج نه دې.

| |
|---|
| **وَإِذَا تَزَوَّجَهَا بِشَرْطِ التَّحْلِيلِ** اوكه يوه ښځه د تحليل په نيت سره په نكاح واخستله **فَالنِّكَاحُ مَكْرُوهٌ** نو(دا) نكاح مكروه ده. **فَإِنْ طَلَّقَهَا بَعْدَ وَطْئِهَا حَلَّتْ لِلْأَوَّلِ** كه طلاق ئې وركړو پس د وطى نه نو داول خاوند دپاره حلاله ده. |

**حل اللغة** ﴿ ① **التحليل**: حلالول]

**تشريح** ﴿ اوكه يوكس د هغه ښځې سره دتحليل په شرط باندې نكاح اوكړله.چه دهغې په حق كښې حرمت غليظه ثابت شوې وى.مثلاً وئې وئيل. (تزوجتك على أن أحللك) يعنى چه ماتاسره نكاح اوكړله.په دې شرط چه تا د اول خاوند دپاره حلاله كړم.نودا نكاح مكروه ده.

**دليله** ﴿ دليل د نبى صلى الله عليه وسلم قول دې. لَعَنَ اللّٰهُ الْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ (١) چه الله تعالى دې لعنت اوكړى.په

---

(١) **مسلک مالك**:- دمراهق په مسئله كښې امام مالك رحمه الله زمونږ مخالفت كوى.يعنى امام مالك رحمه الله فرمائي.چه د مراهق حلاله معتبر نه ده.ځكه چه دهغوى په نيز په حلاله كښې صرف ادخال كافى نه دې.بلكه انزال شرط دې. او انزال د مراهق نه متصور نه دې.نوددې وجې په حلاله كښې مراهق هلك د بالغ په حكم كښې نه دې.

حلاله کونکی اود چا دپاره چه حلاله کولې شي.اودحديث محمل هم دا دې.ددې وجې كه دتحليل شرط نې په زړه كښې پټ كړې وي.اوپه ژبه باندې څه اونه وائي.نومستحق د لعنت به نه وي.

**په بوبا دوو طلاقوسره مطلقه د زوج ثاني نه اول ته واپس کيدل**

وَإِذَا طَلَّقَ الرجلُ الْحُرَّةَ تَطْلِيقَةً أَوْتَطْلِيقَتَيْنِ اوكله چه يوسړى آزادې ښځې ته يوځل دوه طلاقه وركړل وَانْقَضَتْ عِدَّتُهَا او ددې عدت تيرشو وَتَزَوَّجَتْ بِزَوْجٍ آخَرَ او دې ښځې يو بل خاوند سره نكاح اوكړله. فدخل بِهَا هغه دخول اوكړو په هغې باندې ثُمَّ عَادَتْ إِلَى الْأَوَّلِ بيا دا ښځه رومبي خاوند ته واپس راغله عَادَتْ بِثَلَاثِ تَطْلِيقَاتٍ (نو دا ښځه به) درې طلاقو سره واپس كيږي. وَيَهْدِمُ الزَّوْجُ الثَّانِي مَا دُونَ الثَّلَاثِ كَمَا يَهْدِمُ الثَّلَاثَ او دويم خاوند به د درې ( طلاقو) نه كم داسې ختم كړي.لكه څنګه چه درې ختم (كړې شوي) عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رَحِمَهُمَا اللَّهُ په نيز د شيخينو ﷺ

**حل اللغة** ① **يهدم**: نوړوى ]

**تشريح** مسئله دا ده.چه يوكس خپلې آزادې ښځې ته يو يا دوه طلاقه وركړل.اوعدت تيريدونه پس هغې د بل خاوند سره نكاح اوكړله.اودهغه د طلاق اوعدت تيريدونه پس دې د اولني خاوند سره نكاح اوكړله.نودا ښځې به خپل اولني خاوند ته په درې طلاقوسره واپس كيږي.يعني اولني خاوند به د ابتداء نه د درې طلاقو مالك وي.څكه چه د دويم خاوند درې طلاقه د اولني خاوند يو اودوه طلاقه داسې ختموي.لكه څنګه چه درې طلاقه ختموي.دا د شيخينو ﷺ مذهب دې.

**دليلهما** دشيخينو ﷺ دليل د نبي ﷺ ارشاد دې. (لعن الله المحلل والمحلل له) په دې حديث باندې طريقه داستدلال دا ده.چه محدثينو ﷺ دا حديث په (باب ما جاء في الزوج الثاني) كښې راوړى دې.نود محلل نه به مراد دويم خاوند وي.لكه چه نبي ﷺ د دويم خاوند نوم محلل كيخودلو.اود محلل معنى ده حلت ثابتونكې.اوس پاتې شوه دا خبره چه د دويم خاوند په وجه چه كوم حلت ثابتيږي.نوهغه سابقه حلت دې اوكه نوې حلت،سابقه حلت خوكيدې نشي.څكه چه بيا خو تحصيل د حاصل راځي.نونوې حلت متعين شو.اودا هم ضروري ده.چه حل جديد داول نه سوا وي.اوحل اول ناقص شوې وو.نودويم حلت به كامل وي.اوكامل حلت وى چه د درې طلاقو مالك وي.نوثابته شوه.چه اولني خاوند د ابتداء نه د درې طلاقو مالك دې.برابره ده كه اولني خاوند ورته درې طلاقه وركړې وى اوكه ددې نه كم.دواړه برابر دي.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ: لَا يَهْدِمُ الزوج الثاني مَا دُونَ الثَّلَاثِ ([2]) او امام محمد ﷺ فرمائي.چه ( دويم خاوند) د دريو نه كم نشي منهدم كولې

**تشريح** **مسلك محمد** امام محمد ﷺ فرمائي.چه زوج ثاني د درې طلاقونه كم نه ختموي.بلكه اولني خاوندبه په دريوكښې چه څو پاتې وي.دهغې مالك وي.يعني كه اول نې يوطلاق وركړې وي.نواوس به د باقي دوو مالك وي. اوكه اول نې دوه طلاقه وركړې وي.نواوس به دباقي يومالك وي.هم دا قول

---

۵۰) من حديث ابن معسود ﷺ اخرجه الترمذي في النكاح باب ۲۷ رقم ۱۱۲۰ والنسائي في الطلاق باب ۱۳ رقم ۳۱۹۸ )

[2] ) القول الراجح هو قول محمد ﷺ كذا في فتح القدير(۳۷\٤) وردالمحتار(۵۸۹\۲) والعناية على هامش الفتح (۳۶\٤) نقلاً عن القول الراجح (۳۳۳\۱)۔

دامام زفراوامام شافعي رحمهما الله هم دي.

**دليله>** دليل دا دي.چه دالله تعالى په قول ﴿فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتَّىٰ تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهُ﴾ كښې د ﴿فَلَا تَحِلُّ﴾نه حرمت غليظه مراد دي.اوددي حرمت غليظه غايت اونهايت د دويم خاوند سره نكاح كول دي.خكه چه كلمه د (حَتَّىٰ) د غايت دپاره وضع شوې ده.اومغيادغايت سره ختميږي. نو ثابته شوه.چه د دويم خاوند سره نكاح كول حرمت غليظه ختموي.اود حرمت غليظه د ثبوت نه وړاندې دحرمت د ختمولو څه معنى نشته.نود درې طلاقو نه د كمو په صورت كښې د زوج ثاني وطى كول غير معتبر دي.خكه چه په دې صورت كښې حرمت غليظه نه دى ثابت،اوكله چه په دې صورت كښې حرمت غليظه ثابت نشو.نوددويم خاوند وطى كول ددې دپاره غايت نشي جوړيدې.نوثابته شوه.چه د دويم خاوند د درې طلاقو نه كم نشي ختمولې.اوچه د دريو نه كم نه ختميږي.نواولني خاوند به د دويم خاوند سره د نكاح اوطلاق نه پس د درې طلاقو مالك نه وي.بلكه په اولنۍ نكاح كښې چه څوطلاقه باقي پاتې شوي وو.دهغې مالك به وي.كه يو وي اوكه دوه.

**د مطلقه ثلاثه د دويم خاوند نه د طلاق اوعدت نه پس داولني دپاره حلاليدل**

> وَإِذَا طَلَّقَهَا ثَلَاثًا او كه سړى ( خپلې آزادې ښځې ته ) درې طلاقه وركړل فَقَالَتْ قَدْ انْقَضَتْ عِدَّتِي بيا څه موده پس ) ده اوونيل چه زما عدت تيرشوې دې وَتَزَوَّجْتُ بِزَوْجٍ آخَر او ما( دويم خاوند سره ) نكاح اوكړه وَدَخَلَ بِي الزَّوْجُ الثَّانِي او دويم خاوند ما سره دخول هم كړې دې وَطَلَّقَنِي او ده ماته طلاق راكړې دې وَانْقَضَتْ عِدَّتِي او زماعدت تيرشوې دې وَالْمُدَّةُ تَحْتَمِلُ ذٰلِكَ او حال داچه مدت ددې تولو خبرو احتمال هم لري جَازَ لِلزَّوْجِ الاول أَنْ يُصَدِّقَهَا نود رومبي خاوند دپاره جائزدى.چه ددې تصديق اوكړي إِذَا كَانَ فِي غَالِبِ ظَنِّهِ أَنَّهَا صَادِقَةٌ چه دده غالب ګمان دا وي.چه دا ښځه رشتوني ده

**تشريح>** صورت د مسئلې دا دي.چه يوكس خپلې آزادې ښځې ته درې طلاقه وركړل.څه مودۀ پس ښځې اوونيل.چه زما عدت تيرشوې دې.اوما د دويم خاوند سره نكاح هم كړې ده.اوهغه راته طلاق راكړې دې. اودهغه نه مې عدت هم تيرشوې دې.اودا ښځه چه كوم خيزونه يادوي.په دغه موده كښې د دې د واقع كيدوامكان هم وي.نوداولني خاوند دپاره دا جائزدى.چه ددې ښځې تصديق اوكړي.خوچه غالب ګمان دا وي.چه دا ښځه رښتيني ده.

**دليله>** دليل دا دي.چه نكاح معامله ده.يا امرديني دي.معامله خو خكه ده.چه بضع په وخت د دخول كښې متقومه وي.اوامرديني خكه دي.چه د نكاح سره حلت متعلق وي.اوپه دې دواړوكښې د مسلمان قول قبلولې شي.

په ديانت كښې د يومسلمان قول ددې وجې قبلولې شي.چه صحابه كرام رضي الله عنهم به د يوعادل خبر قبلولو. غير د اشتراط عدد نه(يعني د يونه د زياتوكسانوشرط به كښې نه وو)

اومعاملات په دوه قسمه دي.يوهغه چه په هغې كښې د الزام معنى نه وي.لكه وكالت په دې كښې د يوكس خبر معتبر وي.كه عادل وي كه فاسق كه ماشوم وي كه بالغ،كه مسلمان وي اوكه كافر،كه آزاد وي كه غلام،كه مذكروي اوكه مؤنث،نه عدد شرط دي اونه عدالت،دويم هغه دي.چه په هغې كښې د الزام معنى موجوده وي.لكه حقوق العباد،په دې كښې عدد ،عدالت اولفظ د شهادت ضروري دي.

بهرحال په دې مسئله كښې د يوې ښځې خبرقابل انكار نه دې.بيا چه مودۀ هم ددې احتمال لري.

| مجموعه | حيض | طهر | حيض | طهر | حيض | | داولني خاوند نه طلاق اوعدت |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۳۹ | ۳ | ۱۵ | ۳ | ۱۵ | ۳ | | |

| مجموعه | حیض | طهر | حیض | طهر | حیض | طهر | د دویم خاوند نه طلاق اوعدت |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۵۴ | ۳ | ۱۵ | ۳ | ۱۵ | ۳ | ۱۵ | |

# كِتَابُ الْإِيْلَاءِ

**تشريح> الايلاء لغة>** آلی یولی ایلاءً قسم خوړل

**الايلاء شرعا>** اوپه شریعت کښې ایلاء وائی.دڅلوروبا ددې نه د زیاتې مودې پورې خپلې منکوحې سره د جماع نه کولوقسم خوړل.

**شرطها>** اودد‌ې شرط دامام ابوحنیفه‌ رحمه‌الله په نیزد طلاق اهلیت دې.اودصاحبینو رحمهما‌الله په نیزد کفاره اهلیت دې.

**ركنها>** اوددې رکن (والله لا أقربك أربعة أشهر) ونیل دی.

**حكمها>** اوددې حکم په موده دایلاء کښې ښځې ته په نزدیکت باندې د کفارې لزوم اود ایلاء د مودې تیریدو په صورت کښې طلاق بائن واقع کیدل دی.

**دایلاء دوه صورتونه**

| |
|---|
| وَإِذَاقَالَ الرَّجُلُ لِإِمْرَأَتِهِ اوکه خاوند خپلې ښځې ته اوونیل وَاللّٰهِ لَاأَقْرَبُكِ چه والله زه به تاسره نیزدیکت اونکړم أَوْلَاأَقْرَبُكِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ یا وې ونیل.چه والله زه به تاسره څلورمیاشتې نیزدیکت اونکړم فَهُوَمُولٍ نودا سړې به ایلاء کونکې وی |

**تشريح>** صورت د مسئلې اوددې دلیل واضح دې.خودا خبره دې ښکاره وی.چه دایلاء دوه صورتونه دی.① یودخاوند قول چه (والله لا أقربك أبدا) په دې صورت کښې دا سړې په اتفاق سره ایلاء کونکې دې. ②دویم صورت دا چه اووائي. (والله لا أقربك أربعة أشهر) په دې صورت کښې دې زمونږ په نیز ایلاء کونکې دې. ([1])

**دليله>** ځکه د الله تعالی ارشاد دې{لِلَّذِينَ يُؤْلُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ تَرَبُّصُ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ} الآيةكوم خلق چه خپلوښځو سره ایلاء کوی.د هغوی دپاره څلور میاشتې انتظار دې.

**په څلورومیاشتوکښې په وطی کولوحنث اودکفارې وجوب**

| |
|---|
| فَإِنْ وَطِئَهَا فِي الْأَرْبَعَةِ الْأَشْهُرِ نوکه په څلور میاشتوکښې ئې ښځې سره وطی اوکړله حَنِثَ فِي يَمِينِهِ نو پخپل قسم به حانث وی وَلَزِمَتْهُ الْكَفَّارَةُ او په ده به‌کفاره لازم وی وَسَقَطَ الْإِيلَاءُ او ایلاء به ساقط شی. |

**تشريح>** صورت د مسئلې دا دې.که خاوند په دې څلورومیاشتوکښې دننه دننه ښځې سره وطی اوکړله. نوسړې به خپل قسم کښې حانث شو.اوپه ده باندې کفاره لازمه ده.

**دليله>** دلیل دا دې.چه کفاره په قسم کښې دحانث کیدوموجب دې.اوایلاء قسم دې.په دې کښې حانث شوې دې.نوکفاره به پرې هم لازمه وی.

| |
|---|
| وَإِنْ لَمْ يَقْرَبْهَا حَتّٰى مَضَتْ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ او که دې ښځې سره ئې قربت اونکړو.تردې چه څلورمیاشتې |

---

[1] ، **مسلك الائمة:** – اودامام شافعی امام مالك اوامام احمد رحمهم‌الله په نیزایلاء کونکې نه دې.ترڅوچه ئې د څلور میاشتونه د زیاتې مودې قسم نه وی خوړلې.

تیرې شوې بَانَتْ بِتَطْلِيقَةٍ وَاحِدَةٍ نو په ده به یوطلاق سره بائنه شي

**تشريح**› كه خاوندپه موده دايلاء كښې ښځې سره وطي اونكړې شوه.تردي چه موده د ايلاء يعنى څلورمياشتې تيرې شوې.نودا ښځه په يوطلاق سره بائنه شوه. (١)

**دلائله**› ①دليل دا دې.چه خاوند ښځې دجماع حق بند كړلو.اوپه دې ئې ظلم اوكړلو.نو شريعت ده ته دده د ظلم بدله په دې طريقه وركوى.چه د ايلاء د مودې تيريدونه پس ده نه د نكاح نعمت زائله كوى.د دې دپاره چه ښځه د متعلقه ضرر نه خلاصې بيا مومي.اوښكاره ده.چه د طلاق رجعي په ذريعه ښځه نشي خلاصيدې.نودا به طلاق بائن وى.

صاحب دهدايهؒ په هدايه كښې فرمائيلي دى.چه زمونږ مذهب يعنى دايلاء د مودې تيريدو نه پس د طلاق بائن واقع كيدل دحضرت عثمان،علي،عبدالله بن مسعود ،عبدالله بن عباس،عبدالله بن عمر ،زيد بن ثابت ﷺ نه منقول دې. (٢)

② عقلي دليـل دا دې.چه دجاهليت په زمانه كښې ايلاء طلاق بائن علي الفورووو.يعنى د ايلاء نه سمدستى روستو به دا خاوند هميشه دپاره دخپلې ښځې سره وطى نشوه كولې.نوشريعت دا حكم د ايلاء د مودې تيريدو پورې روستو كړلو.نوپه دې حكم كښې د تاجيل نه سوا بل څه تصرف نشته.نولكه څنګه به دايلاء په وجه په زمانه جاهليت كښې طلاق بائن واقع كيدل.نودغه شان به اوس هم صرف طلاق بائن واقع كيږي.البته دومره فرض ضرور شته.چه وړنداني به سمدستى بينونت وو.اواوس علي التراخي دې.اولكه څنګه چه دجاهليت په زمانه كښې تفريق د قاضي په تفريق باندې موقوف نه وو.دغه شان به داسلام نه پس هم د قاضي په تفريق باندې موقوف نه وى.

**دڅلورومياشتوقسم خوړل اودې مودې په تيريدود قسم ختميدل**

فَإِنْ كَانَ حَلَفَ عَلٰى أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ نوكه په څلور مياشتو ئې قسم خوړلې وو فَقَدْ سَقَطَتِ الْيَمِيْنُ نو قسم ساقط شو

**تشريح**›صورت د مسئلې دا دې.چه څلورمياشتې تيرې شى.اودې خپلې ښځې ته نزدې نشي.نوكه دڅلورومياشتونه نزدې كيدوقسم ئې خوړلې وى. نوپه دې صورت كښې د څلورومياشتوپه تيريدو باندې قسم ساقط شو.

**دليله**› څكه چه په دې صورت كښې قسم د څلورومياشتوپه مودې پورې موقت شوې دې.نوچه دا موده تيره شى.قسم ساقط شو.

وَإِنْ كَانَ حَلَفَ عَلَى الْأَبَدِ اوكه ده ابدى ( هميشه دپاره) قسم خوړلې وى فَالْيَمِيْنُ بَاقِيَةٌ نو قسم باقي دې

**تشريح**› كه د ټول عمر نه نزدې كيدو قسم ئې خوړلې وى.مثلاً وئيلي ئې وى. (والله لاأقربك أبداأبداوالله

---

(١) **مسلک الشافعي**:- امام شافعيؒ فرمائي.چه دايلاء موده تيره شى.نوددې نه پس دقاضي په تفريق سره به دا بائنه ګرځي.يعنى د قاضي په فيصله باندې به دايلاء د مودې نه پس دايلاء حكم موقوف وى.نوكه خاوند د ايلاء كولواودبيلتون نه انكار اوكړلو .او ښځې دقاضي نه د.بيلتون مطالبه اوكړله.نودقاضي تفريق به طلاق رجعي وى.اوپه مبسوط كښې دى.چه طلاق بائن به وى.

٥١) أما رواية عثمان وزيد بن ثابت ﷺ ففي مصنف عبدالرزاق وأما رواية ابن عباس وابن عمرﷺ ففي مصنف ابن أبي شيبة وأما رواية ابن مسعودﷺ ففي مصنف عبدالرزاق (نقلتها من نصب الراية بالإختصار(٣\٢٤٤)_

لاكن يك د (ابدا) لفظ ئې په كښې نه وي ذكركړي.نو په دې صورت كښې كه څلورمياشتې تيرې شوې.اوخاوند ورته نزدې نشو.نودا ښځه به په يوطلاق بائن سره بائنه شي.اوقسم به باقي وي.

**دليله** دليل دا دې.چه په دې صورت كښې قسم په څه وخت پورې مقيد نه دې.نوقسم به هميشه دپاره وي.اوموجب دحنث چه نزديكت دې.هغه نه دې موجود شوې.نوددې وجې خاوند حانث هم نه دې.څكه چه قسم نه ختميږي.نوقسم به په خپل ځائې باندې باقي وي.

| فَإِنْ عَادَ فَتَزَوَّجَهَا نوكه ده د بائنه كيدلونه پس بيا دې ښځې سره نكاح اوكړله عَادَ الْإِيلَاءُ، فَإِنْ وَطِئَهَا نو ايلاء هم واپس شوه.كه وطي ئې اوكړله وَإِلَّا وَقَعَتْ بِمُضِيِّ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ تَطْلِيقَةٌ أُخْرَى ( نو قسم مات شو) كنې په څلورو مياشتو تيريدلو به دويم طلاق وي |
|---|

**تشريح** كه د بينونت اوعدت تيريدونه پس دې مولي (خاوند) بيا دې ښځې سره نكاح اوكړله.نوايلاء به هم واپس كيږي.نوكه ده د ايلاء په دې موده كښې وطي اوكړله.نوقسم مات شو.اوكفاره پرې لازمه شوه.اوكه وطي ئې اونكړله.نود څلورومياشتوتيريدو نه پس به دويم طلاق واقع شي.

**دليله** څكه چه يمين په وخت پورې مقيد نه دې.نوځكه اوس هم باقي دې.اودنكاح كولوپه وجه د ښځې حق ثابت شو.نوظلم متحقق شو.نود طلاق بائن په ذريعه دا ظلم لرې كيدې شي.اود دويمې ايلاء د مودې شروع به په نكاح كښې د راتلود وخت نه شروع كيږي.څوكه د دويمې نكاح ابتداء د ايلاء د مودې تيريدونه پس وي.نود دويمې ايلاء شروع به د طلاق د وخت نه كيږي.د نكاح د وخت نه به نه كيږي.(عنايه)

| فَإِنْ تَزَوَّجَهَا ثَالِثًا بيا كه په دريم ځل ئې ددې سره نكاح اوكړله عَادَ الْإِيلَاءُ نو ايلاء به واپس كيږي وَوَقَعَتْ عليها بِمُضِيِّ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ تَطْلِيقَةٌ أُخْرَى او په څلور مياشتو تيريدلو باندې به په دې دريم طلاق واقع كيږي. |
|---|

**تشريح** بيا كه په دريم ځل ئې دې سره نكاح اوكړله.نوايلاء به واپس كيږي.اود څلورو مياشتو په تيريدو به دريم طلاق واقع كيږي.خوپه دې شرط چه په دې موده كښې ئې دښځې سره وطي نه وي كړې.

**دليله** دليل وړاندې تيرشوې دې.چه قسم چونكه د وخت نه مطلق (آزاد) دې.نوباقي دې.اوپه نكاح كولوسره د ښځې حق ثابت شو.نوظلم متحقق شو.(عنايه)

| فَإِنْ تَزَوَّجَهَا بَعْدَ زَوْجٍ آخَرَ بيا كه د دويم خاوند نه پس ئې دې خاوند سره نكاح اوكړله لَمْ يَقَعْ بِذَلِكَ الْإِيلَاءِ طَلَاقٌ |
|---|

**تشريح** مصنف رحمه الله فرمائي.كله چه په درې طلاقوسره د دې ښځې دپاره حرمت غليظه ثابت شي.اودې ښځې دبل خاوند سره نكاح اوكړله.اووطي هم اوشوه.بيا دويم خاوند دې ښځې ته طلاق وركړلو.اوعدت هم تير شو. نوكه اولني خاوند يعني مولي ددې ښځې سره نكاح اوكړله.نوددې ايلاء په وجه به څه طلاق نه واقع كيږي.

**دليله** څكه چه دا ايلاء صرف د اولني ملك سره متعلق وه.څكه چه ايلاء د طلاق په مرتبه كښې ده.

| وَالْيَمِينُ بَاقِيَةٌ او قسم اوسه پورې باقي دې. |
|---|

**تشريح** په مذكوره مسئله كښې يمين باقي دې

**دليله** څكه چې قسم مطلق دې مقيد نه دې په يو وخت پورې اوحنث هم نه دې راغلې

فَإِنْ وَطِئَهَا بیا که دې ښځې سره نې وطې اوکړله كَفَّرَعَنْ يَمِيْنِهٖ نود خپل قسم كفاره دې اداکړي.

**تشريح** پـه مذکوره صورت کښې که وطې نې اوکړه نو دخپل قسم کفاره به ورکړي.

**دليله** دليل دا دې چې کفاره هله واجبيږي.چه يمين باندې وفا اونشي.اودلته هم يمين مات شو.نو کفاره لازمه شوه.

## د څلورومياشتو نه د کمې مودې قسم خوړونکې مولى نه دې

فَإِنْ حَلَفَ عَلَى أَقَلَّ مِنْ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ نو که د څلور مياشتو نه په کم نې قسم اوخوړلو لَمْ يَكُنْ مُولِيًا نو ايلاء کونکې به نه وي.

**تشريح** صورت د مسئلې دا دې.که يوکس دڅلورومياشتونه د کمې مودې خپلې ښځې ته دنزديکت نه قسم اوخوړلو.نودا کس ايلاء کونکې نه دې.مثلاً اووائي. (والله لاأقربك شهراً ياوالله لاأقربك شهرين ياوالله لا أقربك ثلاثة أشهر)

**دلائله** ①دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما فتوى ده هغوى به هم په دې فتوى ورکوله.

②عقلي دليل دا دې.چه کوم کس د څلورومياشتو نه په کمه موده کښې د نزديکت نه قسم اوخوړلو.نومثلاً قسم نې اوخوړلو.چه په الله قسم زه به خپلې ښځې سره يومياشت قربت نه وطى نه کوم.نواوس ددې کس د يوې مياشتې نه د زياتې مودې يعنى دويمه او دريمه مياشت کښې وطى کول اود قربت نه منع کيدل بغيرد مانع نه شو.څکه چه په روستنودرې مياشتوکښې د قربت نه قسم نه دې خوړلې شوې.اوداسې قسم چه د څلورومياشتونه په کمه موده باندې منعقد وي.نود څلورو مياشتو په تيريدو په هغې باندې د طلاق حکم نه ثابتيږي.لکه څنګه چه يوکس د څلورومياشتويا ددې نه زياته موده خپلې ښځې ته نزدې نشي.نوپه دې صورت کښې د څلورومياشتو په تيريدو طلاق نه واقع کيږي. (عنايه)

## دحج روژې وغيره قسم کونکې مولى دې

وَإِنْ حَلَفَ بِحَجٍّ أَوْبِصَوْمٍ أَوْبِصَدَقَةٍ أَوْعِتْقٍ أَوْطَلَاقٍ که يوکس دحج يا روژې يا صدقې يا د آزادولو يا د طلاق قسم اوخوړلو فَهُوَمُوْلٍ نودې ايلاء کونکې شو

**تشريح** وړاندې په ايلاء کښې په الله د قسم خوړلوبيان ذکروو.اوس دلته د الله تعالى نه سوا په بل څيزسره ديمين شروع کوي.يعنى د شرط اوجزاء دواړو ذکرکولوسره د يمين صورتونه بيانوي.

صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.کـه دحج قسم نې اوخوړلو.يعنى داسې نې اووئيل. (ان قربتك فعلى حج البيت)يا نې دروژې قسم اوخوړلو.يعنى وې وئيل. (ان قربتك فعلى صوم سنة)يا نې دصدقې قسم اوخوړلو.او وې وئيل. (ان قربتك فعلى صدقة عشرة دراهم)يا نې د آزادولوقسم اوخوړولو.مثلاً ونې وئيل. (ان قربتك فعلى عتق رقبة) يا نې د طلاق قسم اوخوړول مثلا وې وئيل (ان قربتك فضرتك طالق) نوپه دې ټولوصورتونوکښې دا سړى ايلاء کونکې دې.

**دليله** دليل دا دې.چه د شرط اوجزاء ذکرکولوپه وجه د وطى اوقربت نه منع کيدل ثابت شو.اودا جزاګانې يعنى حج روزه وغيره د شرط د ارتکاب نه منع کونکى دى.څکه چه ددې جزاګانوپه کولوکښې مشقت دې. څکه چه کله شرط ادا کړي.نوجزاء به خامخا واقع کيږي.اودجزاء په واقع

کیدوکښې مشقت دي.نوځکه جزاء مانع د شرط ده.نوپه دې تولوصورتونوکښې د ښځې سره د وطی کولونه مانع متحقق دي.اودښځې سره د وطی کولونه د مانع نوم ایلاء ده.نوپه دې تولوصورتونوکښې به ایلاء متحقق وی.نوکه د څلورمیاشتو مودۀ بغیرد وطی نه تیره شوه.نوپه ښځه باندې یوطلاق بائن واقع کیږی.

### د مطلقه رجعیه اومطلقه بائنه د ایلاء حکم

| وَاِنْ اٰلٰی مِنَ الْمُطَلَّقَةِ الرَّجْعِيَّةِ اوکه خپلې مطلقه رجعیه سره ئې ایلاء اوکړله كَانَ مُوْلِيًا نو ایلاء کونکې به وی وَاِنْ اٰلٰی مِنَ الْبَائِنَةِ او که مطلقه بائنه سره ئې ایلاء اوکړله لَمْ يَكُنْ مُوْلِيًا نوایلاء کونکې به نه وی |
|---|

**تشریح**﴾ صورت د مسئلې دا دې.که یوکس د مطلقه رجعیه نه ایلاء اوکړله.نودا سړې د څلوروارۀ امامانواود جمهوروعالمانو ﷺ په نیزایلاء کونکې دې. اوکه دمطلقه بائنه نه ئې ایلاء اوکړله.نوپه اتفاق سره ایلاء کونکې نه دې.

**دلیله**﴾ دلیل دا دې.چه زوجیت (ښځه توب) په مطلقه رجعیه کښې موجود دې.اوپه مطلقه بائنه کښې رجعیت موجود نه دې.اودایلاء محل هغه ښځه وی.چه زمونږ ښځه وی.ځکه چه الله تعالی فرمائیلی دی. ﴿لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ﴾ اود بائنه کیدونه پس زوجه نه پاتې کیږی.نوځکه مطلقه بائنه محل دایلاء نه دې.خوکه ددې مطلقه بائنې سره ئې وطی اوکړله.نود یمین په وجه به پرې کفاره لازمیږی.اوددې په خلاف مطلقه رجعیه ده.ځکه چه هغه د ایلاء محل دې.ځکه چه د طلاق رجعی نه پس زوجیت باقی وی.هم دا وجه ده.چه زمونږ په نیزد معتده رجعیه سره وطی کول جائزدی.البته دا که د ایلاء د مودې یعنی څلورو میاشتونه وړاندې د معتده رجعیه عدت پوره شو.نوایلاء به ساقطه شی.ځکه چه دعدت تیریدو په وجه محل د ایلاء فوت شو.

### د وینځې ایلاء

| وَمُدَّةُ اِيْلَاءِ الْاَمَةِ شَهْرَانِ اود وینځې د ایلاء موده دوه میاشتې ده |
|---|

**تشریح**﴾ فرمائی. که دیوکس وینزۀ وی.نودهغې د ایلاء موده دوه میاشتې دی.برابره ده که آزاد وی اوکه غلام،هم دا قول دحضرت عمر ﷺ دې. [1]

**دلیله**﴾ دلیل دا دې.چه د ایلاء موده (څلورمیاشتې) د بائنې دپاره مقرر شوی دی.نود رقیت په وجه به نیمه مودۀ پاتې شی.لکه څنګه چه د وینزې طلاق اودهغې عدت دآزادې ښځې د طلاق اوعدت په نیمه دې.

### دجماع نه دعجزپه صورت کښې دایلاء احکام

| وَاِنْ كَانَ الْمُوْلِيْ مَرِيْضًا لَايَقْدِرُ عَلَى الْجِمَاعِ اوکه ایلاء کونکې داسې بیمار دې.چه ده ته په جماع باندې قدرت نشته اَوْكَانَتِ الْمَرْاَةُ مَرِيْضَةً یا دا ښځه داسې بیماره وی اَوْكَانَتْ رَتْقَاءَ یا د متیازو د لارې نه علاوه بله څه لاره نه وی اَوْصَغِيْرَةً لَا يُجَامَعُ یا داسې وړه ماشومه وی.چه دې سره جماع نشی |
|---|

[1] **مسلک الائمة:**- دامام مالک ﷺ مذهب دا دې.چه د غلام د ایلاء موده دوه میاشتې دی.که دده ښځه وینځه وی اوکه آزاده. اوامام شافعی اوامام احمد ﷺ فرمائی.چه د آزاد سړی اوآزاده ښځه اووینځه تول برابردی.اودتولو موده د ایلاء څلورمیاشتې دی.

كيدې أَوْكَانَتْ بَيْنَهُمَا مَسَافَةٌ لَا يَقْدِرُ أَنْ يَصِلَ إِلَيْهَا فِي مُدَّةِ الْإِيلَاءِ يا د ښځې اوسرې په مينځ كښې دومره لرې والې وي.چه د ايلاء په موده كښې ښځې ته د رسيدلو قدرت نه لرى فَفَيْؤُهُ أَنْ يَقُولَ بِلِسَانِهِ فِئْتُ إِلَيْهَا فِي مُدَّةِ الْإِيلَاءِ نو ( په دې صورتونو كښې) د سړى رجوع كول دادى.چه د ايلاء په موده كښې پخپله ژبه اووائى.ما دې ښځې طرف ته رجوع اوكړله فَإِنْ قَالَ ذٰلِكَ سَقَطَ الْإِيلَاءُ نوكه داسې ئې اووئيل.نو ايلاء ساقط شوه

**حل اللغة** ﴿ ① **رتقاء**: هغه زنانه چه د متيازو د لارې نه ئې سوا بله لاره نه وى ② **لسان**: ژبه]

**تشريح** ﴿ **صور صحة الرجوع بالقول** ﴿ صورت د مسئلې دا دې.①كه ايلاء كونكې داسې بيمار وى.چه دې په جماع كولوباندې قادرنه وى. ②يابنځه داسې بيمار

③ يا ښځه رتقاء وى.يعنى د متيازود لارې نه سوه بله لار نه وى.

④ ياداسې وړه ماشومه وى.چه دجماع قابله نه وى.

⑤ يا د ښځې خاوند په مينځ كښې دومره لرې والې وى.چه په څلورومياشتوكښې ورته خاوند نشى رسيدلې.نوپه دې تولوصورتونوكښې خاوند ته د رجوع بالقول اختيار دې.نوكه خاوند په موده د ايلاء كښې (فئت إليها) اووئيل.(يعنى ما ورته رجوع اوكړله)نوايلاء ساقطيږى.([1])

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه هركله دې كس د قدرت باوجود جماع اونكړله.نودده د طرفه ظلم متحقق شو.خكه چه دې كس د ښځې دجماع حق بند كړلو.نودده د طرفه به رجوع په هغه وخت كښې ثابتيږى.چه د ښځې حق د جماع په ذريعه باندې ادا كړى.نومعلومه شوه.چه ددې كس رجوع به د جماع په ذريعه ثابتيږى.د قول په ذريعه به نه ثابتيږى.

وَلَوْصَحَّ فِي الْمُدَّةِ اوكه دې د ايلاء په موده كښې صحيح شو (يعنى په جماع كولو باندې قادر شو) بَطَلَ ذٰلِكَ الْفَيْءُ نودا زبانى رجوع كول باطل شو وَصَارَ فَيْؤُهُ بِالْجِمَاعِ او دده رجوع كول په جماع سره شو

**تشريح** ﴿ چه په حالت د مرض كښې ئې ايلاء كړې وى.اوبيا په موده د ايلاء كښې په جماع قادر شى. نواوس به دده رجوع په رجوع بالجماع سره معتبر وى.برابره ده كه ده رجوع بالقول كړې وى اوكه نه وى. كه رجوع بالقول ئې نه وى كړې.نوبياخوپه جماع سره رجوع كول ښكاره خبره ده.اوكه رجوع بالقول ئې كړې وى.نودصحت نه پس دغه رجوع باطله شوه.

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه دخليفه په ذريعه د مقصود حاصلولو نه وړاندې دې په اصل باندې قادر

شو.نودا داسې شوه.لكه چه يوكس تيمم كړې وى.اود مانځه په دوران كښې په اوبوقادرشى.نودده مونځ باطليږى.اوپه اودس سره بيرې مونځ ادا كول واجبيږى.

**د (أنت علي حرام) حكم**

وَإِذَا قَالَ لِامْرَأَتِهِ اوكه خپلې ښځې ته ئې اووئيل أَنْتِ عَلَيَّ حَرَامٌ ته په مابإندې حرام ئې سُئِلَ عَنْ

---

[1] **مسلک الشافعي**:- دامام شافعي رحمه الله مذهب دا دې.چه په ايلاء كښې رجوع صرف په جماع سره كيږى.مطلب دا چه امام شافعي رحمه الله په ايلاء كښې صرف د رجوع بالجماع قائل دې.د رجوع بالقول قائل نه دې.داحنافو رحمهم الله په مشائخوكښې دامام طحاوى رحمه الله رائې هم دا ده.

**نيته** نو دده نيت به معلومولي شي **فإن قال أردت الكذب** نوكه ده اووئيل.چه ما د دروغ ونيلو اراده کړې وه **فهو كما قال** نوداسي به وي.لكه دې چه څنګه واني

**تشريح**> صورت د مسئلې دا دې.که يوکس خپلې ښځې ته اوونيل.چه (أنت علي حرام) نود ده نه به د ده د نيت پوښتنه کولې شي.ځکه چه دده دا کلام د څومعانيواحتمال لري.اويوه معنی د بلې معنی نه غوره نه ده.نوديوې معنی د متعين کولودپاره به د قائل نيت معلومولې شي.
نوکه دې کس دا اوونيل.چه ما د دروغو اراده کړې وه.نودا به هغه شان وي.څنګه چه هغه واني.يعني نه به طلاق واقع کيږي اونه به ايلاء وي.

**دليله**> دليل دا دې.چه دې کس د حقيقي معنی اراده کړې ده.ځکه چه دا ښځه د ده دپاره حلاله وه.بيا دده قول چه (أنت علي حرام) داسې خبر دې.چه د واقع مطابق نه دې.نودا به دروغ اوكذب وي.اوچونکه دکلام دحقيقي معنی نيت کول شرعاً معتبر وي.نوځکه به دلته هم د دې سرې نيت معتبر وي.

**الاشكال**> خوپه دې دليل به اشكال کيږي.هغه دا که دروغ د ده د کلام (أنت علي حرام) حقيقي معنی وي. نو پکار دا ده.چه بغيرنيته معتبر وو.ځکه چه حقيقت د نيت محتاج نه وي.

**الجواب**> جواب دا دې.چه کذب اودروغ حقيقت اولی دې.اويمين حقيقت ثانيه دې.اوچه لفظ په ګنړو معانيو کښې مشترك وي.نوپه دې صورت کښې د يوې معنی متعين کولودپاره نيت ضروري وي.(فتح القدير)

**وإن قال أردت به الطلاق** اوکه ده اوونيل.چه ما د طلاق نيت کړې وو **فهي تطليقة بائنة** نو يو بائنه طلاق به واقع کيږي **إلا أن ينوي الثلاث** خو که ده د درې طلاقو نيت کړې وو.(نو بيا به بائنه وي)

**تشريح**> اوکه دې کس په خپلې دې وينا چه (أنت علي حرام) سره طلاق اراده کړې وي.اود طلاق د شمارنيت ئې نه وي کړې.يا ئې د يو يا د دوو طلاقو نيت کړې وي.نوپه دې درې واړه صورتونوکښې به په يوطلاق بائنه کيږي.اوکه د درې طلاقو نيت ئې کړې وي.نوپه دې به درې طلاق واقع کيږي.

**دليله**> دليل دا دې.چه (أنت علي حرام)دکناياتوپه الفاظوکښې دې.او وړاندې د كناياتو په الفاظوباندې بحث تيرشوې دې.هغه دې هلته اوکتلې شي.

**وإن قال أردت الظهار** اوکه ده اوونيل.چه ما د ظهار قصد کړې وو **فهو ظهار** نودا به ظهار وي

**تشريح**> اوکه دې کس اونيل.چه زما په دې سره ظهارمراد وو.نود شيخينو رحمهما الله په نيزبه دا ظهاروي.

**دليلهما**> دليل دا دې.چه قائل په خپل کلام (أنت علي حرام) کښې د حرمت مطلق ذکرکړې دې.اولفظ د حرمت د څوالفاظوانواعو احتمال لري.دحرمت بالطلاق هم او د حرمت بالظهارهم،خلاصه دا چه ظهارهم د حرمت يوه نوع ده.نوظهارد مطلق حرمت د محتملاتوځني دې.اوقاعده دا ده.چه څوك د خپل کلام په محتملاتوكښې د کوم محتمل نيت کوي.دده تصديق به کولې شي.نوځکه به دلته د خاوند يعني قائل د طرفه د ظهارنيت معتبر وي.

**مسلك محمد**> دامام محمد رحمه الله په نيزبه ظهارنه وي.

**دليله**> دليل دا دې.چه ظهاروانی محله (حلاله ښځه) د محرمه (چا سره چه هميشه دپاره نكاح کول حرام وي) سره تشبيه ورکولوته واني.اوپه ظهارکښې هم تشبيه ورکول رکن دې.اودلته چونکه حرف تشبيه موجود نه دې.ددې وجې دا ظهارنه دې.

وَاِنْ قَالَ اَرَدْتُ بِهِ التَّحْرِيمَ اوکه ده اووئیل.چه ما( ددې ښځې ) حرام کول مراد وو اَوْلَمْ اُرِدْ بِهِ شَيْئًا یا وې وئیل.چه ما هیڅ هم مراد نه دی اخستې فَهِيَ يَمِينٌ يَصِيرُ بِهِ مُولِيًا نودا قسم دې.ددې په وجه به ایلاء کونکې وی

**تشریح> صورة ارادة التحریم>** اوکه ده اووئیل.چه ما دښځې دحراملو نیت کړې وو.یا دا چه ما د څه نیت هم نه وو کړې.نودا به یمین وی.اوددې په وجه به دې ایلاء کونکې شی.نوکه ده په څلورمیاشتوکښې دننه دننه وطی اوکړله.نوکفاره به پرې لازمه شی.اوکه وطی ئې اونکړله.نوتردې چه څلورمیاشتې تیرې شوې.نود ایلاء په وجه به بائنه شی.

**دلیله>** دتحریم مراد اخستلوپه صورت کښې دلیل دا دې.چه حلال حراملوکښې اصل دا دې.چه هغه زمونږ په نیزیمین دې.څکه چه دالله تعالی ارشاد دې.[يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ] ترجمه او وجه د استدلال وړاندې تیرشوی دی.

**صورة عدم ارادة شئ>** اوکه دڅه نیت ئې نه وی کړې.نودا به یمین وی.څکه چه په یمین سره کوم حرمت ثابتیږی.هغه د ادنی درجې وی.څکه چه په ایلاء کښې دکفاره نه وړاندې وطی کول حلال دی.اوپه ظهار کښې داسې نه دی.اوپه ایلاء کښې في الحال وطی نه واجبیږی. بلکه چه څلور میاشتې تیرې شی.نوددې نه پس حرمت ثابتیږی. اوپه ظهارکښې فی الحال حرمت ثابتیږی.اودغه شان حرمت بالایلاء ادنی ده د حرمت بالطلاق نه،

**دلیله>** څکه که طلاق ترې مراد واخلی.نوطلاق بائن به واقع شی.اووطی به حرامه شی.او ایلاء وطی نه حراموی.نوهرکله چه حرمت یمین ادنی دې.نود متیقن په وجه به هم هغه متعین وی.انشاءالله په کتاب الایمان کښې په تفصیل سره کلام اوکړې شی.

اوپه مشائخو ﷺ کښې بعضې حضرات د (أنت علی حرام) لفظ کښې بغیرد نیت نه طلاق طرف ته اړوی.اودلیل عرف گرځوی.څکه چه زمونږ په زمانه کښې خلق د(أنت علی حرام) نه هم طلاق مراد اخلی.فقیه ابوالليث ﷺ هم دا خبره اختیارکړې ده.والله اعلم

# كِتَابُ الْخُلْعِ

**ترجمه>** (دا) کتاب (په احکامود) خلع (کښې) دې.

**تشریح> التعریف اللغوی>** لغوی تحقیق دا دې.چه خلع نوم دې د دوی د دې قول چه (خالعت المرأة زوجها، اواختلعت منه بمالها) خلع د خاء په ضمه او فتح دواړوسره راځی.معنی ئې ده نزع،یعنی جدا کول او ویستل،لکه چه دالله تعالی ارشاد دې. (فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ) یعنی خپلې دواړه پنړې اوباسه،خوخلع د خاء په فتح د نزع حقیقی دپاره استعمالیږی.اوخلع په ضمه سره د نزع مجازی دپاره،

**التعریف الاصطلاحی**- په شریعت کښې خلع وائی د ښځې نه په لفظ د خلع سره د ملك نكاح په مقابله کښې مال اخستل،اودخلع شرط هغه دې.کوم چه د طلاق شرط دې.اوددې حکم طلاق بائن واقع کیدل دی. اوددې صفت دامام ابوحنیفه ﷺ په نیزد دخاوند د طرفه خلع یمین دې.اودښځې دطرفه معاوضه ده.نود سړی دطرفه به د یمین د احکامو خیال ساتلې شی.اودښځې دطرفه به د معاوضه داحکامو،اودصاحبینو ﷺ په نیزخلع د دواړو طرفونه یمین دې.

**وجوه تاخير الخلع عن الايلاء>** خلع ئې دايلاء نه د دوو وجوهو له كبله روستو كړله.① يوددې وجې چه په ايلاء كښې مال نه وي. نودا طلاق ته زياته نزدې وي.ددې په خلاف خلع څكه چه په هغې كښې د جينئ دطرفه د معاوضه معنى موجود وي. ②دويم ددې وجې چه دايلاء بناء د خاوند دطرفه په نشوزاو نافرمانئ باندې وي.اودخلع بناء د ښځې دطرفه په نشوز او نافرمانئ باندې وي.نودكوم څيزتعلق چه د سړي سره دې.يعنى ايلاء هغه ئې وړاندې بيان كړلو.اودكوم څيزتعلق چه د ښځې سره دې.يعنى خلع نودا به روستو بيانولې شي.(عنايه) ③ دريمه وجه دا كيدې شي.چه ايلاء په منزله د مفرد ده.اوخلع د ښځې دطرفه مال وي. نوخكه دا په منزله د مركب شوه.اوچونكه مفرد مقدم وي په مركب باندې،نوخكه ئې ايلاء وړاندې اوخلع روستو بيان كړه.

**مشروعية الخلع>** اود خلع مشروعيت دكتاب الله،سنت ،اجماع امت او دليل عقلى څلورو واړو نه ثابت دې. ① كتاب الله مثلاً دالله تعالى ارشاد دې. ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ﴾ يعنى په دې دواړو باندې څه ګناه نشته.چه ښځه فديه وركړي.(دخپل خان) ②اوسنت رسول دا دې. (ان جميلة كانت تحت ثابت بن قيس بن شماس فجائت إلى رسول الله ﷺ وقالت لا أرغب على ثابت في دين ولاخلق ولكني أخشى الكفر في الإسلام لشدة بغضي إياه فقال ﷺ أتردين عليه حديقته فقالت نعم،وزيادة فقال ﷺ أما الزيادة فلا) يعنى جميله ښځه د ثابت بن قيس بن شماس په نكاح كښې وه.هغه رسول الله ﷺ ته راغله.اووئې وئيل.چه زه ثابت بن قيس ﷺ ته د دين اواخلاقوپه اعتبارسره بد نه وايم.البته زه د نفاق مع الاسلام نه ويريږم.څكه چه زما دده نه ډيرزيات نفرت دې.نبى ﷺ ورته اوورفرمائيل.ته به ده ته دده باغ واپس كړې.هغې اووئيل.آوجى،اوزياتى به هم وركړم.نبى ﷺ اوفرمائيل.دزياتى څه ضرورت نشته.ددې آيت اوحديث نه معلومه شوه.چه ښځه د خپل خان آزادولوپاره دخپل طرفه عوض وركولې شي.اوهم ددې نوم خلع دې. ③اودخلع په مشروعيت باندې اجماع هم ده.اوعقلى دليل دا دې.چه ملك نكاح قياس كړې شوې دې په ملك قصاص باندې،يعنى لكه څنګه چه ملك قصاص مال نه دې.خوددې عوض اخستل جائزدى.دغه شان نكاح هم اګرچه مال نه دې.خوددې عوض اخستل جائزدى.اوچه عوض واخلى اوطلاق وركړي.د دې نوم خلع دې.

## د كورنه جوړيدو په صورت كښې خلع كول

| |
|---|
| ﴿وَإِذَا تَشَاقَّ الزَّوْجَانِ﴾ اوكله چه ښځه خاوند خپل منځ كښې جګړه اوكړي ﴿وَخَافَا أَنْ لَا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ﴾ او دواړوته دايره وي.چه د الله تعالى حدودبه قائم اونه ساتى ﴿فَلَا بَأْسَ أَنْ تَفْتَدِيَ نَفْسَهَا مِنْهُ بِمَالٍ يَخْلَعُهَا بِهِ﴾ نو هيڅ باك نشته.چه ښځه ده ته د خپل خان فديه وركړي.په داسې مال سره چه د هغې په ذريعه خاوند دې ته خلع وركړي |

**حل اللغة >** ① **تشاق:** مخالفت كوي د يوبل ② **تفتدى:** فديه وركوي ]

**تشريح>** صورت د مسئلې دا دې.كه ښځه خاوند په خپل مينځ كښې جګړې كوي.اودا محسوس كړي.چه اوس دالله تعالى حدود يعنى حقوق زوجيت نشى ادا كيدې.نوپه دې كښې څه قباحت نشته.چه ښځه دخپل خان خلاصولوډپاره خاوند ته فديه وركړي.اوخاوند د دغه مال په بدله كښې د خلع په ذريعه دې ته طلاق وركړي.

**دليله>** دليل دالله تعالى ارشاد دې. ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ﴾ د آيت مطلب دا دې.چه په سړي باندې ګناه نشته په فديه اخستلوكښې اوپه ښځه باندې ګناه نشته د فديه په وركولوكښې،

**حقیقة الفدیة>** د فدیه ورکول په حقیقت کښې خپل ځان د قید نه د خلاصولو دپاره وی.ځکه چه ښځې دخپلوخاوندانوسره د قید په درجه کښې وی.ځکه چه نبی ﷺ د ښځونوم (اساری) ذکرکړې دې.ارشاد دې. (اتقوا الله فی النساء فإنهن عندکم عوان) یعنی دښځوپه باره کښې دالله تعالی نه ویره اوکړئ.ځکه چه دوی تاسوسره قیدیانې دی.(ترمذی منقول ازعینی شرح هدایه) اوجارالله زمخشری بیان کړې دې.چه دا آیت ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ﴾ د ثابت اودهغوی د بی بی ﷺ په باره کښې نازل شوې وو.اودا په اسلام کښې د ټولونه اولنۍ خلع وه.دا حدیث په باب الخلع کښې په تفصیل سره بیان کړې شوې دې.عینی د ثابت دښځې درې نومونه ذکر کړی دی.① حبیبه ② حمیله ③ جمیله،

| فَإِذَا فَعَلَ ذٰلِكَ نو هرکله چه خاوند اوښځې داسې اوکړل وَقَعَ بِالْخُلْعِ تَطْلِيقَةٌ بَائِنَةٌ نود خلع په وجه به یو طلاق بائن واقع شی وَلَزِمَهَا الْمَالُ او په ښځه به مال لازم وی ځکه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی. |
|---|

**تشریح>** کله چه ښځې خاوند دا کاراوکړلو.یعنی ښځې فدیه ورکړله.اوخاوندخلع اوکړله.نوددې په وجه په ښځه یوطلاق بائن واقع شو.اوپه ښځه باندې مال واجب شو.

**دلائله>** ① دلیل د نبی ﷺ ارشاد دې.چه (الخلع تطلیقة بائنة)[1] چه خلع ورکول یو طلاق بائن دې

② دویم دلیل دا دې.چه نکاح د مکمل اوپوره کیدو نه پس د فسخ احتمال نه لري.اودعدم کفاءت، خیارعتق اوخیاربلوغ په وجه فسخ قبل التمام ده.بعدالتمام نه ده.نوددې درې واړو څیزونود وجې نکاح د پوره کیدو نه بندیږی.فسخ نه ده.اوپاتې شوه خلع نودا د عقد دتمام نه پس وی.اونکاح د تمام نه پس د فسخ احتمال نه لري.نوځکه خلع ته د نکاح فسخ نشی وئیلې.البته د نکاح د تمام نه پس دقطع فی الحال احتمال لري.ددې وجې زمونږ درخواست دې.چه دخلع نه دې رفع د قید اوقطع د نکاح مراد واخستې شی.اورفع د قید اوقطع نکاح نوم دې دطلاق،نوثابته شوه چه خلع طلاق دې فسخ د نکاح نه ده.

③ لفظ د خلع د طلاق احتمال لري.که یوکس خپلې ښځې ته اووئیل. (خالعتك یاخلعتك) اوطلاق نیت ئې کړی وی.نویوطلاق بائن واقع کیږی.خلاصه دا چه لفظ دخلع د کنایات طلاق ځنی دې.اودکنایه په الفاظو سره طلاق بائن واقع کیږی.سوا د درې کلماتونه،چه (أنت واحدة،إعتدی،إستبرئ رحمك)

**د سړی دطرفه د ظلم په صورت کښې د خلع اخستلوکراهت**

| وَإِنْ كَانَ النُّشُوزُ مِنْ قِبَلِهِ اوکه نافرمانی د خاوند د طرفه وی كُرِهَ لَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهَا عِوَضًا نود خاوند دپاره مکروه دی.چه د ښځې نه عوض واخلی |
|---|

**تشریح>** نشوز دښځې دخپل خاوند نافرمانی کول اونفرت کول دی.زجاج فرمائیلی دی.چه نشوزد دواړو طرفونونه کیږی.یعنی په زوجینوکښې دهریوکس بل لره نه خوښول ښکاره کول،
صورت د مسئلې دا دې.که نشوزاوناخوښی د سړی دطرفه وی.نودسړی دپاره دښځې نه د بدل خلع په طور د څه څیزاخستل مکروه دی.

**دلائله>** ① دلیل دالله تعالی ارشاد دې. ﴿وَإِنْ أَرَدْتُمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَكَانَ زَوْجٍ وَآتَيْتُمْ إِحْدَاهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَأْخُذُوا مِنْهُ شَيْئًا أَتَأْخُذُونَهُ بُهْتَانًا وَإِثْمًا مُبِينًا﴾ اوکه تاسود یوې بی بی په ځانې د بلې بی بی بدلولواراده

[1] من حدیث ابن عباس ﷺ أخرجه الدارقطنی والبیهقی فی سننهما (نصب الرایة ۳۴۷\۳)_

لري.حالانکه تاسويې ته ډير مهرورکړې وي.نوپه دې کښې ترې څه مه اخلئ.آيا تاسودا اخلئ په تهمت لګولو او ښکاره ګناه کولوسره،

**الاقوال في تعريف القنطار** ① (قِنْطَار) د غوښې د څرمن ډکوالی په برابری سره زريا سپين زر دی.

②اوبعضو وئيلی دی.چه اويا زره ديناره،

③اوبعضوئيلی دی.چه يوزردوه سوه اوقيه،اويوه اوقيه څلويښت درهم وی.

④اوزمخشری وئيلی دی.چه (قِنْطَار) ډيرمال ته وائی.بهرحال په دې آيت کښې دښځې نه د څه څيز د اخستلوکراهت ښکاره موجود دې.نوځکه دښځې نه عوض اخستل مکروه اوګرځولې شو.البته که خاوند واخستل، نو دکراهت باوجود جائزدی.ځکه چه په (فَلَا تَأْخُذُوْا مِنْهُ) کښې نهی لغيره ده.اودنهی لغيره د وجې مشروعيت ذاتی نه منتفی کيږی.لکه د جمعې په ورځ د اذان په وخت کښې خرڅول اخستل مشروع لذاته اوممنوع لغيره دی.

②دويم دليل دا دې.چه دې کس د سابقه ښځې په ځائې بله ښځه راوستله.نواولنئ نې په ويره کښې واچوله. نوځکه اوس ددې نه د مال په اخستلوسره دا په زياتی وحشت کښې اچول نه دی پکار.

**دناشزې ښځې نه د مهرنه د زياتې وصولئ کراهت**

| وَإِنْ كَانَ النُّشُوْزُ مِنْ قِبَلِهَا اوکه نافرمانی د ښځې د طرفه وی كُرِهَ لَهُ أَنْ يَأْخُذَ أَكْثَرَ مِمَّا أَعْطَاهَا نو مونږ د خاوند دپاره مکروه ګڼړو.چه د ښځې نه د هغې نه زيات واخلی.کوم نې چه دې له ورکړی دی) |
|---|

**تشريح** مسئله دا ده.که ښځه ناشزه وی.نود مهرد مقداريورې اخستل دخاوند دپاره بغيرکراهته جائزدی.

**دليله** دعدم کراهت دليل هغه آيت دې.کوم چه وړاندې تيرشو.يعنی ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيْمَا افْتَدَتْ بِهٖ﴾ اودا آيت د خپل اطلاق په وجه قليل اوکثير مهر اوغيرمهرتولو ته شامل دې.

**رواية الكراهة** البته د مهرد مقدار نه زياتی اخستل ورله د مبسوط د روايت مطابق مکروه دی.

**دليله** دمهرپه مقداربانډې د زيادت دکراهت دليل دا دې.چه دثابت بن قيس بن شماس ﷺ بی بی ته نبی ﷺ ارشاد فرمائيلې وو. (وأما الزيادة فلا) يعنی نبی ﷺ د زيادت نفی کړې ده.نوهرکله چه اباحت منتفی شو.اوکراهت ثابت شو.دا حديث په تفصيل سره د باب په اول کښې ذکرشوې دې.

**د مهرنه د زياتې وصولئ حکم**

| فَإِنْ فَعَلَ ذٰلِكَ که ده دا کار اوکړو اوکه ( دمهر نه نې) زيات واخستل جَازَ فِي الْقَضَاءِ نو قضاءً جائز دی |
|---|

**تشريح** مسئله دا ده.که ښځه ناشزه اونافرمانه وی.اوپه دې صورت کښې ترې خاوند د مهرد مقدار نه زياتی حصه واخستله.نوقضاء جائزده.

**دليله** دليل دا دې.چه د ﴿فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيْمَا افْتَدَتْ بِهٖ﴾ آيت متقتضی دوه څيزونه دی.

① شرعاً جواز② اباحت،يعنی،اوپه اباحت اوجوازکښې فرق دا دې.چه داباحت ضد کراهت دې.اودجواز ضد حرمت دې.نوکوم څيزچه مباح وی.هغه به جائزخامخا وی.خود جائزدپاره مباح کيدل

ضروري نه دی.مثلا دجمعې په ورځ د اذان په وخت کښې خرڅول اواخستل جائزدی.خومباح نه دی.بلکه مکروه دی.نومعلومه شوه.چه جواز اوکراهت دواړه جمع کیدې شی.

**طريقة الاستدلال** اوس به طریقه د استدلال دا وی.چه داباحت په حق کښې د معارض یعنی د نبی ﷺ ارشاد چه (دما الزيادة فلا) په وجه آیت معمول بها پاتې نشو.اوچونکه د جواز په حق کښې څه معارض نشته.نوځکه د جواز په حق کښې به په آیت باندې عمل باقی وی.ځکه چه د اباحت نفی د جوازد نفی سره مستلزمه نه ده. نو ثابته شوه.چه دمهرنه زیاتی اخستل د خاوند دپاره جائز خو دی.خومباح نه بلکه مکروه دی.

## د طلاق په عوض کښې مال اخستل

| وَإِنْ طَلَّقَهَا عَلَى مَالٍ فَقَبِلَتْ اوکه دې ته خاوند په مال باندې طلاق ورکړو.بیا دې قبول کړو وَقَعَ الطَّلَاقُ وَلَزِمَهَا الْمَالُ نو طلاق واقع شو.او په ښځه به مال لازم وی وَكَانَ الطَّلَاقُ بَائِنًا اودا به طلاق بائنه وی. |
|---|

**تشريح** صورت د مسئلې دا دې.که خاوند ښځې ته په مال باندې طلاق ورکړلو.مثلاً دا ئې ورته اووئیل. (أنت طالق بألف درهم یا أنت طالق علی ألف درهم) اوښځې دا قبول کړلو.نوطلاق به واقع شی. او دښځې په ذمه به دا لازم وی.

**دلائله** ① دلیل دا دې.چه دا تصرف معاوضه دې.اوتصرف معاوضه موقوف وی په اهلیت د متعاقدین اوپه صلاحیت دمحل باندې،اودا ټول موجود دی.دخاوند تصرف خوځکه ثابت دې.چه ده ته فی الحال دطلاق یا دمعلق طلاق ورکولو مستقل اختیارحاصل دې.اودلته ده طلاق د ښځې په قبلولوپورې معلق کړې دې.نوددې قبلول به شرط وی.اوکه قبول نې کړلو.نوطلاق به واقع وی.اوپه دې به مال لازم وی.ګنی نه به وی لازم.اودښځې اهلیت ځکه ثابت دې.چه دا په خپل ځان باندې د مال د لازمولومالکه ده.ځکه چه دې ته په خپل ځان باندې پوره پوره ولایت حاصل دې.اومحل ځکه صالح دې.چه ملك نکاح داسې څیزدې.چه ددې عوض اختستل جائزدی.اګرچه مال نه دې.لکه څنګه چه قصاص اګرچه مال نه دې.خوعوض اختستل ئې جائزدې.اود دواړو په مینځ کښې جامع د اهل التزام د طرفه د التزام وجود دې.

② دویم دلیل دا دې.چه دا طلاق علی مال معاوضةً مال بالنفس دې.یعنی ښځې دخپل ځان د خلاصی دپاره خاوند ته مال ورکول منظور کړلو.اوخاوند یوبدل یعنی دمال مالك شو.نوځکه ښځه د دویم بدل یعنی نفس مالکه کیږی.چه مساوات پیدا شی.اوښځه دخپل ځان مالکه په طلاق بائن سره ګرځی.په طلاق رجعی نه ګرځی. ځکه چه په طلاق رجعی کښې دخاوندحق نه ختمیږی.نوثابته شوه.چه په طلاق علی المال باندې طلاق بائن واقع کیږی

## دمسلمان په حرام څیزباندې د خلع حکم

| وَإِنْ بَطَلَ الْعِوَضُ فِي الْخُلْعِ مِثْلُ أَنْ يُخَالِعَ الْمَرْأَةَ الْمُسْلِمُ عَلَى خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ أَوْ مَيْتَةٍ اوکه په خلع کښې عوض باطل وی.لکه مسلمان په شراب، یا خنزیر، یا مردارباندې خلع اوکړی فَلَا شَيْءَ لِلزَّوْجِ د خاوند دپاره به هیڅ عوض نه وی وَالْفُرْقَةُ بَائِنَةٌ اودا فرقت به بائنه وی |
|---|

تشریح> مسئله دا ده.چه که په خلع کښې عوض باطل وی.مثلاً مسلمان سړي خپلې ښځې سره په شرابو،یا خنزیریا مرداره باندې خلع اوکړي.نو دخاوند دپاره په ښځه باندې څه څیزد خلع د بدل په طور واجب نه دي.اوپه ښځه به طلاق بائن واقع کیږي.

| وَإِنْ بَطَلَ الْعِوَضُ فِي الطَّلَاقِ اوکه په طلاق کښې عوض باطل شو كَانَ رَجْعِيًّا نو طلاق رجعی به وی |
|---|

تشریح> اوکه مدخول بها ته ئې په عوض باندې طلاق ورکړلو.اودا طلاق دریم طلاق نه وی.اوپه دې صورت کښې عوض باطل وی.نوپه ښځه به طلاق رجعی واقع کیږي.اودخاوند په ښځه باندې څه نه واجبیږي.په دواړوصورتونوکښې طلاق واقع کیدل ددې وجې دی.چه دښځې طلاق دهغې په قبلولوپورې معلق کړې شوي دې.اوهغې قبول کړلو.نوطلاق واقع شو.

دلیله> څکه چې دلته صریحی طلاق استعمال شوي دې که چرته د دې په بدله کښې مال وو نو طلاق بائنه به واقع شوي وو.خو عوض مال شو د دې وجې طلاق صریحی باقی پاتې شو.نو رجعی به واقع کیږي.

**دمهرصالح د خلع صالح دي**

| وَمَا جَازَ أَنْ يَكُونَ مَهْرًا فِي النِّكَاحِ جَازَ أَنْ يَكُونَ بَدَلًا فِي الْخُلْعِ چه کوم څیز مهر کیدې شی.( هغه بالاجماع) د خلع عوض کیدې شی |
|---|

تشریح> په دې عبارت کښې مصنف رحمه الله یوه ضابطه بیانوی.هغه ضابطه دا ده.چه کوم څیز په عقد نکاح کښې مهر جوړیدې شی.هغه په عقد خلع کښې بدل خلع جوړیدې شی.

دلیله> دلیل دا دې.چه دعقد نکاح په وخت کښې ملك بضع متقوم دې.اوپه حالت د خلع کښې غیرمتقوم دې.نوکوم څیزچه د بضع متقوم عوض جوړیدې شی.هغه د بضع غیر متقوم عوض خامخا جوړیدې شی.

البته ددې په عکس نشی کیدې.یعنی کوم څیزچه په خلع کښې بدل جوړیدې شی.دا ضروری نه ده.چه هغه دې په نکاح کښې مهرهم جوړ شی.څکه چه بعضې څیزونه داسې دی.چه هغه بدل خلع جوړیدې شی خو مهر نشی جوړیدې.مثلاً د یودرهم نه واخله ترلسو پورې په خلع کښې بدل خلع جوړیدې شی.خو مهرنشی جوړیدې.دغه شان که اووانی.کوم بچې چه د چیلۍ په خیټه کښې دې.هغه بدل خلع دې.نودا صحیح ده.لیکن که دا اووانی.چه دا مهردې .. نو دا صحیح نه ده.

**د(خالعنی علی ما فی یدی) خلع کول**

| فَإِنْ قَالَتْ نو که ښځې خپل خاوند ته اووئیل خَالِعْنِي عَلَى مَا فِي يَدِي ماته خلع راکره.په هغه څیز.څه چه زما په لاس کښې دی فَخَالَعَهَا وَلَمْ يَكُنْ فِي يَدِهَا شَيْءٌ بیا خاوند ښځې ته خلع ورکړله.حالانکه د ښځې په لاس کښې هیڅ نه وو فَلَا شَيْءَ لَهُ عَلَيْهَا نو په ښځه به هیڅ څیز واجب نه وی |
|---|

تشریح> صورت د مسئلې ښکاره دي.

دلیله> دلیل دا دې.چه د ښځې کلام چه (ما فی یدی) کښې لفظ د ،،ما،، عام دې.کوم چه مال اوغیرمال تولوته شامل دې.نوځکه داسې نه ده.چه ښځې دمال ذکرکړې وی.اوخاوند ته ئې دهوکه ورکړې وی.اوهرکله چه دهوکه ورکونکې نه ده.نود څه څیزضامنه به هم نه وی.

د (خالعني على ما في يدي من مال) حكم

وَإِنْ قَالَتْ او كه ښځې اووئيل خَالِعْنِي عَلَى مَا فِي يَدِي مِنْ مَالٍ ما ته خلع راكړه.په هغه مال باندې.كوم چه زما په لاس كښې دې فَخَالَعَهَا نو خاوند دې ته خلع وركړله فَلَمْ يَكُنْ فِي يَدِهَا شَيْءٌ حالانكه دښځې په لاس كښې هيڅ نه وو رَدَّتْ عَلَيْهِ مَهْرَهَا نو ښځه دې ده ته خپل مهر واپس كړي

**تشريح**> مسئله دا ده.چه ښځې خاوند ته اووئيل. (خالعنى على مافي يدى من مال) نوخاوند ورسره په هغې باندې خلع اوكړله.بيا معلومه شوه.چه دهغې په لاس كښې څه هم نه وو.نوپه دې صورت كښې په ښځه باندې دمهرمقدارواپس كول واجب دي.

**دليله**> دليل دا دې.چه ښځې د مال ذكركړې دې.نوخاوند بغيرد عوض د ملك نكاح په زائله كولوباندې راضى نه دې.

**صور العوض**> اودعوض څلورصورتونه دي.① مسمى②دهغې قيمت، ③د بضع قيمت، ④د مهرهغه مقداركوم چه ښځې دخپل خاوند نه اخستې دې.اولنى درې احتمالات خوباطل شو.څكه چه مسمى يعنى (مافي يدى من مال) كښې اود مسمى قيمت په دواړو كښې هريومجهول دې.اوداسې هم وئيلې شي.چه مسمى مجهول ده.نوددې قيمت به په خامخا مجهول وي.اود بضع قيمت يعنى مهرمثل ددې وجې واجب نه دې. چه په حالت دخروج كښې د ملك بضع څه قيمت نه وي.نوهركله چه درې احتمالات باطل شول.نوڅلورم احتمال يعنى د مهرمقدار واجبول متعين شو.چه د خاوند ضرر لرې كړې شي.

د(خالعنى على ما في يدي من دراهم يا من الدراهم) كښې دخلع حكم

وَلَوْ قَالَتْ خَالِعْنِي عَلَى مَا فِي يَدِي مِنْ دَرَاهِمَ أَوْ مِنَ الدَّرَاهِمِ اوكه ښځې اووئيل.ماته خلع راكړه.په هغه دراهمو چه زما په لاس كښې دي فَفَعَلَ نو خاوند داسې اوكړل فَلَمْ يَكُنْ فِي يَدِهَا شَيْءٌ .(حو) د ښځې په لاس كښې هيڅ نه وو فَعَلَيْهَا ثَلَاثَةُ دَرَاهِمَ نو په ښځه به درې درهمه واجب وي

**تشريح**> مسئله دا ده.چه ښځې خاوند ته اووئيل. (خالعنى على مافي يدى من دراهم يا من الدراهم) اوخاوند هم دغه شان اوكړلو.بيا معلومه شوه.چه دښځې په لاس كښې څه نشته.نوپه دې صورت كښې په ښځه باندې درې درهم واجب دي.

**دليله**> دليل دا دې.چه ښځې د دراهم صيغه دجمع استعمال كړله.اواقل دجمع درې دي.اوپه (من دراهم) كښې من بيانيه دې.تبعيضيه نه دې.لكه څنګه چه په ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ﴾ كښې من دبيان دپاره دې.اود (من) په باره كښې بعضې حضراتوپوه قاعده ذكركړې ده.هغه دا چه په كوم ځائې كښې د (من) د لفظ نه بغيركلام صحيح كيږي.نوپه هغه ځائې كښې به (من)د تبعيض دپاره وي.لكه (أخذت من الدراهم) اوپه هرهغه ځائې كښې چه د(من) نه بغيركلام صحيح نه وي.نوپه دغه ځائې كښې به لفظ د (من)د بيان دپاره وي.دتبعيض دپاره به نه وي.نوجمع په خپل حال باندې باقى پاتې شوه.اوچونكه اقل دجمع درې دي.نودرې دراهم به واجب وي.

د(طلقنى ثلاثا بألف)حكم

وَإِنْ قَالَتْ طَلِّقْنِي ثَلَاثًا بِأَلْفٍ اوكه ښځې اووئيل.ماته درې طلاقه د يو زر په بدله كښې راكړه فَطَلَّقَهَا

وَاحِدَةً نو خاوند دې ته يو طلاق ورکړو فَعَلَيهَا ثُلُثُ الْأَلْفِ نو په ښځې به د يو زر دريمه واجب وي

**تشريح** مسئله دا ده.که ښځې خاوندته اوونيل. (طلقني ثلاثا بألف) اوخاوند ورته يوطلاق ورکړلو.نو په ښځه باندې يوطلاق بائن واقع کيږي.اوپه ده باندې د زرو روپو دريمه حصه واجب ده.اوامام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دليله** دليل دا دې.چه هرکله ښځې د يوزر روپوپه عوض د درې طلاقو مطالبه اوکړله.نودا داسې شوه.چه دې د زرو روپو په دريمه حصه د يوطلاق مطالبه اوکړله.اوددې دليل دا دې.چه کلمه د ،،با،، په عوض باندې داخليږي.نوځکه به (الف)يعنی زر روپئ عوض وي.اودرې طلاقه به معوض وي.اوقاعده دا ده.چه عوض په معوض باندې تقسيميږي.نويو زر روپئ به په درې طلاقو تقسيميږي.

**وقوع الطلاق البائن** اوطلاق بائن به ځکه واقع کيږي.چه دا طلاق علی مال دې.اوپه طلاق علی مال باندې طلاق بائن واقع کيږي.نوځکه به طلاق بائن واقع کيږي.

**د(طلقني علی ألف) حکم**

وَإِنْ قَالَتْ اوکه ښځې اوونيل طَلِّقْنِي ثَلَاثًا عَلَى أَلْفٍ ماته په يو زرباندې درې طلاقه راکړه فَطَلَّقَهَا وَاحِدَةً نوخاوند دې ته يو طلاق ورکړو فَلَا شَيْءَ عَلَيهَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ[1] نود ابوحنيفه رحمه الله په نيز به په ښځه باندې هيڅ واجب نه وي.

**تشريح** صورت د مسئلې دا دې.چه ښځې خاوندته اوونيل. (طلقني ثلاثا علی ألف) اوخاوند ورته يوطلاق ورکړلو نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزيږې يوطلاق رجعي واقع کيږي.اوپه ښځه باندې څه نه واجبيږي.امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دليله** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه په دې مقام کښې کلمه د ،علی،، دشرط دپاره ده.ځکه چه کلمه د ،علی،، موضوع ده داستعلاء دپاره،لکه (زيدعلی السطح) اوکه په استعلاء باندې ئې حمل کول متعذر شي.نودالزام په معنی به حمل کولې شي.لکه (عليه دين) اوکه د الزام معنی هم متعذره شي.نود شرط په معنی به حمل کولې شي.ځکه چه د شرط اوجزاء په مينځ کښې مناسبت دې.هغه داسې لکه څنګه چه دلازم او ملزوم په مينځ کښې لزوم وي.نودغه شان د شرط او جزاء په مينځ کښې هم لزوم دې.لکه چه حرف دعلی په شرط کښې حقيقت دې.

**مسلک الصاحبين** صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه د يوزر روپو په دريمه حصه به يوطلاق بائن واقع کيږي.

**دليله** دليل دا دې.چه طلاق علی مال دښځې دطرفه عقد معاوضه ده.اوپه معاوضاتوکښې کلمه د (علی) د (باء)په مرتبه کښې وي.يعنی په عقدمعاوضه کښې کوم حکم د باء دکلمه دې.هم هغه حکم د علی دکلمه دې.نوچه (طلقني ثلاثا بألف) په صورت کښې که خاوند يوطلاق واقع کړي.نو د زرو روپو په دريمه حصه يوطلاق بائن واقع کيږي.نودغه شان به د(طلقني ثلاثا علی ألف درهم) کښې د يوزر روپو په دريمه کښې يوطلاق بائن واقع کيږي.

---

[1] ) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٤\٧١) والكفاية (٤\٧٠) وردالمحتار(٢\٦١١) والهندية (١\٤٩٦) نقلا عن القول الراجح (١\٣٤٦)_

## د مبارات حکم

وَالْمُبَارَاةُ كَالْخُلْعِ والخلع والمباراة يُسْقِطَانِ كُلَّ حَقٍّ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الزَّوْجَيْنِ عَلَى الْآخَرِ مِمَّا يَتَعَلَّقُ بِالنِّكَاحِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله[1] چه د ښځې خاوند يو بل برى كول دخلع پشان دى.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز په هغه حقوق كښې كوم چه د نكاح متعلق دى.مبارات او خلع دواړه هريو داسې حق ساقطوى.چه د ښځې خاوند په يو بل باندې دى

**تشريح** > صورت دمسئلې دا دې.چه په ښځه خاوند كښې د يوبل لره برى كول دخلع پشان دى.يعنى په مبارات اوخلع كښې هريو داسې دى.چه ښځه اوخاوند هريودهغه حق نه برى كوى.كوم چه د نكاح سره متعلق وى.لكه مهراود تيرو شوو ورځو نفقه،البته په خلع اومبارات كښې د عدت نفقه اوسكنى نه ساقطيږى.خوكه ښځې د عدت په نفقه باندې خلع اوكړله.نونفقه به ساقطيږى.خوسكنى نه ساقطيږى. ځكه چه سكنى د شريعت حق دې.اودشريعت حق د چا په ساقط كولوسره نه ساقطيږى.دا ذكرشوې تفصيل دامام ابوحنيفه رحمه الله مذهب دې.

**دليله** > دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه دخلع معنى جدا كيدل اوبيليدل دى.اوددې نه خلعة النعل ده.يعنى دپښو نه پنړې ويستل اوخلع العمل يعنى د كاركونكى د كار نه جدا كيدل،نومعلومه شوه.چه خلع هم د مبارات پشان مطلق ده.نوپه نكاح اوددې په احكامو اوحقوقو كښې به ددې دواړوپه اطلاق باندې عمل كولې شى.يعنى د خلع په وجه به نكاح اودنكاح احكام اودنكاح حقوق ټول ساقطيږى.كه زوجينويان كړى وى اوكه نه وى.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ لَا تَسْقُطَانِ إِلَّا مَا سَمَّيَاهُ اوامام محمد فرمائى چې نه ساقطوى دواړه مگر هغه كوم چې مونږ بيان كړل

**تشريح** > **مسلک محمد** > اوامام محمد رحمه الله فرمانيلى دى.چه په خلع اومبارات كښې به هم هغه حقوق ساقطيږى.كوم چه زوجينو بيان كړى وى.اوچه كوم ئې نه وى بيان كړي.هغه به نه ساقطيږى. اودامام ابويوسف رحمه الله قول په خلع كښې دامام محمد رحمه الله دقول پشان دې.اودمبارات په صورت كښې د امام ابوحنيفه رحمه الله د قول پشان دې.

**دليله:** دامام محمد رحمه الله دليل دا دې.چه په خلع اومبارات كښې هريوعقد معاوضه دې.اوپه معاوضاتوكښې هم هغه څيزمعتبر وى.دكوم چه ذكرشوې وى.نوپه خلع اومبارات كښې به صرف هغه حقوق ساقط وى.دكوموچه زوجينوبيان كړې وى.اوچه دكوموذكرئې نه وى كړى.هغه به نه ساقطيږى.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ الْمُبَارَاةُ تُسْقِطُ وَالْخُلْعُ لَا تُسْقِطُ اوامام ابويوسف وائى چې مباراة د يو بل حقوق ساقطوى او خلع ئې نه ساقطوى

**تشريح** > نفس مسئله آسانه ده

**دليل ابي يوسف** > دامام ابويوسف رحمه الله دليل دا دې.چه مبارات دباب مفاعلت نه دې.ماخوذ د براءت نه دې.اومفاعلت د دواړوطرفونو نه د فعل تقاضا كوى.نومبارات به ددې خبرې تقاضا كوى.چه په زوجينوكښې هريودبل نه برى شى.

اولفظ د براءت مطلق دې.هرحق ته شامل دې.كه د نكاح وى اوكه دغيرنكاح وى.خومونږ داد نكاح

---

[1] القول الراجح هو قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٧٦\٤) ومنحة الخالق( ٨٨\٤) والبحرالرائق (٨٨\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٥٠\١)۔

سره مقید کړلو.او دلیل ددې غرض دې.یعنی غرض اومقصد دهغه جګړې ختمول دی.کومه چه دنکاح په وجه پیدا شوې ده.نوځکه به برات دهغه حقوقوسره متعلق وی.کوم چه په نکاح سره ثابتیږی.اوپاتې شوه خلع نودهغې غرض انخلاء یعنی بیلیدل دی.اودا معنی حاصلیږی د نکاح په ماتیدوباندې.نود نکاح داحکامونه سوا د نورو احکامود منقطع کیدو څه ضرورت پاتې نشو.

**ثمرة الاختلاف** ددې اختلاف ثمره به په دې مثال کښې ښکاره کیږی.چه دښځې مهر یوزر روپۍ دی.اوبیا ښځې خپل خاوند سره په سل روپۍ باندې خلع اوکړله.نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزجائزدی.چه ښځه دخپل خاوندنه څه واخلی.ځکه چه خلع په وجه مهرساقط شو.اودصاحبینو رحمهما الله په نیزښځه دخپل خاوند نه د څلور سوه روپو رجوع کولې شی.چه د فرقت قبل الدخول په وجه ښځې ته نصف مهر ملاؤ شی.اوصرف دومره ساقط شی.کوم چه زوجینو بیان کړې وی.یعنی سل درهم،

اوکه ښځې په یوزر روپوباندې قبضه اوکړله.اوبیا دغه ښځې په سلو روپو باندې خلع اوکړله.نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد خاوند دپاره د سلو روپو نه سوا بل څه نشته.اودصاحبینو رحمهما الله په نیزبه خاوند دښځې نه د دومره روپو رجوع کوی.چه هغه دمهرنیم مقدارته رسیږی.یعنی څلور سوه درهمه به د ښځې نه نور زیاتی واخلی.د ثمره اختلاف نه پس دلائل اوګورئ.

## بَابُ الظِّهَار

**ترجمه** (دا) باب دظهار(په بیان کښې) دې.

**تعریف الظهار لغة** ظهاردباب مفاعلت نه دې.لغوی معنی ئې د خاوند خپل ښځې ته (أنت علی کظهر أمی) ونیل دی.

**تعریف الظهار شرعاً** اوپه شریعت کښې ظهاروانی.دمنکوحه دهغه ښځې سره تشبیه ورکول چه هغه په ده باندې همیشه دپاره حرامه وی.اودَ ظهارشرط دا دې.چه مظاهرعاقل،بالغ اومسلمان وی.اوچه ښځه په (نسائنا) کښې وی.یعنی چه منکوحه وی.اودظهار رکن د سړی خپلې ښځې ته (أنت علی کظهر أمی) یاددې قائم مقام څه لفظ ونیل دی.اوددې سبب نشوز دی.ځکه چه آیت د ظهار دخوله په باره کښې نازل شوې وو.په داسې حال کښې چه هغه ناشزه وه.اوددې حکم دا دې.چه وطی اودواعی دوطی حراموی سره د بقاء دنکاح نه،تردې چه کفاره ادا کړی.

**المناسبة بین الظهار والخلع** په ظهاراوخلع کښې مناسبت دا دې.چه په دې دواړوکښې هریود نشوزاوسرکشۍ په وجه کیږی. اوخلع ئې په ظهارباندې ځکه مقدم کړله.چه په خلع کښې تحریم زیات دی.ځکه چه د خلع په صورت کښې نکاح منقطع شی.اوتحریم ثابت شی.اود ظهارپه صورت کښې نکاح باقی وی.اوحرمت ثابت شی.

**وقوعه في عهد النبي** په عهد رسالت کښې اوس بن صامت رضی الله عنه خپلې ښځې ته د غصه په حالت کښې ونیلی وو.چه ته په ما باندې داسې ئې.لکه زما د مور شا چه په ما باندې حرامه ده.ددې نه پس دواړه پښیمانه شول.حضرت خوله د حال معلوموا وتحقیق کولودپاره په درباررسالت کښې حاضره شوه.تردغه وخته پورې دظهارپه باره کښې څه حکم نه وو نازل شوې.نونبی ﷺ د قوم معمول قابل عمل اوګنړلو.اوورته ئې اوفرمائیل.اوس ستا اوستاد خاوندپه مینځ کښې د جمع کیدو څه صورت پاتې نشو.چه هغې دا واوریدله.چه ژړا ئې شروع کړله.اودخپل خاوند په سرئې ګلې شروع کړلې.اوونې ونیل.یارسول الله ﷺ زما ځوانی دخاوند په کورکښې تیره شوه.اواوس چه بوډۍ شوم.نوده ظهاراوکړلو.اوچه جدا شوم.نوکوربه مې تباه شی.اوواړه واړه ماشومان به مې پریشان اوړی راوړی.ددې

نه پس ني آسمان طرف ته سرپورته کړلو.او وې وئيل.اې الله زما بې آسره هم ته وارث ئې.زما فرياد واوره.په دغه وخت کښې د سورة مجادله اولنی آياتونه نازل شول.په کوموکښې چه ظهارته طلاق نه وو وئيلې شوې.اووئيلې شوي وو.چه دچا نه پيدا شوې نه وی.هغه څنګه مور جوړيدې شی.او دداسې لغوياتود بندولودپاره داحکم اوکړې شو.چه ترڅوپورې خاوند کفاره نه وی ادا کړې.ترهغه وخته پورې به ښځې ته نه نزدې کيږی.(بيان القرآن)

## د (أنت على كظهر أمي) حكم

| وَإِذَا قَالَ الزَّوْجُ لِامْرَأَتِهِ أَنْتِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي او کله چه سړی خپلې ښځې ته (أنت على كظهر أمي) اووئيل فَقَدْ حَرُمَتْ عَلَيْهِ نودا ښځه په ده باندې حرام شوه لَا يَحِلُّ لَهُ وَطْؤُهَا دده دپاره دې سره وطی کول حلال نه دی وَلَا مَسُّهَا وَلَا تَقْبِيلُهَا حَتَّى يُكَفِّرَ عَنْ ظِهَارِهِ او نه دا مس کول ( لاس اوړل) او نه دده ښکلول حلال دی.ترد ې چه د خپل ظهار کفاره ورکړی |
| --- |

حل اللغة ﴿ ① مس:يو څيز ته لاس وراوړل ② تقبيل: ښکلول ]

تشريح﴿ مسئله دا ده.که يوکس خپلې ښځې ته اووئيل. (أنت على كظهر أمي) نويه ده باندې ښځه حرامه شوه. اوس نه دې ددې سره وطی کولې شی.اونه ورله مس کول او بوسه اخستل حلال دی.ترد ې چه خاوند دخپل ظهارکفاره ورکړی.

دليله﴿ دليل آيت [وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا ۚ ذَٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ ۚ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ] دې.يعنی چه کوم خلق دخپلو ښيانونو سره ظهاراوکړی. اوبيا دخپلوکړو تلافی کول غواړی.نوددوی په ذمه يوغلام يا وينځه آزادول دی.وړاندې ددې چه ښځه خاوند په خپل مينځ کښې يوځائې شی.په دې باندې تاسوته نصيحت کولې شی.اوالله تعالی ستاسويه ټولوعملونو پوره خبر دی.(حکيم الامت)

په دې آيت کښې تصريح کړې شوې ده.که دظهارنه پس د رجوع کولواراده لری.نواول دې غلام آزاد کړی.يعنی کفاره دې ورکړی.نوبيا به جماع اودهغې متعلقات ورته حلال شی.

## دکفاره نه وړاندې د وطی کولوحکم

| فَإِنْ وَطِئَهَا قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ بيا که د کفاره ورکولو نه وړاندې ښځې سره وطی اوکړی اسْتَغْفَرَ اللَّهَ تَعَالَى نود الله تعالی نه استغفار اوکړی وَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ غَيْرُ الْكَفَّارَةِ الْأُولَى او سوا د ړومبې کفارې نه به په ده بل څه څيز واجب نه وی وَلَا يَعُودُ حَتَّى يُكَفِّرَ اود وطی اعاده به نه کوی.چه ترکومه پورې کفاره ورنکړی |
| --- |

حل اللغة ﴿ ① يعاود: بلديږی]

تشريح﴿ مسئله دا ده.که مظاهردکفاره ورکولونه وړاندې دښځې سره وطی اوکړله.نودا کس دې استغفاروائی.① اوپه ده باندې د اولنۍ کفاره نه سوا بله کفاره واجب نه ده.اواوس دې وطی نه کوی.ترد ې چه کفاره ورکړی.هم دا قول د جمهوروفقهاؤ اوامام مالك امام شافعی اوامام احمد رحمهم الله هم دی

دليله﴿ دليل دا روايت دی. (أن سلمة بن صخر البياضي قال لرسول الله ﷺ ظاهرت من امرأتي ثم أبصرت خلخالها

لهاني ليلة قمراء فواقعتها فقال رسول الله ﷺ استغفر ربك ولا تعد حتى تكفر) (۱) يعني سلمه بن صخر بياضي رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته عرض اوكړلو.چه ما د خپلې ښځې نه ظهار كړې وو.بيا مې د سپوږمۍ په شپه كښې په هغې باندې پائزيب اوليدلو.نو دهغې سره مې جماع اوكړله.نو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل.دخپل رب نه بخښنه غواړه.اودا حركت بيا مكوه.تردې چه كفاره وركړې.

**الاستدلال>** ددې حديث نه معلومه شوه.چه نبي ﷺ د استغفار حكم وركړلو.كه داستغفار نه سوا بل څه حكم واجب وو.نبي ﷺ به ورته دهغې حكم خامخا كولو.دا حديث ابن عباس رضي الله عنهما په دې الفاظو سره بيان كړې دې. (أن رجلاً ظاهر من إمرأته فوقع عليها قبل أن يكفر فقال له رسول الله ﷺ ما حملك على هذا قال رأيت خلخالها في ضوء القمر رواه أصحاب السنن الأربعة) اوداابن ماجه الفاظ دا دي. (فضحك رسول الله ﷺ وأمره أن لا يقربها حتى يكفر)

| وَالْعَوْدُ الَّذِيْ يَجِبُ بِهِ الْكَفَّارَةُ او هغه رجوع چې په هغې باندې كفاره واجبيږي هُوَ أَنْ يَعْزِمَ عَلَى وَطْئِهَا هغه دا ده چې د دې د وطى كولو قصد اوكړي. |
|---|

**تشريح>** په آيت كښې چې د كومې كفارې ذكر دې نو دا په هغه صورت كښې ده چې ظهار كونكې خپلې بي بي ته د واپس كيدو اراده لرى اوكه اراده نه لرى بلكه جدا والې غواړى نو بيا كفاره نشته.

**دليله>** د عدم وجوب كفارې دليل د الله تعالى قول دې ((ثم يعودون لما قالوا)) د دې آيت نه معلومه شوه چې د رجوع كولو په صورت كښې به كفاره لازم وي.

### د (أنت علي كبطن أمي يا كفخذها يا كفرجها) حكم

| وَإِذَا قَالَ أَنْتِ عَلَيَّ كَبَطْنِ أُمِّيْ اوكه وې ونيل. ته په ما باندې زما د مور د خيټې پشان نې أَوْ كَفَخِذِهَا يا ددې د پنډۍ پشان نې أَوْ كَفَرْجِهَا يا ددې د شرمګاه پشان نې فَهُوَ مُظَاهِرٌ نودا به صرف ظهار كونكې وى |
|---|

**حل اللغة >** ① **بطن:** خيټه ② **فخذ:** پتون،ورونړ]

**تشريح>** مسئله كه خاوند خپلې ښځې ته اوونيل. (أنت علي كظهر أمي يا كفخذ أمي يا كفرج أمي) په دې ټولو صورتونو كښې دا كس ظهاركونكې دې.

**دليله>** دليل دا دې.چه ظهار روانې.دخپلې منكوحه دهغه چا سره تشبيه وركول چه هميشه دپاره ورباندې حرامه وى.اودا معنى په هرهغه اندام كښې متحقق كيږى.كوم ته چه كتل حرام وى. او كومو اندامونوته چه كتل جائزوى.لكه لاس،پښې،ويخته،نوكونه،وغيره،دې سره تشبيه وركولوسره ظهارنه كيږى.اوامام شافعى امام مالك اوامام احمد رحمه الله فرمائيلى دى.كه خاوند خپلې ښځې ته اوونيل. (أنت علي كيد أمي يا كرجل أمي يا كعنق أمي)نودا كس ظهاركونكې دې.اوكه ددې د ويختو،نوك سره نې تشبيه وركړله.نو ددې حضراتو په نيزدا هم ظهارنه دې.

### محرمه سره د تشبيه وركولوحكم

| وَكَذَٰلِكَ إِنْ شَبَّهَهَا بِمَنْ لَا يَحِلُّ لَهُ النَّظَرُ إِلَيْهَا عَلَى التَّأْبِيْدِ مِنْ مَحَارِمِهِ مِثْلَ أُخْتِهِ أَوْ عَمَّتِهِ أَوْ أُمِّهِ مِنْ |
|---|

۵۵) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه ابوداود في الطلاق باب ۷۱۲ رقم ۲۲۲۲ والترمذى فى الطلاق باب ۱۰ رقم ۱۱۹۹ والنسائى فى الطلاق باب الظهار رقم ۳۲۳٤ وابن ماجه فى الطلاق باب ۲۶ رقم ۲۰۶۵۵)۔

الرَّضَاعَةِ اوهم دغه شان ( به ظهار وى) كه ښځې ته پخپلو محارموكښې داسې ښځې سره تشبيه وركړى.چه دې ته ( په شهوت سره) كتل هميشه حرام وى.لكه خپله خور، يا خپله ترور، يا رضاعى مور

**حل اللغة** ﴿ ① **التابيد:** هميشه دپاره ② **محارم:** جمع د محرم هغه څوك چه نكاح ورسره نه كيږى]

**تشريح**﴿ مسئله دا ده.كه خاوند دخپلې ښځې تشبيه په خپلو محرماتوكښې داسې ښځې سره وركړله.چه دده هغې ته په شهوت سره كتل هميشه دپاره حرام وى.لكه خور،ترور، وغيره، نودا كس به ظهاركونكې وى.دليل دا دې.چه دا ښځې دهميشه دپاره د محرميت د وجې د مور پشان دى.

**د (رأسك على كظهرأمي إلخ) حكم**

وَكَذٰلِكَ إِنْ قَالَ رَأْسُكِ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي اوهم دغه شان كه وې وئيل.چه ستا سر په ما باندې زما د مور د شا پشان دې أَوْ فَرْجُكِ أَوْ وَجْهُكِ أَوْ رَقَبَتُكِ أَوْ نِصْفُكِ أَوْ ثُلُثُكِ يا ستا شرمگاه يا ستا مخ يا ستا سټ يا ستا نصف ( بدن) يا ستا دريمه حصه

**حل اللغة** ﴿ ① **فرج:** د ښځې شرمگاه ② **ظهر:** شا ③ **وجه:** مخ ④ **رقبة:** څټ]

**تشريح**﴿ مسئله كه خاوند خپلې ښځې ته اوونيل. (رأسك على كظهرأمي يا فرجك على كظهرأمي يا وجهك على كظهرأمي يا رقبتك على كظهرأمي يا نصفك على كظهرأمي يا ثلثك على كظهرأمي) نوپه دې ټولوصورتونوكښې ظهارثابتيږى.

**دليله**﴿ دليل دا دې.چه په دې اندامونوكښې په هريواندام سره دټول بدن نه تعبيركولې شى.نودښځې ددې اندامونوسره تشبيه وركول داسې دى.لكه چه دښځې سره تشبيه وركول، ددې وجې دا كس ظهاركونكې دى.اوحكم اول په جزء شائع كښې ثابتيږى.اوبيا ټول بدن ته سرايت كوى.نودغه شان به دلته هم حكم اولاً وبالذات د ښځې نصف يا ثلث كښې ثابتيږى. اوبيا به ټول بدن ته سرايت كوى.

**ښځې ته د (أنت على مثل أمي يا كأمي) وئيل**

وَإِنْ قَالَ أَنْتِ عَلَيَّ مِثْلُ أُمِّي اوكه خاوند اوونيل.چه ته په ما باندې د زما د مور مثل ئې يا زما د مور پشان ئې. يُرْجَعُ إِلَى نِيَّتِهِ نو دده نيت طرف ته به رجوع كولې شى. فَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ بِهِ الْكَرَامَةَ نوكه ده اوونيل.چه ما د كرامت اراده كړې ده فَهُوَ كَمَا قَالَ نودا داسې ده.لكه چه ده اوونيل

**تشريح**﴿ صورت د مسئلې دا دې.كه يوكس خپلې ښځې ته اوونيل.چه (أنت على مثل أمي يا كأمي) نود دې كس نه به دده د نيت تپوس اوكړې شى.كه دده نيت د ظهار وى.يعنى چه څنگه نيت وى.هم هغه شان حكم به ثابت شى.هم دا قول دامام شافعي رحمه الله دې.اونيت ددې دپاره معلومولې شى.چه دا كلام دتشبيه د څو صورتونواحتمال لرى.نود يو صورت متعين كولودپاره دنيت وجود ضرورى دې.نوكه دې كس اوونيل.چه زما مراد څو دا وو.چه ته په عزت اواكرام كښې زما په نيز زما د مورپشان ئې.نودا به هم داسې وى.څنگه چه هغه وئيلې وى.يعنى دده كلام به دده په نيت باندې حمل كولې شى.اوپه دې كس به څه واجب نه وى.

**دليله**﴿ دليل دا دې.چه دتشبيه په ذريعه په كلام كښې تعظيم اوتكريم دېرزيات مروج دې.لكه څنگه چه خلق يولوئې بزرگ اووينى.نوورته وائى.تاسو زما د پلار په مرتبه كښې ئې.ددې كلام نه ددې سرى مراد دا وى.چه زما په زړه كښې ستاسو مقام د پلارپشان دې.حاصل دا چه دې سرى په خپل كلام كښې د محتمل نيت كړې دې.ددې وجې به دده نيت صحيح وى.

| وَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ الظِّهَارَ فَهُوَ ظِهَارٌ اوكه ده اووئيل.چه ما د ظهار اراده كړې ده.نودا ظهار دې |
|---|

**تشريح>** اوكه ده اووئيل.چه ما په دې كلام سره د ظهار اراده كړې وه.نودده دا كلام به هم ظهاروى.

**دليله>** دليل دا دې. چه دې كس په خپل دې (أنت على مثل أمي)سره دخپلې ښځې د خپلې ټولې مور سره تشبيه وركړله. نو هركله چه دمورديواندام سره په تشبيه وركولوباندې ظهارثابتيږى.د ټول بدن په تشبيه وركولوسره خو به په خامخا ظهار ثابتيږى.اوچونكه په (أنت على مثل أمي) كښې په اندام سره تشبيه وركول موجود دى.خوصريح نه دى.نوځكه به نيت ته محتاج وى.

| وَإِنْ قَالَ أَرَدْتُ الطَّلَاقَ اوكه ده اووئيل.چه ما د طلاق اراده كړې ده فَهُوَ طَلَاقٌ بَائِنٌ نودا طلاق بائن دې |
|---|

**تشريح>** اوكه خاونداووئيل.چه ما په دې كلام سره د طلاق اراده كړې وه.نوطلاق بائن به واقع كيږى.

**دليله>** دليل دا دې. چه دا كلام يعنى (أنت على مثل أمي)په حرمت كښې د مور سره تشبيه وركول دى.لكه چه خاوند خپلې ښځې ته (أنت على حرام) اووئيل.اودطلاق نيت ئې كړې وى.اوورانديې تيرشوى دى.چه (أنت على حرام) د كنايه د الفاظوځنى دى.اوبه لفظ د كنايه سره طلاق بائن واقع كيږى.خوبه دې شرط چه نيت ئې كړې وى.ددې وجې به په دې صورت كښې كه د طلاق نيت ئې كړې وى.نوطلاق بائن واقع كيږى.

| وَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ نِيَّةٌ اوكه دده هيڅ نيت نه وى فَلَيْسَ بِشَيْءٍ نود ابوحنيفه او ابويوسف رحمهما الله په نيز دا كلام هيڅ نه دې |
|---|

**تشريح> مسلك الشيخين>** اوكه دې كس د څه نيت نه وى كړې.نود شيخينو رحمهما الله په نيزدا كلام لغو دې.[1] امام شافعي رحمه الله هم ددې قائل دې.

**دليلهما>** دليل دا دې.چه دا كلام مجمل دې.اومتكلم خپل مراد نه دې بيان كړې.نوځكه ددې مصداق نشى متعين كولې.ځكه كه دا كلام د طلاق اوظهاراحتمال لرى.نوپه دې كښې د كرامت احتمال هم موجود دې.(چه ته زما په نيزلكه د مور معززه ئې)

**مسلك محمد>** امام محمد رحمه الله فرمائيلى دى.چه د نيت د نشتوالى په صورت كښې به دا كلام ظهاروى.اوامام شافعي امام مالك اوامام احمد رحمه الله ددې قائلين دى.

**دليله>** دليل دا دې.چه هركله د مورد يواندام سره تشبيه وركولوباندې ظهار ثابتيږى.نود ټول بدن په تشبيه وركولوسره خوبه ظهاربه طريق اولى ثابتيږى.

### ظهارصرف د ښځې نه كيږى

| وَلَا يَكُونُ الظِّهَارُ إِلَّا مِنَ الزَّوْجَةِ، حَتَّى لَوْ ظَاهَرَ مِنْ أَمَتِهِ چه ظهار ( د هيڅ ښځې سره) نه كيږى.بغير د بى بى نه.ترديې كه خپلې وينځې سره ئې ظهار اوكړو لَمْ يَكُنْ مُظَاهِرًا نو ظهاركونكې به نه وى |
|---|

**تشريح>** امام محمد رحمه الله په جامع صغيركښې فرمائيلى دى.چه ظهارصرف د ښځې نه كيږى. ددې نه

---

[1] ) القول الراجح هو قول الشيخين رحمهما الله كذا في فتح القدير(٤\٩١) والخانية (٢\٢٦٤) والدرالمختار(٢\٦٢٦) والهندية (١\٥٠٧) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٥١)_

سوا د نوروښځونه نه کیږی.تردې که یوکس دخپلې وینځې نه ظهار اوکړلو. نودا کس ظهارکونکې نه دې.

**دلائله** ① دادې.چه الله تعالی لفظ د (نسائهم) ذکرکړې دې.او(نسائهم)د خپلوښځودپاره استعمالیږی. د مملوکه وینځې دپاره نه استعمالیږی.نوپه دې سره به ظهارهم صحیح نه وی. دلته دې دا خبره یاده وی. چه د(نساء) تفسیرپه زوجاتواو بیبانوسره د آیت مقصدته د کتلوپه وجه کړې شوې دې.ګنی (نساء) د (امرأة) من غیرلفظه جمع ده.کوم چه خپلې ښځې اوپردئ ټولو ته شامل دې.(عینی شرح هدایه
②دوینځې حلت ددې د مملوکیت تابع دې.نودا به دمنکوحه سره نشی لاحق کولې. ③دریم دا چه ظهارپه زمانه دجاهلیت کښې طلاق وو.نوبیا دا د ظهارموجوده حکم یعنی وختی تحریم بالکفاره طرف ته راواړولې شو.نوچاته چه طلاق ورکولې شی.دهغې نه ظهارهم کولې شی.اود مملوکه وینځې دپاره ظهارنشته.نوځکه ددې نه ظهارهم نشی کیدې.

**ښځوته د (أنتن علی کظهرأمی) حکم**

| وَمَنْ قَالَ لِنِسَائِهِ أَنْتُنَّ عَلَيَّ كَظَهْرِ أُمِّي اوکوم کس چه خپلوښځو ته اووئیل.تاسو په ما باندې زما د مور د خیټې پشان یئ كَانَ مُظَاهِرًا مِنْ جَمَاعَتِهِنَّ جَمِيعًا نودا( سړې ) به ددې ټولو سره ظهار کونکې شی |
|---|

**تشریح**> صورت د مسئلې دا دې.چه یوکس خپلوګنړوښځو ته اووئیل(أنتن علی کظهرأمی) نودا کس په اتفاق سره د ټولو نه ظهارکونکې دې.
**دلیله**> دلیل دا دې.چه دې کس خپلوټولوښځوته ظهارمنسوب کړلو.نودټولونه به ظهار ثابتیږی.لکه څنګه چه ټولوښځو ته طلاق منسوب کړی.اواووائی. (أنتن طوالق) نوپه ټولوباندې طلاق واقع کیږی.

**دظهارکفاره**

| وَكَفَّارَةُ الظِّهَارِ عِتْقُ رَقَبَةٍ او کفاره د ظهار د یو غلام آزادول دی فَإِنْ لَمْ يَجِدْ بیا که غلام بیا نه مومی فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ نو دوه میاشتې دې پرله پسې روژې اونیسی فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ بیا که دا طاقت نه وی فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا نو شپیتو مسکینانو ته دې خوراك ورکړی |
|---|

**حل اللغة** > ① **متتابعین**: پرله پسې ]

**تشریح**> ابو الحسین قدوری رحمه الله د ظهاردکفاره ترتیب بیانوی.اوفرمائی.چه یوغلام دې آزاد کړی.که ددې قدرت نې نه وی.نوشپیته روژې دې اونیسی.اوکه ددې قدرت نې هم نه وی.نوشپیتو مسکینانوته دې خوراك ورکړی.

**دلیله**> دلیل قرآنی نص دې. [وَالَّذِينَ يُظَاهِرُونَ مِنْ نِسَائِهِمْ ثُمَّ يَعُودُونَ لِمَا قَالُوا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا ذَٰلِكُمْ تُوعَظُونَ بِهِ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿﴾ فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا فَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَإِطْعَامُ سِتِّينَ مِسْكِينًا ذَٰلِكَ لِتُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ] ترجمه دیوغلام یا وینځې آزادول دی. وړاندې د دې نه چه دواړه (ښځه خاوند) یوبل سره ملاؤ شی.په دې باندې تاسوته نصیحت کولې شی.الله تعالی ته ستاسود ټولواعمالوپوره خبردې.نوبیا چه څوك (غلام یا وینځه) نه مومی.نودده په ذمه پرله پسې (لګاتار) دوه میاشتې روژې نیول دی.وړاندې د دې نه چه دواړه ښځه او خاوند خپلوکښې ملاؤ شی.نود چا نه چه دا هم نه کیږی.نودده په ذمه شپیتو مسکینانوته خوراك ورکول دی.دا حکم ددې

دپاره (بیان کړې شو)چه په الله اودهغه په رسول باندې ایمان راوړئ.(مرشدتهانوی) دا نص مفید د ترتیب دې.ځکه چه الله تعالی د فاء دکلمې سره بیان کړې دې.اوفاء د ترتیب دپاره راځي.دتخییردپاره نه راځي.

### دظهارد کفاره ادا کولووخت

| وَكُلُّ ذٰلِكَ قَبْلَ الْمَسِيسِ او هریو امر ددې سره د وطی کولو نه وړاندې دې |
|---|

**حل اللغة** ⟨ ① **مسيس:** مس کول،ګوتې وراوړل ]

**تشريح**⟨ فرمائي.چه دظهار کفاره ادا کول که په اعتاق وی.اوکه په صیام وی.اوکه په اطعام وی.هریود وطی ادا کولونه وړاندې ادا کول ضروری دی.

**دليله**⟨ ځکه چه په اعتاق او صیام کښې خوصراحةً نص (مِنْ قَبْلِ اَنْ يَّتَمَآسَّا) موجوددې.اوپاتې شو اطعام نوددې هم قبل الوطی کیدل ضروری دی.ځکه چه کفاره ظهارحرمت ختمونکې ده.نوځکه ضروری ده.چه کفاره په وطی باندې مقدم وی.چه وطی حلاله شی.

### د غلام آزادولو تفصيل

| وَيُجْزِي فِي ذٰلِكَ عِتْقُ الرَّقَبَةِ الْمُسْلِمَةِ وَالْكَافِرَةِ وَالذَّكَرِ وَالْاُنْثٰى وَالصَّغِيْرِ وَالْكَبِيْرِ او په آزادولو کښې کافی ده، د رقبه آزادول.( که) کافر وی.او که مسلمان وی.نر وی اوکه ماده وی.او نابالغ وی. اوکه بالغ |
|---|

**تشريح**⟨ ابو الحسین قدوری رحمه الله فرمائي.چه په کفاره ظهارکښې مطلقاً رقبه آزادول کافی دی.که کافروی اوکه مسلمان،که نروی اوکه ښځه که نابالغ وی اوکه بالغ.([1])

**دليله**⟨ دلیل دادې.چه د رقبه اطلاق په دې ټولوباندې کیږی.په څه صفت باندې مقید نه دې.ځکه چه رقبه وائی.هغه ذات ته چه مملوك وی.اومن کل وجه مرقوق وی

### هغه غلام چه آزادول ئې کافی نه وی

| وَلَا يُجْزِئُ الْعَمْيَاءُ او( داسې رقبه آزادول) کافی نه دی.چه ړوند وی وَلَا مَقْطُوْعَةُ الْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ یا دده دواړه لاسونه یا دواړه خپې کټ شوی وی |
|---|

**حل اللغة** ⟨ ① **العمياء:** ړنده

**تشريح**⟨ په کفاره د ظهارکښې نابینا یا وینځه آزادول جائز نه دی.اونه دهغه آزادول صحیح دی.چه دواړه لاسونه ئې کټ شوی وی.یا ئې دواړه پښې کټ شوی وی.

صاحب دعنایه رحمه الله یوه ضابطه بیان کړې ده.هغه دا که یوکس داسې رقبه آزاده کړی.چه کامل الرق وی.اود آزادونکی په ملك کښې وی.اودا آزادول د کفاره د نیت سره متصل وی.اوددې جنس منفعت چه په هغې باندې هغه قائمه وی.هغه باقی وی.اودا آزادول بغیربدله وی.نودا آزادول جائزدی.نوکه داسې نه وی.نو ناجائز ده.نود مدبر آزادول جائز نه دې،ځکه چه دې کامل الرق نه دې.

اوکه د کفاره د نیت نه بغیرئې آزاد کړی.یا روستو نیت اوکړی.نوپه دې صورت کښې هم جائز نه ده.اوکه داسې رقبه آزاده کړی.چه دشغې جنس منفعت فوت شوې وی.مثلاً دده دواړه لاسونه یا دواړه پښې کټ شوی وی.یا نابینا وی.نو د داسې رقبه آزادول جائز نه دې.

---

[1] ) امام شافعی رحمه الله فرمائي.چه په کفاره کښې د رقبه کافره آزادول جائزنه دی.اوهم دا قول دامام مالك اوامام احمد رحمه الله دې.

| وَيَجُوزُ الْأَصَمُّ او کونړ غلام آزادول جائز دی |
|---|

**حل اللغة** ① **الاصم**: کونړ ا

**تشریح** دکونړ غلام او وینځې په باره کښې علامه مرغینانی رحمه الله په هدایه کښې فرمائی.چه د قیاس تقاضا خوداده.چه ددې آزادول جائزنشی.اوهم دا نادر روایت دې.ځکه چه د کونړ ته هم جنس منفعت فوت شوې دې.خواستحساناً د دې آزادول جائز ګرځولې شوی دی.ځکه چه اصل منفعت باقی دې.ځکه که چغه ورته اووهلی شی.نوهغه اوریدې شی.اوکه په داسې حالت کښې وی.چه بیخی اوریدل نشی کولې.نودې پیدائش کونړ دې.اوګونګا هم دې.نود داسې غلام آزادول کافی نه دی.
پاتې شوه دا خبره چه جنس منفعت فوت شی.نوپه کفاره کښې ددې آزادول ولې مانع دی.نوددې دلیل دا دې.چه د جنس منفعت فوت کیدو په وجه دا کس دهلاك شوی په مرتبه کښې شو.ځکه چه دانسان قیام دده د منافعو سره وابسته وی.

| وَمَقْطُوعُ إِحْدَى الْيَدَيْنِ وَإِحْدَى الرِّجْلَيْنِ مِنْ خِلَافٍ اوهغه غلام چې یولاس ئې کرې وی یا یوه پښه ئې کټ شوې وې ادل بدل |
|---|

**تشریح** نفس مسئله آسانه ده.

**دلیله** ځکه چې دده په منفعت کښې خلل نشته.ځکه چه جنس منفعت زائل نشو.بلکه مختل شوې دې.په خلاف ددې چه کله یو لاس او یوه خپه دواړه د یوطرف نه کټ شوی وی.نو( دا) جائز نه دی.ځکه چه د تللو جنس منفعت فوت شوې دې.ځکه چه په دې باندې تلل متعذردی

## دمقطوع الابهامین حکم

| وَلَا يَجُوزُ مَقْطُوعُ إِبْهَامَيِ الْيَدَيْنِ او جائز نه دی.( آزادول د هغه کس) چه د دواړه لاسونو دواړه متې ګوتې ئې کټ وی |
|---|

**حل اللغة** ① **ابهامی**: تثنیه د **ابهام**: قته ګوته

**تشریح** مسئله،که دیوغلام د دواړو لاسونودواړه متې ګوتې کټ شوې وی.نوپه کفاره دظهارکښې ددې آزادول جائز نه دی.

**دلیله** دلیل دا دې.چه ددواړو لاسونودواړه مته ګوتې کټ کیدو سره دده د نیولوطاقت زائله شو.نود نیولود طاقت ختمیدو په وجه جنس منفعت فوت شو.اووراندې تیرشوی دی.چه د جنس منفعت فوت کیدل د کفاره دپاره مانع دې.ددې وجې ددې غلام یا وینځې آزادول جائز نه دی.

| وَلَا يَجُوزُ الْمَجْنُونُ الَّذِي لَا يَعْقِلُ او دغه شان داسې مجنون رقبه ( آزادول) جائز نه دی.چه دده عقل نه وی |
|---|

**تشریح** اود لیونی غلام یا وینځې آزادول چه عقل په کښې نه وی جائز نه دی.

**دلیله** دلیل دا دې.چه دانداموئونه نفع اخستل د عقل نه بغیرنه کیږی.نودا هم فائت المنفعت شو.

| وَلَا يُجْزِءُ عِتْقُ الْمُدَبَّرِ وَأُمِّ الْوَلَدِ او مدبر او ام ولد آزادول کافی نه دی |
|---|

**تشریح** اومدبراوام ولده په کفاره کښې آزادول کافی نه دی.

**دلیله** دلیل دا دې.چه په قرآن کریم کښې تحریررقبة دی.اورقبه مطلق دې.اومطلق چه کله ذکرشی.نودهغې نه فرد کامل مراد وی.اومدبراوام ولد رقبه کامله نه ده.نوځکه مدبر د تدبیر په وجه مستحق د حریت دې.اوام ولد داستیلاد په وجه د آزادئ مستحق ده.نومعلومه شوه.چه په دې

دوارو کنبې د رقيت معنی ناقص ده.

### په کفاره ظهار کښې د مکاتب آزادولو حکم

| وَالْمُكَاتَبُ الَّذِيْ أَدّٰى بَعْضَ الْمَالِ او هغه مکاتب چه ده څه مال ادا کړې وی |
|---|

**تشریح**> مصنف رحمه الله فرمائی.چه هغه مکاتب چه د کتابت څه بدل ئې ادا کړې وی.په کفاره دظهار کښې دهغه آزادول هم کافی نه دی.

**دليله**> دليل دا دې.چه دده آزادول په عوض دی.اوعوض دقربت او عبادت معنی باطلوی.① هم دا ظاهرروايت دې.اوامام زفر،شافعی مالك او په يوروايت کښې امام احمد رحمه الله هم ددې قائلين دی

### دبدل کتابت نه ادا کونکی مکاتب آزادولو حکم

| فَإِنْ أَعْتَقَ مُكَاتَبًا لَمْ يُؤَدِّ شَيْئًا اوکه داسې مکاتب ئې آزاد کړو.چه ده هيڅ مال کتابت ادا کړې نه وو جَازَ نوجائز دې |
|---|

**تشریح**> مسئله دا ده.که په کفاره د ظهارکښې مظاهرداسې مکاتب آزاد کړلو.چه هغه تراوسه پورې په بدل کتابت کښې څه ادا کړی نه دی.نو دا جائز دی.اودغه شان دامام محمد رحمه الله نه هم دا يوروايت دې ([1])

**دليله**> دليل دا دې.چه مکاتب من کل وجه رقيق اوغلام دې.مونږ وړاندې بيان کړی دی.چه کتابت د فسخ احتمال لری.اومکاتب ددې وجې هم رقيق دې.چه نبی ﷺ فرمائيلی دی. (المکاتب عبد ما بقی عليه درهم)بهرحال مکاتب من کل وجه رقيق دې.نوپه کفاره دظهار کښې به دده آزادول هم صحيح وی.ددې په خلاف که مکاتب په بدل کتابت کښې څه هم ادا کړل.نوبه ده سره د آزاديدو نه وړاندې کفاره نه ادا کيږی.څکه چه کفاره عبادت دې.اوعبادت خالص دالله تعالی دپاره وی.اوهرکله چه مکاتب په بدل کتابت کښې څه ادا کړل.نودا عبادت خالص دالله تعالی دپاره پاتې نشو.نوځکه د داسې مکاتب آزادول په کفاره د ظهارکښې نه کافی کيږی.

### پلار يا ځوئې په اخستلو کښې دکفاره ظهارادا کولونيت کول

| فَإِنِ اشْتَرٰى أَبَاهُ أَوِ ابْنَهُ يَنْوِيْ بِالشِّرَاءِ الْكَفَّارَةَ اوکه خپل پلار يا ځوئې ئې واخستلو.په داسې حال کښې چه په اخستلو سره ئې دکفاره نيت کړې دې جَازَ عَنْهَا نودا کفارې د ظهار ( طرف ) نه جائز دې |
|---|

**تشریح**> مسئله دا ده.که په يوکس باندې کفاره ظهاروی.اوده خپل پلاريا ځوئې واخستل. اودهغوی د آزادولو په وخت کښې د کفاره نيت اوکړی.نوکفاره ادا کيږی. ([2])

### دمالداريرې نصف مشترك غلام آزادول

| وَإِنْ أَعْتَقَ نِصْفَ عَبْدٍ مُشْتَرَكٍ عَنِ الْكَفَّارَةِ نوکه د مشترك غلام نيم آزاد کړو د کفاره نه حالانکه دا |
|---|

---

[1] امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د داسې مکاتب په کفاره ظهار کښې ادا کول کافی نه دی. اوهم دا قول دامام زفرامام مالك دې.اودامام احمد رحمه الله نه هم يو روايت دا دې.

[2] **مسلك الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه کفاره ظهارنه ادا کيږی.هم دا قول دامام شافعی، امام مالك امام احمد اودامام زفر رحمه الله هم دې.اوکه په کفاره د يمين کښې دا خبره راشی. نوپه هغې کښې هم دا اختلاف دې.کوم چه به انشاء الله په کتاب الايمان کښې بيانوو.

کس مالدار دي وَضَمِنَ قِيمَةَ بَاقِيهِ اود باقي غلام د قيمت ضامن شو فَأَعتقه نو هغه آزاد کړو لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ(١)نود ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز نه دی

**تشريح>** صورت د مسئلې دا دې.چه په کوم سړي باندې کفاره ظهارواجب وه.اوده په کفاره کښې داسې غلام نصف آزاد کړلو.کوم چه دده او دده د ملګري په مينځ کښې مشترك وو.حالانکه دا آزادونکې مالدار وی.اودې دخپل شريك دپاره د باقي غلام د قيمت ضامن شو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزيه دې سره کفاره ظهارنه ادا کيږي.

**دليله>** اود امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې. چه دده د شريك حصه دده په ملك باندې ناقص پاتې شوه.بيا راتاؤ شو.د ضمانت په ذريعه د آزادونکې په ملك کښې راغې.او داسې کيدل د کفارهٔ ظهار نه مانع دي.

وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ اود صاحبينو رحمهما الله په نيز جائز دی.يُجْزِيهِ إِنْ كَانَ الْمُعْتِقُ مُوسِرًا جائز کيږي خو په دې شرط چې آزادونکې مالدار وی وَإِنْ كَانَ مُعْسِرًا لَمْ يَجُزْ اوکه غريب وی نو جائز نه دي

**تشريح> مسلك الصاحبين>** دصاحبينو رحمهما الله په نيز ادا کيږي.اوکه آزادونکې غريب وو.نو په اتفاق سره کفاره نه ادا کيږي.

**دليلهما>** د دليل حاصل دا دې.چه دنيم غلام آزادولو نه چه ده خپل شريك ته دباقي نيم ضمان ورکړلو.نودې د هغه دحصهٔ هم مالك شو.نوداکس په کفاره دظهارکښې د پوره غلام آزادونکې شو.په داسې حال کښې چه دې د ټول غلام مالك وو.اودټول غلام په آزادولوسره کفاره ادا کيږي.نويه دې صورت کښې هم کفاره ادا شوه.

دلته دا خبره ياد ساتئ چه د صاحبينو رحمهما الله په نيز اعتاق تجزی نه قبلوی. امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزاعتاق تجزی قبلوی.يعنی که غلام لږ لږ آزاد کړی.نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزچه خومره ئې آزاد کړې وی.هم هغه هومره آزاديږی.خوصاحبينو رحمهما الله په نيز که دغلام نيمه حصه يا کم يا زيات آزاد کړی.نو ټول غلام آزاديږی. ځکه چه د دوی په نيزد بعضې حصې په آزادولو سره ټول غلام آزاديږی.

## خپله نيمه حصه په کفاره کښې آزادول اوبيا نورآزادول

وَإِنْ أَعْتَقَ نِصْفَ عَبْدِهِ عَنْ كَفَّارَتِهِ اوکه خپل نيم غلام ئې آزاد کړو.په خپله کفاره کښې ثُمَّ أَعْتَقَ بَاقِيهِ عَنْهَا جَازَ بيا ئې باقي هم آزادکړو.نوجائز دی

**تشريح>** مسئله دا ده.که يوکس خپل نيم غلام په کفاره کښې آزاد کړلو.اوبيا ئې باقي نيم هم آزاد کړلو.نودا جائزدی.يعنی کفارهادا کيږی.

دا جوازد استحسان دوجې دې.ګنی د قياس مطابق دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدا نه جائز کيږی.لکه ځنګه چه په عبد مشترك کښې دعدم جواز حکم دې.ځکه چه په نصف آخرکښې نقصان راغلو.

**وجه الاستحسان>** وجه د استحسان دا ده.چه دې کس دوه ځله کلام ارکړلو.اوغلام ئې آزاد کړلو.اوکوم نقصان چه په نصف آخرکښې واقع شوې دې.نوهغه دده په ملك کښې د پاتې کيدوباوجود په کفاره کښې د ادا کولوپه وجه راغلې دې.اوداسې قسم نقصان د کفاره ادا کولودپاره مانع نه وی.لکه ځنګه چه يوکس د قربانۍ دپاره چيلۍ په زمکه پرخولې وی. او د چيلۍ په سترګه کښې چاړه لاړه شی.نودا

---

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٤\١٠٠) والكفاية (٤\١٠١) والدرالمختار (١٢\٦٣٠) والبحرالرائق (٤\١٠٤) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٥٥)-

نقصان د قربانۍ نه مانع نه دی.

**مسلک الصاحبین** صاحبینو رحمهما الله په نيز چونکه آزادول تجزی نه قبلوی.نوچه هرکله نيم غلام آزاد شو.هم په هغه وخت کښې پوره غلام آزاد شو.نودصاحبينو رحمهما الله په نيزدا غلام په دوه ځله کلام کولوسره آزاد شوې نه دی.بلکه په يوکلام سره آزاد شوې دی.

## خپل نيم غلام آزادولو نه پس جماع کول اوبيا باقى غلام آزادول

| |
|---|
| وَإِنْ أَعْتَقَ نِصْفَ عَبْدِهِ عَنْ كَفَّارَتِهِ اوکه خپل نيم غلام ئې د خپلې کفارې نه آزادکړو ثُمَّ جَامَعَ الَّتِي ظَاهَرَ مِنْهَا بيا دې ښځې سره جماع اوکړله.د کومې سره ئې چه ظهار کړې وو ثُمَّ أَعْتَقَ بَاقِيَه بياتې باقي غلام آزاد کړو لَمْ يَجُزْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نود ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز نه دی |

**تشريح** که يوکس خپل نصف غلام په کفاره کښې آزاد کړلو.اوبيا ئې هغه ښځې سره جماع اوکړله.د کومې نه چه ئې ظهارکړې وو.اوبيا ئې باقي نصف آزاد کړلو.① نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزدا آزادول کافي نه دی.

**دليله** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه ددوی په نيزآزادی تقسيم کيدې شی.نودنصف آزادول دټول آزادول نه دی.اود اعتاق شرط دا دې.چه دغلام آزادول دجماع نه مخکښې وی.ځکه چه دالله تعالی ارشاد دې. ﴿فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا﴾ اودلته نيم آزادول دجماع نه پس دی. ددې وجې آزادول د ټول غلام آزادی ده.(اودلته د ټول غلام آزادی موجود شوې نه ده نوجائزنه ده)

**مسلک الصاحبين** دصاحبينو رحمهما الله په نيز جائزدی.ځکه چه غلام آزادی دجماع نه وړاندې موجود شوې ده.نوځکه جائزده.

## په غلام آزادولوباندې دعدم قدرت په صورت کښې روژې نيول

| |
|---|
| فَإِنْ لَمْ يَجِدِ الْمُظَاهِرُ مَا يَعْتِقُ اوکه ظهارکونکی داسې څيز بيا نه موندو.چه آزاد ئې کړی فَكَفَّارَتُهُ صَوْمُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ لَيْسَ فِيهِمَا شَهْرُ رَمَضَانَ وَلَا يَوْمُ الْفِطْرِ وَلَا يَوْمُ النَّحْرِ وَلَا أَيَّامُ التَّشْرِيقِ نو ددې کفاره پرله پسې دوه مياشتې روژې دی.چه په دې کښې د رمضان مياشت نه وی.اود وړوکی اختر،او غټ اختر ورځ او تشريق نه وی |

**حل اللغة** ① **متتابعين:** پرله پسې

**تشريح** مسئله که دظهارکونکی په غلام آزادولو قدرت نه وی.يا داچه غلام نه وی.يا دا چه غلام وی.خودده دآزادولو وس نه وی.نوپه داسې صورت کښې به دوه مياشتې پرله پسې روژې نيسي.خوپه دې شرط چه ددې دوو مياشتو په مينځ کښې د رمضان مياشت نه وی.اود وړوکی اختراود لوی اختر اودغه شان ددې (لوی اختر) نه پس درې ورځې دتشريق نه وی.دوه مياشتې روژې که د مياشت په حساب سره ئې نيسي. نوپه هرصورت کښې جائزدی.که مياشت د ديرشتو ورځو وی.اوکه د يوکم ديرشو.اوکه د مياشت د مينځ نه روژه نيول شروع کړی.نوشپيته روژې به پوره کوی.اوکه د ۵۹ روژو نيولونه پس ئې افطار اوکړلو. نوپه ده به د سرنه دوباره روژې نيول ضروری وی.

**دليله** تتابع يعنی پرله پسې روژې نيول خو ددې وجې ضروری دی.چه په قرآن پاک کښې ددې صراحت موجود دې.ارشاد دې.[فَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ مِنْ قَبْلِ أَنْ يَتَمَاسَّا] اورمضان نه کيدل ددې وجې ضروری ده. که په رمضان کښې د ظهار روژې موجود شی. نودا کلکه څيزباطلوی.کوم چه الله تعالی فرض کړې دې.ځکه چه په رمضان کښې کومه روژه هم اونيولې شی.هغه هم د رمضان نه شمنيري.د

بل واجب نه نه حسابيږي.
اودا ځکه ضروری دی.چه دظهارروژې په‌منهی عنها ورځوکښې نه وی.چه په دې پنځو ورځو کښې د روژې نيولو نه نبی ﷺ منع کړې ده.دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث دې. (أن رسول الله ﷺ قال أن لا تصوموا هذه الأيام فإنها أيام أكل وشرب وبعال) يعنی رسول الله ﷺ فرمائيلی دی.چه تاسوپه دې ورځوکښې کښې روژې مه نيسئ.ځکه چه دا د خوراك څكاك او جماع ورځې دی. (طبرانی ازعينی شرح هدايه) نوپه دې ورځوکښې د روژو نيول د ظهارنائب نه دی.کومې چه کامل واجب شوی دی.

**د شپې يا د ورځې په جماع کولودتسلسل د ختميدوحکم**

| |
|---|
| فَإِنْ جَامَعَ الَّتِي ظَاهَرَ مِنْهَا فِي خِلَالِ الشَّهْرَيْنِ لَيْلًا عَامِدًا أَوْ نَهَارًا نَاسِيًا بيا كه په دې دوه مياشتو کښې دننه ئې دې ښځې سره وطی اوکړله.د کومې سره ئې چه ظهار کړې وو.( که) په شپه کښې په قصد سره وی.اوکه د ورځې په هيره وی اِسْتَأْنَفَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ [1] نو د امام ابوحنيفه او امام محمد رحمهما الله په نيزيه دسره ( دوباره)روژه نيسی |

**حل اللغة** ① **خلال**: په مينځ کښې ② **استانف**: د سرنه شروع کول]

**تشريح**> صورت د مسئلې دا دې.که د روژو په ذريعه کفاره ظهاراداكونكی که په دوومياشتوکښې دننه د هغه ښځې سره وطی اوکړله.دکومې نه چه ئې ظهارکړې وی.برابره ده که دا وطی د شپې په قصد سره وی.اوکه د ورځې په هيره سره وی.① نودطرفينو رحمهما الله په نيزيه د سر نه روژې نيسی.امام مالك اوامام احمد رحمهما الله هم ددې قائلين دی.
متن کښې ئې جماع دهغه ښځې سره مقيد کړې ده.دچانه چه ئې ظهارکړې وی.ځکه که د بلې ښځې سره ئې جماع کړې وی.نوکه دا جماع ماتونکې د روژې وی.مثلاً د ورځې په قصد باندې وطی اوکړی.نود تتابع د منقطع کيدو به په اتفاق سره د سرنه روژې نيول واجب دی.اوکه مفسد د روژې نه وی.مثلاً دورځې په هيره سره جماع اوکړی.يا د شپې اتفاقاً وطی اوکړی.نوپه دې صورت کښې د تتابع د نه ماتيدو په وجه په اتفاق سره دسرنه شروع کول نشته.اودغه شان دکومې ښځې نه چه ئې ظهارکړې وی.که په ورځ کښې ئې په قصد سره جماع اوکړله.نوپه اتفاق سره دسرنه شروع کول لازم دی.نومعلومه شوه.چه اختلاف په هغه وطی کښې دې.چه مفسد د روژې نه وی.
**مسلک ابي يوسف**> امام ابويوسف رحمه الله فرمائی.چه د سرنه د روژو نيولوضرورت نشته.امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دې.
**دليله**> دليل دا دې.چه د ورځې په هيره اوپه شپه کښې په قصد سره جماع کول مفسد د روژې نه دی.نودا جماع د روژو دتتابع نه مانع نه ده.نودظهار په روژو کښې چه کوم د پرله پسې والی شرط وو.هغه موجود شو.نوځکه په دې صورت کښې استيناف لازم نه دې.

| |
|---|
| وَإِنْ أَفْطَرَ مِنْهَا يَوْمًا بِعُذْرٍ أَوْ بِغَيْرِ عُذْرٍ اسْتَأْنَفَ اوکه ده په دې دوو مياشتوکښې يوه ورځ افطار اوکړلو ، که په عذرسره وی اوکه بغيرعذر نودسرنه به ئې روژې نيسی |

**تشريح**> اوکه ده په دې دوو مياشتوکښې د يوې روژې افطار اوکړلو.که په عذرسره وی.اوکه بغيرعذره وی.نودا کس به د سرنه دوباره روژې نيسی.

[1] ) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في مجمع الأنهر (١\٤٦٠) والبحرالرائق (٤\١٠٦) وردالمحتار (٢\٦٣١) والهندية (١\٥١٢) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٥٩)۔

**دليل>** ځکه چه تتابع اوپرله پسې والې فوت شو.حالانکه دا کس په پرله پسې روژې نيولوباندې قادر دي.

**ملحوظة>** ياد ساتئ:که دې کس پرله پسې دوه مياشتې روژې نيولې.اوبيا په آخرى ورځ په غلام آزادولوقادر شو. نوکه د نمر پريوتو نه وړاندې وړاندې قادر شو.په ده دغلام آزادول واجب شو.اوروژې ئې نفل شوې.ځکه چه دا کس په بدل باندې د مقصود ادا کولونه وړاندې په اصل باندې قادر شو.اوکه د نمر پريوتونه پس قادر شو.نوهم روژې به په کفاره کښې شمارلې شي.غلام آزادول به لازم نه وي.

## دغلام په کفاره کښې صرف د روژو نيول

| وَاِنْ ظَاهَرَ الْعَبْدُ اوکه غلام خپلې ښځې سره ظهار اوکړو لَمْ يَجْزِهٖ فِي الْكَفَّارَةِ اِلَّا الصَّوْمُ نو( ده له) په کفاره کښې ( هيڅ څيز) جائز نه دي.سوا د روژې نيولو نه |
|---|

**تشريح>** که غلام دخپلې ښځې نه ظهار اوکړلو.نوده ده کفاره به ضرف په روژو سره ادا کيږي.

**دليل>** ځکه چه دغلام په ملك کښې څه څيز نه وي.ځکه دې په مال سره د کفارې ادا کولواهل نه دي.

| وَاِنْ اَعْتَقَ الْمَوْلٰى عنه اَوْاَطْعَمَ عَنْهُ اوکه د غلام د طرفه دده مولا رقبه آزاده کړله.يا ئې دده د طرفه خوراك ورکړو لَمْ يَجْزِهٖ نو بيا هم کافي نه ده |
|---|

**تشريح>** اوکه دده مولى دده د طرفه غلام آزاد کړلو.يا ئې روټئ ورکړله.نوهم به کافي نه وي.

**دليل>** ځکه چه دا غلام دمالك کيدو اهل نه دي. نو دمالك په مالك جوړولوسره به مالك نه جوړيږي.

**ملحوظة>** دا خبره دې ښکاره وي.که مولى خپل غلام د کفاراتود روژو نيولونه منع کوي. نودې ئې منع کولې شي. سوا د ظهارد کفاره نه ځکه چه د ظهاردکفارې سره د ښځې حق متعلق دي.(فتح القدير)

## د روژو نيولونه عاجزکيدل

| وَاِنْ لَمْ يَسْتَطِعِ الْمُظَاهِرُ الصِّيَامَ اوکه ظهارکونکى ته د روژې نيولو طاقت نه وي اَطْعَمَ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا نو شپيتو مسکينانو ته دې خوراك ورکړي |
|---|

**تشريح>** مسئله دا ده.که ظهارکونکې د روژې طاقت نه لرى.نوده ته پکار دى.چه شپيتو مسکينانوته روټئ ورکړي.

**دليله>** دليل دالله تعالى قول دي.﴿ فَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ فَاِطْعَامُ سِتِّيْنَ مِسْكِيْنًا ﴾

| وَيُطْعِمُ كُلَّ مِسْكِيْنٍ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ اَوْصَاعًا مِنْ تَمْرٍ اَوْشَعِيْرٍ اَوْقِيْمَةَ ذٰلِكَ اوهر مسکين ته نيم صاع د غنمو يا يو صاع د کجورو يا اوربشويا ددې قيمت ورکړي |
|---|

**حل اللغة >** ① **نصف:** نيم ② **تمر:** قجوره ③ **بر:** غنم ④ **شعير:** اوربشې‌ا

**تشريح>** اود روټئ ورکولوصورت دا دي.چه هرمسکين ته دې نيم صاع غنم،يا اوړه يا ستوان يا يوصاع قجورې يا جوار،اويا ددې قيمت ورکړي.خودا يادلرئ.چه په قيمت کښې صرف هغه څيزونه ورکولې شي.کوم چه منصوص عليه نه وي. مثلاً يوکلو وريژې دنيم صاع غنمود قيمت سره برابردي.نودنيم صاع غنموپه قيمت کښې يوکلووريژې ورکولې شي.

اوپه کوموڅيزونوچه نص وارد شوې دي.دهغې قيمت ادا کول جائز نه دی.چه دهغې مقدار په قيمت کښې کم وي.اګرچه په مقدارکښې زيات يا دهغې برابر ولې نه وي.مثلاً يوکس نيم صاع ښه قجورې ورکړي.حالانکه دا قجورې د نصف صاع غنمود قيمت برابروي.يا زياتې وي.نوجائزنه دی.ځکه چه نص په يوصاع غنمو باندې وارد شوې دي.

دغه شان که دنصف صاع غنمونه نې کم ورکړل.په داسې حال کښې چه یوصاع قجورې یا یوصاع جوارو ته رسیدې شي.نودا هم جائزنه ده.ځکه چه په نص کښې دنصف صاع غنمو صراحت موجود دې.نوضابطه دا شوه.چه د طعام یومنصوص علیه جنس دبل منصوص علیه جنس بدل واقع کیدې نشي.اګرچه په قیمت کښې زیات ولې نه وی. (الکفایه،عنایه)

**دلائله** ① خوله بنت ثعلبه ﷺ فرمائی.چه زه د اوس بن صامت په نکاح کښې ووم.اوهغه دخپل بوډاتوپ په وجه سخت مزاجه شوې وو.نوما هغه سره په داسې کارکښې بحث اوکړلو.دکوم چه هغه ماته حکم کړې وو.نوهغه ماته (أنت علی کظهرأمی) اوونیل.اوبیا اووتل،په خپلوخپلوانو کښې کیناستلو.بیا واپس راغلو.ما سره کیناستلو.اوزما د راضی کولوکوشش نې کولو.ما ورته اوونیل.زما دې په هغه ذات قسم وی.چه دخوله روح دچا په قبضه کښې دې.ماته ګوتې مه راوړه.اوچه څه په خوله راتله.هغه مې ورته اوونیل.تردې چه په دې باره کښې الله اودهغه پیغمبر ﷺ څه فیصله اوکړی.نوهغه په ما باندې راپریوتلو.نوما هغه داسې لرې کړلو.لکه څنګه چه بوډا سړې لرې کولې شي.اوزه اووتم خپلوګاوند یانوکره لاړم.اوبیا ماجامې واغوستې.رسول الله ﷺ ته ورغلم.اودا پوره واقعه مې ورته بیان کړه.نبی ﷺ راته اوفرمائیل.ستا خاوند دې.اوستاد تره خونې دې.غریب بوډا شوې دې.ته هغه سره ښه سلوك کوه.نوما دهغه د سخت مزاجئ ګیله الله تعالی ته اوکړله.نوپه رسول الله ﷺ باندې هغه حالت شروع شو.کوم چه به په هغوی باندې د وحی په حالت کښې شروع کیدلو.(یعنی په نبی ﷺ باندې وحی شروع شوه) کله چه ترې دغه حالت ختم شو.نو وې فرمائیل.الله تعالی ستا اوستا د خاوند په باره کښې یوتفصیلی بیان راولیږلو.اوبیا نبی ﷺ دا آیاتونه بیان کړل. ﴿قَدْ سَمِعَ اللهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا وَتَشْتَكِيٓ إِلَى اللهِ﴾

بیا نبی ﷺ اوفرمائیل.هغه ته د یوې رقبه آزادولوحکم اوکړه.ماورته عرض اوکړلوهغه د دې طاقت نه لری.نوهغوی راته اوفرمائیل.چه ښه دوه میاشتې دې پرلـه پسې روژې اونیسی. ماورته عرض اوکړلو.چه هغه ددې طاقت هم نه لری.بیا نبی ﷺ اوفرمائیل.ښه هغه ته حکم اوکړله.چه شپیتو مسکینانوته روټئ ورکړی.ما ورته عرض اوکړلو.یارسول الله ﷺ دهغه سره څه هم نشته.(چه دا ئې واوریدلو) نونبی ﷺ اوفرمائیل.زه به هغه سره د یو عرق مدد اوکړم. ماورته اوونیل.زه به ورسره هم د یوعرق مدد اوکړم.نبی ﷺ اوفرمائیل ورکړه ورته،اودهغې د خیرات کولوحکم ئې ورکړلو.(عنایه) (۱)

② دویم عقلی دلیل دا دې.چه معتبردهرمسکین د یوې ورځې حاجت پوره کول دی.نودا په مقدارکښې په صدقة الفطرباندې قیاس کولې شي.خود لږ فرق سره،هغه دا چه په ظهار کښې عدد اومقدار دواړه معتبردی.یعنی مسکین ته به دنصف صاع نه کم نشی ورکولې.اونه به ورته زیات ورکولې شي.ځکه چه دشپیتوعدد ضروری دې.اوپه صدقة الفطر کښې مقدارمعتبردې عدد نه دې.نویوفطرانه څومسکینانوته اوڅوفطرانه یومسکین ته ورکولې شي.

**دوه وخته مسکینانوله روټئ ورکولوسره دکفارې ادا کیدل**

| **فَإِنْ غَدَّاهُمْ** نوکه ( ظهارکونکی) شپیتو مسکینانو ته په صباکښې خوراك ورکړو **وَعَشَّاهُمْ** بیا ئې |
|---|

(۱) قال الزیلعی رحمه الله هکذا وقع فی الهدایة وصوابه وسلمة بن صخر والحدیث غریب وعندالطبرانی فی معجمه فی حدیث اوس بن الصامت ﷺ قال فاطعم ستین مسکیناً لاثنین صاعاً قال لا املك ذلك إلا ان تعیننی فاعانه النبی بخمسة عشرصاعا واعانه الناس حتی بلغ (نصب الرایة ۳۵۸\۳)۔

د مابنام خوراك وركړو جَازَقَلِيلًا كَانَ مَا أَكَلُوا أَوْكَثِيرًا نو جائز دي.كه دوى كم خوړلي وى.او كه زيات ئې خوړلي وى

**تشريح**> مسئله دا ده.كه ظهاركونكى شپېتومسكينانوته دوه وخته په مړه خېټه روټئ وركړله.نوكفاره دظهاربه ادا شي.برابره ده.كه هغوى كم خوراك كړي وى.اوكه زيات،اوكه دوه ورځې ئې يووخت شپېتومسكينانوته روټئ وركړله.نوبه دې باندې كفاره نه ادا كيږى.ځكه چه معتبرد يوې ورځې ضرورت پوره كول دى.اودا د صبا اومابنام په روټئ وركولوسره حاصليږى.
دامام ابوحنيفهؒ نه دا هم نقل دى.كه شپېتو مسكينانوته ئې د صبا روټئ وركړله.اونوروشپېتو ته ئې مابنام روټئ وركړله.نوبه دې باندې هم كفاره نه ادا كيږى. ([1])

**يومسكين ته شپېته ورځې روټئ وركول**

وَإِنْ أَطْعَمَ مِسْكِينًا وَاحِدًا سِتِّينَ يَوْمًا اوكه ده يو مسكين ته شپېتو ورځو پورې خوراك وركړو أَجْزَأَهُ نودا به كافي وى وَإِنْ أَعْطَاهُ فِي يَوْمٍ وَاحِدٍ لَمْ تُجْزِهِ إِلَّا عَنْ يَوْمِهِ اوكه ده په يوه ورځ كښې وركړو.نو صرف د يوې ورځې ( كفارې) دپاره به كافي وى

**تشريح**> صورت د مسئلې دا دې.كه يومسكين ته ئې شپېته ورځې روټئ وركړله.نوكفاره ادا كيږى.اوكه په يوه ورځ ئې وركړله.نوصرف ديوې ورځې دپاره كافي كيږى.
**دليله**> دكفارې نه مقصود دحاجت لرې كول دى.اوحاجت هره ورځ نوې پيدا كيږى.نوبه بله ورځ هم دغه مسكين ته وركول داسې شو.لكه چه هم دويم مسكين ته ئې وركړله.نوشپېته ورځې يومسكين ته خوراك وركول د شپېتو مسكينانويشان شوه.نوځكه په دې صورت كښې كفاره ادا كيږى.

په (هذاالإباحة) سره دمسئلې دويم صورت بيانوى.يعنى كه يومسكين ته ئې په ورځ كښې په طريقه د اباحت شپېته ځل روټئ وركړله.نودا په اتفاق سره جائز نه دى.ځكه چه واجب خوپه شپېتو مسكينانو په جدا جدا ورځ كښې خوراك كول دى.اوهغه موجود نشو.نه حقيقتاً اونه حكماً حقيقتاً خو ددې وجې موجود نشو.چه هغه يومسكين دې.اوحكماً ددې وجې چه يوسړى ته په يوه ورځ كښې شپېته ځله د روټئ حاجت نه وى.
**وجه التمليك**> اوپاتې شوه دا خبره چه يومسكين په يوه ورځ كښې شپېته ځله د كفارې د مقدارمالك جوړول نوبه دې باره كښې اختلاف دى.نوبعضې حضراتوفرمائيلى دى.چه دا صورت هم ناجائزدې.ځكه چه معتبرحاجت لرې كول دى.اودبعضو رائې ده.چه جائزدى.ځكه چه د يوخيزمالك جوړولو ضرورت په يوه ورځ كښې نوې نوې پيدا كيدې شى.

**د روټئ وركولوپه مينځ كښې ښځې سره جماع كول**

وَإِنْ قَرُبَ الَّتِي ظَاهَرَ مِنْهَا فِي خِلَالِ الْإِطْعَامِ اوكه د خوراك وركولو په مينځ كښې ئې دې ښځې سره وطى اوكړله.دكوم سره ئې چه ظهار كړى وو لَمْ يَسْتَأْنِفْ نو استيناف به نه كوى

**تشريح**> مسئله دا ده.كه ظهاركونكى كس د روټئ وركولوپه مينځ كښې دهغه ښځې سره جماع اوكړله.

---

[1] **مسلك الشافعي**:- امام شافعيؒ فرمائى.چه په كفاره كښې دصبا اومابنام روټئ وركول كافي نه دى.بلكه مالك جوړول ضرورى دى.يعنى چه دا ورته اووائى.چه دا روټئ ما ستا په ملكيت كښې كړه.خوښه دې ده.كه خوري ئې اوكه اوړي ئې.لكه څنګه چه په زكاة اوصدقة الفطر كښې دى.

د کومې نه چه ئې ظهار کړې وی.نود سرنه د روټئ ورکولوضرورت نشته.
دليله> دليل دا دې.چه الله تعالى دا شرط بيان کړې دې.چه خوراك ورکول د وطى نه وړاندې وی.لکه څنګه چه په عتاق اوصوم کښې دا شرط بيان شوې دې.البته دومره خبره ده.چه دا کس به د روټئ ورکولونه وړاندې د وطى کولونه منع کولې شى.څکه چه کيدې شى.دا کس د روټئ ورکولوپوره کولونه وړاندې د غلام په آزادولويا په روژو نيولوقادر شى.نوپه داسې صورت کښې که ده د روټئ ورکولوپه مينځ کښې وطى کړې وى.نود اعتاق اوصوم د وطى نه پس واقع کيدل راځى.حالانکه دا خبره په نص قرآنى سره ممنوع ده.ددې خيرهم په دې کښې دې.چه د خوراك ورکولونه وړاندې وطى نه کوى.

### ددوو ظهارونه دوه غلامان بغيردتعين نه آزادول

| وَمَنْ وَجَبَتْ عَلَيْهِ كَفَّارَتَا ظِهَارٍ اوپه کوم کس چه د ظهار دوه کفارې واجب وى فَأَعْتَقَ رَقَبَتَيْنِ نوده دوه غلامان آزاد کړل لَا يَنْوِي لِإِحْدَاهُمَا بِعَيْنِهَا حالانکه په دې دواړو کښې ئې د يو متعين نيت نه دې کړې جَازَ عَنْهُمَا نودا د دواړو د طرفه جائز دې وَكَذَا إِذَا صَامَ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ اوهم دغه شان چه کله ئې څلور مياشتې روژې اونيولې أَوْ أَطْعَمَ مِائَةً وَعِشْرِينَ مِسْكِينًا جَازَ يا ئې شپږشلو مسکينانو ته خوراك ورکړو .نوجائز دې |
|---|

تشريح> صورت د مسئلې اودليل ښکاره دې.

### د دووکفارونه يوغلام آزادول

| وَإِنْ أَعْتَقَ رَقَبَةً وَاحِدَةً عنهما أَوْ صَامَ شَهْرَيْنِ اوکه ده د دوه ظهارونو دطرفه يوه رقبه آزادکړله.يا ئې دوه مياشتې روژې اونيولې كَانَ لَهُ أَنْ يَجْعَلَ ذَٰلِكَ عَنْ أَيِّهِمَا شَاءَ نوده ته اختيار دې.چه دا کفاره او ګرځوى.په دواړو( ظهارونو) کښې د کوم يو د طرفه چه غواړى |
|---|

تشريح> په عبارت کښې دوه مسئلې زيربحث دى.يوه دا چه په يوکس باندې د ظهاردوه کفارۀ وې.اوده د دواړو دطرفه يوغلام آزاد کړلو.يا ئې دوه مياشتې پرلـه پسې روژې اونيولې.نودې کس ته دا اختيارحاصل دې.چه په دې دواړوکفاروکښې چه دکومې نه غواړى.تعين دې اوکړى.

دويم جلدختم شو

.........